هٰذَا بَيَانٌ لِّلنَّاسِ وَهُدًى وَّمَوْعِظَةٌ لِّلْمُتَّقِيْنَ

○

# تفہیم القرآن

سیّد ابوالاعلیٰ مودودیؒ

## اوّله حصه

د سورۃ الفاتحہ نه — سورۃ الانعام پورے

پښتو ترجمه

○

پروفیسر شفیق الرحمٰن
تخت بهائی ـ مردان

○

## ( دَ تفهیم القرآن اوُدَ هغے دَ پښتو ترجمے په باره کښے مختصره تبصره )

۲۰۰۰/۶/۲۹

مولانا مودودیؒ دَ خپل دَور یو لوئے حق پرست او حق گو عالم وو ، دهٔ دَ قرآن کریم دَ اصولو مطابق یو اسلامی تحریک هم شروع کړے وو اوُ دَ سلف صالحینؒ دَ طریقے مطابق دَ قرآن کریم یو تفسیر هم لیکلے وو چه نوم ئے تفهیم القرآن دے ضروری نه ده چه دَ مولانا ئے مرحوم دَ هرے خبرے سره اودَ تفهیم القرآن دَ هر یو تاویل او توجیه سره زما اتفاق وی لیکن دا خبره زهٔ په اعتماد او یقین سره کولے شم چه په دے تفسیر کښے دَ اصول تفسیر او دَ اصول اهل سنت نه خلاف څهٔ خبره ما نهٔ ده لیدلے ۔ دَ دے تفسیر اسلوب تحقیقی هم دے اوُ زړه راخونکے هم دے دَ دے نوے دور مُنَوّرِین او متجددِ دین یعنی تش دَ نوم روښن خیال دانشوران او جدیدیت پسنده مصنفین په خپلو کتابونو اوُ تفسیرونو کښے چه کوم تجددُ د او آزادانه اجتهاد اختیار کړے دے دَ مولانا مودودیؒ تفسیر اوُ کتابونه دَ دے قسم خرابونه محفوظ دی فالحمد لله البته دَ مسائلُ اوُ مباحثُ تحقیق و تنقیح مولانا په جدید اسلوب تحریر کښے او جدید اصطلاحاتُ کښے په ډیر ښکلی او خوږ انداز سره کړیدے الله تعالی دے مولانا مرحوم ته دَ دے اجر موعود ورکړی اوُ دَ دوی محنت اوُ سعی مشکور اوُ مقبول اوُ گرزوی آمین .

دا تفسیر په اُردو ژبه کښے لیکلے شوے وو لیکن پروفیسر شفیق الرحمٰن صاحب دَ دے ترجمه په فصیحه او سلیسه پښتو ژبه کښے کړیده دا ترجمه ما خو مکمل نده کتلے لیکن دَ بعضے مقاماتو دَ مطالعے نه ما اندازه لگولے ده چه ترجمه صحیح هم ده مربوطه هم ده او عام فهمه هم ده ۔ مولانا مودودیؒ دَ قرآن کریم دَ کلماتُ لفظی ترجمے په ځائے دَ ترجمانئے او دَ تفهیم طریقه اختیار کړے وه یعنی دَ آیاتُ مفهوم ئے په اُردو محاوره کښے واضح کړیدے لیکن لغوی اوُ لفظی معنے هم ملحوظ ساتلی ساتلی دی ۔ پروفیسر شفیق الرحمٰن صاحب هم په خپله ترجمه دَ مولانا اسلوب برقرار ساتلے دے او په پښتو محاوره کښے دَ « تفهیم القرآن » ترجمانی کړیده امید دے چه لوستونکی به دَ دے ترجمے نه فائده بیاموی ۔ دَ دے ترجمے دَ دے رومبنی جلدونه اول کښے جماعت اسلامی تخت بهائی شائع کړے وه لیکن اوُس دا ترجمه مکمل شکل کښے ( پوراسٹ ) مکتبهُ الهُدٰی مردان دَ طرفه نه شائع کیږی ۔ زما دُعا ده چه الله تعالی موږ ټولو ته دَ قرآن صحیح فهم اوُ علم نصیب کړی دَ قرآن دَ تعلیماتو مطابق ژوند تیرولو توفیق او بخی او دَ قرآنی نظام دَ غلبے او قیام دَ پاره دَ جد وجهد کولو توفیق راکړی آمین

مولانا گوهر رحمٰن

شیخ القرآن والحدیث جامعه تفهیم القرآن مردان

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

# دیباچه

تر اوسه پورې زموږ په ژبه کښې د قرآن مجید دومره ډیرې ترجمې او تفسیرونه شویدي چه که څوک ووايي چه يوه نوې ترجمه يا يو نوې تفسير د برکت او د ثواب کتلو د پاره ليکي نو هغه به داسې ښکاري لکه چه خپل وخت او محنت په صحيح ځائې کښې نه لګوي. په دې لړکښې به نور زيات کوشش صحيح او مناسب هله وي چه سړې د قرآن مجيد د تفسير داسې کمې پوره کړي چه هغه د مخکينو ترجمه کونکو او تفسير ليکونکو نه پاتې شوې وي او يا د نن صبا د قرآن د طالبانو يو داسې ضرورت وي چه په مخکينو تفسيرونو کښې نه پوره کيږي.

په دې کتاب کښې د قرآن مجيد د ترجمې او په قرآن مجيد د پوهې راوستلو د پاره هم په دې بنياد ايښودلې شوې دے. د يوې مودې راسې ما دا محسوس کړه چه زموږ په عام تعليم يافته خلقو کښې دا شوق را پيدا شوې دے او دا شوق ورځ په ورځ نور هم زياتيږي، چه د قرآن مجيد په حقيقي مطلب او مدعا ځان پوهه کړي، خو د موجوده قابل قدر ترجمو او تفسيرونو نه د هغوئي دا شوق تر اوسه پورې پوره نه شو. د دې سره سره ما ته دا هم ښکاريدله چه د دغې د دې شوق پوره کولو د پاره زه هم څه خدمت کولې شم. دا د وجه ده چه ما تفهيم القرآن کتاب او ليکلو او د دې کتاب په وجه که خلق په قرآن مجيد څه لږ هم پوهه شو نو دا به زما د پاره ډيره لويه خوش نصيبي وي.

په دې کار کولو کښې زما دا مقصد نۀ دې چه کوم خلق عالمان دي، تحقيق کونکی دي او يا دَ عربئ ژبې او دَ دينی علم پوره کولو نه روستو په قرآن مجيد باندې غور او تحقيقی نظر اچول غواړی، کې دَ هغوئ تول ضرورتونه به په دې کتاب سره پوره شي. دَ دې ضرا تو دَ ضرورت پوره کولو دپاره دَ هغوی کښې نه ډير کار شوی دې. زۀ چه دَ کوم خلقو دپاره خدمت کول غواړم هغه دَ منځنۍ درجې تعليم يافته خلق دي چه دَ عربئ ژبې نه ناخبره دي او دَ هغوئ دپاره دا ممکنه نۀ ده چه دَ قرآن دَ علمونو نه فائده واخلی. دَ داسې خلقو ضرورت پوره کول په دې کتاب کښې زما مقصد دې. او دَ دې وجې نه ما ډيرو داسې تفسيری بحثونو کړې نۀ دې چه دَ علم تفسير دپاره خو ډير ضروري او اهم دي خو دَ دې طبقې دَ خلقو دپاره هيڅ ضروري نۀ دې. په دې کتاب کښې زما دا مقصد دې چه که څوک يو عام سړې دا کتاب ولی نو چه ورسره ورسره دَ قرآن په مطلب او مُدعا هم پوهه شي او په زړۀ ئې هغه اثر دَ شي کوم چه دَ قرآن په اوريدلو سره کيږي. هم دارنګې چه دَ لوستلو په دوران کښې کوم مشکلات دۀ ته مخې ته راشي هغه په هغې ځائې صفا شي، او که په ذهن کښې ئې څه سوال راپيدا شي نو دَ هغې جواب ورته په وخت ملاؤ شي. دا زما کوشش دې. او س دا فيصله عام لوستونکی خلق کولې شي چه په دې کوشش کښې زۀ ترکومه پورې کامياب يم. هرڅنګه چه وي زما دا کوشش آخری تکې نۀ دې. هر لوستونکی ته دا زما درخواست دې چه په کوم ځائې کښې څه کمې وي، يا چرته دَ يو سوال جواب نۀ وي، يا چرته مقصد بنۀ نۀ پوره کيږي، نو دَ هغې نه دِ ما خبر کړی چه زۀ ئې دَ بنه کولو کوشش اوکړم. دا درخواست زما علمائې کرامو ته هم دې چه ما دِ دَ خپلو غلطو نه خبر کړی.

## دَ ترجمې کولو او دَ مطلب بيانولو په حقله يو څو خبرې

په دې کتاب کښې ما دَ ترجمې دَ زړې طريقې په ځائې دَ ترجمانئ يوه آزاده طريقه اختيار کړيده. دَ دې دا وجه نۀ ده چه زۀ دَ لفظ دَ پابندئ سره دَ قرآن ترجمې کولو ته غلط وايم. بلکه اصل وجه دا ده چه زما نه مخکښې ډيرو بزرګانو دَ قرآن ښکلے ښکلے ترجمې کړی دي او س دَ هغې شان ترجمو کولو ضرورت نۀ دې پاتې شوې. په فارسی ژبه کښې دَ شاه ولی الله صاحب

ترجمه، په اردو ژبه کښې دَ شاه عبدالقادر صاحب، شاه رفیع الدّین صاحب، مولانا محمود الحسن صاحب، مولانا اشرف علی صاحب او دحافظ فتح محمد صاحب جالندهری ترجمې هغه مقصد ونه شي پوره کولی دکوم دپاره چه دَ لفظي ترجمې ضرورت مه لیکن څه ضرورتونه داسې دي چه دَ لفظي ترجمې سره نه پوره کیږي او نهٔ به پوره شي. ددې ضرورتونو پوره کولو دپاره ما آزادې ترجمانۍ کوشش کړې دې.

دَ لفظي ترجمې اصل فائده دا ده چه سړي ته دَ هر لفظ مطلب معلوم شي، او دَ هر آیت لاندې چه لیکلی شوی ترجمه واقي نو دَ هغې آیت په مطلب هم پوهه شي. لیکن ددې فائدې سره دلفظي ترجمې څه نقصانات هم دي چه دَ هغې په وجه دَ عربۍ نه ناواقفه سړې دَ قرآن مجید نه پوره فائده نشي اخستلی.

په لفظي ترجمه کښې دَ ټولو نه اول دا کمې دي چه نه په عبارت کښې رواني وي، نه په وینا کښې څه زور وي. نه په خبرو کښې خوږ والے وي او نهٔ کلام څه اثر لري. دَ قرآنی ټکو نه لاندې داسې مزه عبارت وي چه سړې واقي نو نهٔ روح کښې کړچ راځي، نهٔ غوږونه زړه سیږي، نهٔ دَ سترګو نه اوښکې بهیږي، نهٔ په جذباتو کښې حرکت راځي، او نهٔ په دې پوهیږي چه زمانې ته یو داسې شیز کوزیږي چه عقل او فکر بدلونکې دے. په نړۍ دا زنګې اثر کول خو لا پریږده دغه ترجمې وټیلو په وخت کښې اکثره دَ سړي په زړهٔ کښې دا راځي چه رښتیا دا هغه کتاب دے چه ټولے دُنیا ته دا وئیلے شوی وُو چه ددې په شان ددې کتاب په مقابله کښې یو کتاب اولیکئ؟ ددې وجه دا ده چه په لفظي ترجمه کښې خو صرف وچ مطلب بیان شوې وي، په هغې کښې دَ ادبي ژبې هغه خوندناک خوږوالے نهٔ وي کوم چه دَ قرآن په اصلي عبارت کښې موندلے شي. حالانکه قرآن دَ خپل پاک تعلیم او دَ خپل اوچتو مضمونونو په وجه څه اثر لري نو په هغې کښې دَ ادبي رنګ هم ډیره لویه برخه ده. داخو په قرآن کښې ادبي رنګ وُو چه دَ سړي دَ سخت نه سخت زړهٔ به ئې نرمه ولو، او دَ آسماني تندر ږیشان به ئې دَ عربو ټټوله زمکه رږوله، او دغه اثري طاقت ئې دَ قرآن مخالفینو هم منلے وُو. ځکه خو هغوئ ددې نه یَرېدل چه دا جادو ږیشان اثر لرونکې کلام هر چا چه اورید لے دے په هغه ئې ضرور اثر کړے دے. دا ادبي زور که په قرآن کښې نهٔ وے او دَ ترجمې په رنګ یوه ژبه کښې نازل شوے وے نو نهٔ به ئې دَ عربو په زړونو کښې نرمي او جوش پیدا کړے وے او نهٔ به ورته هغه شان کامیابي حاصله شوې وه کومه

چه ورته په حقیقت کښې حاصله شوې ده.

دَ لفظي ترجمې دَ يو اړخ يوه وجه دا هم ده چه اکثره ترجمې دَ دوو کرښو په مينځ کښې ليکلې شوې وي، او يا دَ نوې طريقې مطابق دَ صفحې په يو طرف کښې قرآني عبارت او بل طرفته ښامخ دَ صفحې ترجمه ليکلې شوې وي. دا طريقه خو دَ لفظي ترجمې دپاره ډېره مناسبه ده ځکه چه دَ هر لفظ او دَ هر آيت په مقابله کښې دَ صفحې ليکلې شوې ترجمه ملاويږي. ليکن دَ دې نقصان دا دے چه ځمونږ که يو سړے نور کتابونه وائي او دَ وينا سره سره دَ صفحې په مطلب باندې پوهيږي او اثر هم تېلوي. نو دغه رنګ نه خو سړے يوه ترجمه مسلسله روانه وېلے شي او نه په سړي څه اثر کوي، ځکه چه دَ مطلب اختلاف په دوران کښې لوستونکي ته يوه نا آشنا ژبه بيايا مخې ته راځي. دَ انګريزئ ترجمې د دے نه زياته بده اثره وي. په صفحه کښې خو دَ يو يو آيت ترجمه بېله بېله نمبر وار دَ انجيل دَ ترجمې په شان ليکلې شوې وي. که دَ يو بند نه بند مضمون وي خو چه ته دَ صفحې فقرے ځان له ځان له نمبر وار بره لاندې او ليکې او وينې وائې نو تا ته به څرګنده پته اولږي چه دَ مسلسل روان عبارت نه څومره اثر تا په ذهن کېږي دَ صفحې په نيمه اثر هم دغه مضمون دَ نمبر وار فقرو نه نه حاصليږي.

دَ لفظي ترجمې دَ بل اړخ يوه بله غټه وجه دا ده چه دَ قرآن دَ وينا طرز تحريري نه دے بلکه تقريري دے. که چرے دَ ترجمې کولو په وخت کښې دَ تقرير بيان دَ تحرير بيان کښې بدل نه کړے شي او هُو بهُو لفظي ترجمه اوکړے شي نو ټول عبارت به ځاے ځاے بے مزے شي. دا خو هر چا ته معلومه ده چه دا ول سر نه قرآن دَ کتابچو په شکل کښې تقسيم شوے نه وُو، بلکه قرآن به لږ لږ، وخت په وخت دَ ضرورت مطابق يو يو تقرير په نبي صلی الله عليه وسلم باندې نازليدلو او هغه به خلقو ته خطابي شکل کښې اورولو. دَ تقرير په وينا او دَ تحرير په ليکلو کښې ښکاره ډېر لوئے فرق وي. مثلاً په تحرير کښې چه يو شک بيان شي نو هغه ختم شي. ليکن په تقرير کښې خو شک شُبه کونکي ته حاضر ناست وي، او دے خبرے کولو هېڅ ضرورت نه راځي چه "خلق دا سے وائي" بلکه تقرير کونکے په خپلو روانو خبرو کښې د دے يوه خبره اوکړي چه دَ خلقو شک په خپله ختم شي. دَ تحرير په دوران کښې کم بوے دا سے خبرے ليکلو ته ضرورت راشي چه دَ روانو خبرو نه ئے مطلب جُدا وي، نو هغه خبره دَ روان عبارت نه بېله په دا سے رنګ

کښې اولیکلې شي چه اصل عبارت روان پاتې شي او مطلب ئې هم وکړ وړ نشي. دغې جملې ته جمله معترضه وائي. لیکن یو تقریرکونکې د خپل تقریر په دوران کښې ویرې ویرې خبرې د خپلې موضوع نه بدلې بدلې په داسې طرز ذکرې چه تقریر مسلسل روان پاتې شي او هم د موضوع نه بدل نه ښکاري. په تقریر کښې چه خبرې د ماحول سره یو شان کول غواړې نو د لفظونو د استعمال نه به کار اخلې. لیکن د تقریر په دوران کښې ماحول چپله د خبرې سره یو شان کیږي، که تقریرکونکې خپل ماحول ته څه اشاره او نه کړي او خپلې خبرې جاري او ساتي نو په مطلب کښې ئې څه فرق نه راځي. تقریرکونکې چه د یوې ولې بحث کوي نو کله ئې د غائب په حیثیت یاده وي او کله ئې د حاضر په حیثیت، کله یو سړي ته اشاره کوي او کله ویر مخلوق ته، کله به د چا ویناپه داسې رنګ کوي چه ته به وائې چه دا هغه سړے په خپله لګیا دے. کله به د یوې ولې د طرفه خبرې کوي، کله به د یو بالائي طاقت نمائندګي ښکاري، او کله به دومره ویرې خبرې شروع کړي لکه چه مخ په خپله یو بالائي طاقت وي. په تقریر کښې خو دا ټولې خبرې بنه ښکاري لیکن په تحریر کښې ویرې بدې لبزي. هم دا وجوهات دي چه کله څوک د چا تقریر هُو بهُو اولیکي او بیا هغه لیکلې شوے تقریر څوک بل څوک وائي نو ډیر کړ وړ ورته ښکاري ځکه چه هغه ویونکې خو د تقریر د حالاتو نه او د ماحول نه ناخبره وي. دغه شان هم دا وجه ده چه څوک ناپوهه خلق د عربئ ژبې قرآن وائي نو ورته بې ربطه او کړ وړ ښکاري. د قرآن په اصل عبارت کښې کمې زیاتې را وستل خو حرام دي نو ځکه د ربط را وستلو د پاره د قرآن د اصل عبارت نیږے ورے حاشیه لیکلې شي. لیکن دا ربط را وستل به نور هم بنه آسان شي که چرې د ترجمې کولو په وخت کښې د قرآن مجید تقریري انداز په تحریري انداز کښې بدل کړے شي.

لکه څنګه چه ما اوس وئیلي دي چه د قرآن مجید هر سورت په اصل کښې یو تقریر دے. دا تقریر به هله نازلیدلو چه کله به د اسلام د خوځولو په کار کښې څه واقعه پیښه شوه او یا به څه ضرورت مخې ته راغلو نو دغې ضرورت د پوره کولو د پاره به یو سورت نازل شو. د خپل خپل سورة د خپلو خپلو حالاتو او واقعاتو سره دومره مضبوط تړون دے چه که چرې یواځې د قرآني الفاظو ترجمه او شي او خپل واقعات ورسره بیان نشي نو ډیر ځایونه به پکښې داسې راشي چه په هغې به هر وسړے پوهه نشي او ډیر ځایونه به داسې راشي چه سړے به ترې غلط او اپوته مطلب واخلي. او دا هم ډیره

ممکنه ده چه سړے هغه د قرآن په مطلب باندِ پوهه نشی. په قرآن کښے داقسمه مشکلات
د تفسیر په ذریعه لرے کیدے شی ځکه چه د قرآن په اصلی عبارت کښے څه کمے زیاتے نه کیدے نشی
لیکن د قرآن د ترجمے کولو په معامله کښے موږه دومره آزاده ترجمه هم کولے شو چه په هغے کښے
ترډیره حده پورے د شانِ نزول او د متعلقه واقعاتو تشریح هم وی او بیا د لوستونکی دپاره دغه
ترجمه وزنداره او مزیداره دی.

یوه خبره داهم ده چه د قرآن ژبه عربی مبین خوده لیکن ورسره یوخاص اصطلاحی
شان هم لری. قرآن کښے داسے ډیر لفظونه استعمال شوی دی چه معنیٰ ئے اصلی د لغوی
معنیٰ نه بدله وی او کله خو دَیو لفظ معنیٰ په یوځائے کښے یو شان او بل ځائے کښے بل شان
وی. نو کومه ترجمه چه د لفظ د پابندیٔ سره کیږی په هغے کښے دا اصطلاحی شان برقرار
ساتل ډیر مشکل وی. او دغه وجه ده چه څوک لفظی ترجمه لولی هغه ته په مطلب
پوهیدل ډیر گران وی. مثلاً یو لفظ د "کفر" واخله، چه په قرآن کښے دالفظ د عربیٔ د
لغت نه او د فقهاؤ او د متکلمینو د اصطلاح نه بالکل په مختلفه او بدله اصطلاح کښے
استعمال شوے دے، په هرځائے کښے یو شان معنیٰ نه لری، چه یو ځائے کښے ترمراد د ایمان
نه خالی حالت وی او بل ځائے کښے ترمراد صرف انکار وی، یو ځائے کښے ئے مطلب ناشکری وی
او بل ځائے کښے ئے مطلب د اسلام حکمونه نه پوره کول دی، کله ئے دالفظ د انسان د هغه حالت
دپاره استعمال کړے وی چه عقیده ئے درسته وی خو عمل ئے د نافرمانو خلقو په شان وی، او
کله ئے د انسان د هغه حالت ښکاره کولو دپاره استعمال کړے وی چه هغه حالت په ظاهره درست
ښکاری خو د انسان خپله عقیده درسته نه وی - اوس که چرے د قرآن په هرځائے کښے د
لفظ "کفر" ترجمه یوه خاصه معنیٰ کیږی نو دا ترجمه به په خپل ځائے باندِ صحیح خو وی
لیکن ترجمه لوستونکی به په مختلفو ځائے کښے په مطلب نه پوهیږی، په څنے ځائے کښے به غلط مطلب
اخلی او کله به په شک کښے پریوزی.

د لفظی ترجمے د دے کمی پوره کولو دپاره ما د آزاده ترجمانیٔ طریقه اختیار
کړیده. د قرآنی الفاظو نه د اُردو الفاظو جوړولو په ځائے ما دا کوشش کړے دے
چه د قرآن د لوستلو نه کوم مطلب زما ذهن ته راغلے دے او د هغے کوم اثر زما په
زړهٔ باندِ شوے دے، ما هم هغه مطلب او اثر په خپلو الفاظو کښے بیان کړے دے.

یوه ترجمه کوری. دَدے نه روستو به دَ تفهیم القرآن صرف ترجمه دَ یو روان عبارت په شان اووایئ چه دَ خپل سبق په مطلب پوره پوهه شی بیا پس دَ هغے نه به دَ یو یو آیت دَ تفصیل دپاره حاشیئے اوکوری. امید لرم چه په دا شان لوستلو به که عالمانه پوهه نه وی نو عامه پوهه خو به انشاء الله ډیره بنه راشی.

---

دا کتاب ما په محرم ۱۳۶۱ھ (فروری ۱۹۴۲ء) کښے شروع کړے وو. دَ پنځو کالو نه دَ زیاتے مودے پورے دا کار جاری وو. آن ترجمه چه دَ سورت یوسف دَ آخره پورے ترجمانی او دَ تفهیم کار تیار شو. دے نه روستو څه داسے اسباب جوړ شو چه نه راته دَ هغے لیکلو موقع په لاس راغله او نه دومره وزګار شوم چه شوے کار دوباره اوکورم او په کتابی شکل کښے خلقو ته وړاندے کرم. اوس که تر دے ته بندے وایئ او که بد، په اکتوبر ۱۹۴۸ء کښے زه نا ساپه دَ پبلک سیفټی ایکټ لاندے اونیوے شوم او په جیل کښے وردننه کړے شوم نو په جیل کښے راته بنه وخت ملاؤ شو او کتاب مے دَ چاپ کولو قابل کړو. زه دَ خدائے نه دا دُعا غواړم چه ما دا محنت دَ کومه غرض دپاره کړے دے هغه دِ خدائے پوره کړی او خدائے دِ اوکړی چه د دے کتاب په مدد خلق په قرآن مجید پوهه شی.

وَمَا تَوْفِیْقِیْ اِلَّا بِاللّٰہِ الْعَلِیِّ الْعَظِیْمِ۔

ابو الاعلیٰ

---

نیو سنټرل جیل ملتان

۱۰ ذی القعده ۱۳۶۸ هجری (۱۱ ستمبر ۱۹۴۹ء)

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

# مُقَدِّمَه

دَ مقدمې دَ لفظ په لیدلو سره دِ څوک په دې نۀ دوکه کیږي چه کُنې زۀ دَ قرآن مقدمه لیکم. دا دَ قرآن مقدمه نۀ ده، دَ تفهیم القرآن مقدمه ده. او دَ دې دَ لیکلو نه زما دوه مقصد ونه دي:

یَو دا چه یو عام قرآن لوستونکے دَ قرآن شروع کولو نه مخکښې دَ هغه خیز ونه سره خبر شي کوم چه دَ قرآن په پوهیدلو کښې آسانتیا راولي. که دا یې اُو نۀ شي نو هوم دا خبرې به دَ قرآن دَ لوستلو په دوران کښې سړي ته بیا بیا مخې ته کیږي، او اکثر خو دا یې اُو شي چه دَ دې خبرو دَ نۀ پوهیدو په وجه سړے دَ ویې موضوع په قرآن سرسري تیر یږي را تیریږي خو په ژور مطلب ئې نۀ پوهیږي.

دوَیم دا چه دَ دا سې قسمه سوالُو نو جوابونه دا ول نه او کړے شي کوم چه عام طور دَ خلقو په ذهن کښې مین په هغه وخت کښې پیدا کیږي کله چه هغوئ په قرآن باندې دَ پوهیدلو کوشش کوي. په دې مقدمه کښې خو زۀ صرف دَ هغې سوالُونو جوابونه لیکم کوم چه اول اول زما په ذهن کښې راغلي وُو او یا زۀ دوستو زما ذهن ته را غلل. دَ دې نه علاوه که چرته دَ نورو سوالونو جوابونه پاتي شوي دي نو دَ هغې نه ما خبر کړئ. دَ هغې جوابونه به انشاء الله هم په دې مقدمه کښې اولیکم کله چه بیا دا کتاب چاپ کیږي.

---

عام طور چه مونږه دَ کوم کتابونو لوستلو عادت یو، په هغې کښې دَ یو خاص موضوع لاندې څه معلومات، خیالات او دلائل په یو خاص ترتیب سره لیکلي شوي وي. دَ غه وجه ده چه کله دَ قرآن مجید نه یو نا اشنا سړے په اول ځل دَ دې کتاب دَ کتلو اراده اوکړي، نو دَ هغه په خیال کښې دا وي چه دا هم یو کتاب دے، په دې کښې به نورو

کتابونو په شان یو خاص موضوع وي، بیا به په ډېرو حصو کښې تقسیم شوي وي، او په یوه یوه مسئله به ځان له ځان له بحث شوے وي، د ژوند مختلف شانګے به جُدا جُدا لیکلي شوي وي او د هرے شانګے حکمونه به پکښې بېل بېل بیان شوي وي. خو چه کله هغه کتاب د کلو د پاره پرته کړي نو ګوري چه د کتاب تهول انداز سراسر بدل دے، تهول کتاب ورته نا آشنا ښکاره شي. هغه وینی چه په کتاب کښې د عقیدے مسئلے، اخلاقي خبرے، د شریعت حکمونه، اسلام ته بلنه، د نصیحت او د عبرت خبرے، تنقید او ملامتیا، یرول، زړے ورکول، دلیلونه تاریخي قیصے او د قدرت کاریګرۍ ته اشارے کول، په یو بل پسے بیا بیا راغلي دي. یوه خبره په بېل بېل طرز کښې په نورو نورو الفاظو سره دوباره دوباره شوېده. ذکر د یوے خبرے کیږي او ناساپه پکښے بله بله خبره شروع شي، د خبرے مینځ کښې بله خبره شروع شي. خبرې دیُوګے کله یو څوک وي او کله بل څوک، او چه چا ته خبري کیږي هغه هم کله څوک وي او کله څوک. د کتاب بېلو بېلو حصو کښې تقسیم نشته، تاریخ پکښے د تاریخ په طرز نشته، د فلسفے او آخرت (ومابعد الطبیعیات) بحث پکښے د منطق او فلسفے په شان نه دے، د انسان او د دُنیاوي شیزونو ذکر پکښے د سائنسي علومو په طریقه شوے نه دے، د سیاست او د استوګنې خبري پکښے د عمراني علومو په طرز نه دي شوي، د قانون اصول او د قانون حکمونه د قانون سازانو د طریقو نه بالکل بدل دي، د اخلاقو تعلیم د فلسفهٔ اخلاق د کتابونو د انداز نه بیخي بل شان دے. دا ټولے خبرے چه سړے په قرآن کښې د خپل خیال نه بدلے په بل طرز کښې اُووینې نو حیرانه او پریشانه شي، هغه ته داسے ښکاري چه دا ځان له ځان خورے ورے خبرې دي خو په روان عبارت کښې لیکلے شویدي د چا چه په قرآن ایمان نه وي او قرآن ګوري نو هغه هم د دی خبرو نه خپل اعتراضات شروع کړي. او د چا چه په قرآن ایمان وي نو هغه خو کله معنو ته خیال نه کوي نو د شکو نو نه ځان اُوساتي، کله د دے خورو ورو خبرو وجه بیان کړي، او کله خو دا اُومني چه قرآن هم دغه خورے ورے خبرے دي او د دے وجه نه د قرآن هر یو آیت د ډېرو معنو داسے مرکز جوړ شي چه د یُو نکي د خیال نه مخالف وي.

---

په کتاب د بندهٔ پوهېدو د پاره دا ضروري ده چه کتاب لوستونکي ته د کتاب موضوع

معلوم وي، دَ کتاب دَ مقصد او مدّعا نه خبر وي، دَ کتاب دَ انداز بیان، دَ اصطلاحي ژبې او دَ تشریحي انداز سره آشنا وي، او دَ کتاب دَ بیاناتو په مختلفو ورستو حالاتو ئې نظر هم وي. مونږ چې عام طور کوم کتابونه لولو په هغې کښې دا تمولې خبرې موجود وي نو ځکه ئې په مطلب بنه پوهیږو او په پوهیدو کښې را ته څه تکلیف نه وي. خو لیکن په قرآن مجید کښې دا تمولې خبرې په هغې طرز نه وي په کوم طرز چې مونږ په نورو کتابونو کښې وینو کورو. هم دغه وجه ده که څوک په دې عام خیال سره قرآن مجید لوستل شروع کړي نو ورته پکښې دَ کتاب موضوع او مدعا نه ښکاریږي، دَ کتاب انداز بیان ورته نا آشنا لږي او په ډیرو ځایونو کښې ترې دَ عبارت پس منظر پناشي. نتیجه ئې دا راوځي چې دَ قرآن په آیتونو کښې کوم حکمت او پوهه پرته ده دَ هغې نه څوک لږه ډیره فائده سره واخلي. خو لیکن دَ الله تعالی دَ کلام ویخ او مطلب ته او نه رسیدے شي، دَ قرآن دَ اصلي علم نه خبر نه شي، او صرف په یو څو هغه دغه فائدو باندې صبر او کړي، بلکه اکثر چې کوم خلق دَ قرآن کتلو نه ورو ستو په شک کښې پریوزي او په شا په سر شي دَ هغې یوه وجه دا هم ده چې هغوئ دَ قرآن دَ دې بنیادي او ضروري خبرو نه ناخبره وي ځکه خو چې هغوئ کله قرآن لولي نو دَ قرآن ټول مضمونونه ورته خواره واره ښکاري، دَ ډیرو آیتونو په مطلب پوه نه شي، ډیر آیتونه ورته په خپل ځائې دَ حکمت نه ډک معلومیږي خو په روان عبارت کښې ورته بې ځایه او ګډ وډ ښکاره شي، ځکه خو دَ قرآن په څنو ځایونو کښې هغوئ دَ اصل مطلب نه لرې چرته یل طرفته لاړ شي او په سخته دوکه کښې پریوزي.

---

قرآن کوم قسم کتاب دے؟ قرآن څنګه نازل شوے دے او په کوم ترتیب سره لیکلے شوے دے؟ قرآن وائي څه؟ او غواړي څه؟ دا بې شمېره او قسما قسم مضمونونه دَ کوم مرکزي مضمون سره تړلي دي؟ دَ خپلې مدّعا دپاره څنګه دلیلونه وائي او په کوم طرز خبرې کوي؟ دَ دې او دَ دې قسمه دَ نورو سوالونو جوابونه که سړي ته په اول کښې صفا صفا ملاؤ شي نو سړے

به دَ ډيرو خطراتو نه بچ شي او دَ پوهې او دَ سوچ ډيرې لارې به ورته پرانستې شي. څوک چه په قرآن کښې دَ ليکلو ترتيب ګوري او بيا په قرآن کښې هغه ترتيب وُنۀ ويني نو پريشانه شي. دَ پريشانئ وجه ئې هم دغه ده چه دے دَ قرآن دَ بنيادي خبرو نه ناخبره دے. هغه په دے ګمان قرآن کتل شروع کړي چه دا دَ "مذهب يو کتاب دے" او دَ مذهبي کتاب په باره کښې چه عام طور کوم خيال دے، دغه ته قرآن دَ هغې نه بالکل بدل او مختلف کتاب ښکاره شي، نو نۀ دَ قرآن په مضمون پوهيږي او نۀ دَ قرآن دَ طرز سره ځان آشنا کولے شي، بلکه دَ يو ناآشنا مسافر پشان چه هغه دَ يوې نوې ښار په کوڅو کښې ورک شوے وي، دے هم خيالي طور دَ قرآني آيتونو په مينځ کښې ګډ وډ او خطا رسا کرزي. دَ دے بې مطلبه او خطا ګرځيدو نه په دے هله بچ شو چه دَ قرآن شروع کولو نه وړاندې دغه ته دا او خود لے شي، چه دا کوم کتاب (قرآن) ته ئې وايې دا دَ دُنيا دَ ټولو کتابونو نه دَ ځان له طرزه دَ ځُدا موضوع او دَ بدل ترتيب يو بېل شان کتاب دے. دا ستا په ذهن کښې چه دَ دُنيا دَ کتابونو نه کوم خيال جوړ شويدے دَ هغې په مدد ته په قرآن نۀ پوهيدلے. که په قرآن پوهيدل غواړې نو دغه ټول خيالونه دَ ذهن نه لرے کړه، پس دَ هغې به دَ قرآن دَ ښکلي خاصيتونو نه خبر شې.

---

په دے لړ کښې قرآن لوستونکي له دَ ټولو نه اول دا پکار دي چه دَ قرآن په اصل ځان پوه کړي. که په قرآن ئې ايمان وي او که نۀ خو چه څوک په قرآن ځان پوهه کول غواړي نو دَ هغۀ دپاره دا ضروري ده چه ټولے هغه خبرے اُومني کومے چه پخپله قرآن او مُحَمّد صلی الله علیه وسلم بيان کړي دي. هغه ضروري او اصولي خبري دا دي:

١- خدائے پاک دَ ټول کائناتو پيدا کونکے او بادشاه او چلونکے دے، دَ هغۀ بې حده فراخه بادشاهي ده، هغه دَ کائناتو په يوه حصه کښې، چه ورته دُنيا وائي، انسان پيدا کړو، دے انسان ته ئې دَ پيژندګلو، دَ سوچ

او فکر کولو او د پوهې طاقتونه ورکړل. د بنده او بدن پېژندلو طاقت ئې ورکړو، د خوښولو او ارادې کولو آزادي ئې ورکړه، په خپله خوښه د کار کولو اختيارات يې ورکړل، او دې قسم خود اختياره انسان ئې په زمکه کښې خپل خليفه کړو.

۲- الله پاک چه کله انسان د خلافت په دې منصب مقرر کړو نو دا ئې ورته بنه په صفا الفاظو اووئيل چه ستا او د ټول جهان مالک، د عبادت لائق، او حکم کونکے زه يم. زما په دې بادشاهئ کښې نه ته بخپله هرڅه ئې، نه د بل غلام ئې او نه زما نه بغير دا سې څوک شته چه ته د هغه وُ صف، او بندګي يا عبادت ئې وُکړې. د دُنيا دا ژوند ستا دپاره د امتحان او د آزميښت يوه موده ده، د دې نه به روستو ته ماله واپس راځې، زه به ستا عمل (کار) چکوم، بيا به روستو په امتحان کښې ستا د کاميابئ او ناکامئ فيصله کوم، ستا دپاره د کار کولو صحيح طريقه دا ده چه ته ما خپل يو معبود او حاکم ومنه. زه چه درته د کومو کارونو حکم کوم په دُنيا کښې هغه کوه، دُنيا د امتحان ځائے وګڼړه، او په دې مقصد ژوند تيره وه چه زما په آخري فيصله کښې کامياب شې. د دې نه بله هره يوه طريقه ستا دپاره غلطه ده. که د کار کولو دا طريقه د بخپله خوښه اختيار کړه نو په دُنيا کښې به امن او اطمينان درته نصيب شي، او چه کله ماله واپس راشې نو زه به درته د هميشه خوشحالو کور جنت درکړم. او که نه چرته په بله لاره په خپله خوښه لاړلې نو د دُنيا ژوند به دِ د فساد او د بې آرامئ نه ډک وي او کله چه د دُنيا نه آخرت ته راشې نو د هميشه تکليفونو مصيبتونو ځائے دوزخ کښې به پريوزې.

۳- د جهانونو بادشاه انسان ته دا نصيحت اوکړو او په زمکه کښې ئې آباد کړو، او د انسان اولنو دوو کسانو (آدم او حوا) ته ئې هغه صحيح طريقه هم اوخودله چه د کوم مطابق هغوئ ته او د هغوئ اولاد ته په زمکه کښې ژوند تيرول پکار دو. دا اولنئ دوه کسان ناپوهه او جاهلان نه وُو پيدا کړے شوي بلکه خدائے پاک ورته د اوله نه د ژوند روښانه لار خودلې وه. هغوئ د حقيقت نه خبر وُو. په دُنيا کښې ئې ورته د ژوند تيرولو قانون خودلے وُو. د هغوئ د ژوند تيرولو لار د خدائے اطاعت (يعنې اسلام) وُو، او خپل اولاد ته ئې هم

وئیلی وُو چه دَ خدائے اطاعت کوُنکی (مسلمانان) جوړ شئ. لیکن دیرہ پیړئ روستو
رُو رُو انسان دَ ژوند دَ صحیح لارے (دین) نه په دوه شو او په مختلفو غلطو لارو
روان شو. دغه صحیح لار تړ دَ بے پروائی دَ وجے ورکه شوله او دَ هغوئ دَ شرارتونو
په وجه دَ لارے خپل شکل هم بدل شو. دے انسانانو د خدائے سره په خدائی کښے دیر
خیالی خدایان شریک کړل. خدائے چه دَ حقیقت کوم علم دوئ له ورکړے وُو دَ
هغه سره ئے خپل وهمونه، نظریئے او فلسفے شریکے کړے او دیر مذهبونه ئے جوړ کړل.
خدائے پاک چه دوئ ته دَ اُوسیدو د پاره کوم دَ انصاف اصول (شریعت) خودلی
وُو هغه دوئ پریښودل یائے بدل کړل او دَ خپلو خواهشاتو او تعصباتو مطابق ئے
دا سے قانونونه جوړ کړل چه دَ خدائے زمکه سراسر دَ ظلم او زیاتی نه ډکه شوه.

۴. خدائے چه انسان له څه لږ ډیر اختیار په دُنیا کښے ورکړے دے نو دا مناسبه
نه وه چه دا اختیار ئے ترا فتلے وے او په زور ئے صحیح لارے ته راآړولے وے.
دغه شان چه خدائے پاک انسان ته په دُنیا کښے دَ وخت تیرولو څه مُهلت ورکړے
دے نو دا هُم مناسبه نه وه چه دا مهلت ئے ورله ختم کړے وے او دَ نافرمانئ
شروع کولو سره ئے مړه کړی وے. بیا که څه که چه خدائے پاک په ځان دا لازمی
کړے وه چه نه به دَ انسان نه خود اختیاری واپس اخلی او نه به ئے دَ مقرر وخت
نه مخکښے مړکوی بلکه دَ دُنیاوی ژوند په دوران کښے به انسان ته دَ صحیح لارے خودلو
انتظام کوی. نو دَ دے مقصد پوره کولو د پاره الله تعالیٰ په انسانانو کښے څه خلق خپل
نمائنده جوړ کړل، دَ صحیح لارے ښودلو د پاره ئے ورته خپل پیغامات راولیږل، دَ حقیقت
دَ علم نه ئے خبر کړل، دَ ژوند تیرولو صحیح قانون ئے ورکړو، او په دے کار ئے مامور کړل
چه انسان هغه صحیح لارے ته راواړوی چه دَ کومے نه هغوئ بے لارے شوی دی.

۵. دا پیغمبران په مختلفو قومونو او ملکونو کښے پیدا کیدل، دَ زرګونو کالو پورے
په دُنیا کښے دا سلسله جاری وه. په زرګونو پیغمبران راغلل. دَ هغوئ ټولو یو
دین وُو یعنی دَ ژوند هغه صحیح لاره چه انسان ته دا ولے ورځ نه خودلے شوی وه
یوه وه. هغوی ټول دَ یو خدائے حکم منونکی وُو. دَ هغوئ ټولو دا یو مقصد وُو چه
صحیح لارے (دین) او دَ خدائے حکمونو (هدایت) طرف ته انسانان راوبلی، او چه

څوک بلنه قبول کړي نو د هغوی نه داسې مضبوط اُمت جوړشي چه په خپله هم د خدائے د قانون پابند وي او داکوشش هم کوي چه په دُنیا کښې د خدائے قانون قایم شي.
دے پیغمبرانو په خپله خپله زمانه کښې دا مقصد ډیر ښه سرته ورسوؤ، خو اکثره داسې اوشوه چه ډیرو انسانانو د هغوی دا بلنه (دعوت) قبول نه کړه، او چا چه دا بلنه قبول کړه د هغوی نه یو اُمت جوړ شو خو بیا د وروهغوی هم خپله خراب شو، د چانه د خدائے خودلی شوی لار بالکل ورکه شوه او چا د خدائے تعالیٰ د حکمونو سره خپل خواهشات گډ کړل.
۶ - د ټولو په آخرکښې د جهانونو بادشاه د عرب په زمکه حضرت محمّد صلّی الله علیه وسلم دَ دے کار د پاره را اُوچت کړو، د هغهٔ دا کار دُوچه عام انسانانو ته او د ټولو شوؤ پیغمبرانو پیروانو ته خلقو ټولو ته د ژوند صحیح لاره اُوښائی، او د خدائے حکمونه ورته ورسوي. او څوک چه د هغه دا بلنه قبول کړي نو د هغوی نه داسې مضبوط اُمت جوړ کړي چه په خپله هم د خدائے تعالیٰ په حکمونو عمل کوي او د ورسره ورسره د ټولے دُنیا د حالاتو درست کولو کوشش هم کوي. د دے قسمے بلنے او لار خودنے کتاب دا قرآن دے چه الله تعالیٰ په محمّد صلی الله علیه وسلم نازل کړے دے.

---

د قرآن په دے اصل بُنیاد چه لوستونکے پوهه شي نو هغه ته بیا دا آسانه شي چه د قرآن موضوع څهٔ ده، مرکزی مضمون ئے څه دے، او غوارې څه؟
انسان د قرآن موضوع ده. قرآن دا واقی چه په حقیقت کښې د انسان کامیابي او ناکامي په څه څیز کښې ده.

د انجام په ... پاک انسان ته ... چه ... انسان خلیفه کړو. او

لحاظ سره د انسان د پاره صحیح لار هغه ده چه تشریح ئې مونږ په مخکینو صفحو کښې کړیده.
د قرآن مدّعا دا ده چه انسان هغې صحیح لارې ته رااوبلی کومه لاره چه د دې پروا ځې
په وجه د هغې نه ورکه شویده. او دغه شان د خدائې هغه حکمونه ورته وړاندې کړي
کوم چه د انسان د شرارت او د نافرمانئ په وجه بدل شویدي.

دا درې خبرې چه د سړي په ذهن کښې وي او بیا ورو ستو قرآن کوري نو هغه ته به
صفا معلومه شي چه قرآن د خپلې موضوع ، مدّعا او مرکزي مضمون نه علاوه نورې
خبرې هډو کوي نهٔ. د اول نه تر آخره پورې د قرآن مختلف او قسما قسم ټول
مضمونونه د مرکزي مضمون سره داسې تړلي شوي دي لکه چه رنګا رنګ ملغلرې په
یو امیل کښې پیلې شوي وي. قرآن د زمکې او د آسمانونو ساخت، د انسان پیدائښت
د کائناتو ذکر او د تیرو شوؤ قومونو بیان کوي. دغه شان د مختلفو قومونو
په عقیدو، اخلاقو او عملونو تنقید کوي. د آخرت واقعات وغیره بیا توی
خود ا ټول بیان د دې د پاره نهٔ کوي چه انسان ته د طبیعیاتو یا د تاریخ یا د فلسفې
یا د بل څه فن تعلیم ورکړي بلکه قرآن دا ټول بحث د دې د پاره کوي چه اصل
حقیقت د انسان په ذهن کښې کیني ، انسان چرته د حقیقت په باره کښې دوکه نهٔ
شي، چه انسان د غلطې لارې د انجام نه خبر کړي او ورته د صحیح لارې د بنهٔ
انجام بلنه ورکړي. دا وجه ده چه قرآن د هر څیز ذکر د خپلې مدّعا تر حده پورې
کوي، د ضرورت نه زیات تفصیلات پریږدي ، خپل مقصد او مرکزي مضمون ته
بیا بیا واپس راځي. او دغه شان د قرآن ټول بیان د خپل "دعوت" نه کیرچاپیره
تاویږي.

---

خو تر هغې پورې سړې د قرآن په طرز بیان، په ترتیب او په دیرو مضمونونو
بنه نهٔ پوهیږي تر څو پورې چه د قرآن په شانِ نزول بنهٔ پوهه شوې نهٔ وي.

دا قرآن داسې کتاب نهٔ دې چه کوم الله تعالیٰ په یوځل اُو لیکوا و محمّد
صلی الله علیه وسلم له ئې ورکړو او ورته ئې اُووې چه دا په خلقو کښې خور کړه
چه هغوئ د دې مطابق ژوند تیر کړي. د غه وجه ده چه نهٔ پکښې تصنیفي ترتیب

شتته او نهٔ کتابي طرز. په اصل کښې قرآن يو داسې کتاب دے چه الله تعالى د عربو د مکے په ښار کښې خپل يو بنده د پيغمبرئ د پاره خوښ کړو، هغه ته ئې حکم وُکړو چه د خپل ښار او د خپلې قبيلې (قريشو) نه د "دعوت" شروع وُکړه. په اول کښې چه د دے کار د پاره د کوموخبرو (هدایاتو) ضرورت وُو صرف هغه ئې ورته وکړے چه زيات نه زيات دا درے خبرے دی.

يو، پيغمبر ته د دے خبرے تعليم دے چه د دے عظيم الشان کار د پاره ځان څنګ تيار کړى او په کوم طرز دا کار وُکړى.

دويم، د اصل بنيادى حقيقت په باره کښې پيژندګلو ده. د حقيقت په حقله چه د خواؤ شا په خلقو کښې کومه غلط فهمى وه او د هغې په وجه په غلطه لار روان وُو، د هغې يو لنډ ترديد دے.

دريم، صحيح لارے ته بلنه ده او د اخلاقو د هغې بنيادى اُصولو بيان دے چه پکښې د انسان کاميابى وسعادت دے.

چونکه د دعوت اولنئ درجه وه نو په شروع شروع کښې به دا پيغامونه يوڅو وړے وړے اولنډ لنډ فقرے وے، دا فقرے او مقولے به ډيرے مزيدارے، خوږے، د اثرناکے او د قوم د طبيعت مطابق وے. دا رنګے نبکلے او رنګينه وينا به ئدے د پاره وه چه د خلقو په زړونو کښې د غشو په شان خښنه شى، د ډير خوږوالى په وجه غوږ ونو ته ځنپله ورننوځى او د ډيرے ميينې په سبب په ژبو بے اختياره اُووښلے شى. دغه وينا د مقامى خلقو د وينا په رنګ وه. اګرچه پکښې عالمګيرے خبرے بيان شويدى ليکن د هغې د پاره هغه دليلونه او مثالونه بيان شويدى کوم چه د دغه ځائې خلقو ښهٔ پيژندل. د دغه ځائې د خلقو تاريخ، روايات، عام آثار، او د هغوئ د عقيدو او د اخلاقو خرابيانے پکښے په دے وجه بيان شوى دى چه هغوئ د هغې نه ښهٔ اثر واخلى.

د دعوت دا اولنئ درجه تقريبًا د څلورو پنځو کالو پورے جارى وه، او په دے ورځو کښے د نبى صلى الله عليه وسلم د تبليغ درے اثرات ښکاره شو.

(۱) يوڅو نيکانو خلقو دا دعوت قبول کړو او د اُمتِ مسلمه جوړيدو د پاره تيا شول

(۲) ډېرو جاهلانو، خود غرضو او د پلار نيکه د طريقو سره مينه لرونکو خلقو د اسلام مخالفت ته ملا اوتړله.

(۳) د دې نوې دعوت آواز د مکې او د قريشو د حدونو نه بهر تو ډېره لرې لرې پورې اُورسيدو.

---

د دې څلور نه د دعوت دوېمه مرحله شروع کيږي. په دې مرحله کښې د اسلام او د جاهليت په مينځ کښې يوه سخته مقابله شروع شوه چه د آتو نهو کالو پورې وه. نه يوازې په مکه کښې او نه يوازې د قريش قبيلې خلقو، بلکه د عربو په اکثرو ځايونو کښې چه کوم خلقو ته جاهليت بنۀ ښکاريدو، هغوی ټولو د اسلام د ختمولو کوشش شروع کړو. د اسلام د دباوهلو دپاره ئې هره شيطانی حربه استعمال کړه. د دروغو پروپيګنډه ئې اوکړه، الزامونه ئې اُولګول، شک شوبې او اعتراضونه ئې وکړل، د خلقو په زړونو کښې ئې قسما قسم وسوسې واچولې. ساده خلقو ئې د نبی صلی الله عليه وسلم د خبرو اَوريدو نه منع کول، چه چا به اسلام قبول کړو په هغوی به ئې سخت ظلمونه کول، تودې پورې چه د اغستلو او خرڅولو او د اُو سيدلو بائيکاټ ئې ورسره اُوکړو، دومره ئې تنګ کړل چه ډيرو مسلمانانو خپل کورونه دوه ځله پريښودل او حبشې ته لاړل، او په آخر کښې په دريم ځل ټول مسلمانان مدينې ته په تللو مجبور شول. ليکن د دې سختې مقابلې باوجود اسلام خورېدو. په مکه کښې يو خاندان او يو کور داسې پاتې نۀ شو چه يو کس پکښې اسلام نۀ وُ قبول کړې. د اکثرو خلقو د اسلام سره سخته دُشمنۍ په دې وجه وه چه د هغوی خپل زُو نتره، وريرُونه، ځامن، لُونړه، خوينډې او اُوخې په اسلام سرتوبا نه وُونکی وُو. او د

خپل نبي باندې د موقعې او د ضرورت مطابق د جوش نه ډکې خطبې نازلولې. دا خطبې
به د اوبو په شان روانې، د سيلاب په شان طاقتورې او د تېز اور په شان اثرناکې وې. په
دې خطبو کښې مؤمنانو ته خپل فرائض خودلې شويدي، د يو موټي کېدو سبق ورکړې شويدې
د ګناه نه د ځان ساتلو (تقوی) د ښو اخلاقو او د پاک خوئ تعليم ورکړې شويدې، د
حق دين د خورولو طريقې ورته خودلې شويدي، د کاميابۍ او د جنت ملاويدو په
وجه د هغوی همتونه مضبوط کړې شويدي، د الله په لار کښې د ډېر صبر او د اوچت
حوصلې ساتلو تلقين شويدې. او په مؤمنانو کښې د قربانۍ داسې زبردست او زور ور
جوش پيدا کړې شويدې چې هغوی د هر قسم مصيبت زغملو او د سخت نه د سخت
مخالفت مقابلې کولو ته تيار شول. بل طرف ته په دې خطبو کښې د اسلام مخالفينو
ته، بې لارې او د غفلت په خوب اوده خلقو ته د هغه خلقو انجام خودلې شوې
دې چې د هغوی د تاريخ نه دوی ښه خبر وو، د هغې تباه شوو کلو د کنډراتو
نه د عبرت اخستلو سبق ورکړې شوې دې په کوم کنډراتو چې به شپه او ورځ دوی
تېريدل راتېريدل، د توحيد او د آخرت دليلونه ئې د هغې نښې نښانونه پيش
کړيدي چې هغه شپه او ورځ په زمکه او آسمان کښې د هغوی سترګو ته وړاندې وو او
هر وخت ئې په خپلو سترګو ليدل کتل، شرک، خود اختياري، د آخرت نه انکار،
د پلار نيکه پيروي دا ټولې غلطيانې په داسې دليلونو ثابتې کړې شويدي چې زړونه پوخه
دي او په دماغو کښې ښښتيږي. بيا ئې د هغوی يو يو شک لرې کړو، د يو يو اعتراض مناسب
جواب ئې ورکړو، د هغوی يو يو مشکل ئې حل کړو، او جاهليت ئې د هر طرف نه دومره راتنګ
کړو چې بيا د جاهليت د پاره په عقلي دنيا کښې ځائے ورک شو (يعني بيا د هر چا عقل دا ومنله چې
د اسلام په مقابله کښې د جاهليت ژوند هيڅ نه دې) بيا د دې سره سره ئې د خدائے د غضب،
د قيامت د سختو او د دوزخ د عذاب نه وېرول، هغوی ئې په بدو اخلاقو، په غلطو
رسمونو رواجونو، او د اسلام سره په دشمنۍ کولو او د مؤمنانو په آزارولو ملامته کړل،
او هغوی ته ئې هغه اخلاق او د ژوند تېرولو لوئ لوئ بنيادي اصول وړاندې کړل
چې په هغې باندې هميشه د خدائے د نيکو بندګانو د ژوند ماڼۍ آبادېږي.

په دې مرحله کښې ډېر منزلونه وو په هر منزل کښې به دعوت ښه خورېدو او مقابله

په نوره هم سختيږ ه، دَ هر قسمه نا آشنا عقيدے لرونكي خلق به مخے ته راتلل، او
هم ددے مطابق به دَ الله تعالىٰ دَ طرفنه قسما قسم پيغامونه نور نور راتلل ـــ دا دَ
قرآن مجيد دَ مكي سورتونو پس منظر دے.

---

په مكه كښے ديارلس كاله تير شوي وُو چه ناسا په په مدينه كښے مسلمانانو ته يو مركز
ملاؤ شو. نبي صلى الله عليه وسلم او دَ اسلام ديرو پيروكارانو دَ مكے نه مدينه ته هجرت اُوكړو،
او دَ عربو دَ هر ځائے نه مسلمانان په مدينه كښے يو ځائے ته راجمع شو او يو مضبوط طاقت
جوړ شو. په دا شان دَ اسلامي دعوت دريمه مرحله شروع شوه.

په دے مرحله كښے حالات بالكل بدل شو. اُمتِ مسلمه په خپل يو رياست
جوړولو كښے كامياب شو. دَ جاهليت دَ سردارانو سره دَ تورے مقابله شروع شوه،
دَ تيرو شوؤ پيغمبرانو اُمتونه (يهود ونصارىٰ) هم ته راغلل دَ منافقانو سره
جنګونه وُشوه، دا سخته مقابله لس كاله وه، په آخر كښے مسلمانان دَ كاميابئ هغه
مقام ته وُرسيدل چه ټول عرب ورته سلامي شول. او ټولے دُنيا ته دَ اسلامي
دعوت وركولو دپاره ورته دروازے پرانستے شوے. په دے مرحله كښے دير
منزلونه وُو، او په هر منزل كښے به دَ الله تعالىٰ دَ طرفنه په نبي صلى الله عليه وسلم
باندِ تقريرونه نازليدل. دَ دغه تقريرونو انداز به كله دَ وُوردَ لهجے په شان
تيز وُو، كله به دَ شاهانه حكمونو په شان سخت وُو، كله به دَ سبق او دَ تعليم وركولو په غرض
دَ پوهے په انداز وُو، او كله به دَ اصلاح او دَ پوهے راوستلو په سبب نرم نرم وُو. په
دے تقريرونو كښے مسلمانانو ته داوُخودله چه يو نيك صالح جماعت، رياست
او وطن څنګه جوړيدے شي، دَ ژوند دَ مختلفو شانګو دپاره كوم اُصول او ضابطے
پكار دي، دَ منافقانو، دَ ذميانو او دَ كافرانو سره څه سلوك پكار دے، دَ اهلِ كتابو
سره دِ څه رنګه تعلقات اُوساتلے شي، جنګ كونكي دُشمنانو سره او دَ كوم قومونو سره
چه دَ جنګ نه كولو وعده شوي وي دَ هغوي سره دِ څه طرزِ عمل اختيار كړے شي
او مؤمنان دِ په دُنيا كښے دَ الله تعالىٰ دَ خلافت دپاره ځان څنګه تيار كړي. په دے

به ورته خبر داره ورکړې کیدو، دَ خدائے په لار کښے به په خپل مال او بدن سره دَ جهاد کولو ترغیب ورکړے کید و، هغوی ته به دَ ګټے او دَ بیلات، دَ خوشحالئ او دَ مصیبت دَ امن او دَ یرے، غرض دا چه په هر حالت کښے دَ مناسبو اخلاقو سبقونه ورکړے کیدو، او په داسے رنګ دَ هغوی تیارے کیدو چه دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه ورستو هغوی دَ اسلامي بلنے او دَ اصلاحي کار قابل شي. بل طرفته چه کوم خلق دَ اسلام دَ خدنه بهر وُو، یعني اهلِ کتاب، منافقان، کافران او مشرکان وُو، دَ هغوئ دَ پوهے دپاره به هغوئ ته ډیر په نرمئ سره دَ اسلام دعوت ورکړے کیدو، نصیحت به ورته کیدو، په غلطو کارونو به ورته ملامتیا ورکړے کیده، دَ خدائے دَ عذاب نه به یرَولے کیدل او دَ عبرت اغستلو دپاره به ورته عبرتناکے قیصئ او واقعے بیانیدلے، داټول کوشش نه دَ دے دپاره وُو چه په هغوئ باندِ حجت پوره کړے شي.

## دا دے دَ قرآن مجید دَ مدني سورتونو پس منظر

---

دَ دے ټول بیان نه دا معلومه شوه چه دَ یو دعوت سره دَ قرآن مجید نازلیدل شروع شو، دَ اول نه تر آخره پورے دَ دیرویشت[۲۳] کالو په موده کښے په دے دعوت چه کومے مرحلے تیریدلے او کوم قسما قسم ضرورتونه ورته پیښیدل، دَ هغے مطابق به دَ قرآن مختلف حصے نازلیدلے. ښکاره خبره ده چه په دا ننګے کتاب کښے هغه تصنیفي (لیکوالي) ترتیب نشي کیدلے کوم ترتیب چه دَ ډاکټریټ دَ ډګرئ اغستلو دپاره په یوه مقاله (کتابچه) کښے وي. بیا دَ دے دعوت دَ خوریدو سره سره چه دَ قرآن کومے وړے لوئے حصے نازلیدلے هغه هُم دَ وړو وړو رسالو په شکل کښے نه وے، بلکه هغه به دَ تقریرونو په شکل کښے بیانیدلے، او خوریدلے، نو ځکه دَ قرآن دَ هغه وړو وړو حصو طرز (اُسلُوب) هم تحریري نه وُو بلکه تقریري یا خطابي وُو. بیا دا خطابت هُم دَ یو پروفیسر دَ تقریر (لیکچر) پشان نه وُو بلکه دَ یو بلونکي دَ خطبو پشان وُو چه دَ سړي زړه او دماغ، عقل او جذبات هر یو ته اپیل کوي، چه پکښے دَ هر قسم ذهن والا سړي سره معامله راځي، چه پکښے په مختلفو حالاتو کښے دَ دعوت خورولو کار کول راځي. خپله خبره دَ خلقو په زړونو کښے کینول، دَ خلقو دَ خیالاتو دُنیا بدلول، دَ جذباتو سیلاب راوچتول، دَ خلاف خیرو زور ختمول، دَ خپلو ملګرو اصلاح او تربیت کول، په هغوی کښے جوش

او کلکه اراده پیدا کول، دُښمنان خپل دوستان جوړول، په نه منونکو خپله خبره منل، دَ مخالفینو دَ دلیل جواب ورکول، او دَ هغوئ اخلاق طاقت زغمول، غرض دا ټول کار د نه دَ هغه چا د پاره ضروری دی چه څوک دَ دعوت ورکولو او دَ تحریک چلولو کار کوی. دغه وجه ده چه الله تعالیٰ په خپل پیغمبر کوم تقریرونه نازل کړیدی دَ هغې طرز خطابت هُم دَ دعوت دَ حال سره مناسب وُو. دَ کالج دَ تقریرونو په شان نهٔ وُو.

---

دَ دے نه دا خبره هم معلومه شوه چه په قرآن مجید کښې مضمونونه بار بار په تکرا رسره ولے راغلی دی. یو دعوت او تحریک له دا پکار دی چه په کوم وخت او کومه مرحله کښې روان دی نو دَ هغې وخت او مرحلے د پاره چه کومے خبرے مناسب وی صرف هغه خبرے دِ کوی، او تر څو چه دعوت په دغه مرحله کښې وی تر هغې دِ دَ بلے مرحلے خبرے نهٔ کوی، بلکه هُم دَ دغې مرحلے خبرے دِ بیا بیا کوی اگرچه پر میاشتے او کلُونه اُولگی. بیا که چرے سړے یوه خبره په یو طرز بیا بیا دری نو دَ اوریدونکو زړهٔ زرمړیږی. دَ دے وجے نه دا ضروری ده چه دَ دعوت په کومه مرحله کښې کومے خبرے بیا بیا کول وی نو هغه دِ هر ځل په نوی طرز، په نوی لفظونو او په نوی شان سره کیږی چه دَ خلقو په زړونو کښې ښهٔ کینی او محکم پلتے شی. دَ دے سره دا هم ضروری دَه چه دَ دعوت کوم بنُیادی عقیدے او اُصول دی هغه دِ دَ اول قدم نه تر آخر منزل پورے هر وخت دَ سترگو وړاندې وی او دَ دعوت په هره مرحله کښې دِ بار بار کیږی. دا وجه ده چه دَ اسلامی دعوت په یوه مرحله کښې دَ قرآن څومره سورتونه نازل شو یدی په هغې ټولو سورتونو کښې یو قسم مضمون په بدلو بدلو الفاظو بیان شویدے، خوَ توحید او دَ الله دَ صفتونو، په آخرت کښې دَ تپوس او دَ جزا سزا ورکولو، په رسول او په کتاب دَ ایمان راوړلو، دَ تقوٰی دَ صبر او دَ اعتماد ساتلو، او دا قسمه نور بنیادی مضمونونه بار بار په ټول قرآن کښې راغی، دا ځکه چه دَ اسلامی تحریک په یوه مرحله کښې هم دَ دے نه بے پرواهی نشی کیدلے. دا بنیادی تصورات چه لږ هم کمزوری شی نو بیا دا سلام دا تحریک په صحیح طریقه په اصلی معنو کښې نشی چلیدلے.

---

که غور او کړے شی نو دَ دے بیان نه دا سوال هم حل کیږی چه نبی صلی الله علیه وسلم

قرآن په هغه ترتیب ولے نۀ لیکلو په کوم ترتیب سره چه نازل شوے وو.

د پورته بیان نه تاسو ته معلومه شوي ده چه د دیرشت ۲۳ کالو پورے قرآن په هغه ترتیب نازلید و په کوم ترتیب سره چه د اسلام دعوت شروع شو او بیا خوریدو. اوس دا ښکاره خبره ده چه د دعوت پوره کیدو نه روستو د هغه نازلو شوو حصو لیکل په هغه ترتیب سره مناسب نۀ وو په کوم ترتیب سره چه د دعوت د خوریدو د پاره دا حصے نازلے شوے وے. اوس خو د هغه د لیکلو د پاره یو داسے ترتیب پکار وو چه د هغه حالت سره مناسب وی کوم چه د دعوت پوره کیدو نه روستو جوړیږی. په شروع کښے خو قرآن هغه چا ته کیا وو (مخاطب وو) چه د اسلام نه بیخی ناآشنا وو، او ځکه ئے د اول سر نه تعلیم او تلقین شروع کړو. خو د دعوت پوره کیدو نه روستو د قرآن اول مخاطبین هغه خلق شو کوم چه په قرآن ایمان راوړے وو او یو اُمّت جوړ شوے وو او د هغه کار جاری ساتلو ذمه داران وو کوم چه پیغمبر هغوی ته د تطریٔ او د عمل او د هر حیثیت نه مکمل حواله کړے وو. اوس د ټولو نه وړومبے او مقدّم شیز دا ضروری شو چه اول دا خلق د خپلو فرضو، د خپل ژوند د قانون او د هغه شو فسادونو نه ښۀ خبر شی کوم چه د مخکینو پیغمبرانو په اُمّتونو کښے وو، او بیا وروستو د اسلام نه ناخبره خلقو ته د خدائے حکم د وړاندې کولو د پاره مخکښے روان شی.

د دے نه علاوه که سړے په دے ښۀ پوهه شی چه قرآن د کوم طرز کتاب دے نو دا حقیقت به هغه ته پخپله ښکاره شی چه یو قسم مضمونونه په یو ځائے کښے جمع کول د دے کتاب د مزاج سره مطابقت نۀ لری. د دے کتاب مزاج خو دا غواړی چه د لوستونکی په مخکښے د د مدنی دور خبرے د مکی دور د تعلیمونو په مینځ کښے، او د مکی دور خبرے د د مدنی دور د تقریرونو په مینځ کښے، د شروع خبرے د د آخری خبرو په مینځ کښے، او د آخر خبرے د د شروع په تعلیمونو کښے بار بار راځی، چه د اسلام پوره او مکمله نقشه هر وخت د لوستونکی د سترګو په وړاندې وی او په هیڅ یو وخت کښے د یو طرفه ناخبره پاتے نۀ شی.

بیا که چیرے قرآن د نازلید و په ترتیب لیکلے شوے وے نو د وروستو زمانے خلقو د هغے نه حاصلو د اختلاف شوے چه د قرآن سره د نازلیدو پوره تاریخ او د قرآن د یوے یوے حصے سره د نازلیدو حالات او شان نزول لیکلے شوے وے او لازمی طور هغه د قرآن یوه ضمیمه وے. دا کار به د هغه مقصد نه

بالکل خلاف وُو، چه دَ کوم مقصد دپاره الله تعالیٰ دَخپل کلام دا مجموعه په ترتیب کړے او محفوظ کړے ده. دَ قرآن خو دا مقصد وُو چه خالص دَ خدائے کلام دَ بل چا دَ کلام دَ ګډون نه بغیر په یو داسے لنډ او مختصر شکل کښے په ترتیب سره ولیکلے شی چه وړه، ځوانان، بوډاګان ښځے، نر، دَ ښارئیے، دَ بانډے، عام او عالم هر سړے ئے په هره زمانه کښے، په هر ځائے کښے، او په هر حالت کښے وائي او کم نه کم دا خبره ضرور وُو پیژنی چه خدائے دَ هغه نه څه غواړی او څه ترے نه غواړی. ښکاره خبره ده چه دا مقصد به هدو پوره شوے نه وُو دے که چرے دَ قرآن سره یو اوږد تاریخ هم لیکلے شوے وے او دَ هغے تلاوت هم په خلقو لازم وے.

حقیقت دا دے چه دَ قرآن په موجوده ترتیب باندے کوم خلق اعتراض کوی نو هغوی نه دے پوهه شوی چه دَ دے کتاب دَ مقصد او مدعا نه ناخبره دی بلکه دا معلومیږی چه هغوی په دے دوکه کښے پراته دی چه دا کتاب صرف دَ علم تاریخ او دَ فلسفه عمران دَ طلباؤ دپاره نازل شوے دے.

---

قرآن لوستونکو ته دا خبره معلومه وی چه دَ قرآن دا ترتیب روستنو خلقو نه دے لیکلے بلکه نبی صلی الله علیه وسلم پخپله دَ الله تعالیٰ دَ خود نے مطابق مرتب کړے وُو. طریقه ئے دا وه چه کله به یو سورة نازل شونو نبیؐ به په هغے وخت دَ خپلو کاتبانو نه څوک را وغوختو او په هغوئ به ئے ټیک ټیک ولیکلو، بیا به ئے ورته وفرمائیل چه دا سورة دَ فلانی سورة نه روستو یا دَ فلانی سورة نه وړاندے کیدی. دغه شان چه کله به دَ قرآن یو داسے حصه نازله شوه چه هغه به ځان له یو مستقل سورة نه وُو، نو نبیؐ به وفرمائیل چه دا حصه په فلانی سورة کښے په فلانی ځائے کښے درج کړه. بیا به نبیؐ پخپله هم په دغه ترتیب سره په مانځه کښے او دَ تلاوت په دوران کښے دَ قرآن تلاوت کولو او صحابه کرامؓ به هم په دغه ترتیب سره یاد ولو. په دے وجه دا یو ثابت شوے حقیقت دے چه دَ قرآن مجید نزول په کومه ورځ مکمل شو هم په هغه ورځ دَ قرآن ترتیب مکمل شو. چه قرآن چا نازل کړے وُو هم هغه په ترتیب کښے راوستلے وُو چه دَ چا په زړه نازل کړے شوے وُو هم دَ هغه په لاسونو ئے په ترتیب کړے وُو. دَ بل چا دا طاقت نه وُو چه په کښے څه دخل مداخلت وکړی.

---

مونځ چونکه د اول نه په مسلمانانو باندې فرض وو[1]، او په مانځه کښې د قرآن تلاوت یوه ضروري حصه ګرځولے شوې وه نو ددې وجه نه د قرآن د نازلیدو سره په مسلمانانو کښې د قرآن د یادولو سلسله شروع شوه او چه څنګه به قرآن نازلیدو هغه شان به مسلمانانو یاده وو. د هغه شان قرآن مجید پوائے د کجورو په پاڼو، هډوکو او د څرمنو په ټوټو باندې چه د نبي صلی الله علیه وسلم په اشاره کاتبانو لیکلے وو، محفوظ نه وو بلکه د نازلیدو سره اول د لسن ویا د ډیرو، بیا د زرګونو لکونو خلقو په زړونو کښې نقش شوے وو او دا هیڅ امکان نه وو چه یو شیطان ئې څرته یو لفظ بدل کړے وے.

د نبي صلی الله علیه وسلم د وفات نه روستو کله چه په عربو کښې د خلقو بیا کفرته د اوړیدو سلسله شروع شوه او د هغه د ختمیدو د پاره چه صحابه کرامو کوم خونړې جنګونه وکړل، په هغې کښې داسے ډیر صحابه شهیدان شول چه قرآن ورته پوره پوره یاد وو. د دے نه د حضرت عمرؓ په زړه کښې دا خیال پیدا شو چه د قرآن د حفاظت په باره کښې صرف په یوه ذریعه بروسه کول مناسب نه دي، بلکه د یاد ولو سره سره په کاغذ باندې د لیکلو انتظام هم پکار دے. نو هغه حضرت ابوبکرؓ ته د دے کار ضرورت په ګوته کړو چه هغه د ډیر سوچ نه روستو د حضرت عمرؓ د سوچ سره اتفاق وکړو او بیائے حضرت زید بن ثابت انصاریؓ ته چه د نبي صلی الله علیه وسلم لیکوال (سکرټري) پاتے شوے وو، دا خدمت حواله کړو. طریقه دا مقرر کړے شوه چه یو طرفته د هغه ټولے لیکلے شوے حصے را جمع کړے شي کومے چه نبي صلی الله علیه وسلم پریخو دلے وے، او بل طرفته چه په صحابه کرامو کښې د چا سره د قرآن څه لیکلے حصے وے، هغه دِ د هغوی نه واخستے شي[2] او بیا دِ د قرآن د حافظانو نه مدد هم واخستے شي، او د دے درے واړو ذریعو په ګواهئ باندې چه دا یقین را شي چه بالکل پوره او صحیح دے نو بیا د هغې د قرآن یو یو لفظ په کتاب (مصحف) کښې ولیکي. د دے تجویز مطابق د قرآن مجید یو نسخه د ام المومنین حضرت حفصه رضي الله عنها په کور کښې کیښودے شوه

---

[1] یادلرئ چه پنځه وخته مونځ د نبوت نه څو کاله روستو فرض شوے دے، لیکن مونځ چیپل ځائے د اول نه ورځنه فرض وو. د اسلام یو وخت چرته داسے نه دے تیر شوے چه په هغې کښې مونځ فرض نه وو.

[2] دا خبره د معتبرو روایتونو نه معلومه ده چه د نبي په ژوند کښې ډیرو صحابو قرآنیا د قرآن مختلفے حصے د ځان د پاره لیکلے وے. په دے سلسله کښې د حضراتو عثمان، عليؓ، عبدالله ابن مسعودؓ، عبدالله بن عمرو بن عاص، سالم مولی حذیفه، زید بن ثابت، معاذ بن جبل، اُبي بن کعب او ابوزید قیس بن السکن رضي الله عنهم نومونه ملاویږي.

او عامو خلقو ته دا اجازت ورکړے شو چه که څوک غواړي نو د هغې نه دِ ځان له نقل او کړي
او که څوک غواړي نو د قرآن خپله نسخه دِ د هغې نه صحیح کړي.

د عربو د مختلفو علاقو او قبیلو په ژبو کښې دغه شان فرق وُو لکه څنګه چه زمونږ په
ملک کښې د ښار ښار او د ضلعے ضلعے په ژبو کښې فرق مے حالانکه ژبه هم هغه یوه، اُردو
یا پنجابي یا بنګالی وغیره ده. قرآن مجید اګرچه په هغه ژبه کښې نازل شوے وُو کومه چه په
مکه کښې قریشو وئیله، لیکن په اول کښې ددے خبرے اجازت ورکړے شوے وُو چه د نورو
علاقو او قبیلو خلق دِ قرآن د خپلے ژبے په طرز او محاوره وئیلے واؤ، ځکه چه په معنو کښې څه فرق
نۀ راتلو صرف په عبارت کښې د هغوئ د پاره نرمي پیدا کیدله. لیکن رُورُو چه کله اسلام
خور شو او د عربو خلقو د خپل ریګستان نه بهر د دُنیا ډیره حصه فتح کړله، او د نورو
خلقو تو مونه هم په اسلام کښې شامل شول، او د عربو او د عجمو د ګډون د وجے
نه عربي ژبه متاثره شوه، نو دا خطره پیدا شوه چه که چرے اوس هم د نورو ژبو په
طرز او محاوره کښې د قرآن لوستلو اجازت برقرار پاتے شو نو تسما قسم ډیرے غلطئ به
راپورته شي. مثلاً که یو سړے د ژبے په خپل طرز کښې د قرآن تلاوت کوي نو بل سړے
به ورسره په دے ګمان جګړه کوي چه ګنې دے په قصد باندې په کلام الله کښې بدلے راولي.
یا دا لفظي اختلافات به رُورُو په دښتیا د کلام الله د بدلیدو د پاره سبب جوړ شي. یا دا
چه د عربو او د عجمو د ګډون په وجه د کومو خلقو ژبه ګډه وده شي نو هغوی به د خپلے
ګډے وډے ژبے په وجه د قرآن د کلام بناوټ خراب کړي. ددے د جوهاتو په وجه
حضرت عثمان رض د صحابه کرامو په مشوره دا فیصله او کړه چه په ټولو اسلامي ملکونو کښې دِ
د قرآن هغه معیاري نسخه خوره کړے شي کومه چه د حضرت ابوبکر رض په حکم لیکلے شوی ده،
او د نورو ټولو نسخو اشاعت دِ منع کړے شي.

ن چه کوم قرآن ستاسو په لاسونو کښې دے. دا ټیک ټیک د هغې مُصحَف صد یقی
مطابق دے چه د هغے نقلونه، حضرت عثمان رض په سرکاري حکم په ټولو کلو او ښارونو کښې
خواره کړي وُو. ن هم د دُنیا په ډیرو ځایونو کښې د قرآن هغه مستند نسخے موجود دی.
که چرے د قرآن په محفوظیت د چا څه شک وی نو هغه دِ خپل شک په دے طریقه او باسي
چه په مغربي افریقه کښې دِ د یو کتاب فروش نه د قرآن یوه نسخه واخلي، او په جاوا وطن

کښې دِ دَ يو حافظ نه قرآن په يا دوا وروی او بيا دِ ئے مقابله اوکړی، او بيا دِ دَ دُنيا په لويو لويو کتب خانو کښې دَ حضرت عثمان رض دَ وخت نه را واخله تر نن وخته پورے چه په مختلفو صدو کښې کوم نسخے اېښودلے شوی دی، دَ هغے سره دِ مقابله اوکړی. که چرے دَ يو حرف فرق ئے پکښې بيا موندلو نو دَ هغه دا فرض دی چه ټولے دُنيا ته دغه فرق ښکاره کړی. يو شک کوونکے که دا شک کوی چه قرآن دَ الله تعالیٰ دَ طرفنه نازل شوېدے او که نهٔ دے نو کولے شی؛ خو لېکن دا خبره چه کوم قرآن اوس زمونږ په لاس کښې دے دا بغير دَ څه کمی زياتی بالکل هغه قرآن دے چه محمد رسول الله صلی الله عليه وسلم دُنيا ته وړاندِ کړے وُو، دا يو داسے تاريخی حقيقت دے چه په دے کښې پوهه شک نشی کېدے. په ټول انسانی تاريخ کښې بل يو څيز دَ قرآن پشان مضبوط ثبوت والا نشته. که څوک دَ قرآن په صحيح والی کښې شک کوی نو هغه بيا دا شک هم کولے شی چه دَ رومن امپائر نومے يوه بادشاهی په دُنيا کښې چرته وه، او بيا هندوستان باندِ مغلو چرته حکومت کړے وُو، او "نپولين" نومے يو سړے په دُنيا کښې وُو او که نهٔ. په داسے تاريخی حقيقتونو باندِ شک کول دَ علم نښه نهٔ ده دَ جهالت نښه ده.

---

قرآن يو داسے کتاب دے چه په دُنيا کښې بے شماره انسانان خپل خپل مقصد ونه دَ دے نه پوره کوی، دَ انسانانو دَ ټولو ضرورتونو او غرضونو مطابق ما ته يوه مشوره ورکول آسانه نه بلکه ممکنه نهٔ ده. په دے ټولو انسانانو کښې زما صرف دَ هغه خاسره دلچسپی او مينه ده چه په مے پوهيدل او دا معلوميدل غواړی چه دا کتاب انسان ته دَ ژوندَ ټيرولو کومه لارښائی. په دے کتاب کښې به زهٔ هم داسے خلقو ته دَ قرآن دَ لوستلو دَ طريقو په باره کښې مشورے ورکوم او هم په مے باره کښې چه کوم مشکلات هغوی ته مخے له راځی دَ هغے دَ حل کولو کوشش به کوم.

يو سړے که په قرآن پوهيدل غواړی، خواه که دَ هغه په قرآن ايمان وی او که نهٔ وی، دَ هغه دپاره دَ ټولو نه اول دا کار پکار دے چه اولنی ټولے نظريئے او تصورات دَ قرآن سره موافق يا مخالف ټول خيالات دَ زړهٔ نه لرې کړی او خاص دَ زړهٔ دَ اخلاصه دِ دَ پوهے په مقصد قرآن لوستل شروع کړی. څکه چه کوم خلق دَ خاص قسم خيالاتو سره قرآن لولی نو هغه ته دَ قرآن دَ کرخو په منځ کښې خپل خيالات ښکاريږی او دَ قرآن دَ مقصد نه هدو

خبر ېږي نه. د کتاب د لوستلو دا طریقه د یو کتاب دپاره هم صحیح نه ده، خو خاص طور چه څوک قرآن په دے طریقه لولي نو هغه د قرآن د یو ټکي په مطلب نشي پوهېدلے.

چه څوک په قرآن سرسري پوهېدل غواړي نو د هغه دپاره خو یو ځل لوستل کافي کېدے شي، لیکن څوک چه د قرآن په ژور مطلب پوهېدل غواړي د هغه دپاره درے ځلو ځله لوستل هم کافي کېدے نشي. د هغه دپاره پکار دي چه قرآن بار بار واځي، هر ځل ئے په یو خاص طرز واځي او د یو طالب علم په شان پنسل او کاپي په لاس کښے واخلي او ضروري نکتے د ځان سره لیکي. په دے طریقه چه څوک لوستلو ته تیاروي نو هغه دِ ټول قرآن کم نه کم دوه ځله په دے غرض ؤ لولي چه د فکر او د عمل هغه ټول نظام د ده مخے ته راشي کوم چه دا قرآن پیش کوي. د دے اولنۍ لوستلو په دوران کښے دِ دا کوشش کوي چه د قرآن پوره نقشه د ده په ذهن کښے کیني او د قرآن په هغه بنیادي تصوراتو پوهه شي په کوموچه د ژوند نظام جوړېږي. په دے دوران کښے که یو سوال په ذهن کښے راشي نو د هغے فیصله دِ په هغه وخت نه کوي بلکه هغه سوال دِ د ځان سره اولیکي او ښه په صبر او اطمینان دِ قرآن کوري. دیر غالب ګمان دا دے چه مخکښے به ده ته چرته د دے سوال جواب ملاؤ شي که جواب ملاؤ شي نو د خپل سوال سره دِ اولیکي. خو که په اول ځل په ټول قرآن لوستلو کښے ده ته د یو سوال جواب ملاؤ نه شي نو ښه په صبر سره دِ دویم ځلے اُووائي. زه د خپلے تجربے نه دا وایم چه په دریم ځلے لوستلو کښے به د دیر کم کوز سوال جواب چرته پاتے شي.

دغه شان چه د قرآن پوره نقشه په ذهن کښے کیني نو بیا روستو تفصیلي مطالعه شروع کول پکار دي. په تفصیلي مطالعه کښے لوستونکي له پکار دي چه د قرآن د تعلیماتو یو یو اړخ دِ په ذهن کښے کینوي او د ځان سره دِ اولیکي. مثلاً که چرے د دے خبرے کوشش کوي چه د قرآن په نظر کښے کوم انسان ښه دے او کوم نا ښه دے نو هغه له پکار دي چه په خپله کاپۍ کښے یو طرفته "خوښ انسان" اولیکي او بل طرفته "ناخوښه انسان" اولیکي. او بیا لاندې دِ د دواړو خصوصیات یو بل ته مخامخ لیکل شروع کړي. یا مثلاً که چرے دا معلومول غواړي چه د قرآن په نزد د انسان د کامیابۍ دپاره کوم کارونه په کار دي او کوم څیزونه د انسان د نقصان او د بربادۍ ذریعه ده. نو په تفصیل سره د دے د صحیح لیکلو طریقه دا ده چه سرے په خپله کاپۍ کښے

یو طرفته "دَ کامیابئ کارونه" او بل طرفته "دَ بربادئ ذرائع" اولیکی او بیا دَ قرآن دَ کتلو په دوران کښے هرهٔ ورځ دَ دوا رو قسمو عنوانا تو لاندِ لیکل شروع کړی. دغه شان دَ عقیدو، دَ اخلاقو، دَ حقونو، دَ فرائضو، دَ اوسیدو، دَ لین دین، دَ سیاست، دَ قانون، دَ جماعت دَ نظم، دَ صلحے او دَ جنګ او دَ ژوند دَ نورو مسئلو په حقله چه قرآن کومه خودنه کړیده هغه دِ ځان سره لیکی او په دے دِ ځان پوهه کوی چه دَ هرے یوے څانګے مجموعی شکل څه جوړیږی او بیا چه دا ټولے څانګے یو ځائے شی نو دَ ژوند پوره نقشه څۀ جوړیږی.

بیا که چرے یو سړے دَ ژوند دَ خاصے مسئلے په باره کښے تحقیق کول غواړی چه قرآن دَ هغے باره کښے څه وائی نو دَ هغے دپاره ښۀ طریقه دا ده چه اول دِ هغه دَ دغے مسئلے په حقله پخوانی او نوی کتابونه په ژور نظر اوګوری او دا دِ معلومه کړی چه دَ دے مسئلے بنیادی نکات څه دی، انسان تراُ سه پورے په دے څه سوچ کړیدے او څه پوهه شویدے، کوم خبرے پکښے معلومول پکار دی، او دَ کوم ځائے پورے پکښے انسان خپل فکر زغلولے دے چه اخوا بیا نور نشی تللے. دے نه روستو چه دا کوم خبرے پکښے معلومول پکار دی، دَ هغے دپاره دِ قرآن اوګوری. زما خپله تجربه ده چه دَ داسے قسمه مسئلو دپاره سړے قرآن کتل شروع کړی. نو هغه ته به داسے داسے آیتونو کښے دَ خپلو سوالونو جوابونه ملاؤ شی چه هغه به دے نه مخکښے هغه شل ځله لوستلی وی خو یو ځلے به ئے هم په خیال کښے دا نۀ وی راغلی چه دا مضمون هم ګنی په دے کښے پټ پروت دے.

---

لیکن په قرآن دَ پوهیدو دَ دے ټولو تدبیرونو باوجود سړے دَ قرآن په روح ترهغے نشی پوهیدلے ترڅو چه هغه عملاً هغه کار اُونکړی دَ کوم دپاره چه قرآن راغلے دے. دا صرف دَ نظریاتو او خیالاتو کتاب نۀ دے چه تۀ په کرسئ کښے په آرام کیښے او کتاب شروع کړے او په ټولو خبرو ئے ځان پوهه کړے. دا یو مذهبی کتاب هم نۀ دے، لکه څنګ چه دَ دُنیاد عامو خلقو په خیال کښے یو مذهبی کتاب وی، چه په مدرسو او خانقاهونو کښے ویلے کیږی. لکه څنګه چه دَ مقدمے په اول کښے موږ ویلی دی، دا د دعوت او دَ تحریک یو کتاب دے. دے کتاب په راتلو سره په خلقو کښے خاموش طبعه او نیکان خلق دَ کونجونو نه راااُوویستل او په ټوله دُنیا کښے ئے دَ هغه خلقو سره مقابلے ته ودرول چه دَ خدائے تعالیٰ نه پټا وُو. دَ باطل

خلاف آوازونو پورته کولو ته ئے تیار کړل او دَ کافرانو، نافرمانانو او ګمراهانو خلاف ئے او جنګول. دَ یو یو کور نه ئے نیکان او پاکان خلق را جمع کړل او دَ حق دَ بلونکی دَ جنډے لاندِ ئے ودرول. دَ یو یو کوټ نه ئے یو یو شرلټونکے او فسادا و چتوونکے راپورته کړو او دَ حق حامیانو سره ئے اُوجنګه وُو. دے کتاب دَ یو سرے دَ شروع کړو او دَ خلافتِ الٰهیه قایمه ولو پورے ئے پوره دیرویشت[۲۳] کاله دَ دے عظیم الشان تحریک خُود نه کوله، او دَ حق او دَ باطل په دے اُوږد جنګ کښے دے کتاب دَ ورانئ طریقے او دَ ودانئ نقشے اُوخودلے. اُوس دا کله ممکن کیدے شی چه ته دِ دَ هوډَ دَ کفر او دَ اِسلام په میدانِ جنګ کښے قدم نهٔ ږدے او دَ جنګ دَ یو حالت نه خبر نه شے او صرف دَ قرآن دَ الفاظو په وینا دِ دَ کفر او دَ اسلام دَ جنګ دَ ټولو حقیقتونو نه خبر شے. دَ دے نه خو به هله خبر شے چه دا کتاب را واخلے او راپاسے او دَ دعوت اِلَی الله کار شروع کړے او هغه شان قدم به ږدے چه څنګ ورته دا کتاب وائی. پس دَ هغے نه به هغه ټولے تجربے په تا راشی کومے چه دَ قرآن دَ نازلید و په وخت ورانذِ راغلے وے. دَ مکے، دَ حبشو او دَ طائف واقعے به هم اُووینے او دَ جنګِ بدر او اُحد نه را واخله تر دَ حُنین او دَ تبوک پورے مرحلے به درله هم مخے له راشی. دَ ابوجهل او دَ ابُولهَبَ سره به دِ هم معامله راشی، دَ منافقینو او دَ یهود دوسره به هم ملاؤ شے، او دَ سابقینِ اولین نه را واخله تر دَ مؤلفة القلوب پورے هر څنګه انسانی نمونے به هم اُووینے او هم به ورسره ژوند تیر کړے. دا یو بل قسم "سلوک" دے، چه زهٔ ورته "سلوکِ قرآنی" وائیم. دَ دے سلوک دا شان دے چه ته دَ دے دَ کوم منزل نه تیریږے نو دَ قرآن څهٔ آیتونه او څه سورتونه به درله داسے مخے له راشی چه تا ته به ښکاره معلومه شی چه دا په دے منزل کښے نازل شوی دی او دا خود نه کوی. په دغه وخت کښے دا ممکنه ده چه دَ لغت، دَ نحوه، دَ معنو او دَ بیان څه نکتے دَ سالک دَ نظر نه پټے پاتے شی، خو دا هیچرے ممکنه نهٔ ده چه دے به دَ قرآن په روح (اصل مطلب) پوهه نشی.

بیا دَ دے قاعدے کښے مطابق سره دَ قرآن په حکمونو، دَ قرآن په اخلاقی تعلیمونو، دَ قرآن دَ اوسید و په طریقو او دَ ژوند دَ مختلفو اړخونو په باره کښے دَ قرآن په نیودلی شوی اُصولو او قوانینو باندِ تر هغے پوهیدلے نشی چه تر څو سړے په هغے عمل نهٔ وی کړے. نهٔ هغه سړے په دے کتاب پوهیدلے شی چه خپل ژوند ئے دَ قرآن نه آزاد ساتلے وی او

نو هغه قوم د قرآن نه فائده اخستے شي چه د هغوئ ټولے اجتماعي ادارے د قرآن د خودلي شوي طريقے نه خلاف چليږي.

---

د قرآن دا دعوه ده چه زه د ټول انسانيت د لارخودنے دپاره راغلے يم، او د هغه د دے دعوے نه ورد کے او غټ سرے به خبر دے. خو ليکن کله چه سړے قرآن لوستلو ته کيني نو ګوري چه د قرآن زياتے خبرے د خپلے نازليدو د زمانے اهل عربو طرفته دي. کله نا کله بني آدم او عامو خلقو ته هم آوازکوي خو اکثر خبرے ئے داسے دي چه د عربو د طبيعت، د عربو د ماحول، د عربو د تاريخ او د عربو د رسم و رواج سره ډير سمون خوري. دا چه سړے اووينى نو په دے سوچ کښے پريوزي چه کوم څيز د عام انسانيت د لارخودنے دپاره راغلے دے په هغے کښے دا دومره ډيرو خپل، مقامي او قومي څيزونه ولي دي؟ په دے حقيقت باندې نه پوهيد و په وجه بعضے خلق په دے شک کښے پريوزي چه کيدے شي چه قرآن په اصل کښے د خپلے زمانے د عربو د اصلاح دپاره وو، ليکن روستو بيا خلقو په زور باندې د ټولو انسانانو دپاره د هميشه دپاره د هدايت کتاب وګرځوو.

کوم سړے چه دا اعتراض صرف د اعتراض دپاره نه کوي بلکه ځان پوهه کول غواړي نو زه هغه له مشوره ورکوم چه دے ډ اول قرآن په خپله اولولي او په هغه ځايونو ډ نښے اولګوي کوم ځائے کښے چه ورته يوه داسے عقيده، يا خيال يا تصور، يا يو اخلاقي اصول يا يوه عملي قاعده، ښکاره شي چه هغه صرف د عربو دپاره وي، يا د يو وخت، د يوے زمانے او د يو ځائے سره محدود کړے شوے وي. صرف دا خبره چه قرآن د يو خاص ځائے او د يوے خاص زمانے خلقو ته خطاب کوي او د هغوئ مشرکانه عقيدو او رسمونو ته يد وائي، او د هغوئ د خوا او شا څيزونه د توحيد دپاره د دليلونو په طور پيش کوي، د دے فيصلے کولو دپاره کافي نه ده چه د قرآن ټول دعوت او پيغام هم د يو وخت او د يو ځائے دپاره دے. کتل پکار دي چه د شرک په ترديد کښے څه چه قرآن وائي آيا هغه د ټولے دنيا د هر شرک په باره کښے هغه شان صحيح نه دي لکه څنګه چه د عربو د شرک په باره کښے صحيح دي؟ آيا هم دغه دليلونه مونږ د هرے زمانے او د هر وطن د مشرکانو د اصلاح دپاره استعمال و[illegible] شو؟ او آيا د خدائے د يو والي د ثبوت دپاره د قرآن پيش کړے شوي مثالونه هر وخت او هر ځائے کښے پکار راوستے نشي؟ که چرے شي نو بيا يوه وجه داسے نشته چه يو عالمګير تعليم صرف

په دے وجه دَ یو وخت او دَ یو ځائے دپاره اُوګنړلے شي چه هغه په یو خاص وخت کښے دَ یو خاص قوم دَ وړاندې پیش کړے شوے وُو. په دُنیا کښے یوه فلسفه، دَ ژوند یو نظام او دَ فکر یوه طریقه داسے نشته چه دَ هغے ټولے خبرے دَ اول نه تر آخره پورے په نالبدلې طرز (ABSTRACT) بیان کړے شوې وي او په یو خاص حالت یا صورت باندے ئے وضاحت نۀ وي شوے. داسے مکمل تجرید اول خو ممکن نۀ دے او که چرے ممکن وي هم نو کوم څیز چه په تجریدي طریقے سره پیش کړے شي هغه صرف دَ کاغذ په مخ باندې وي، دَ انسانانو په ژوند کښے ئے عمل دخل مشکل وي. بیا که چرے دَ ټولے دُنیا دَ قومونو په منځ کښے دَ فکر، دَ اخلاقو او نخپلو کښے دَ اوسیدو دَ یو تحریک خورول مقصود وي، نو دَ هغے دپاره دا ضروري نۀ ده، بلکه فائده منده هم نۀ ده، چه دَ اول شروع نه دِ دَ دغه تحریک دَ خورولو کوشش په ټوله دُنیا کښے شروع کړے شي. په حقیقت کښے په هغے باندې دَ کارکولو صحیح طریقه صرف یو ده، او هغه دا ده چه دغه تحریک دَ انسان دَ ژوند نظام په کوم فکرونو، خیالاتو او اُصولو باندې قائمه ول غواړي، هغه دِ اول نخپله په هغه ملک کښے پیش کړے شي په کوم ملک کښے چه دغے تحریک طرفته بلند شوې وي، دَ هغے خلقو په ذهن کښے دِ دغه اُصول کینولے شي دَ چا دَ ژبے، دَ طبیعت او دَ خوئ خصلت نه چه بلونکے ښه واقف وي، او بیا دِ هم په خپل وطن کښے په دغه اُصولو کار شروع کړشي او دَ ژوند یو کامیاب نظام دِ روان کړے شي او دُنیا ته دِ یوه نمونه وړاندې کړیشي. پس دَ هغے به نور قومونه دے تحریک ته توجه وُکړي، هوښیاران خلق به پرے ځان پوهه کړي او په خپل ملک کښے به دَ رواج ورکولو کوشش وُکړي. څکه خو صرف دا خبره چه دَ فکر و عمل یو نظام اول دَ یو قوم په وړاندې پیش کړے شوے وُو او هم دَ هغه قوم دَ پوهه کولو او دَ هغوئ دَ مطمئن کولو دپاره ئے زور لګولے وُو، دَدے خبرے دلیل نۀ دے چه ګنې دغه نظام صرف دَ یو قوم دپاره دے. په حقیقت کښے دَ یو قومي نظام او دَ بین الاقوامي نظام دَ یو وقتي نظام او دَ ابدي نظام ځان له ځان له خاصیتونه دي چه په هغے پیژندے شي. قومي نظام یا خو دَ یو قوم دَ اوچتوالي او دَ هغے دَ خاص حقونو دعوه کوي او یا ئے داسے اُصول او نظریات خپل کړي وي چه په نورو قومونو نشي چلیدلے. دَدے نه برعکس بین الاقوامي نظام ټولو انسانانو ته یو شان درجه او یو شان حقونه ورکوي او داسے اصول خپله وي چه په ټوله دُنیا کښے دَ چلیدو قابل وي. دغه شان دَ یو وختي نظام داسے اصول وي

چه د وخت په تېرېدو د عمل کولو قابل نه پاتې کېږي. د دې نه برعکس د ابدي نظام اُصول په هېڅ حالت کښې نه بدلېږي. دا خاصيتونه چه د چا په نظر کښې وي هغه دِ پخپله قرآن ولولي او هغه ټول ځايونه دِ په گوته کړي چه د کوم په وجه واقعي دا گمان کېدې شي چه قرآن يو وختي او قومي نظام پيش کړې دے.

---

د قرآن په حقله د يو عام لوستونکي په غور کښې دا خبره هم پرته وي چه دا يوه مفصله هدايت نامه او د آئين يو کتاب دے. خو چه کله لوستونکے قرآن لولي نو په قرآن کښې ورته پخپلو کښې د عبادتو، د سياست او د معيشت وغيره حکمونه او قاعدے په تفصيل سره نه ښکاري. بلکه هغه وينې چه په کومو موضوعاتو قرآن ډېر زور ورکوي لکه مونځ او روژه د هغې په حقله پکښې يوه داسې قاعده ضابطه نشته چه په هغې کښې د مونځ روژې ټول ضروري حکمونه درج وي. دا خبره هم د سړي په ذهن کښې دا شک راپيدا کوي چه دا قرآن آخر څنگه هدايت نامه ده.

دا شک څکه پيدا کېږي چه د سړي نه د حقيقت يوه ډېره پالکل پناپاتې کېږي، او هغه دا چه الله تعالی صرف کتاب نه وُو نازل کړے بلکه يو پيغمبر ئې ورسره هم رالېږلے وُو، که چرې اصل سکيم دا وے چه يوه نقشه دِ خلقو له ورکړې شي او خلق دِ پخپله د هغې مطابق آبادي اُوکړي نو بيا دا پکار وه چه د آبادۍ د يوې يوې حصے تفصيل ئې مونږ له راکړے وے. ليکن کله چه د آبادۍ د هدايا تو سره يو انجنيئر هم سرکاري طور مقرر کړې شي او هغه انجنيئر د دغه هدايا تو مطابق يوه آبادي جوړه کړي، او بيا ته د انجنيئر دغه جوړه شوې آبادي ته نه گورې او صرف په نقشه کښې د هرے حصے تفصيل لټوے او هغه تفصيل درته ملاؤ نه شي او بيا دا وائے چه دا ټوله نقشه نامکمله ده، نو ستا دا ټول شک او شکايت غلط دے قرآن يو داسې کتاب نه دے چه پکښې دِ د ورو ورو خبرو تفصيل هم وي بلکه دا د اُصولو او د کليا تو کتاب دے. د قرآن اصل کار دا دے چه د اسلامي نظام فکري او اخلاقي بنيادونه ښه په وضاحت سره پيش کړي او په عقلي دليلونو او جذباتي اپيلونو ئې ښه مضبوط او مستحکم کړي. پاتے شو د اسلامي ژوند عملي شکل، نو په دے کښې قرآن په دے طريقه لار نه ښائي چه د ژوند د يوې يوې شعبے قاعدے قانونه ښه په تفصيل سره بيان کړي، بلکه قرآن د ژوند د هرے شعبے حدونه ښائي او چار چاپېره ترې يو څو کو ټونو کښې د نشان

په طور يو څو غټ غټ کاڼي د دړې وي، او د دغه کاڼو دا مطلب وي چه د الله تعالیٰ د مرضۍ
مطابق په دے حدونو آبادي پکار ده. د الله تعالیٰ د هدايا تو مطابق عملاً د اسلامي ژوند شکل
جوړول د نبي صلی الله عليه وسلم کار وُو. هغه ته دا حکم وُو چه د قرآن د اُصولو مطابق د خپل
ځان د خوئ خصلت جوړولو، د يوے معاشرے او د رياست جوړولو، يوه ښکلې نمونه تر ټولے دُنيا
ته پيش کړے.

---

عام طور د خلقو په ذهن کښے يو بل سوال راځي، هغه دا چه يو طرف ته قرآن هغه خلقو ته
ډير بد وائي چه د خدائے د کتاب د راتلو نه روستو ډلے ډلے شي او د يو بل سره اختلافات شروع
کړي او خپل دين ټوټے ټوټے کړي، او بل طرف ته د قرآن د حکمونو په تفسير کښے د روستنو
او د پخوانو علماؤ، د تابعينو او د صحابو په مينځ کښے دومره اختلافات دي چه شايد د قرآن
د حکمونو يوه آيت به هم داسے ملاؤ نشي چه مختلفو علماؤ به د هغے يو تفسير په اتفاق سره کړے وي
نو آيا دا ټول علماء هغه شان بد دي لکه څنګه چه په قرآن کښے اختلاف کونکو ته بد وئيلے شوي دي؟
که چرے دا ټول بد نه دي نو بيا هغه کومه ډله ده او هغه کوم اختلاف دے چه بد دے او قرآن
ترے منع کړيده.

دا ډيره لويه مسئله ده او په دے باندے په تفصيل سره د بحث کولو دا موقع نه ده. دلته
د قرآن د يو عام طالب علم د شک لرے کولو د پاره صرف دومره اشاره کافي ده چه قرآن د هغے صحيح او
فائده مند اختلاف مخالف نه دے کوم چه صرف د حکمونو او د قوانينو په تشريح کښے د مخلصانه تحقيق
په وجه شوے وي خو په دين کښے ئے اتفاق او په اسلامي نظام جماعت کښے ئے اتحاد برقرار ساتلے
وي، بلکه قرآن د هغے اختلاف مخالف دے کوم چه د نفساني خواهشاتو او د بد نيت نه شروع شوے
وي او نوبت ئے ډلے پرو او جنګ جګړو ته رسيدلے وي، د دے دواړو قسمو اختلافاتو حقيقت
يو شان نه دے او نه ئے آخري انجام د يو بل سره مشابهت لري نو څنګه دواړو اختلافاتو ته په
يو شان سترګه کتلے شي. اولنے قسم اختلافات د ترقۍ د پاره ضروري او د ژوند د پاره
لازمي دے. دا قسم اختلاف په هغه خلقو کښے موندے شي کوم چه عقل لرونکي او فکر کونکي خلق
وي. په خلقو کښے چه دا قسم اختلاف موجود وي نو دا د هغوی د ژوند يوه نښه ده، او
چه پکښے موجود نه وي نو د هغوی مثال بيا د وچو لرګو وي. پاتے شو دا دويم قسم اختلاف
لو دا نو د دُنيا دا پيژنی، چه دے اختلاف په کومو خلقو کښے سر اُوچت کړے دے نو هغه ئے

تارتار کړی دی. دا د صحت نښه نه ده بلکه د مرض نښه ده، او د دے آخری انجام د یو اُمت د پاره هم نهٔ دے فائده مند شوے. د دے دوا رو قسمو اختلافاتو فرق دا سے وګنړه چه :

د اختلاف یو شکل خو دا دے چه د دلے ټول خلق د خدائے او د رسول په اطاعت متفق وی، او قرآن او سنت په اتفاق سره د حکمونو ماخذ مني، او بیا دوه عالمان د یو وړے جزوی مسئلے په تحقیق کښے، یا دوه قاضیان د یو مقدمے په فیصله کښ د یو بل نه اختلاف وکړی، خو په هغوئ کښے یو هم خپلے مسئلے یا خپلے رائے ته دین نه وائی، او نهٔ هغه خلق چه د هغوئ د رائے نه اختلاف لری د دین نه بهرګنړی، بلکه دواړه د خپله رسه پورے بنهٔ په دلیلو نو سره تحقیق وکړی؛ او دا خبره خلقو ته پریږدی، ا دیا که عدالتی مسئله وی نو د ملک آخری عدالت ته ئے پریږدی، او که اجتماعی معامله وی نو نظام جماعت ته ئے پریږدی، چه په دوا ړو رایو کښے کو مه رائے قبلول غواړی هغه د تیوله کړی، یا د دواړو ته جایز اُووائی.

د اختلاف دوئم شکل دا دے چه اختلاف د دین په بنیادونو کښے وکړے شی، یا دا چه یو عالم یا یو صوفی یا یو مفتی یا یو متکلم یا د قام یو مشر په یوه داسے مسئله کښے خپله رائے اختیار کړی چه هغه مسئله خدائے او رسول د دین بنیادی مسئله نهٔ وی ګرځولی خو دے ئے خامخا د دین مسئله جوړه وی، او د هغے نه چه څوک اختلاف کوی هغه د دین نه بهرګنړی، او د خپل خیال د منکرو نه یوه ډله جوړه کړی او وائی چه اصلی اُمتِ مُسلمه هم دا دے او باقی ټول دوزخیان دی، او په چار خلقو ته وائی که مسلمانان یئ نو په دے ډله کښے شامل شئ که نهٔ نو بیا د سره مسلمانان هم نهٔ یئ.

قرآن چه په هرځائے کښے د کوم اختلاف او د کوم ډلے پرے مخالفت کړیدے د هغے نه مراد دا دوئم قسمه اختلاف دے. پاتے شو اولنے قسم اختلاف، نو د هغے بے شمیره مثالونه پخپله نبی صلی الله علیه وسلم ته وړاندے راغلی وُو، او هغه ورته نه صرف دا ویلی وُو چه دا جائزدی بلکه هغه ورته دیر شاباسے هم ورکړے وُو. دا ځکه چه د دے قسم اختلاف د موجودیدو نه دا معلومیږی چه په جماعت کښے د غوروفکر کولو، د تحقیق او د تجسس کولو، او د پوهے د صلاحیتونو لرلو خلق شته دے. د جماعت د هوښیارانو خلقو د خپل دین سره

او دَدِین دَحکمونو سره مینه شته دے، هغوئ دَ خپل ژوند دَ مسئلو حل دَ دین نه بهر نهٔ بلکه په دین کښې دننه لټوی، او جماعت په دے زرینے قاعدے باندِ عمل کوی چه په اُصُولو باندِ متفق دی او په خپلو کښې اتحاد برقرار ساتی او دَ ترقئ دپاره خپلو علماؤ او مفکرینو ته دَ صحیح حدونو دننه دَ تحقیق او دَ اجتهاد آزادی ورکوی. هذا ما عندی والعلم عندالله علیه توکلت والیه انیب.

---

زما دا مطلب نهٔ دے چه په دے مقدمه کښې دِ هغه ټولے مسئلے صفا شی کومے چه دَ قرآن لوستلو په دوران کښې دَ یو عام لوستونکی په ذهن کښې راپیدا کیږی. ځکه چه اکثر سوالونه داسے دی چه دَ یو آیت یا دَ سورة لوستلو په دوران کښې په ذهن کښې راځی، او دَ هغے جواب په تفهیم القرآن کښې په موقع باندِ ورکړے شوے دے. دَ دے وجے نه ما داسے سوالونه پریخودی دی او دلته مے صرف هغه جامع مسئلے بیان کړی دی چه مجموعی طور دَ ټول قرآن سره تعلق لری. لوستونکو حضراتو ته زما دا درخواست دے چه یواځے دَ دے مقدمے په لوستلو سره دا فیصله مهٔ کوئ چه دا مقدمه کمه ده او پکښے دَ ټولو سوالونو جوابونه نشته، بلکه ټول کتاب اُوګورئ او دَ هغے نه روستو چه دَ یو سوال جواب نهٔ وی شوے، یا درته دَ یو سوال جواب نیمګړے ښکاره شی، نو دَ هغے نه ما خبر کړئ.

---

# تفہیم القرآن

اَلْفَاتِحَۃ ——— ①

اَلْبَقَرَۃ ——— ②

# الفاتحة

**نوم** دا نوم "الفاتحه" دَ دے سورة دَ مضمون سره دَ مناسبت په وجه ایښودلے شوے دے. "فاتحه" هغه څیز ته ویلے شی چه دَ هغے نه دَ یو مضمون یا دَ یو کتاب یا دَ یو بل څیز افتتاح یعنی شروع شوی وی. یا خو داسے اوګڼړه چه دَ دے نوم معنیٰ دَ "دیباچه" او دَ "آغاز کلام" پشان ده.

**دَ نازلیدو زمانه** دا سورت دَ حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دَ نبوت په اولو وختونو کښے نازل شوے دے. بلکه دَ معتبرو روایتونو نه دا معلومیږی چه په محمد صلی الله علیه وسلم باندے دَ ټولو نه اول مکمل او پوره سورت دا نازل شوے دے. دَ دے نه اول صرف جُدا جُدا آیاتونه نازل شوی وُو چه هغه اُوس په سورهٔ علق او سورهٔ مزمل او سورهٔ مدثر وغیره کښے شامل دی.

**مضمون** په اصل کښے دا سورت یوه دُعا ده چه خدائے پاک هغه چا ته ښودلے ده چه څوک په دے کتاب شروع کوی. او دَ کتاب په اول سرکښے دَ ایښودلو مطلب ئے دا دے چه کچرے تاسو دَ دے کتاب نه واقعی فائده اخستل غواړئ نو اول دَ جهانونو دَ بادشاه نه دا دُعا وُغواړئ.

دا دَ انسان عادت دے چه دَ یو څیز طلب او خواهش ئے که په زړهٔ کښے راشی نو دَ هغے دپاره دُعا غوښتنه کوی، او دُعا دَ هغه چا نه غواړی چه دَ چا په اختیار کښے هغه څیز وی. نو دَ قرآن په اول سرکښے دا دُعا غوښتل داسے دی لکه چه انسان ته دَ الله دَ طرف نه دا ښودنه شوی ده چه انسان دِ دا کتاب صرف دَ صحیح لارے لټولو دپاره وائی، او دَ لوستلو په دوران کښے دِ دَ هغه په ذهن کښے صرف دَ حق تلاش وی، او دا دِ وُمنی چه ټول علمونه دَ جهانونو دَ بادشاه سره دی، او هم دغه بادشاه ته دِ دا درخواست وُکړی چه هغه ته نیغه لار اُښائی او بیا دِ دا قرآن شروع کړی.

په دے مضمون دَ پوهیدو نه روستو دا خبره په خپله معلومه شوه چه سورة فاتحه دَ قرآن پاک مقدمه نه ده بلکه یوه دُعا ده چه بنده ئے دَ الله نه غواړی او په جواب کښے دَ الله تعالیٰ دَ طرف نه ټول قرآن را وړاندے شی. بنده دُعا وُغواړی چه اے پروردګاره! ماته سمه لار اُوښایه، په جواب کښے ورته پروردګار ټول قرآن وړاندے کړی. چه دا دے هغه هدایت او سمه لار ده چه دَ کومے تا ماته درخواست کړے دے.

---

# بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ۝

## اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ رَبِّ الۡعٰلَمِیۡنَ ۝۱ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ ۝۲

دَ الله دَ نوم نه چه رحمٰن او رحیم دے.[1]

تعریف خاص دَ الله دے،[2] چه دَ ټولو کائناتو رب دے،[3] رحمٰن او رحیم دے،[4]

[1] اسلام چه انسان ته کوم تهذیب ښائی په هغې کښې یوه قاعده دا هم ده چه انسان دِ دَخپل هر کار شروع دَخدائے دَ نوم نه کوی. که دَ دے قاعدے پابندی په رښتیا او په اخلاص سره وُشی نو دریے فائدے به لازمًا حاصلے شی. یوه دا چه سړے به دَ ډیرو غلطو کارونو نه بچ شی، ځکه چه په هر کار باندِ په شروع کولو سره دَخدائے نوم اخستل به دَ سړی عادت جوړشی او دا عادت به بیا سړے په دے فکر کولو مجبور کوی چه آیا په دے کار باندِ دَ خدائے نوم اخستل ما له جائزدی او که نه؟ دوېم دا چه څوک په جائزو او نیکو کارونو باندِ دَ شروع کولو په وخت دَخدائے نوم اخلی نو دَ هغه ذهن به په صحیح طرف وی او دَخپل هر کار شروع به دَ صحیح بنیاد نه کوی. درېیمه او دَ ټولو نه لویه فائده دا ده چه څوک دَخدائے دَ نوم نه خپل کار شروع کوی نو دَ هغه سره به دَخدائے امداد او طاقت مل وی، دَ هغه په هر کار کښې به برکت وی او هغه به دَ شیطان دَ دوکو فسادونو نه بچ وی دخدائے دا طریقه ده چه کله بنده خدائے ته مخه کړی نو خدائے بنده ته مخه کړی.

[2] لکه څنګه چه په دیباچه کښې موږ وئیلی دی چه سورۃ فاتحه یوه دُعا ده، خو په دُعا کښې اول دَ هغې ذات تعریف کیږی دَ کوم ذات نه چه موږ دُعا غواړو۔ نو ګویا دا دَ دے خبرے ښودنه ده چه کله دُعا غواړئ نو په ښکلے طریقه ئے غواړئ. دا څه ښکلے طریقه نه ده چه سړے دَ خولے پرانستلو سره خپل مطلب شروع کړی. ښه طریقه دا ده او ښه سړیتوب هم دے ته وائی چه سړے دَ چا نه دُعا غواړی نو اول دِ دَ هغه ښیګڼے، احسانات او مرتبه بیان کړی، او بیا دِ دَ هغه احسانات او مرتبه اُومنی۔

موږ چه دَ چا تعریف کوُ نو دَ هغے دوه وجے وی۔ یوه دا چه څوک بخپله دَ ښه خوبو او کمال مالک وی، نو بیا موږ دَ دے پروا نه لرُ چه دَ هغه دَ کمال او دَ خوبو موږ ته څه فائده شته او که نه خو تعریف ئے کوُ. دوېمه دا چه چا زموږ سره نیکی کړی وی نو دَ هغے نیکئ په بدله کښې ئے موږ تعریف کوُ، دَ الله تعریف دَ دواړو وجو نه دے. موږ له پکار دی چه یو خو دَ الله دَ حُسن و کمال په وجه دَ هغه تعریف وُکړو او بل دَ الله دَ احسان په وجه هر وخت دَ هغه په تعریف ګویان شو۔

صرف دا نه چه تعریف دَ الله دے بلکه صحیح خبره دا ده چه "تعریف خاص دَ الله" دے۔ په دے وینا سره الله ډیر لوئے حقیقت ښکاره کړے دے، او هغه دا چه دَ مخلوق پرستئ بنیاد ئے ختم کړے دے. دَ دُنیا په

مٰلِكِ يَوْمِ الدِّيْنِ ﴿۳﴾ اِيَّاكَ نَعْبُدُ وَاِيَّاكَ نَسْتَعِيْنُ ﴿۴﴾

دَ ورځے دَ جزا مالک[۵] دے.

مونږه خاص ستا عبادت[۶] کوُو او خاص ستا نه مدد غواړو[۷]

هرڅائے او په هر څیز کښے چه څه قسمه خوبي او کمال مونده شي دَ هغې اصل دَ الله ذات دے، دَ الله په مخلوق کښے، خواه که هغه انسان دے یا فرښته ده یا یوه سیّاره ده، په دے مخلوق کښ چه څه کمال او خوبي ده، دا دَ دے مخلوق ذاتي څیز نهٔ دے بلکه دا دَ الله تعالیٰ دَ طرفنه ورکړے شوی عطیه ده. نو څکه خو یو الله، خالقِ کمال، دَ دے مستحق دے چه مونږه ئے غلامان شو، احسان ئے اُومنو، شکر ئے اُو باسو عبادت ئے وُکړو او صرف دَ هغه خادمان شو، بل هیڅوک، صاحبِ کمال دَ دے مستحق نهٔ دے.

[۳] په عربئ ژبه کښے دَ "رب" دره معنیٰ دی. (۱) مالک او آقا. (۲) مُربي. پالونکے، خبر اخستونکے او ساتونکے. (۳) بادشاه، حاکم، تدبیر او انتظام کونکے. په دے ټولو معنو سره الله دَ کائناتو رب دے.

[۴] دَ انسان په نظر کښے چه کوم څیز ډیر زیات وی نو دَ هغې بیان په مبالغے سره کوی، او که چرته هغه څیز دومره ډیر زیات وی چه په یوه مبالغه ئے تسلی نهٔ کیږی نو بیا دَ خپلے تسلیٔ کولو دپاره یو بل لفظ بیان کړي چه دَ هغې زیاتوالی کښے پرے پوره شی. دَ الله په تعریف کښ دَ رحمان لفظ نه روستو دَ رحیم لفظ استعمالول هم دغه حیثیت لری. په عربئ کښ رحمٰن دَ ډیرے مُبالغے صیغه ده. خو دَ خدائے رحمت او مهربانی په مخلوق دومره ډیره، نرا بنه او بے حسابه ده چه دَ لوئے نه لوئے مبالغه ئے هم نشي ادا کولے. څکه ورپسے بل لفظ رحیم استعمال شوے دے چه دَ الله دَ رحمت دَ نرا بنیٔ حق ادا شي. دَ دے مثال داسے دے لکه چه یو سړے ډیر سخی وی او دَ هغه دَ سخاوت په بیان کښ مونږ دا اُووایو چه "هغه یو سخی سړے دے"، نو لفظ سخی را ته دَ هغه دَ سخاوت په مقابله کښ کم ښکاره شی نو زر اُووایو چه "هغه خو یو دریاب دے"، دغه شان دَ تیز رنګ په باره کښ چه صرف لفظ "سُور" را ته کم ښکاره شی نو ورسره لفظ "تک" زیات کړو او "تک سُور" اُووایو. او دَ دنګ قد په ذکر کښ چه را ته لفظ دنګ کم ښکاره شی نو لفظ "لوړ" ورسره زیات کړو او "دنګ لوړ" اُووایو.

[۵] یعنی دَ هغې ورځے مالک دے چه په کومه ورځ به وړاندے روستو ټول نسلونه را جمع کړیشي، دَ عملونو حساب به کیږی او هر انسان ته به دَ هغه دَ عمل پوره پوره بدله ورکړے کیږی. دَ خدائے په صفت کښ دَ رحمٰن او رحیم نه روستو دَ "مالکُ دَ ورځے دَ جزا" وئیلو مطلب دا دے چه هغه تش مهربان نهٔ دے بلکه داسے اختیار والا انصاف کونکے هم دے چه دَ آخري فیصلے په ورځ به دَ پوره اقتدار مالک وی. که چا له سزا ورکوی نو څوک به ئے مخے له نشي راتلے او که چا له جزا ورکوی نو څوک به ئے نشي منع کولے. څکه خو یو طرفته دَ هغه دَ پالنے او دَ رحم په وجه مونږه دَ هغه سره مینه او محبت لرُو، او بل طرفته دَ هغه دَ انصاف په وجه دَ هغه نه یَریږو هم او دا احساس په زړهٔ کښ لرو چه زمونږه ښه او بد دواړه انجامونه پوره پوره دَ الله په اختیار کښ دی.

[۶] دَ عبادت لفظ هم په عربئ ژبه کښ په دریے معنو کښ استعمالیږی. (۱) دَ عبادت ظاهری طریقه، پرستش. (۲) اطاعت او فرمانبرداری (۳) بندګی او غلامی دلته دَ عبادت نه مراد

اِهۡدِنَا الصِّرَاطَ الۡمُسۡتَقِیۡمَ ۝۵ صِرَاطَ الَّذِیۡنَ اَنۡعَمۡتَ عَلَیۡهِمۡ ۙ غَیۡرِ الۡمَغۡضُوۡبِ عَلَیۡهِمۡ وَ لَا الضَّآلِّیۡنَ ۝۶ ع

مونږ ته نیغه لاره وښایه[7]، د هغه خلقو لارې چه تا په هغوئ باندې انعام کړې[8] دے، چه هغوئ له سزا نه ده ورکړې شوې او نه بې لارې شوي[9] دي. ع

دا درې واړه معنې دي، یعني مونږ ستا عبادت کونکي، ستا فرمان منونکي او ستا بندګان غلامان یو. او خبره صرف دا نه ده چه زمونږه ستا سره د عبادت دا تعلق دے بلکه حقیقت دا دے چه زمونږ د عبادت دا تعلق هم صرف ستا سره دے، په دے درې واړو معنو سره هم ته زمونږه معبود ئے بل هیڅوک نشته.

[6] یعني زمونږه تعلق ستا سره یواځې د عبادت نه دے بلکه د امداد غوښتلو تعلق هم ستا سره خاص دے. مونږ ته معلومه ده چه د ټولو کائناتو پالونکے ته ئے، ټول طاقتونه ستا سره دي، د ټولو نعمتونو یواځې ته مالک ئے، ځکه خو مونږه د خپلو ټولو حاجتونو پوره کولو د پاره تا ته درځو، د غوښتنې د پاره تا ته لاس نیسو، او صرف ستا په مدد باندې مو بروسه ده. او هم دا وجه ده چه دا درخواست په لاس ستا خدمت کښې حاضر یو.

[7] یعني د ژوند په هره برخ کښې مونږ ته د صحیح خیال، د نیک عمل او د ښهٔ سلوک کولو داسې طریقه اُوښایه چه د غلطئ په کښې هیڅ خطره نه وي بلکه انجام ئې کامیابي او نیک بختي وي ـــــ دا هغه درخواست دے چه بنده ئې خپل رب ته هغه وخت کوي کله چه هغه قرآن پاک شروع کوي. بنده درخواست کوي چه اے ربه ته مونږ ته نیغه لاره اُوښایه. او مونږه په دے پوهه کړه چه د کمانې علمونو په تاوُ راتاوُ لاره کښې اصلي حقیقي لاره کومه یوه ده، په دے مختلفو اخلاق نظریو کښې صحیح اخلاقي نظام څه دے، او د ژوند د بې شمیره نورو نورو لارو په منځ کښې د فکرو عمل سیده صفا او لویه لاره کومه یوه ده.

[8] دا د هغه نیکو اوصافو لارې تعریف دے چه د کومې لارې مونږه د الله نه غوښتنه کړې ده. یعني هغه لاره چه په هغې همیشه ستا انعام اخیستونکي او خوښې او غوره خلق تلي.

[9] یعني د انعام مونده ونکو خلقو نه زمونږه مراد هغه خلق نه دي چه په ظاهره ورسره ستا د دُنیا نعمتونه ډیر وي خو په حقیقت کښې هغوئ ستا د غضب مستحق وي او د کامیابئ د لارې نه بې لارې وي. د دے تشریح نه دا معلومه شوه چه د "انعام" نه زمونږه مراد هغه حقیقي او پائیداره انعامات دي چه هغه چا ته ملاویږي چه په صراط مستقیم لاړ شي او د الله رضا ورته حاصله شي، او هغه عارضي انعامات مراد نه دي کوم چه اول د فرعون، د نمرود، او د قارون غوندې خلقو ته ملاویدل، او اوس هم زمونږ په مخکښې ډیرو ډیرو ظالمانو، بدکارانو او ګمراهانو ته ملاویږي.

# البقرة

**نوم اوډ نوم وجه** ډدې سورة نوم "بقره" ځکه اېښودلے شوے دے چه په دے کښې په يو ځائے کښې ډ غوا ذکر راغلے دے. ډ قرآن مجيد په هر سورة کښې دومره ډير مضمونونه بيان شوى دى چه ډ هغې ډپاره ډ مضمون په مناسبت سره جامع عنوانات نشي کيدے کيدې. عربي ژبه اګرچه ډ خپل لغت په اعتبار سره ډيره مالداره ژبه ده. خو بهرحال دا يوه انساني ژبه. انسان چه کومه ژبه وائي هغه دومره لنډه تنګه ده چه په هغې کښې داسے الفاظ او فقرے نشته چه ډ دے فراخه مضمونونو ډپاره جامع عنوان جوړ کړے شي. ډ دے وجه نه نبي صلى الله عليه وسلم ډ الله تعالى په اشاره باندې ډ قرآن ډ ډيرو سورتونو ډپاره ډ عنواناتو په ځائے نومونه اېښودلی دی چه په هغې صرف يو سورة پيژندلے شي. ډے سورة ته ډ سورة بقرے ويلو مطلب دا نه دے چه په دے کښې ډ غوا مسئلے بيان شوى دى بلکه ډ دے مطلب صرف دا دے چه "هغه سورة چه په هغې کښې ډ غوا ذکر راغلے دے".

**ډ نازليدو زمانه** ډدے سورة ډيره حصه مدينے ته ډ هجرت کولو نه روستو بالکل په اولنى دور کښې نازله شوى ده، او ډيره کمه حصه داسے ده چه هغه روستو نازله شوى ده او ډ مضمون سره ډ مناسبت په لحاظ په دے کښې شامله کړے شوې ده. تردے پورے چه ډ سُود ډ ممانعت په سلسله کښې کوم آيتونه نازل شوى دى هغه هم په دے سورة کښې شامل دى حالانکه هغه ډ نبي صلى الله ډ ژوند په آخره زمانه کښې نازل شوى وو. سورة چه په کومو آيتونو ختم شوے دے هغه ډ هجرت نه مخکښې په مکه کښې نازل شوى وو ليکن ډ مضمون ډ مناسبت په وجه هغه هم په دے سورة کښې شامل کړے شوى دى.

**شانِ نزول** په دے سورة باندې ډ پوهيدلو ډپاره اول ډ دے سورة په تاريخي حالاتو باندې ځان ښه پوهه کول پکار دى.

(۱) ډ هجرت نه مخکښې په مکه کښې زيات تر خطاب ډ عربو مشرکانو ته وو چه اسلام د هغوئ ډپاره يو نوے او نا آشنا آواز وو. او س ډ هجرت نه روستو پکښې يهوديان راغلل چه کلى ئے ډ مدينے سره بالکل جوخت وو دا يهوديان ډ توحيد، رسالت، وحى، آخرت او ډ فرښتو قائل وو، ډ شريعت هغه قانون ئے منلو چه ډ خدائے ډ طرفنه ډ هغوئ په نبي موسى عليه السلام باندې نازل شوے وو او دين ئے هم هغه اسلام وو کوم تعليم چه حضرت محمد صلى الله عليه وسلم خلقو ته ورکولو. ليکن ډ ډيرے مودے ډ تنزل په وجه هغوئ ډ اصلى دين نه ډير لرے تلى وو.[1] ډ هغوئ په عقيدو کښې ډيرداسے غير اسلامي کارونه شامل شوى وو چه ډ هغوئ سره ئے په تورات کښې څه سند موجود نه وو. ډ هغوئ په ژوند کښې داسے رسمونه او رواجونه شامل شوى وو چه نه په اصل دين کښې وو او نه ئے په تورات کښې څه ثبوت وو. پخپله تورات هغوئ ډ انسانى کلام سره خلط ملط کړے وو. او ډ خدائے کلام چه څومره حده پورے لفظاً يا معنًا محفوظ وو هغه هم هغوئ ډ خپلے خوښے په تفسيرونو او غلطو معنو باندې بدل کړے

---

[1] په دغه وخت کښې ډ حضرت موسى نه روستو تقريباً نورلس ۱۹ صدئ تيرے شوے دے. ډ اسرائيلي تاريخ په حساب سره حضرت موسىٰ په سنه ۱۲۷۲ قبل مسيح کښې وفات شوے وو او نبي صلى الله عليه وسلم ته په سنه ۶۱۰ بعد مسيح کښې نبوت ملاؤ شوے وو.

وُو. دَ دِین حقیقي روح دَ هغوئ نه وتلې وُو او دَ ظاهري مذهب صرف یو مړ کالبوت باقي وُو چه هغه ئې دَ سینې سره نښتې وُو. دَ هغوئ دَ عالمانو او بزرګانو، دَ هغوئ دَ قوم دَ سردارانو او دَ عامو خلقو، دَ ټولو عقیدې، اخلاق او عملونه خراب شوي وُو، او دې خپل خراب حالت سره ئې دومره مینه وه چه هیڅ یو اصلاح قبلولو ته نه تیاریدل. دَ ډیرو مودو راسې داکار وُو چه کله به دَ الله یو بنده هغوئ ته دَ دِین دَ ښیغې لارې خود لو دپاره راغې نو هغه به دوئ دَ ټولو نه لوئ خپل دُښمن ګڼړلو او دا کوشش به ئې کولو چه په هیڅ شان سره هغه په اصلاح راوستلو کښې کامیاب نشي. دا یهودیان په حقیقت کښې خراب شوي مسلمانان وُو. دوئ په دِین کښې نوې نوې خبرې پیدا کړې وې او خپل دِین ئې بدل کړې وُو، په معمولي خبرو باندې به ئې بې مطلبه جګړې کول، ټول وړې وړې ډلې شوي وُو، دَ خپلو پلارانو او نیکونو په کارنامو به ئې فخر کولو، خدائے تعالیٰ ئې هیر کړې وُو، او دَ دُنیا سره ئې مینه وه، نو په دې وجه دومره تنزل ته رسیدلي وُو چه هغوئ خپل اصلي نوم "مسلمان" هیر کړې وُو، صرف "یهودي" نوم ئې پاتې شوې وُو او دَ الله دِین ئې صرف دَ خپل نسل دَ اسرائیلو دَ پلار نیکه وراثت جوړ کړې وُو. کله چه نبي صلی الله علیه وسلم مدینې ته راغې نو الله تعالیٰ ورته دا فرمان راولیږلو چه دا یهودیان اصل دِین طرف ته راوبله، چنانچه دَ سورة بقرې په اولنو څلورنیم پنځلسو رکوعګانو کښې دا بلنه ده. په دې رکوعګانو کښې دَ یهودیانو په تاریخ او دَ هغوئ په اخلاقو او مذهبي حالت باندې تنقید شوې دې، دَ هغوئ دَ مذهب او دَ اخلاقو په مقابله کښې دَ حقیقي دِین اُصول بیان شوي دي، خو دا ټول په داسې طریقه بیان شوي دي چه هر څوک پرې پوهه شو چه دَ یو پیغمبر په اُمت کښې خرابتیا په څه شکل پیدا کیږي، دَ رسمي دینداری په مقابله کښې حقیقي دینداري څه ته وائي، دَ دِین حق بنیادي اُصول کوم کوم دي او خدائے تعالیٰ سره دَ کومو څیزونو قدر دے.

(۲) په مدینه کښې دَ اسلامي دعوت یو نوې مرحله وه، په مکه کښې خو صرف دَ دِین دَ اُصولو تبلیغ او دَ دِین دَ منلو نکو اخلاقي تربیت وُو، خو دَ هجرت نه روستو دَ عربو دَ مختلفو ځایونو مسلمانان یو ځائے ته راجمع شول او دَ انصارو په مدد یو وړوکے شان اسلامي ریاست جوړ شو نو الله تعالیٰ دَ یو ځائے دَ ژوند، دَ تهذیب او دَ قانون او دَ سیاست په حقله فرمانونه رالیږل شروع کړل او دَ اسلام په بنیاد باندې دَ نوي نظام دَ آبادۍ څه نښه ذکر، دَ دې سورة په آخري دیرشت رکوعګانو کښې دا هدایات دي چه ډیر کښې په اول کښې رالیږلي شوي وُو او بعضې دَ ضرورت مطابق یو یو راتلل.

(۳) دَ هجرت نه روستو دَ اسلام او دَ کفر مقابله هم یو نوې مرحله وه. دَ هجرت نه مخکښې دَ اسلام دعوت دَ کفر په کور کښې کیدو او دَ مختلفو قبیلو مسلمانانو په خپل خپل ځائے کښې دَ دِین تبلیغ کولو او دَ کافرانو دَ طرف نه به په مصیبتونه او ظلمونه کیدل. خو دَ هجرت نه روستو کله چه دا خواره واره مسلمانان په مدینه کښې راجمع شول او خپل یو وړوکے آزاد ریاست ئې جوړ کړو نو حالات څه داسې شو چه یو طرفته یو وړوکے کلے وُو او بل طرفته ټول عرب وُو

چه د مسلمانانو د ختمولو نیت ئې کړې وُو. اُوس د دې دپاره د مسلمانانو کامیابي او د باقي پاتې کیدو انحصار په دې خبره دې چه اول هغوی ښهٔ په جوش او په مینه د اسلام تبلیغ اوکړي او د زیات نه زیات خلق په عقیده کښې خپل ملګري جوړ کړي. دویم چه هغوی خپل مخالفین په داسې طریقه په غلطه ثابت کړي چه د یو عقلمند انسان په کښې شک باقي نشي. دریم دا چه کوړ کیدو او د ټول ملک دُشمني په خپل سر د اخستو په وجه چه کومه لوږه تنده او هر وخت بې امني او پریشانۍ په هغوی راغلې وه، او په کوم خطرونو کښې چه ګیر شوي وُو، په هغه وارخطا نشي، بلکه پوره په صبر او استقامت سره د حالاتو مقابله اوکړي او په خپلو کلکو ارادو کښې لړزان رانهٔ ولې. څلورم چه هغوی ښهٔ په زړه ورتیا سره هر هغه مقابله ته ځان تیار وُساتي کوم چه د هغوی د دعوت د ناکام کولو دپاره راپورته کیږي، او د مخالفینو د تعداد او د طاقت هیڅ پروا وُنهٔ ساتي. پنځم چه په هغوی کښې دومره همت پیدا کړې شي چه که چرې د عربو خلق هغه نوې نظام، چه اسلام ئې قایمول غواړي، په پوهه کولو سره قبول نهٔ کړي، نو چه هغوی د جاهلیت دغه غلط نظام، په زور ړنګولو ته هم تیار وي ——— الله تعالیٰ په دې سورة کښې د دې پنځو ارو خبرو په حقله په اول کښې هدایات ورکړي دي۔

(۳) د دعوت اسلامي په دې مرحله کښې یو نوې خلق ښکاره کیدل هم شروع شوي وُو، چه ورته منافقان ویلې شي۔

اګر چه د نفاق اول اول اثر د مکې په آخره زمانه کښې هم شروع شوې وُو، خو هلته صرف هغه قسم منافقان وُو چه اسلام ئې حق منو او د ایمان اقرار ئې هم کوو لیکن د دې ته تیار نهٔ وُو چه د حق دپاره خپله فائده قرباني کړي او خپل دنیوي تعلقات د خلقو سره پریږدي او هغه مصیبتونه او سختۍ تیرې کړي کوم چه د حق قبلولو سره راځي. په مدینه کښې د دې قسم منافقانو نه علاوه نور قسم منافقان هم د مسلمانانو په جماعت کښې ښکاره کیدل شروع شو. یو قسم منافقان هغه وُو چه د اسلام نه بیخي منکر وُو او صرف د شرارت پوره کولو دپاره د مسلمانانو په جماعت کښې داخلیدل. دویم قسم منافقان هغه وُو چه د مسلمانانو په اقتدار کښې راګیر شوي وُو او د دې په وجه هغوی خپله فائده په دې کښې لیدله چه یو طرفته ځان د مسلمانانو سره شمار کړي او بل طرفته د اسلام مخالفینو سره هم رابطه وُساتي او په دې رنګ د دواړو د طرفونو فائدې راخلي او د دواړو طرف د خطرونو نه محفوظ پاتې شي. دریم قسم د هغه خلقو وُو چه د اسلام او د جاهلیت په مینځ کښې شکمن وُو. هغوی د اسلام په حق منلو کښې پوره مطمئن نهٔ وُو. خو د خپلې قبیلې یا د خپل خاندان د ډیرو خلقو ئې مسلمانان شوي وُو نو ځکه دوی هم مسلمانان شوي وُو. په څلورم قسم کښې هغه خلق شامل وُو چه د اسلام د حقانیت قایل وُو خو د جاهلیت طریقو او د هغو رسمونو پریښودلو ته تیار نهٔ وُو او اخلاقي پابندو، فرائضو او ذمه وارو ته ئې غاړه نهٔ ایښودله۔

د سورة بقره د نازلیدو په وخت کښې د دې قسم منافقانو د پیدا کیدو ابتدا وه د دې وجې نه الله تعالیٰ د هغوی طرفته صرف اجمالي اشاره کړې ده. روستو چه بیا څومره د منافقانو شیطاني حرکات زیاتیدل هغومره به بیا په روستنو سورتونو کښې ښهٔ په تفصیل سره د هر قسم منافق په حقله جُدا جُدا هدایات راتلل۔

آیاتها ۲۸۶ سُوْرَةُ الْبَقَرَةِ مَدَنِيَّةٌ رکوعاتها ۴۰

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

الٓمّٓ ۚ ذٰلِكَ الْكِتٰبُ لَا رَيْبَ ۛۚ فِيْهِ ۛۚ هُدًى

الف، لام، میم[1]. دا د الله کتاب دے، په دے کښې هیڅ شک نشته.[2] لاربښودونکے دے

[1] دا حُرُوفِ مُقَطّعَات د قرآن مجید د بعضے سورتونو په شروع کښې شته دے. قرآن مجید چه په کومه زمانه کښې نازل شوبیدے او په هغه زمانه کښې چه په کوم طرز بیان کیدلو په هغې کښې د دے قسم د حُروفو مقطعاتو استعمال عام وو. خطیبانو او شاعرانو دواړو به د دے طرز بیان نه کار اخستلو. چنانچه اوس هم د جاهلیت د زمانے کوم نمونے چه محفوظ دی په هغې کښې د دے مثالونه ملاویږی. د دے عام استعمال په وجه د مقطعاتو په مطلب هر ویونکے او اوریدونکے پوهیدو. دا وجه ده چه د نبی صلی الله علیه وسلم د زمانے په مخالفینو کښې د قرآن خلاف هیچا دا اعتراض نه وو کړے چه دا بے مطلبه حرفونه څه دی چه تاسو د بعضے سورتونو په شروع کښې وایئ. او دا وجه ده چه اصحابِ کرام هم د نبی صلی الله علیه وسلم نه د دے د معنو تپوس نه دے کړے. روستو دا طرزِ بیان په عربئ ژبه کښې رو رو ختم شو او په دے وجه د مفسرینو دپاره د دے حروفو معنے کول مشکل شو. لیکن دا ظاهره ده چه نه خو د قرآن نه هدایت حاصلول د دے حروفو په مطلب کښې پروت دے او نه دا خبره ده چه که څوک د دے په معنیٰ نه پوهیږی نو د هغه په نیغه لاره تلو کښې څه کمے دے. لهذا د یو عام لوستونکی دپاره څه ضروری نه ده چه هغه دِ د دے ټکو په تحقیق کښې سرگردانه شی.

[2] د دے خویو سیده سادہ مطلب دا دے چه "بیشکه دا د الله کتاب دے" خو یو مطلب دا هم کیدے شی چه دا یو داسے کتاب دے چه په دے کښې د شک څه خبره نشته دے. په دُنیا کښې چه څومره کتابونه د دُنیا د څیزونو نه علاوه د نورو څیزونو بحث کوی او د هغې حقیقتونو بحث کوی چه هغې ته ورسیدل د انسان د وس نه بهر وی، نو هغه ټول تیاسونه او گمانونه وی، د دے وجے نه د هغې لیکونکے هم د خپلو بیانانو په باره کښې د شک نه پاک نشی کیدے اگرکه هغه څنپله د ډیر یقین اظهار کوی. لیکن دا قرآن یو داسے کتاب دے چه ټول د حقیقت علم دے، د دے مصنف هغه دے چه د ټولو حقیقتونو علم لری، د دے وجے نه په یقین د شک ځائے نشته دے، دا بیله خبره ده چه یو انسان د خپلے بے وقوفئ په وجه د قرآن په بیانانو کښې شک کوی.

---

لِلْمُتَّقِيْنَ ۝۲ الَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْغَيْبِ وَيُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَمِمَّا رَزَقْنٰهُمْ يُنْفِقُوْنَ ۝۳ وَالَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِمَآ اُنْزِلَ

د پاره د هغه پرهیزګارانو[2] چه په غیبو ایمان راوړي[3]، مونځ قائموي[4]، چه کوم رزق مونږ هغوئ له ورکړے دے د هغے نه خرچ کوي[5]، چه کوم کتاب په تا نازل کړے شوے (یعنی قرآن)

[2] یعنی دا کتاب لار ښودونکے دے، خو د دے کتاب نه د فائدے اخستلو د پاره ضروري ده چه په سړي کښے څه صفتونه وي. په دغے صفتونو کښے اولنۍ صفت دا دے چه سړے "پرهیزګاره" وي. په ښه او بد کښے تمیز کوي. د بدۍ نه ځان ساتل غواړي. د نیکۍ طلبګاروي او په هغے باندے د عمل کولو خواهش لري. پاقي شو هغه خلق چه په دُنیا کښے د څناورو په شان ژوند تیره وي، د هغوي سره دا فکر هیڅکله نه راځي چه دا مونږ څه کوو چه دا ټیک هم دي او که نه، بس خو چه دُنیا کوم خوا روانه وي، یا ورته چل زړهٔ غواړي، یا ئے هسے په طرفته خپه اُچته شي نو هغے طرفته روان شي، نو د داسے خلقو د پاره په قرآن کښے هیڅ رهنمائي نشته.

[3] دا د قرآن نه د فائدے اخستلو د پاره دویم شرط دے. د "غیب" نه مراد هغه حقیقتونه دي چه د انسان نه په ظاهره کښے پټ دي او عام انسانانو ئے په دُنیا کښے هیچرے لیدلے نه دي، مثلاً د خدائے ذات او صفتونه، فرښتے، وحي، جنت، دوزخ وغیره. دا حقیقتونه بغیر د لیدو نه منل او د دے په باره کښے د نبي په خبرو بروسه کول، ایمان بالغیب دے. د آیت مطلب دا دے چه څوک دا نالیدلي حقیقتونه مني نو هغه د قرآن د رهنمائي نه فائده اخستلے شي. او هغه سړے چه بغیر د لیدلو، څکلو او بویولو نه منلو نه تیار نه وي او دا وائي چه زهٔ هیڅ داسے یو څیز نشم منلے چه نه ناپ کیدے شي او نه تللے کیدے شي نو هغه د دے کتاب نه هدایت نشي موندلے.

[4] دا دریم شرط دے. د دے مطلب دا دے چه کوم خلق د منلو نه روستو په ځائے کیني هغوي د قرآن نه فائده نشي اخستلے. د قرآن نه د فائدے اخستلو د پاره دا ضروري ده چه سړے د ایمان راوړلو نه روستو فوراً کار کولو ته تیار شي. او د کار کولو او لمنځ او همیشه ښه مونځ دے. په ایمان لا یو څو ګینټے نه وي تیرے شوي چه د مونځ د پاره اذان وشي او په دغے وخت دا فیصله کیږي چه ایمان راوړونکے فرمان منلو ته تیار هم دے او که نه. بیا دا چه اذان روزانه پنځه وخته کیږي، او چه کله انسان په دے اذان مانځهٔ له رانشي نو په هغه وخت دا معلومه شي چه د ایمان دعوه کونکي فرمان منلو ته غاړه کیښنوده. یعني مونځ پرېښودل په اصل کښے فرمان نه منل دي، او ښکاره خبره ده چه یو سړے د چا په ښه خبره باندے عمل کولو ته تیار نه وي نو د هغه د پاره ښه خبره کول او نه کول برابر دي.

دلته په دے هم ځان پوهه کول پکار دي چه مونځ قائمول یوه جامع اصطلاح ده. د دے یو لفظ دا معنی نه ده چه سړے د ځان په پابندۍ سره مونځ وکړي بلکه د دے دا مطلب دے چه په جمع باندے د مونځ یا قاعده نظام قائم کړے شي. که په یو کلي کښے یو سړے ځان له د مونځ پابند وي او په جماعت سره د دے فرض ادا کولو انتظام

إِلَيْكَ وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبْلِكَ ۚ وَبِالْآخِرَةِ هُمْ يُوقِنُونَ ﴿٤﴾
أُولَٰئِكَ عَلَىٰ هُدًى مِّن رَّبِّهِمْ ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُونَ ﴿٥﴾

او کوم کتابونه چه ستانه مخکښې نازل کړے شوی دی په هغې ټولو باندې ایمان راوړی^ع او په آخرت باندې یقین لری^ه. داسے خلق د خپل رب د طرفنه په صحیح لار باندې دی او هم هغوی خلاصے موندونکی دی.

نه وی نو دا څوک نشی وئیلے چه دلته موږ تا ئیږ ی.

^ع دا د قرآن د رهنمائی نه د فائدے اخستلو دپاره څلورم شرط دے چه سړے زړه تنګے نه وی، زر پرست نه وی، د هغه په مال کښې چه د خدائے او د بندیانو کوم حقونه دی هغے ورکولو ته تیار وی، په کوم څیز باندې چه ئے ایمان راوړے دے د هغے دپاره د خپل مال قربانولو نه مخ نه اړوی.

^ه دا پنځم شرط دے چه سړے دا اومنی چه هغه ټول کتابونه حق دی کوم چه د وحی په ذریعه الله تعالیٰ په محمد صلی الله علیه وسلم باندې او د هغه نه وړاندې په نورو پیغمبرانو باندې په مختلفو زمانو او ملکونو کښې نازل کړی دی. د دے شرط په وجه قرآن هغه ټولو خلقو ته هدایت نه کوی څوک چه دا وائی چه انسان ته د خدائے د طرفنه د هدایت څه ضرورت نشته، یا وائی چه د هدایت ضرورت شته خو د دے دپاره د وحی او د پیغمبری څه ضرورت نشته او چنپله څه نظریئے جوړے کړی او هغه ته د خدائے هدایت وائی، او یا خو آسمانی کتابونه هم منی خو صرف په هغه کتاب یا کتابونو ئے ایمان وی په کوم چه د هغوی پلار نیکونو ایمان راوړے وی او نور کتابونه نه منی حالانکه د ټولو کتابونو سرچشمه یو ده. د دے قسمه خلقونه علاوه قرآن صرف هغه خلقو ته فائده رسوی چه خپل ځان د خدائے هدایت ته محتاجه ګنړی، او دا هم منی چه د خدائے دا هدایت هر انسان ته ځان له نه راځی بلکه د پیغمبرانو او د آسمانی کتابونو په ذریعه انسان ته راځی، او بیا د نسلی او قومی ډلے پرے مذکره هم نه وی بلکه خالص د حق منکرے وی، چه په کوم کوم ځائے کښې ورته حق ښکاریږی د هغے منکرتیا کوی.

^ه دا شپږم او آخری شرط دے. "آخرت" یو جامع لفظ دے په دے کښې لاندینی عقیدے شاملے دی:

(۱) یو دا چه انسان په دے دُنیا کښې غیر ذمه دار نه دے د خپلو ټولو عملونو به خدائے له جواب ورکوی

(۲) بل دا چه دُنیا همیشه نه ده، په یو مقرر وخت به ختمیږی، د دغے وخت علم الله تعالیٰ سره دے.

(۳) بل دا چه د دے جهان د ختمید و نه روستو به الله تعالیٰ بل جهان جوړه وی او په هغه کښې به ټول انسانان د اول نه تر قیامته پورے چه څومره انسانان په زمکه پید اشوی دی، په یو وخت دوباره راپیدا کړی، او ټول به را جمع کړی، د هغوی د عملونو حسابا کتاب به وشی او هر یو ته به د هغه د خپل خپل کار پوره پوره بدله ورکړیشی.

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا سَوَاءٌ عَلَيْهِمْ ءَأَنذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ⑥ خَتَمَ اللَّهُ عَلَىٰ قُلُوبِهِمْ وَعَلَىٰ سَمْعِهِمْ وَعَلَىٰ أَبْصَارِهِمْ غِشَاوَةٌ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ⑦ ع وَمِنَ النَّاسِ مَن يَقُولُ آمَنَّا بِاللَّهِ وَبِالْيَوْمِ الْآخِرِ وَمَا هُم

کوم خلقو چه د دے خبرو منلو نه انکار وکړو ؏ د هغوی دپاره یو شان ده، که ته هغوی خبردار کړې او که نه ئے خبردار کړې، بهرحال هغوی منونکی نه دی. الله تعالیٰ د هغوی په زړونو او د هغوی په غوږونو باندې مُهر لګولے دے ؁ او د هغوی په سترګو باندې پرده پرته ده. هغوی د سخت سزا مستحق دی. ع

بعضے خلق داسے هم دی چه وائی چه مونږ په الله باندې او د آخرت په ورځ باندې ایمان راوړے دے، او حال دا دے چه په حقیقت کښے هغوی

(۴) یعنی دا چه څوک د خدائے په فیصله باندې نیکان ثابت شی هغوی به جنت ته ځی او چه څوک بدان ثابت شی هغوی به دوزخ ته ځی.

(۵) یعنی دا چه د دنیا خوشحالی او بدحالی ته کامیابی او ناکامی نه شی ویلے، په حقیقت کښے هغه انسان کامیاب دے چه د خدائے تعالیٰ په آخری فیصله کښے کامیاب شی او ناکام انسان هغه دے چه په آخری فیصله کښے ناکام شی.

(۶) دا عقیده چه د کوم خلقو نه وی هغوی د قرآن نه فائده نه شی اخستلے ځکه چه د دے عقیدے نه انکار خو لویه خبره ده، که د سری په زړه کښے د دے عقیدے په تعلق لږ شان شک وی هغه هم د قرآن په ښودلی شوی لار نشی تللے.

؁ یعنی دا بره شپږ شرطونه ئے پوره نه کړل، او دا قول یا په دے کښے د یو د منلو نه ئے انکار وکړو.

؁ د دے دا مطلب نه دے چه د الله د مُهر لګولو د وجے نه هغوی د منلو نه انکار وکړو بلکه د دے مطلب دا دے چه کله هغوی دا پورته بنیادی خبرے و نه منلے، او د خپل ځان دپاره ئے د قرآن د لارے نه خلاف بله لاره خوښه کړله نو الله تعالیٰ د هغوی په زړونو او غوږونو باندې مُهرا و لګوو. د د مُهر لګیدلو حالت هغه چا ته معلوم وی چه چرته چا ته ئے تبلیغ کړے وی. کله چه ته یو سړی ته یوه طریقه وړاندې کړے او هغه په هغے بنه پوه شی او بیا ئے رد کړی، نو د هغے نه روستو د هغه ذهن په داسے مخالف طرف روان شی چه بیا ستا یوه خبره هم د هغه په زړه کښ نه کینی ستا د خبرے دپاره د هغه غوږونه کاڼه شی، او ستا د طریقے چه څه خوبئ دی د هغے د لیدلو دپاره د هغه سترګے ړندے شی او داسے ښکاری لکه چه په زړه باندې ئے مُهر لګیدلے وی.

بِمُؤْمِنِيْنَ ﴿۸﴾ يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ۚ وَمَا يَخْدَعُوْنَ اِلَّآ اَنْفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۹﴾ فِيْ قُلُوْبِهِمْ مَّرَضٌ ۙ فَزَادَهُمُ اللّٰهُ مَرَضًا ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ۢ ۙ بِمَا كَانُوْا يَكْذِبُوْنَ ﴿۱۰﴾ وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ لَا تُفْسِدُوْا فِي الْاَرْضِ ۙ قَالُوْٓا اِنَّمَا نَحْنُ مُصْلِحُوْنَ ﴿۱۱﴾ اَلَآ اِنَّهُمْ هُمُ الْمُفْسِدُوْنَ وَلٰكِنْ لَّا يَشْعُرُوْنَ ﴿۱۲﴾ وَاِذَا

مومنان نهٔ دی هغوی دَ الله او دَ ایمان والو سره دوکه بازی کوی، خو په اصل کښے هغوی چپله ځان له دوکه ورکوی او هغوی تر دَدے پته نهٔ لږی[۱]. دَ هغوی په زړونو کښے یوه بیماری ده چه هغه الله نوره هم زیاته کړه[۲]، او کوم دروغ چه هغوی وائی، دَ هغے په بدله کښے دَ هغوی دپاره دردناکه سزا ده. هرکله چه هغوی ته دا اُوئیلے شو چه په زمکه کښے فساد مه پورته کوئ، نو هغوی دا اُووئیل چه موږ خو اصلاح کونکی یُو ——— خبردار! په حقیقت کښے هم دا خلق فساد کونکی دی خو دوی تر پته نهٔ لږی. او کله چه هغوی ته

[۱] یعنی هغوی ځان له په دے دوکه ورکوی چه زموږ دَ منافقت دا کار به زموږ دپاره فائده مند وی، حال دا دے چه په اصل کښے دَ منافقت دا کار به هغوی ته په دُنیا کښے هم نقصان ورکړی او په آخرت کښے هم. په دُنیا کښے یو منافق خو دَ څو ورځو دپاره خلقو له دوکه ورکولے شی لیکن دَ همیشه دپاره دَ هغه دوکه نهٔ چلیږی. آخر نهٔ آخر دَ هغه دَ منافقت راز ښکاره کیږی. او بیا په خلقو کښے دَ هغه هیڅ قدر پاتے نشی. پاتے شو آخرت، نو هلته صرف په ژبه باندې دَ ایمان دعوی هیڅ قیمت نهٔ لری که چرے عمل دَ ایمان دَ دعوے نه خلاف وی.

[۲] دَ بیماری نه مراد دَ منافقت بیماری ده. او "الله دا بیماری نوره هم زیاته کړه" دَدے مطلب دا دے چه الله منافقانو له فوراً سزا نهٔ ورکوی بلکه هغوی له مهلت ورکوی او دَ دے مهلت نتیجه دا ده چه منافقان خلق په ظاهره خپل کارونه کامیاب ویني او بیا په خپله منافقانو جوړیږی

قِيلَ لَهُمْ آمِنُوا كَمَا آمَنَ النَّاسُ قَالُوا أَنُؤْمِنُ كَمَا آمَنَ السُّفَهَاءُ ۗ أَلَا إِنَّهُمْ هُمُ السُّفَهَاءُ وَلَٰكِن لَّا يَعْلَمُونَ ﴿١٣﴾ وَإِذَا لَقُوا الَّذِينَ آمَنُوا قَالُوا آمَنَّا وَإِذَا خَلَوْا إِلَىٰ شَيَاطِينِهِمْ قَالُوا إِنَّا مَعَكُمْ إِنَّمَا نَحْنُ مُسْتَهْزِئُونَ ﴿١٤﴾ اللَّهُ يَسْتَهْزِئُ بِهِمْ وَيَمُدُّهُمْ فِي طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُونَ ﴿١٥﴾

او چې ورته ویل شي چې څنګه نورو خلقو ایمان راوړی دے دغه شان تاسو هم ایمان راوړئ[13] نو هغوی دا جواب ورکوي چې آیا مونږ د بیوقوفانو په شان ایمان راوړو؟[14] خبردار! په حقیقت کښې دوی پخپله بیوقوفان دي، خو دوی پوهیږي نه. کله چې دوی د مومنانو سره ملاویږي نو وائي چې مونږ ایمان راوړے دے، او کله چې دوی ځان له د خپلو شیطانانو[15] سره ملاویږي نو وائي چې په اصل کښې خو مونږ ستاسو سره یو او دے خلقو سره خو ټوقې کوو — الله د دوی سره ټوقې کوي، هغه دوی له مهلت ورکوي او دوی په خپله سرکشۍ کښې د ړندو په شان کړ وړ روان دي.

[13] یعني لکه څنګه چې ستاسو د قوم نور خلق د زړه د اخلاصه په رښتني مسلمانان شوي دي داسې که تاسو هم اسلام قبلوئ نو په ایماندارۍ سره ئې د زړه د اخلاصه قبول کړئ.

[14] هغوی ته به هغه خلق بیوقوفان ښکاریدل چې په رښتیا سره ئې اسلام قبول کړے وو او خپل ځانونه ئې په تکلیفونو، سختیو او خطرو کښې اچولي وو. د هغوی په خیال کښې دا سراسر د بیوقوفانو کار وو چې صرف د حق سره د مینتیا په وجه د ټول ملک دښمني په سر واخسته شي. د هغوی په خیال کښې د هوښیارتیا کار دا وو چې سړے د حق او د باطل سره څه کار نه لري صرف خپلو مفادو ته وګوري.

[15] شیطان په عربۍ ژبه کښې سرکشه، ناراسته او سودائي ته وائي. دا لفظ د انسانانو او پیریانو دواړو دپاره استعمالیږي. اګرچه دا لفظ په قرآن کښې زیات تر د پیریانو شیطانانو دپاره استعمال شوے دے، لیکن په بعضې ځایونو کښې د هغه انسانانو دپاره هم استعمال شوے دے په کومو کښې چې د شیطان صفتونه وي، او دا د وړاندې روستو عبارت نه په آسانه معلومیږي چې دلته د شیطان نه مطلب انساني شیطان دے او که پیریاني شیطان. دلته په دے ځائے کښې د شیاطین لفظ د هغه لویو لویو سردارانو دپاره استعمال شوے دے کوم چې په هغه وخت کښې د اسلام په مخالفت کښې وړاندې وړاندې وو.

---

أُولَٰٓئِكَ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الضَّلَٰلَةَ بِالْهُدَىٰ فَمَا رَبِحَت تِّجَٰرَتُهُمْ وَمَا كَانُوا مُهْتَدِينَ ﴿١٦﴾ مَثَلُهُمْ كَمَثَلِ الَّذِى اسْتَوْقَدَ نَارًا فَلَمَّآ أَضَآءَتْ مَا حَوْلَهُۥ ذَهَبَ اللَّهُ بِنُورِهِمْ وَتَرَكَهُمْ فِى ظُلُمَٰتٍ لَّا يُبْصِرُونَ ﴿١٧﴾ صُمٌّۢ بُكْمٌ عُمْىٌ فَهُمْ لَا يَرْجِعُونَ ﴿١٨﴾ أَوْ كَصَيِّبٍ مِّنَ السَّمَآءِ فِيهِ ظُلُمَٰتٌ وَرَعْدٌ وَبَرْقٌ يَجْعَلُونَ أَصَٰبِعَهُمْ فِىٓ ءَاذَانِهِم مِّنَ الصَّوَٰعِقِ

دا هغه خلق دی چه دوی دَ هدایت په بدله کښې ګمراهي اخستلې ده، خو دا سودا دوی له فایده ورکوونکې نه ده او دوی هرګز په صحیح لار باندې نه دی. دَ دوی دا مثال دے لکه چه یو سړی اور بل کړو او کله چه هغه څوا وُشا تول ځایونه روښانه کړل نو الله تعالٰی دَ هغوی نه دَ لیدو طاقت واخستلو او هغوی ئې په داسې حال کښې پریښودل چه په تیاروکښې ورته هیڅ په نظر نه راتلل.[13] دوی کاڼه دی، چاړګان دی، ړانده دی[14] دوی اوس نه واپس کیږی. یا بیا دَ دوی مثال داسې وګڼړه لکه چه دَ آسمان نه ښه دَ زور باران وریږی او دَ هغې سره تورې تیارې او ګړزا او بریښنا هم ده، دَ آسمان ګړزا چه دوی واوری نو دَ مرګ دَ ویرې نه ګوتې په غوږونو کښې کیږدی

[13] مطلب دا دے چه کله دَ الله تعالٰی یو بنده رڼا بلکړه، او حق او باطل صحیح او غلط، نیغه لار او کږه لار ښکاره شوه، نو دا چا چه نظر لرلو هغوی ته تول حقیقتونه ښکاره شول، لیکن دے منافقانو ته، په خپله نا ډے رانده کړی وُو، په دے رڼا کښې هیڅ په نظر را نه غلل. "الله دَ هغوئی نه دَ لیدو طاقت واخستو" دَ دے الفاظو نه څوک په غلطئ سره دا مطلب وا نه خلی چه دَ دوی دَ بے لارې کیدو ذمه واری په دوی نه راځی. الله خو دَ هغه چا نه دَ لیدو طاقت اخلی، چه په خپله دَ حق طلبګار نه وی، دَ هدایت په ځائے ګمراهي ځان له خوښوی، او دَ صداقت رڼا لیدل نه غواړی. کله چه هغوی دَ حق دَ رڼا نه مخ واړه وُو او دَ باطل په تیاروکښې ئې ټکرے خوړل غوره کړل، نو الله تعالٰی هغوئی له هم دَ دغې توفیق ورکړو.

[14] دَ حق خبرې دَ اوریدو دپاره کاڼه، دَ حق وینا دپاره چاړګان او دَ حق لیدو دپاره ړانده دی.

حَذَرَ الْمَوْتِ ؕ وَاللّٰهُ مُحِيْطٌۢ بِالْكٰفِرِيْنَ ﴿١٩﴾ يَكَادُ الْبَرْقُ يَخْطَفُ اَبْصَارَهُمْ ؕ كُلَّمَآ اَضَآءَ لَهُمْ مَّشَوْا فِيْهِ ۙ وَاِذَآ اَظْلَمَ عَلَيْهِمْ قَامُوْا ؕ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَذَهَبَ بِسَمْعِهِمْ وَاَبْصَارِهِمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ قَدِيْرٌ ﴿٢٠﴾

او الله تعالیٰ دا منکرینِ حق د هر طرفه په ګیره کښې اغستلی دی[18]. د ډیر برق د وجې نه ته به وَئے چه برېښنا اوس د دوئ د سترګو نظر یوسي. کله چه دوئ ته لږه رڼا شي نو په هغې کښې څه لږ لږ لاړ شي او کله چه پرې تیاره شي نو ودریږي[19] ــــــ که الله غوښتلے نو د دوئ نه به ئے د اوریدلو او د لیدلو طاقت بالکل اغستلے وو[20]، یقیناً الله په هر څیز باندې قادر دے.

[18] یعنې په غوږونو کښې ګوتې کیږدي او د څه لږ وخت د پاره ځان په دې دوکه کښې واچوي چه د هلاکت نه به بچ شي خو په حقیقت کښې هغوئ په دې بچ کیدے نشي ځکه چه الله د خپلو ټولو طاقتونو سره په هغوئ باندې احاطه کونکے دے.

[19] اولنے مثال د هغه منافقانو دے چه د زړه نه قطعي کافران وو خو د څه غرض او مصلحت د پاره ئے ځانونه د مسلمانانو سره شامل کړي وو. او دویم مثال د هغه منافقانو دے چه په شک کښې وو، ایمانونه ئے کمزوري وو، څه لږ ډیر د حق هم قائل وو خو د حق د پاره تکلیفونو او مصیبتونو برداشت کولو ته تیار نه وو. په دې مثال کښې د باران نه مراد اسلام دے چه د ټولو انسانانو د پاره د رحمت په طور راغلے دے. د تورو تیرو، ګرزاري او د برېښنا نه مراد هغه مصیبتونه او مشکلات او سخت کوشش دے چه د تحریک اسلامي په مقابله کښې به د جاهلانو د لاسه پیښیدل. د مثال په آخره کښې ئے د دې منافقانو هغه حالت ښودلے دے چه کله آسانتیاوي وي نو دوئ روان شي، او چه کله سختي او مشکلات وي، یا داسې حکمونه راشي چه د دوئ د خواهشاتو او د جاهلیت نه خلاف وي نو په ځائے ودریږي.

[20] یعنې لکه څنګه چه ئے د اولني قسم منافقانو د لیدلو طاقت بالکل واغستو، د دغه شان دوئ ئے هم د حق نه ړانده کاڼه جوړ ولے شو. خو د الله تعالیٰ دا قاعده نه ده چه څوک د څه حده پورې لیدل او اوریدل غواړي او د هغې حده پورې ئے هم لیدلو او اوریدلو ته پرې نه ږدي. څومره چه د حق د لیدلو او د حق اوریدلو د پاره دوئ په خپله تیار وو هغومره الله تعالیٰ د هغوئ سره د اوریدلو او د لیدلو طاقت پرېښودو.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلنَّاسُ ٱعْبُدُوا۟ رَبَّكُمُ ٱلَّذِى خَلَقَكُمْ وَٱلَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴿٢١﴾ ٱلَّذِى جَعَلَ لَكُمُ ٱلْأَرْضَ فِرَٰشًا وَٱلسَّمَآءَ بِنَآءً وَأَنزَلَ مِنَ ٱلسَّمَآءِ مَآءً فَأَخْرَجَ بِهِۦ مِنَ ٱلثَّمَرَٰتِ رِزْقًا لَّكُمْ ۖ فَلَا تَجْعَلُوا۟ لِلَّهِ أَندَادًا وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿٢٢﴾ وَإِن كُنتُمْ فِى رَيْبٍ مِّمَّا نَزَّلْنَا عَلَىٰ عَبْدِنَا فَأْتُوا۟ بِسُورَةٍ مِّن مِّثْلِهِۦ وَٱدْعُوا۟

[۱] اے خلقو! د خپل هغه رب بندګي اختيار کړئ چه ستاسو او ستاسو نه مخکښې کوم خلق تير شويدي د هغه ټولو خالق دے، اُميد دے چه په دے[۲] صورت تاسو بچ شئ. دا خو هم هغه دے چه ستاسو[۳] دپاره ئے د زمکے فرش اُغوړه دو، د آسمان چت ئے جوړ کړو، د بره نه ئے اوبه اُورَولے او د اُوبو په ذريعے هر قسم پيداوار راؤ ټوکولو او ستاسو دپاره ئے د رزق تياره اُوکړو. چه پوهيږئ نو د الله تعالىٰ سره[۴] بل څوک مقابل مه جوړوئ.

او که ستاسو دا شک وى چه دا کتاب، کوم چه موږ په خپل بندهٔ نازل کړے دے، چه دا زموږ دے او که نه دے، نو د دے پشان فقط يو سورت جوړ کړئ او راتئ وړئ، او خپل

[۱] اګر چه د قرآن دعوت د ټولو انسانانو دپاره عام دے، خو د دے دعوت نه فايده اغستل يا نه اغستل د خلقو په خپل ميلان بانديِ دى او د دے ميلان مطابق د الله په توفيق بانديِ دى. د دے وجه نه ئے د ټولو نه مخکښې په انسانانو کښې فرق اُوښودلو چه کوم قسم خلق د قرآن نه فايده اغستے شي او کوم قسم خلق نشي اغستے. د دے نه روستو اُوس ټولو انسانانو ته هغه اصلي خبره وړاندي کوي چه د کوم دپاره قرآن راغلے دے.

[۲] يعني په دنيا کښې د غلطو خيالاتو او د غلطو عملونو نه د بچ کيدو اُميد او په آخرت کښې د خدائے د عذاب نه د بچ کيدو اُميد.

[۳] يعني چه تاسو هم په خپله په دے خبره قايل يئ او دا تاسو ته معلومه ده چه دا ټول کار خاص د الله تعالىٰ دے، نو بيا تاسو له پکار دى چه د هغهٔ بندګي وکړئ، بل څوک د دے حقدار کيديشي چه تاسو ئے بندګي وکړئ؟ بل څوک د الله د مقابل جوړولو نه مراد دا دے چه د خدائے نه علاوه د بل چا بندګي او عبادت په داسے طريقه وکړے شي لکه څنګ چه د الله بندګي پکار ده. دا تفصيل به په قرآن کښې وړاندي په خپله معلوم شي چه د عبادت هغه کوم کوم قسمونه دى چه صرف د الله دپاره مخصوص دى او په هغے کښې بل څوک شريک کول هغه شرک دے چه د هغے نه د منع کولو دپاره قرآن راغلے دے.

شُهَدَآءَكُم مِّن دُونِ ٱللَّهِ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿٢٣﴾ فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا۟ وَلَن تَفْعَلُوا۟ فَٱتَّقُوا۟ ٱلنَّارَ ٱلَّتِى وَقُودُهَا ٱلنَّاسُ وَٱلْحِجَارَةُ ۖ أُعِدَّتْ لِلْكَٰفِرِينَ ﴿٢٤﴾ وَبَشِّرِ ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ وَعَمِلُوا۟ ٱلصَّٰلِحَٰتِ أَنَّ لَهُمْ جَنَّٰتٍ تَجْرِى مِن تَحْتِهَا ٱلْأَنْهَٰرُ ۖ كُلَّمَا رُزِقُوا۟ مِنْهَا مِن ثَمَرَةٍ رِّزْقًا ۙ قَالُوا۟ هَٰذَا ٱلَّذِى رُزِقْنَا مِن قَبْلُ ۖ وَأُتُوا۟ بِهِۦ مُتَشَٰبِهًا ۖ وَلَهُمْ فِيهَآ أَزْوَٰجٌ مُّطَهَّرَةٌ ۖ وَهُمْ فِيهَا

مګري را غواړئ، ډ بوالله نه سوا ده چا نه چه مدد غواړئ نو او غواړئ، که تاسو رښتيني يئ نو دا کار وکړئ.[٢٤] خو که چرے دا سے مو ونه کړل، او دا يقيني ده چه چرے ئے هم نشئ کولے، نو د هغه اُور نه ويريږئ چه خشاک به ئے انسانان او کانړي وي[٢٥] او چه تيار شوے دے د حق نه د انکار کوونکو دپاره.

او اے پيغمبره! کوم خلق چه پهٔ دے کتاب باندې ايمان راوړي او (د دے مطابق) خپل عملونه ټيک کړي، هغوئ له زيرے ورکړه چه د هغوئ دپاره داسے باغونه دي چه لاندې به ترولے بهيږي. د دے باغونو ميوے به په شکل کښے د دُنيا د ميوو سره يو شان وي. کله چه هغوئ ته د خوراک دپاره يوه ميوه ورکړے شي نو هغوئ به وائي چه په دُنيا کښے به هم داسے ميوے مونږ ته راکړے کيدے شوے[٢٦] هلته به د هغوئ دپاره پاکے بيبيانے وي[٢٧]، او هلته به

[٢٤] د دے نه مخکښے په مکه کښے څو څو ځله دا ويلے شوي وُو چه که چرے ستاسو دا خيال وي چه دا قرآن انسان د ځانه ليکلے دے نو د دے په شان يو کلام تاسو هم وليکئ او وے ښايئ. اُوس په مدينه کښے بيا د دے خبرے ذکر کيږي. (اوګورئ سورۃ يونس، آيت ۳۸، سورۃ هود، آيت ۱۳. بني اسرائيل، آيت ۸۸. الطور، آيت ۳۳، ۳۴)

[٢٥] په دے کښے دا نرئ اشاره ده چه هلته به د دوزخ خشاک يوا ځے تاسو نه يئ بلکه ستاسو هغه بُتان به هم ستاسو سره وي کوم ته چه تاسو سجدے لګولے او خدايان مو ترے جوړ کړي وُو. په هغه وخت به تاسو ته پخپله معلومه شي چه په خدائي کښے د دوئ څومره لاس رسي.

[٢٦] يعني دا سے نا اشنا او عجيبه ميوے به نه وي چه دوئ به نه وي ليدلي. شکل به ئے د هغه ميوو په شان وي کومے چه په دنيا کښے وے. خو خوند به ئے د هغے نه په څو څو چنده زيات بهتر وي. په ظاهره به مثلاً آم يا انار يا سنګتره وي.

خٰلِدُوْنَ ۞ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَسْتَحْيٖٓ اَنْ يَّضْرِبَ مَثَلًا مَّا بَعُوْضَةً فَمَا فَوْقَهَا ؕ فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فَيَعْلَمُوْنَ اَنَّهُ الْحَقُّ مِنْ رَّبِّهِمْ ۚ وَاَمَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فَيَقُوْلُوْنَ مَاذَآ اَرَادَ اللّٰهُ بِهٰذَا مَثَلًا ۘ يُضِلُّ بِهٖ كَثِيْرًا ۙ وَّيَهْدِيْ بِهٖ كَثِيْرًا ؕ وَمَا يُضِلُّ بِهٖٓ

وقف لازم

هغوئ همیشه وی.

هو، الله په دے هرګز نه شرمیږی چه د ماشی یا د دے نه هُم د زیات سپک څیز مثالونه بیان کړی. کوم خلق چه د حق خبرے قبلونکی دی هغوئ چه دا مثالونه واوری نو پوهیږی چه دا حق دے چه د هغوئ د رب د طرفنه راغلے دے، او کوم خلق چه نه منونکی دی هغوئ چه دا واوری نو وائی چه د داسے مثالونو بیانولو سره د الله څه کار دے؟ [28] د غه شان الله هم په یوه خبره ډیرے لارے کوی او ډیروته صیح لار ښائی [29]. او په لاره کړی

هر ه میوه چه جنتیان اُوینی نو پیژنی به ئے چه دا ام دے دا انار دے او دا سنګتره ده. خو په مزه او خوند کښے به د دُنیا د آمونو، انارو او سنګترو نه ډیرے ښے وی.

[27] لفظ "ازواج" استعمال شوید ے چه معنیٰ ئے "جوړه" ده. او دا لفظ د خاوند او ښځے دواړو دپاره استعمالیږی - د خاوند دپاره ښځه "زوج" ده او د ښځے دپاره خاوند "زوج" دے. خو په جنت کښے به دا جوړه د پاکوالی د صفت په وجه یو ځلے وی. که چرے په دُنیا کښے یو سړے نیک وی او ښځه ئے نیکه نه وی نو په آخرت کښے به هغوئ ښځه خاوند نه وی، د غه نیک سړی له به بله بیوه نیکه ښځه ورکړے کیدیشی. او که چرے دلته په دُنیا کښے یوه ښځه نیکه ده او خاوند ئے بد دے نو هلته په جنت کښے به دغه ښځه د دغے خراب خاوند سره نه وی بلکه یو نیک سړے به د دے د ژوند شریک جوړ کړیشی. او که چرے په دُنیا کښے ښځه او خاوند دواړه نیکان وی نو په جنت کښے به د هغوئ دغه رشته د همیشه دپاره وی.

[28] دلته اعتراض بیان شوے نه دے خو جواب ئے ورکړے شوید ے. په قرآن کښے په یو څو ځایونو کښے د جولاګی، د مچئ او د ماشی وغیره مثالونه د وضاحت دپاره بیان شویدی، په دے مثالونو د مخالفینو دا اعتراض وو چه دا څنګه د الله کلام دے چه پکښے د داسے سپکو څیزونو مثالونه دی. هغوئ به وے که چرے دا د خدائے کلام وے نو په دے کښے به دا فضولیات نه وو.

[29] یعنی کوم خلق چه په خبره پوهیدل نه غواړی، د حقیقت تلاش په زړه کښے نه لری، د هغوئ نظر په ظاهری الفاظو بانده ونخلی او د دغه څیزونو نه اُلټا نتیجے واخلی

إِلَّا الْفٰسِقِيْنَ ﴿۲۶﴾ الَّذِيْنَ يَنْقُضُوْنَ عَهْدَ اللّٰهِ مِنْۢ بَعْدِ مِيْثَاقِهٖ ۪ وَيَقْطَعُوْنَ مَآ اَمَرَ اللّٰهُ بِهٖٓ اَنْ يُّوْصَلَ وَيُفْسِدُوْنَ فِى الْاَرْضِ ؕ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۲۷﴾ كَيْفَ تَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ وَكُنْتُمْ اَمْوَاتًا فَاَحْيَاكُمْ ۚ ثُمَّ يُمِيْتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيْكُمْ ثُمَّ

هغه خلق چه فاسقان دی[30]، د الله وعده د پوخوالی نه روستو ماتوی[31]، الله چه د کوم څیز د تړلو حکم کړیدے هغه پریکوی[32] او په زمکه کښے فساد راپورته کوی[33]، په حقیقت کښے دا خلق نقصان مونده ونکړدی.

تاسو د الله سره د کفر رویه څنګه اختیاره وئ، حال دا دے چه په تاسو کښے روح نه وو، هغه تاسو له ژوند درکړو، بیا به هغه ستاسو نه روح واخلی، بیا به تا سوله دوباره ژوند درکړی

او د حق نه نور هم لری لاړشی. د دے نه برعکس کوم خلق چه د حقیقت په تلاش کښے دی او په صحیح خبره پوهیږی هغوئ ته هم په دے خبرو کښے حکمت او پوهښکاریږی او هغوئ د زړه نه داګواهی کوی چه دا د حکمت نه ډکے خبرے خو صرف د یو الله کیدیشی.

[30] فاسق: نافرمانه او د منلو د حدنه وتونکے.

[31] بادشاه چه د خپلو نوکرانو او رعیت په نوم کوم فرمان یا هدایات جاری کوی هغے ته په عربئ ژبه کښے عهد وائي، ځکه چه د هغے منل په رعیت باندې واجب وی. دلته د عهد لفظ په دے معنیٰ کښے استعمال شویدے. د الله د عهد نه مراد د الله هغه مستقل فرمان دے، چه د هغے په وجه ټولو انسانانو ته دا حکم شویدے چه صرف د یو الله بندګی، اطاعت او عبادت به کوی. "د پوخوالی نه روستو" اشاره ده دے طرف ته چه د آدمؑ د پیدائش په وخت کښے د ټولو انسانانو نه د دے فرمان د پابندئ اقرار اخستلے شوے وو. په سورۂ اعراف آیت ۲۷ کښے په دے وعدے او اقرار باندې نسبتاً زیات تفصیل بیان شوے دے.

[32] یعنی د کوم تړون د مضبوطیا په وجه چه د ټولو انسانانو کامیابي ده، او چه الله د هغے د صحیح سالم ساتلو حکم هم کړے دے، هغه تړون دا خلق ټوټے ټوټے کوی. دا وړه جمله دومره فراخه ده چه د دوو سړو د تعلق نه واخله د ټولے دُنیا د قومونو ترمنځه تعلقات، او د انسان د یو ځائے د اوسید و او د اخلاقو نه وله دُنیا صرف په دے یوه جمله کښے راځی. د تعلق پریښودو نه مراد صرف د انسانی تعلقاتو پریښودل نه دی، بلکه د تعلقاتو ساتلو چه کومے صحیح او جائز طریقے دی د هغے نه سوا هره یوه طریقه چه اختیار کړیشی هغه ټولے په تعلق پریښودلو کښے راځی، ځکه چه د ناجائزه او غلطو تعلقاتو انجام هم هغه دے کوم چه د تعلقاتو پریښودو دے، یعنی د خلقو ترمنځه د معاملاتو خرابي او د کلی والئ تباهی او د اخلاقو بربادی.

إِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿٢٨﴾ هُوَ الَّذِي خَلَقَ لَكُم مَّا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا ثُمَّ اسْتَوَىٰ إِلَى السَّمَاءِ فَسَوَّاهُنَّ سَبْعَ سَمَاوَاتٍ ۚ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿٢٩﴾ وَإِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَائِكَةِ إِنِّي

بیا به د هغه طرفته واپس ځئ. دا خو هغه دے چه ستاسو د پاره ئے د زمکے ټول څیزونه پیدا کړل، بیائے پورته توجه اُوکړه او اُووه آسمانونه ئے جوړ کړل. او هغه د هر څیز علم لرونکے دے[۳۵]

بیا لږ شان هغه وخت په خیال کښے راوله کله چه ستا رب فرښتو ته ویلی وُو چه "زهٔ

[۳۳] په دے درېو جُملو کښے د فسق او د فاسق مکمل تعریف بیان کړے شویدے. څوک چه د خدائے او د بنده په مینځ کښے تعلق پرېکوی یا خرابوی او یا د بوا انسان او د بل انسان په مینځ کښے تعلق پرېکوی یا خرابوی نو ضرور نه ضرور نتیجه به ئے د فساد وی، او دا فساد چه څوک پورته کوی هغه ته فاسق وائی.

[۳۴] دا اُوَه آسمانونو د حقیقت په باره کښے دا خبره څوک نشی کولے چه ټیک هم په دے شکل اُووه آسمانونه جوړ شوی دی. هر انسان په خپله خپله زمانه کښے د آسمان په باره کښے او د زمکے نه پورته د نورو څیزونو په باره کښے د خپل تیاس او ګمان مطابق مختلف مختلف خیالات ظاهر کړی دی او دغه خیالات برابر وخت په وخت بدلیږی. د غه وجه ده چه په دے خیالونو کښے د یو خیال مطابق د قرآن د دے لفظونو تشریح کول بے صحیح نه وی. بس دومره لنډه پوهه پکار ده چه یا خو د دے مطلب دا دے چه د زمکے نه پورته څومره کائنات دی، هغه ټول الله تعالیٰ په اُوَو مضبوطو طبقو کښے تقسیم کړیدی، او یا دا مطلب دے چه د دے کائناتو په کومه حلقه کښے زمکه پرته ده، هغه په اُوَو طبقو کښے تقسیم ده.

[۳۵] په دے فقره کښے په د دُو حقیقتونو باندے خبردار ړه دے. یو دا چه ته د نافرمانئ او سرکشئ لار اختیاروے نو د هغه خدائے په مقابله کښے دا زړه ورتیا څنګه کوے چه هغه ستا د هر کار نه خبر دے او چه ستا یو حرکت هم د هغه نه پټ نشی پاتے کیدے. دویم دا چه د کوم خدائے سره د ټولو حقیقتونو علم دے، او چه په حقیقت کښے هغه د علم سرچینه ده، د هغه نه مخ اړول خو د جهالت په تیارو کښے ټکرے خوړل دی. نو چه د هغه نه بغیر بله د علم خزانه نشته، او د هغه نه بغیر بله هغه رڼا نشته چه ته پرے د خپل ژوند لاره صفا اُووینے، نو بیا د هغه نه په مخ اړولو کښے تا ته څه فائده ښکاری.

[۳۶] په تیره شوی رکوع کښے د بندګئ کولو وجه دا بیان شوی وه چه الله ستاسو خالق دے،

جَاعِلٌ فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةً ۗ قَالُوا أَتَجْعَلُ فِيهَا مَن يُفْسِدُ فِيهَا وَيَسْفِكُ الدِّمَاءَ وَنَحْنُ نُسَبِّحُ بِحَمْدِكَ

په زمکه کښې يو خليفه[۳۸] جوړه ونکے يم"۔ هغوئ اُووئيل: "چه آيا په زمکه کښې داسے څوک مقرر يې چه د زمکے نظام به خرابه وي او وينې به تويه کوي؟ مونږ خو ستا د ثنا سره تسبيح وايو۔

پالونکے دے، ستا سو مرګ او ژوند د هغه په لاس کښې دي، او تاسو چه په کومه دُنيا کښې وسيږئ د هغې مالک او چلونکے هغه دے، نو په دے وجه ستاسو د پاره د هغه د بندګئ نه علاوه بل يو طريقه هم صحيح نشي کيدے. اُوس په دے رکوع کښې د الله د بندګئ دا وجه بيانيږي چه په دے دُنيا کښې الله پاک تاسو خپل خليفګان جوړ کړي، د يو خليفه په حيثيت ستاسو يوا ځے دا کار نه دے چه صرف بندګي وکړئ، بلکه دا هم دے چه د الله تعالىٰ د راليږلى شوى هدايت مطابق کار وکړئ. که چرے تاسو داسے و نه کړئ او د خپل ازلى دښمن شيطان په اشارو باندې عمل وکړئ، نو که ډير نا کاره بغاوت مجرمان به شئ او ډير نا کاره انجام به اُووينئ۔

د انسان حقيقت ټيک ټيک بيان کړے شوا و په کا تا نوکښې د انسان حيثيت ټيک ټيک ونبودلے شو او د انسانيت په تاريخ کښې هغه دروازه پرانستے شوه چه د هغې د معلومولو د پاره د انسان سره بله هيڅ ذريعه نشته. د دے دروازے نه هغه اهم حقيقتونه ښکاره شو چه د هغې اندازه وهل ډير بهترا و واضحه دي که د اندازے چه خلق د انسانانو د زړونو ګنجوانو هڅه وکو نه نکوي۔

[۳۷] د مَلَك اصلي معنى په عربئ کښې "پيغام وړونکے" ده. د دے لفظي ترجمه استازے يا فرښته ده. دا صرف تش په نوم طاقتونه نه دي چه شخصيت نه لري، بلکه دا شخصيت لرونکي هغه هستئ دي چه د هغوئ نه الله پاک د دے خپل عظيم الشان سلطنت د چلولو او د انتظام کار اخلى. داسے و ګنړه چه دا د الله پاک د بادشاهئ کارنده دي چه د الله حکمونه نافذ کوي. جاهلو خلقو دا فرښتې په غلطئ سره په خدائئ کښې حصه دار وګنړلے او بعضو خلقو او وئيل چه دا د خدائے رشته دار دي نو په دے وجه ئے د هغوئ عبادت شروع کړو۔

[۳۸] خليفه: هغه کس چه د اصلي مالک د پاره د يو نائب په حيثيت کار کوي او هغه اختيارات استعمالوي کوم چه ورته اصلي مالک سپارلى وي. خليفه مالک نه وي بلکه د اصلي مالک نائب وي. هغه ته د خپلے رضا کولو حق نه دے حاصل، بلکه د هغه کار د خپل مالک رضا پوره کول دي. که چرے هغه په خپله مالک جوړ شي او سپارلى شوى اختيارات په خپله طبعه استعمالول شروع کړي، يا د اصلي مالک نه علاوه بل څوک خپل مالک اُومني او د هغه د رضا کول شروع کړي نو دا اتبول که غدارئ او د سرکشئ او د بغاوت کارونه دي۔

[۳۹] دا د فرښتو اعتراض نه وو بلکه يو تپوس وو. د فرښتو مجال دے چه د خدائے په خبره

وَنُقَدِّسُ لَكَ ۭ قَالَ اِنِّىْٓ اَعْلَمُ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٣٠﴾ وَعَلَّمَ اٰدَمَ الْاَسْمَاۗءَ كُلَّهَا ثُمَّ عَرَضَهُمْ عَلَي الْمَلٰۗىِٕكَةِ ۙ فَقَالَ اَنْۢبِـُٔوْنِىْ بِاَسْمَاۗءِ ھٰٓؤُلَاۗءِ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿٣١﴾ قَالُوْا

اوستا پاکي بیانوو[٣٩]" الله اُوفرمایل، "چه په کوم شیز بانډ تاسو نه پوهیږئ په هغې زه پوهیږم[٤٠]" . ددے نه روستو الله تعالی آدم ته د ټولو شیزونو نومونه وښودل، بیائے هغه فرښتو ته وړاندې کړل او ورته ئے وفرمایل "که چرے ستا سو دا خیال صحیح دے (چه د یو خلیفه په مقرر کولو به د زمکے نظام خراب شي) نو د دے شیزونو نومونه راته وښایئ[٤١]" فرښتو عرض وکړو

اعتراض وکړي. هغوئ د "خلیفه" لفظ نه په دے پوه شوي وُو چه الله په زمکه کوم مخلوق پیدا کوي نو هغوئ ته به څه اختیارات ضرور حواله کوي، خو د هغوئ په د ماغو کښے دا خبره نه راتلله چه د کائنات نو په بادشاهئ کښے به با اختیاره مخلوق څنګه راشي، او د بادشاهئ په کوم ځائے کښے چه چاله څه اختیارات ورکړیشي، هلته به انتظام څنګه خراب نشي، په دے خبره هغوئ ځان پوه کول.

[٣٩] د دے وینا د فرښتو دا مطلب نه وُو چه د خلافت مونږ مستحق یو او خلافت دِ مونږ ته راکړیشي، بلکه د هغوئ مطلب دا وُو چه د حضور فرمان منلے کیږي، مونږ په ښه طریقه ستا حکمونه ځائے راوړو، ستا د مرضئ مطابق ټول جهان پاک صفا ساتو او ورسره ورسره دیر په ادب ستا ثنا او پاکي بیانوو، اُوس لور د څه شیز کمے دے چه د هغے د پاره د خلیفه ضرورت دے؟ مونږ د دے په مصلحت پوهه نه شو. (د "تسبیح" د لفظ دوه معنے دی. یوه معنے ئے پاکي بیانول دی او بله معنے ئے د زړه د اخلاصه کار او کوشش کول دی. دغه شان د تقدیس دوه معنے دی. یو د بزرګئ اظهار او بیان، او دویم پاکول).

[٤٠] دا د فرښتو د دویم شبهے جواب دے. یعنی الله وُ فرمایل چه د خلیفه مقرر کولو په ضرورت او مصلحت زه پوهیږم تاسو په دے نه پوهیږئ. تاسو چه کوم خپل خدمتونه یادوئ هغه کافي نه دی، د هغے نه زیات څه پکار دی. د دے وجے نه په زمکه کښے د داسے مخلوق پیدا کولو اراده شویده چه د هغوئ سره څه اختیارات هم وي.

[٤١] په اصل کښے د انسان علم دا دے چه هغه د نومونو په ذریعه د شیزونو علم په ذهن کښے راولي. د دے وجے نه د انسان ټول معلومات په اصل کښے د شیزونو نومونه دي. آدم ته ټول نومونه ښودل داسے دی لکه چه هغه ته د ټولو شیزونو علم وښایئ.

سُبْحٰنَكَ لَا عِلْمَ لَنَآ اِلَّا مَا عَلَّمْتَنَا ؕ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَلِيْمُ الْحَكِيْمُ ﴿٣٢﴾ قَالَ يٰۤاٰدَمُ اَنْۢبِئْهُمْ بِاَسْمَآئِهِمْ ۚ فَلَمَّآ اَنْۢبَاَهُمْ بِاَسْمَآئِهِمْ ۙ قَالَ اَلَمْ اَقُلْ لَّكُمْ اِنِّىْٓ اَعْلَمُ غَيْبَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۙ وَاَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ وَمَا كُنْتُمْ تَكْتُمُوْنَ ﴿٣٣﴾ وَاِذْ قُلْنَا لِلْمَلٰٓئِكَةِ اسْجُدُوْا لِاٰدَمَ فَسَجَدُوْٓا اِلَّآ اِبْلِيْسَ ؕ اَبٰى

"ذ نقص نه پاک خو هم ستا ذات دے، موږ ه خو یس هغو مره علم لرو، څومره چه تا موږ له راکړے دے. په حقیقت کښے هر څه پېژندونکے او په هر څه پوهېدونکے ستا نه بغیر بل څوک نشته."[43] بیا الله آدم ته اُوویل: "ته دوئ ته د دے څیزونو نومونه وُښایه." کله چه هغه هغوئ ته د هغے ټول نومونه وُښودل،[44] نو الله وُ فرمایل: "ما تاسو ته ویلی نه وُو چه ما ته د آسمانونو او د زمکے هغه ټول حقیقتونه معلوم دی کوم چه ستاسو نه پټ دی، څه چه تاسو ظاهره وئ هغه هم ما ته معلوم دی او څه چه تاسو پټ وئ هغه هم زه پېژنم."
بیا چه کله موږ فرښتو ته حکم وُکړو چه د آدم مخے ته ټیټے شی، نو ټولے ټیټے شوے،[45] خو ابلیس انکار وُکړو

[43] د دے نه معلومیږی چه د هرے فرښتے علم صرف د خپل کار د حدهٔ پورے محدود دے او د غه شان د هر قسم فرښتو تعلق د خپل خپل کار سره دے. مثلاً د کومو فرښتو په اختیار کښے چه د هوا انتظام دے هغوئ د هوا په حقله پره څه پوهیږی، خو د اوبو په حقله په هیڅ نه پوهیږی. د غه حال د نورو څانګو د فرښتو دے. د دے نه برعکس انسان ته پوره او جامع علم ورکړے شویدے. داکیدے شی چه د یوے یوے څانګے په حقله انسان د هغے څانګے د فرښتو نه کم علم لری، خو د دُنیا په ټولو څیزونو باندے جامع علم انسان له ورکړے شویدے فرښتو له نه دے.

[44] دا کار د فرښتو د اولنی شبهے جواب وُو. په دے طریقه الله پاک هغوئ ته وُښودله چه زهٔ آدم ته صرف اختیارات نهٔ ورکوم بلکه علم ورسره هم ورکوم. د آدم د مقرر کولو نه چه ستاسو په ذهن کښے د فساد کوم خیال راپیدا شوے دے د دے کار صرف یو اړخ دے. بل اړخ د اصلاح هم دے چه د فساد نه زیات وزندار او زیات قیمتی دے. د حکیم دا کار نه دے چه د وړے خرابی د وجه نه د لوئے فائدے کار پریږدی.

[45] د دے مطلب دا دے چه په زمکه کښے او د زمکے سره چه څومره علاقه تعلق لری په هغے ټوله علاقه کښے چه څومره فرښتے کار کوی هغوئ ټولو ته دا حکم وُ شو چه د انسان به تابع یئ او د هغه فرمان به منئ. چونکه په دے علاقه کښے د الله په حکم انسان خلیفه جوړیدو نو د دے وجه

وَاسْتَكْبَرَ ۫ وَكَانَ مِنَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۳۴﴾ وَقُلْنَا يٰۤاٰدَمُ اسْكُنْ اَنْتَ وَزَوْجُكَ الْجَنَّةَ وَكُلَا مِنْهَا رَغَدًا حَيْثُ شِئْتُمَا ۪ وَلَا تَقْرَبَا

هغه د خپل لوئ والی غرور وکړو او په نافرمانو کښې شامل شو.[۴۸]
بیا مونږ آدم ته اووئیل چه "ته او ستا ښځه دواړه په جنت کښې اوسیږئ او دلته چه څه غواړئ فراخه خورئ

نه دا فرمان جاری شو چه که انسان په صحیح کار کښې یا په غلط کار کښې خپل هغه اختیارات استعمالول غواړی کوم چه ورله مونږ ورکړی دی، او مونږ ورله د هغه کار کولو موقع ورکړله، نو بیا تاسو فرض دی چه د خپل خپل حد پورې د انسان سره په هغه کار کښې مددګاری شئ. که هغه غلا کول اوغواړی یا د مونځ کولو اراده وکړی، که د نیکئ اراده اوکړی او که په بدئ پسې روان شی، هر څه چه کوی خو ترڅو چه مونږه انسان ته د هغه د خوښې د کار کولو اجازت ورکوو، تاسو به هغه ته د کار کولو د پاره لاره هواره وئ. د مثال په طور دا سې فرض کړو چه یو بادشاه کله د خپل ملک په یو صوبه یا یوه ضلع کښې څوک حاکم مقرره وی، نو په هغه علاقه کښې چه د حکومت څومره نوکران وی د هغوئ ټولو دا فرض وی چه د هغې حاکم اطاعت وکړی، او ترڅو چه د بادشاه دا خوښه وی چه دغه حاکم دې خپل اختیارات استعمالوی، نو ترهغې وخته پورې دې نوکران د هغه مددګاری وی، خواه که دغه حاکم خپل اختیارات په صحیح کار کښې استعماله وی او که په غلط کار کښې - البته کله چه د یو کار په باره کښې د بادشاه حکم وشی چه حاکم دې داسې نه کوی نو بیا دغلته د حاکم صاحب اقتدار ختم شی او هغه داسې ښکاره شی لکه چه د ټولې علاقې نوکرانو هرتال کړې وی. او کله چه د بادشاه د طرفنه د دغې حاکم صاحب د لرې کولو او نیولو حکم وشی، نو بیا هغه نوکران او خادمان چه د پرون نه پورې ئې د حاکم په حکم کار کولو، د حاکم په لاسو کښې هتکړئ وا چوی او جیل (دار الفاسقین) ته ئې روان کړی. فرښتو ته چه کوم حکم شوې وو چه آدم ته سجده وکړئ هغه کده قسمه حکم وو. ممکنه ده چه صرف تابع کیدو ته ئې سجده وئیلی وی - او دا هم ممکنه ده چه د تابع کیدو د پاره ئې د څه ظاهری کار کولو حکم هم ورکړې وی، او دا زیاته صحیح معلومیږی.

[۴۸] ابلیس: لفظی ترجمه "انتهائی ناامیده" - په اصطلاح کښې دا د هغې جن (پیری) نوم دې چه د الله حکم ئې ونه منلو او د آدم او د آدم د اولاد د تابع کیدو نه ئې انکار وکړو، او د الله تعالی نه ئې ترقیامته پورې دا مهلت وغوښتلو چه ما ته دې د انسانانو د دوکه کولو او د بے لارې کولو موقع په لاس راکړې شی. ده ته "الشیطان" هم وئیلې شی. په حقیقت کښې شیطان او ابلیس هم لکه په نوم یو طاقت او قوت نه دې بلکه دا هم د انسان پشان یو جوسه داره هستی ده - دا رنګې څوک دې په دې غلط فهمئ کښې نه پریوزی چه شیطان د فرښتو نه وو. ځکه چه اګورې نو قرآن په خپله دا بیان صفا کړې دې چه شیطان د پیریانو نه وو، چه د فرښتو نه ځان له یو مستقل قسم مخلوق دې.

هٰذِهِ الشَّجَرَةَ فَتَكُونَا مِنَ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۳۵﴾ فَاَزَلَّهُمَا الشَّيْطٰنُ

خو دې ونې ته مه ورځئ، کنې نو په ظالمانو کښې به شمار شئ[۴۹]." آخر دا چه شيطان هغوئ دواړه

[۴۷] د دې الفاظو نه دا معلوميږي چه غالبًا ابليس د سجدې نه په انکار کولو کښې يواځې نه وُو، بلکه د پيريانو يوه ډله نافرمانئ ته تياره شوې وه او د ابليس نوم صرف د دې وجې نه اخستې شوې دے چه هغه د هغوئ سردار وُو او په بغاوت کښې د ټولو نه مخکښې وُو. ليکن د دې آيت دوئيمه ترجمه دا هم کيدې شي چه "هغه د کافرانو نه وُو". مطلب دا دے چه د پيريانو يوه نافرمانه او سرکشه ډله د اول نه موجوده وه او د ابليس تعلق د دغې ډلې سره وُو. په قرآن کښې عام طور د "شياطين" لفظ د دې پيريانو او د هغوئ د بچو د پاره استعمال شوې دے، او په کوم ځائے کښې چه د شياطين نه د شيطان انسان مراد اخستلو څه اشاره نه وي، هلته تر شياطين جن مراد وي.

[۴۸] د دې نه دا معلوميږي چه په زمکه باندې د خليفه جوړيدو نه مخکښې دا دواړه د دې آزمينت د پاره په جنت کښې ږدے ل چه د طبيعتو نو پته ئے ولږي. د دې آزمينت د پاره يوه ونه خوښه کړے شوه او حکم وُشو چه د دې ونې خواله مه ورځئ، او د دې انجام ورته هم وښودلے شو چه که چرے دا سے مو وکړل نو بيا به زمونږ په نظر کښې ظالمان يئ. د دې بحث کولو ته ضرورت نشته چه کومه ونه وه او په هغې کښې کومه خاص خبره وه چه د هغې په وجه دوئ د دغې ونې نه منع کړے شول. د منع کولو دا وجه نه وه چه د ونې په خاصيت کښې څه خرابي وه او د هغې په وجه آدم او حوّا ته د نقصان رسيدلو خطره وه. اصل غرض د دې خبرے آزمينت وُو، چه دوئ د شيطان د لمسون په مقابله کښې د کومه حده پورے د الله حکم مني. د دې مقصد د پاره د يو څيز منتخب کول کافي وُو. د دې وجه نه الله پاک د ونې نوم او د هغې د خاصيت څه ذکر وُ نه کړو.

د دې امتحان د پاره جنت د ټولو نه ډيات موزون وُو. په اصل کښې د امتحان د پاره د جنت د مقرر ولو مقصد دا وُو چه د انسان په ذهن کښې دا حقيقت کينوی چه ستاسو د وسيدو د پاره مناسب ځائے جنت دے. ليکن که چرے د شيطان د لمسون په مقابله کښې تاسو د الله د نافرمانئ لار اختيار کړله، نو لکه څنګه چه په اول کښې د جنت نه محروم کړے شوئ دغه شان به په آخر کښې هم محروم پاتے شئ. "تاسو دا خپل مناسب او لائق ځائے صرف په دې طريقه دوباره حاصلولے شئ چه د خپل هغه دشمن کاميابه مقابله وُکړئ چه هغه د فرمان بردارئ د لارے نه ستاسو د لرے کولو کوشش کوي.

[۴۹] د ظالم لفظ لويه معنی لري. "ظلم" په اصل کښې د چا حق خوړلو ته وائي. ظالم هغه دے چه د چا حق خوري. څوک چه د خدائے فرمان نه مني، هغه په اصل کښې دريو لوئے بنيادي حقونه ضائع کوي. اوّل د خدائے حق، ځکه چه هغه د دې حقدار دے چه د هغه حکم دِ وُمنلے شي. دوئيم د هغې ټولو څيزو نو حقونه، کوم چه د الله په نافرمانئ

عَنْهَا فَأَخْرَجَهُمَا مِمَّا كَانَا فِيهِ ۖ وَقُلْنَا اهْبِطُوا بَعْضُكُمْ لِبَعْضٍ عَدُوٌّ ۖ وَلَكُمْ فِي الْأَرْضِ مُسْتَقَرٌّ وَمَتَاعٌ إِلَىٰ حِينٍ ﴿٣٦﴾ فَتَلَقَّىٰ آدَمُ مِن رَّبِّهِ كَلِمَاتٍ فَتَابَ عَلَيْهِ ۚ إِنَّهُ هُوَ التَّوَّابُ

دغه دوئ نه ولسول او زمونږ د حکم منلو نه ئې واړول او هغوی ئې رابانديٰ د هغې حالت نه راؤښکل په کوم حالت کښې چه وو۔ مونږ ورته حکم ؤکړو چه "اوس تاسو ټول د دے ځائې نه کوز شئ، تاسو د یو بل دشمنان یئ[۵۰] او تاسو به د یو خاص وخته پورے په زمکه کښې یئ او هلته به ژوند تیره وئ"۔ په دغه وخت آدم د خپل رب نه یو څو کلمے زده کړلے او توبه ئې وښکله[۵۱] چه د هغه رب قبوله کړله، ځکه چه هغه ډیر معاف کونکے او رحم کونکے دے۔[۵۲]

کښے دهٔ استعمال کړل۔ د دهٔ د بدن د خپل اندامونو، د خپل طاقتونو، د خپل کورکلی بنیاد مانو، د هغې فرښتو چه د دهٔ د ارادے پوره کولو انتظام کوی، او د هغې ټولو څیزونو چه په دے کار کښے استعمالیږی، د دے ټولو په دهٔ باندې دا حق ؤو چه دے صرف د هغوی د مالک د مرضئ مطابق په هغوی باندې خپل اختیارات استعمال کړي۔ خو کله چه دهٔ د مالک د مرضئ نه خلاف په هغوی باندې خپل اختیارات استعمال کړل، نو په حقیقت کښې دهٔ په هغوی باندې ظلم ؤکړو۔ دریم په خپله خپل حق د دهٔ د خپل ځان په دهٔ باندې دا حق دے چه دا خپل ځان د تباهئ نه بچ کړي، خو کله چه دے نافرمانی ؤکړي او خپل ځان د الله تعالیٰ د سزا مستحق کړي نو په اصل کښې دے په خپل ځان ظلم کوی۔ د دے وجے نه په قرآن کښے ځائې په ځائې د گناه دپاره ظلم او د گنهگار دپاره د ظالم ټکی استعمال شوی دی۔

[۵۰] یعنی د انسان دشمن شیطان او د شیطان دشمن انسان۔ د شیطان خو د انسان سره دشمنی ښکاره ده چه هغه ئې د الله د لارے نه را اړوی او تباهئ طرفته ئې بوځی۔ باقی شوه دا چه انسان د شیطان څنګه دشمن شو، نو په واقعه کښې خو ټول انسانیت دا غواړی چه د شیطان سره دشمنی ؤکړے شی، خو شیطان چه د انسان د خواهشاتو دپاره کومے د مزه مزے خبرے مخے ته راولی، انسان په هغې دوکه شی او شیطان خپل دوست ؤګڼړی۔ د دے قسمه دوستئ دا مطلب نهٔ دے چه په حقیقت کښے دشمنی په دوستئ کښے بدله شوه، بلکه د دے مطلب دا دے چه یو دشمن د بل دشمن نه شکست ؤخوړو او د هغه د دوکے په جال کښے ؤنښتو۔

[۵۱] یعنی آدم ته چه کله خپل قصور معلوم شو، او بیائے د الله فرمان منل ؤغوښتل، او په زړهٔ کښے ئې دا خواهش راپیدا شو چه د خپل رب نه د خپلے خطا معافی اوغواړی، نو هغه له هغه الفاظ نهٔ ورتلل چه د الله نه په خپلے خطا بخښنے دپاره دعا ؤغواړی۔ الله پرے رحم ؤکړو او هغه الفاظ ئې ورته ؤښودل۔

[۵۲] د توبے اصلی معنیٰ واپس کیدل دی۔ د بنده د طرفنه د توبے معنیٰ دا ده چه هغه د سرکشئ نه واپس شو او بندګئ طرفته راغے۔ او د خدائے د طرفنه د توبے معنیٰ دا ده چه الله په خپل هغې بنده رحم ؤکړو او په هغه ئې بیا د مهربانئ نظر ؤکړو، شو کچه په خپل کړی کار باندې شرمنده دے۔

الرَّحِيمُ ﴿٣٧﴾ قُلْنَا اهْبِطُوا مِنْهَا جَمِيعًا ۖ فَإِمَّا يَأْتِيَنَّكُم مِّنِّي هُدًى فَمَن تَبِعَ هُدَايَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٣٨﴾

موږ ورته اُوویل چه "تاسو ټول د دے ځائے نه کوز شئ. بیا چه زما د طرفنه څه هدایت تاسو ته درشي، نو کوم خلق چه زما په دغے هدایت پسے روان شي، د هغوی دپاره به د یرے او د غمژن کیدو هیڅ موقع نه راځي،

۵۲ قرآن په خیال تریو غلط خیال وائي چه د گناه سزا به انسان ته ضرور رسیږی - انسان د خپله ځانه په لاره کوئي دیرے نظریئے جوړے کړیدی، دا هم یوه بے لاره کوئي نظریه ده، ځکه چه سړے یو ځلے د گناه په ژوند کښے اخته شي، نو دا نظریه هغه د همیشه دپاره نا اُمیده کوی، هغه که څهٔ د خپلے غلطئ نه روستو ځان تیک کول غواړی، نو دا نظریه ورته په زړهٔ کښے دا خبره راولی چه ستا د ټیک کیدو هیڅ اُمید نشته، تا چه څهٔ کړیدی د هغے سزا به ضرور تا ته رسیږی. قرآن د دے نه برعکس دا وائي چه د نیکئ بدله ورکول او د بدئ سزا ورکول بالکل د الله په اختیار کښے دی. تا ته چه د نیکئ کومه بدله ملاویږی هغه ستا د نیکئ خپله نتیجه نه ده، بلکه د الله فضل دے - د هغه خپله خوښه ده چه په چا فضل کوی او په چا نه کوی. دغه شان تا ته چه د کومے بدئ سزا ملاویږی هغه هم ستا د بدئ خپله نتیجه نه ده چه ضرور به ملاویږی، بلکه الله پوره اختیار لری، د هغهٔ خوښه ده که تا معافی کوی او که سزا درکوی. البته دومره خبره ده چه د الله فضل او رحمت د حکمت نه خالی نه وی. هغه حکیم دے، په ړند وخپل اختیارات نهٔ استعمالوی. کله چه د یوے نیکئ بدله ورکوی نو دا گوری چه بنده په ښهٔ نیت د الله د رضا دپاره نیکی کړی وه، او که نه - او کله چه د یوے نیکئ بدله نهٔ ورکوی نو د هغے وجه دا وی چه په ظاهره خونیکی ښکاریده خو دننه پکښے د الله د رضا خالص جذبه نهٔ وه. دغه شان هغه سزا په هغه قصور ورکوی چه د نافرمانئ او د خود سرئ په نیت وُشي او د هغے نه روستو د شرمنده کیدو په ځائے د نور جُرم کولو خواهش لری - او په خپله مهربانئ سره هغه قصور معاف کوی چه د هغے نه روستو بنده په خپلو کړو شرمنده وی او آینده دپاره خپلے اصلاح ته تیار وی. د لوئ نه لوئ مجرم او د غټ نه غټ کافر دپاره د خدائے په دربار کښے مایوسه کیدل او نا امیده کیدل نشته، خو شرط پکښے دا دے چه هغه خپله غلطی وُمنی، په خپله نافرمانئ شرمنده شی او د سرکشئ لاره پریږدی او د اطاعت په لار روان شي -

۵۳ د دے فقرے دوباره وئیلو ډیره معنی لری - په بره فقره کښے دا وئیلی شویدی چه آدم توبه وُښکله او خدائے قبوله کړه. د دے دا معنی شوه چه آدم د خپلے نافرمانئ په وجه د عذاب مستحق پاتے نهٔ شو. د گناه کوم داغ چه ئے په لمن لگیدلے وُو هغه اُوینځلے شو. دا داغ نهٔ د هغه په لمن پاتے شو او نهٔ د هغه د نسل په لمن او نهٔ د دے ضرورت پیښ شو چه معاذ الله، د نسل انسانی د کفارے ادا کولو دپاره خدائے خپل ځوئے په سولئ او ځیړوی. د دے نه برعکس الله تعالیٰ د آدم علیه السلام یوازے توبه قبوله نهٔ کړله بلکه د توبے قبلولو نه روستو ئے ورله نبوت هم ورکړو چه خپل نسل ته سیده لار وُښائي. او س چه د جنت نه د تلو حکم

وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۳۹﴾ ع

او څوک چه دَ هغې دَ تبلولو نه انکار وُکړي او زمونږ ه اياتو نه[۵] دروغژن وُګڼي، هغوئ وُور ته تلونکے خلق دے، هلته به هميشه وُوسي.[۵] ع

بيا دوباره وُشونو دَ دے دا مقصد دے چه دَ توبے قبلولو دا مطلب نۀ وُو چه آدم و په جنت کښې پاتے شي او زمکے ته دِ راکو زنشي. زمکه دَ هغوئ دپاره دَ عذاب ځائے نۀ وُو، هغه دلته دَ سزا په طور نۀ وُو راکوزکړے شوے بلکه هغه خو م دَ زمکے دَ خلافت دپاره پيدا کړے شوے وُو. جنت دَ هغوئ دَ پاره اصلي دَ قيام ځائے نۀ وُو. دَ جنت نه دَ راتلو حکم دَ هغوئ دپاره دَ سزا حيثيت نۀ لرلو. اصل تجويز خو دَ هغوئ زمکے ته دَ راکوزيدو وُو. البته دَ راکوزيدو نه مخکښې هغوئ دَ امتحان په غرض په جنت کښې پاتے شوي وُو. دَ دغه امتحان ذکر مخکښې په حاشيه نمبر ۴۸ کښې شوے دے.

[۲] ايات جمع دَ آيت ده. دَ آيت اصلي معنىٰ هغه نښه يا علامه ده چه دَ يو څيز طرفته اشاره کوي. په قرآن کښې دَ دے لفظ څلور مختلفے معنے راغلي دي. يو ځائے کښې تر صرف علامه يا نښه مراد ده. بل ځائے کښې دَ کائنات تو څيزونو ته دَ الله ايات وئيلي شويدي. ځکه چه دَ قدرت هر څيز هغه حقيقت ته اشاره کوي کوم چه دَ دے ظاهري پرده نه شا ته پټ دے. بل ځائے کښې دَ انبياؤ عليهم السلام و معجزو ته ايات وئيلي شوي دي، ځکه چه دا معجزے په اصل کښې دَ دے خبرے علامه وه چه پيغمبران دَ کائنات دَ بادشاه نمائندګان دي. بل ځائے کښې دَ کتاب الله فقرو ته ايات وئيلي شوي دي، ځکه چه دَ قرآن آيتونه څنګه چه حق او صداقت ښکاره کوي، دغه شان دَ دے دَ الفاظو او انداز بيان او طرزِ عبارت نه کدے دَ قدرمن مصنف دَ هستئ نښے صفا ښکاريږي ــــــ هر ځائے کښې دَ وړاندې روستو عبارت نه دا په آسانه معلوميږي چه دلته دَ لفظ "آيت" کومه معنىٰ ده.

[۵] دا دَ نسل انساني په باره کښې دَ قيامته پورے دَ الله تعالىٰ يو مستقل فرمان دے، او په دريمه رکوع کښې لے مه فرمان ته دَ الله "وعد" وئيلي ده. چمله لارخوښول دَ انسان کار نۀ دے، انسان دَ الله بنده او دَ الله خليفه دے، دَ دے دواړو حيثيتونو په وجه هغه ته دا حکم شوے دے چه هغه به په هغه لارځي کومه چه ورله خپل رب خوښه کړله. او دَ دے لارے دَ معلوميدو صرف دوه طريقے کيدے شي: يا خو چه نيغ په نيغه انسان ته دَ الله تعالىٰ دَ طرفه وحي راشي، يا به بيا په هغه انسان پسے ځي چا ته چه وحي راغلي وي. بله دريمه طريقه دَ رب دَ رضا معلومولو نشته. دَ دے دوو طريقونه علاوه بله هره يوه طريقه غلطه ده، سرا سر بغاوت دے، سزا ئے دَ جهنم نه سوا بل څه نۀ ده.

# يٰبَنِىٓ اِسۡرَآءِيۡلَ اذۡكُرُوۡا نِعۡمَتِىَ الَّتِىۡٓ اَنۡعَمۡتُ عَلَيۡكُمۡ

اے بنی اسرائیلو![۵۶] لږ خیال اوساتئ زما دَ هغې نعمت چه ما تاسو له درکړے وُو،

په قرآن مجید کښے دَ آدم دَ پیدائش او دَ نسلِ انسانی دَ ابتدا دا قصه په اُوُو ځایونو کښے راغلی ده په هغې کښے اول ځائے دا دے او باقی ځایونه لاندې دی: الاعراف، رکوع ۲. الحِجر، رکوع ۳. بنی اسرائیل، رکوع ۷. الکهف، رکوع ۷. طٰهٰ، رکوع ۷. صٓ، رکوع ۵. دَ بائیبل دَ کتابِ پیدائش په اول، دویم، دریم بابونو کښے هم دا قصه بیان شوی ده، خو که دَ دواړو کتابونو مقابله اُوکړے شی نو هر پوهه انسان دا معلومه ولے شی چه په دواړو کتابونو کښے څه فرق دے.

(باقی حاشیه اوکورئ په صفحه ۲۲۶ کښے)

[۵۶] دَ اسرائیل معنیٰ ده دَ الله بنده. اسرائیل دَ حضرت یعقوب لقب وُو چه ورته دَ الله تعالیٰ دَ طرفنه ملاؤ شوے وُو. هغه دَ حضرت اسحٰق ځوئے او دَ حضرت ابراهیم نوسے وُو. دَ دوی نسل ته بنی اسرائیل وائی. په تیرو شوو څلورو رکوعگانو کښے تمهیدی تقریر وُو چه عامو انسانانو ته وُو. اوس دَ دے ځائے نه دَ څوارلسمے رکوع پورے مسلسل یو تقریر بنی اسرائیلو ته شوی دے په دے تقریر کښے ځائے په ځائے عیسایانو ته او دَ عربو مشرکانو ته هم خبری شوی دی او دَ موقع مطابق هغه خلقو ته هم خطاب شوی دے چه دَ حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په دعوت ئے ایمان راوړے وُو. دَ دے تقریر دَ ویناپه دوران کښے لاندینئ خبرے خاص طور په خیال کښے ساتل پکار دی.

اول دَ دے تقریر منشا دا ده چه دَ مخکښی پیغمبرانو په اُمت کښے کوم لږ ډیر نیکان خلق پاتی شوی دی هغوئ ته دِ په هغے صداقت باندِ ایمان راوړلو او په هغے کار کښے دَ شریک کېدلو دعوت ورکړے شی کوم چه محمد صلی الله علیه وسلم کولو. دَ دے وجے نه هغوئ ته دا وئیلے کیږی چه دے قرآن او دے نبی هغه پیغام او هغه کار راوړے دے کوم چه دَ دے نه مخکښے ستاسو پیغمبرانو او صحیفو راوړے وُو. اول دا کار تاسو ته حواله شوے وُو چه تاسو په خپله هم روان شئ او تولے دُنیا ته خبر وُکړئ او په دے باندِ دَ تولے دُنیا دَ روانولو کوشش وُکړئ. لیکن تاسو دُنیا ته خو لا رښودله، خو په خپله په دغه لار قایم پاتے نه شوئ او بے لارے شوئ. ستاسو تاریخ او ستاسو دَ قوم موجوده اخلاقی او دینی حالت په خپله په تاسو دَ خرابئ گواهی کوی. اوس الله هم دغه کار او خدمت خپل یو بل بنده ته سپارلے دے دا هم ناآشنا کار نه دے ستاسو خپل کار دے. سره دَ پوهے دَ حق مخالفت مه کوئ، دا قبول کړئ. کوم کار چه ستاسو دَ کولو وُو، خو چه تاسو وُ نه کړو، نو اوس چه ئے نور خلق کوی، تاسو دَ هغوئ مددگار شئ.

دویم دَ دے منشا په عامو یهودیانو باندِ غاړه خلاصول او دَ هغوئ دینی او اخلاقی حالت ښکاره کول دی. په هغوئ باندِ دا ثابتول چه دا هغه دین دے چه ستاسو پیغمبرانو راوړے وُو. دَ دین په اُصولو کښے یوه خبره هم داسے نشته، چه په هغے کښے دَ قرآن تعلیم دَ تورات دَ تعلیم نه مختلف وی. په هغوئ باندِ دا

وَاَوْفُوْا بِعَهْدِیْٓ اُوْفِ بِعَهْدِكُمْ ۚ وَاِیَّایَ فَارْهَبُوْنِ ﴿٤٠﴾

زما سره چه ستاسو کومه وعده وه هغه تاسو پوره کړئ، نو زما چه کومه وعده ستاسو سره وه هغه به زهٔ پوره کړم او خاص زما نه تاسو وېرېږئ.

ثابتوي چه تاسو ته د هدایت او د مشرئ کوم منصب درکړے شوے وو تاسو د هغے حق ادا نهٔ کړو او ناکامه شوئ یئ. د دے په ثبوت کښے داسے لوئ واقعے بیان کړے شویدي چه د هغے نه هغوئ مخ نهٔ شو اړولے بیا چه سره د حق پېژندلو هغوئ د حق په مخالفت کښے کوم سازشونه کول، د خلقو په زړونو کښے ئے کوم شکونه پیدا کول سره خبره ئے وړانه کوله او دوکه بازي او مکارئ ئے کوله، او ما کوشش ئے کولو چه په څه طریقه د محمد کار کامیاب نشي، نو دا تول خبرې په ډاګه کړے شوے، د دے نه د دے خبرے پته او لګیده چه د دوئ د مذهب دا ظاهري رنګ هسے دوکه ده، په دوئ کښے د دیانت او د حق پرستئ په ځائے ضد، د له بازي او نفس پرستي پرته ده او په حقیقت کښے دوئ دا نهٔ غواړي چه د نېکئ څه کار د ترقي وکړي. د دے په وجه دا فائده وشوه چه یو خو ټوله په دے توم کښے کوم نیکان خلق وو د هغوئ سترګے وغړیدلے او حقیقت ورته ښکاره شو، او دویم دا چه د مدینے په عوامو باندې او خاص طور د عربو په مشرکانو باندې چه د دے خلقو کوم مذهبي او اخلاقي اثر وو هغه ختم شو، او دریم دا چه هغوئ ته پخپله خپل ځان ښکاره شوا و د دومره ئے ځپلے حوصله او بائیللے چه هغوئ بیا هیڅرے هغه شان په زړه ورتیا سره مقابله ونهٔ کړے شوه لکه څنګه چه هغه سړے په بهادرئ مقابله کوي چه د هغه دا یقین وي چه زهٔ په حقه یم.

دریم، هلته په څلورو رکوعګانو کښے چه انسان ته د دعوت په بارۀ کښے څه وئیلي شوي وو، هم په دے سلسله کښے د یو خاص قوم یو خاص مثال بیا نیږي چه کوم قوم د خدائے د رالیږلي شوي هدایت نه مخ واړوي نو د هغے قوم څه انجام وي. په ټولو قومونو کښے د بني اسرائیلو د مثال بیانولو وجه داده چه په دُنیا کښے صرف بني اسرائیل یو داسے قوم دے چه د څلورو زرو کالو راسے د ټولے دُنیا د قومونو د پاره د عبرت نمونه ده. د خدائے په لاره باندې د تللو او د نهٔ تللو هغه ټولے سختئ او مصیبتونه د دے قوم په عبرتناک تاریخ کښے ښکاریږي.

څلورم د دے تقریر مقصد دا دے چه د محمد صلی الله علیه وسلم اُمتیانو ته دا سبق ورکړي چه د مخکنو پیغمبرانو د اُمتیانو په شان د تنزل په کنده کښے چرته پرېنوځي. د یهودیانو اخلاقي کمزورئ، مذهبي غلطیانے او د هغوئ د عقیدو او عملونو یوه یوه خرابي ئے ورته په ګوته کړه او د هغے په ځائے ورته حق دین بیان کړو چه مسلمانان خپله نیغه لار اُووینی او د غلطو لارو نه ځان لرے شي. په دے سلسله کښے قرآن چه کوم تنقید په یهودو او نصاراي باندې کوي، د هغے د لوستلو په وخت کښے مسلمانانو له پکار دي چه د نبي صلی الله علیه وسلم هغه حدیث یاد کړي چه په هغے کښے هغوئ فرمائیلي دي چه په آخره کښے به تاسو هم د مخکینو اُمتیانو په طریقه روان شئ تر دے پورے چه که چرے هغوئ د ګیدړ په سوړه کښے ننوتي وي نو تاسو به پکښے هم ننوځئ. صحابو تپوس وکړو اے رسول الله، یهود او نصاراي مطلب دے؟ هغوئ ورفرمائیل چه نور څوک؟ د نبي اکرم دا ارشاد صرف یوه رټنه نهٔ ده بلکه هغه له چه الله کوم بصیرت ورکړے وو د هغے په وجه هغه ته دا معلومه وه چه د پیغمبرانو په اُمتونو کښے وراني په کومو کومو لارو راځي او په کوم کوم شکل کښے ښکاره کیږي.

وَاٰمِنُوْا بِمَآ اَنْزَلْتُ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُمْ وَلَا تَكُوْنُوْٓا اَوَّلَ كَافِرٍۭ بِهٖ ۖ وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰيٰتِيْ ثَمَنًا قَلِيْلًا ۫ وَّاِيَّايَ فَاتَّقُوْنِ ﴿۴۱﴾ وَلَا تَلْبِسُوا الْحَقَّ بِالْبَاطِلِ وَتَكْتُمُوا الْحَقَّ وَاَنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۴۲﴾

او ما چه کوم کتاب رالیږلے دے په هغې ایمان راوړئ. دا د هغې کتاب تصدیق کونکے دے کوم چه تاسو سره د مخکښې نه موجود وو، د ټولو نه اول تاسو د دے نه انکار مه کوئ. په لږ قیمت باندې زما آیتونه مه خرڅوئ[۵۶] او زما د غضب نه ځان وساتئ. حق له د باطل رنګ مه ورکوئ چه شکمن شی او سره د پوهې د حق پټولو کوشش[۵۷] مه کوئ.

۵۶ د لږ قیمت مطلب د دُنیا فائدے دی. دے خلقو به د الله حکمونه او هدایات پریښودل او د دُنیا فائدے به ئے اخستلے. د حق خرڅولو په بدله کښې که انسان د ټولے دُنیا دولت واخلی خو هغه ډیر لږ قیمت دے، ځکه چه حق د دُنیا نه ډیر قیمتی شے دے.

۵۷ په دے آیت باندې د پوهیدلو دپاره دا خبره یاد ساتل پکار دی چه د عربو عام خلق به لیکلو لوستلو نه پوهیدل او د هغوی په مقابله کښې په یهودیانو کښې د تعلیم ډیره چرچا وه او به هغوی کښے داسے لوئی لوئی قدرمن عالمان وو چه شهرت ئے د عربو نه بهرته رسیدلے وو. د دے وجه نه په عربو باندې د یهودیانو ډیر لوئی علمی رُعب پروت وو. بیا د هغوی عالمانو او بزرګانو چه د خپلو مذهبی دربارونو کوم ظاهری شان جوړ کړے وو او د دم تعویذ کوم کارونه شروع کړے وو د هغے په وجه د هغوی رُعب نور هم زیات شوے وو. خاص طور مدینے والا ډیر د هغوی په رُعب کښے وو، ځکه چه هغوی ته نزدے ترده د یهودیانو لوئے لوئے قبیلے آباد وے، شپه او ورځ به د هغوی سره ملاویدل، او د دے میل ملاپ په وجه مدینے والا د هغوی نه داسے متأثره وو لکه څنګه چه جاهل خلق د تعلیم یافته خلقو او د مذهبی خلقو نه متاثره وی. په دے حالاتو کښے چه کله نبی صلی الله علیه وسلم د نبوت دعوه وکړه او خلق ئے اسلام طرفته رابلل شروع کړل، نو قدرتی خبره وه چه دے جاهلو عربیانو به د اهل کتابو یهودیانو نه دا تپوس کولو چه تاسو خو هم په یو پیغمبر پسے ځئ او یو کتاب منئ، تاسو موږ ته دا اُووایئ چه زموږ دے صاحب چه د نبوت دعوه کړیده، د ده په حقله او د ده د تعلیم په حقله ستاسو څه خیال دے. دا سوال به د مکے خلقو هم د یهودیانو نه بار بار کوو، او چه کله نبی صلی الله علیه وسلم مدینے ته تشریف راوړو، نو دلته هم ډیرو خلقو د یهودی عالمانو نه دا تپوس کولو. خو دے عالمانو به څلے هم خلقو ته صحیح لارنه وه ښودلے. هغوی خو دا ویلے نه شو چه کوم توحید محمد صلی الله علیه وسلم پیش کوی هغه غلط دے، یا د پیغمبرانو او آسمانی کتابونو او د فرښتو او د آخرت په باره کښے چه هغوی څه وائی، په

وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ وَارْكَعُوْا مَعَ الرّٰكِعِيْنَ ﴿۴۳﴾ اَتَاْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَتَنْسَوْنَ اَنْفُسَكُمْ وَاَنْتُمْ تَتْلُوْنَ الْكِتٰبَ ۭ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿۴۴﴾ وَاسْتَعِيْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ ۭ وَ

مونځ قایم کړئ، زکوٰة ورکړئ، او[۵۹] کوم خلق چه ما ته ښکته کیږی تاسو هم د هغوئ سره ښکته شئ. تاسو نورو خلقو ته خو د نیکئ لاربنایئ خو ځپله خپل ځان هیروئ؟ حالانکه تاسو د کتاب تلاوت کوئ. آیا تاسو د عقل نه هډو کار نه اخلئ؟ د صبر او د مونځ په ذریعه امداد[۶۰] حاصل کړئ.

دے کښے څه غلطی ده، یا چه هغه کوم اخلاقی اصول خلقو ته بنائی په هغے کښے څه شیز غلط دے. لیکن هغوئ هغے حقیقت منلو ته هم تیار نه وُو کوم چه محمد صلی الله علیه وسلم پیش کوو. هغوئ د حقیقت نه صفا انکار هم نشو کولے او نه ئے د زړه د اخلاصه منلو ته تیار وُو. هغوئ د دواړو په مینځ مینځ کښے دا طریقه اختیار کړی وه چه د هر سړی په زړه کښے به ئے د نبی صلی الله علیه وسلم خلاف، د هغه د ډلے خلاف، او د هغه د کار خلاف څه نه څه شک اچولو، څه الزام به ئے په هغه باندے لګولو، څه داسے خبره به ئے مشهوره کوله چه خلق به په شک کښے پریوتو، او داسے قسما قسم سوالونه به ئے چیړل چه خلق ځپله هم شکمن شی او نبی صلی الله علیه وسلم او د هغه پیروکاران هم په شک کښے واچوی. دا د هغوئ کار وُو او په دے وجه ورته داویلے کیږی چه په حق باندے د باطل پرده مه اچوئ، د خپلو دروغو پروپیګنډو او د شرنه ډک شبهو او اعتراضونو په ذریعه د حق د ختمولو او د حق د پټولو کوشش مه کوئ، حق او باطل مه یو ځائے کوئ او خلقو له دوکه مه ورکوئ.

[۵۹] مونځ او زکوٰة په هره زمانه کښے د دین اسلام د ټولو نه اهم ارکان پاتے شوی دی. د بنی اسرائیلو پیغمبرانو هم د نورو پیغمبرانو په شان د دے سخت تاکید کړے وُو. خو یهودیانو د دے پرواه نه وه ساتلے. د اجتماعی د مونځ نظام په هغوئ کښے تقریباً ختم شوے وُو. د قوم ډیرو خلقو ځان له مونځ هم پریښودلے وُو. او د زکوٰة ورکولو په ځائے دے خلقو سود اغستل شروع کړی وُو.

[۶۰] یعنی د نیکئ په لار کښے چه تاسو ته تللی مشکل وی نو د مے مشکل علاج صبر او مونځ دے. د مے دواړو په ذریعه به تاسو ته هغه طاقت ملاؤ شی چه د هغے په وجه به دا لار آسانه شی.

په لغت کښے د صبر معنیٰ منع کول او تړل دی، او د دے نه مراد داسے مضبوطه او پخه اراده، او په نفسانی خواهشاتو باندے داسے قابو ساتل دی چه سړے د خپل نفس د لمسون او د بهرنی مشکلاتو په مقابله کښے د خپل زړه په خوښه کړے شوی لار باندے مسلسل او برابر روان پاتے شی. د ارشادِ الٰهی مدعا داده چه دا اخلاقی صفت ځان کښے پیدا کړئ او دا صفت به ځان کښے د مضبوطولو دپاره د مونځ پابندی کوئ.

إِنَّهَا لَكَبِيرَةٌ إِلَّا عَلَى الْخَٰشِعِينَ ﴿٤٥﴾ الَّذِينَ يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَٰقُوا رَبِّهِمْ وَأَنَّهُمْ إِلَيْهِ رَٰجِعُونَ ﴿٤٦﴾ ع يَٰبَنِىٓ إِسْرَٰٓءِيلَ اذْكُرُوا نِعْمَتِىَ الَّتِىٓ أَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ وَأَنِّى فَضَّلْتُكُمْ عَلَى الْعَٰلَمِينَ ﴿٤٧﴾ وَاتَّقُوا يَوْمًا لَّا تَجْزِى نَفْسٌ عَن نَّفْسٍ شَيْـًٔا وَلَا يُقْبَلُ مِنْهَا شَفَٰعَةٌ وَلَا يُؤْخَذُ مِنْهَا عَدْلٌ وَلَا هُمْ يُنصَرُونَ ﴿٤٨﴾

بیشکه مونځ یو ډیر ګران کار دے، خو دَ هغو فرمانبردارو بندګانو دپاره مشکل نهٔ دے چه دا ئې خیال وی چه آخر به دَ خپل رب سره ملاویږی او دَ هغهٔ طرفته به وایس ځي [61] ع

اے بني اسرائیلو! یاد کړئ زما هغه نعمت، چه ما په تاسو کړے وُو او دا خبره چه ما تاسو تهٔ دَ تولے دُنیا په قومونو باندِ فضیلت درکړے وُو [62]۔ او وَیریږئ دَ هغے ورځے نه چه څوک به دَ چا په کار نهٔ راځي، نهٔ به دَ چا دَ طرفته سفارش قبلیږی او نهٔ به څوک په فدیه ورکولو پرېښودلے کیږی، او نهٔ به مجرمانو ته دَ بوچ لُئے نه مدد ملاویږی [63]۔

[61] یعنې کوم سړے چه دَ خدائے حکم منونکے نهٔ وی او په آخرت عقیده نهٔ لری، دَ هغه دپاره دَ مونځ پابندی یو لوئے مصیبت دے. او چا چه په خپله رضا او خوښه دَ خدائے حکم ته غاړه کیښودلی وی او دَ مرګ نه روستو دَ خدائے سره دَ ملاقات یقین ئې هم وی نو دَ هغهٔ دپاره مونځ کول مشکل نهٔ وی بلکه مونځ پرېښودل مشکل وی۔

[62] دا دَ بني اسرائیلو هغه دور ته اشاره ده کله چه هغوئ دَ تولے دُنیا په قومونو کښے یو داسے قوم ؤ چه الله تعالیٰ ورله دَ حق علم ورکړے وُو او دَ تولے دُنیا دپاره ئې امام او پیشوا جوړ کړے وُو، دپاره دَ دے چه ټول قومونه دَ الله لارے ته را وَ بولي او دَ الله په لاره ئې روان کړي۔

[63] دَ بني اسرائیلو دَ خرابئیا یوه لویه وجه دا وه چه دَ آخرت په حقله دَ هغوئ عقیده خرابه شوی وه. هغوی په دے طمع ژوند تیرولو چه مونږ دَ پیغمبرانو اولاد یو، دَ لویو لویو اولیاؤ، صالحانو او دَ بزرګانو سره مو تعلق دے، مونږ به دَ دے بزرګانو په وجه بښلے کیږو، دَ دے بزرګانو له چه څوک ځیني هغه سزا نشي خوړلے. دے غلطو بروسو هغوی دَ دین نه بے پروا کړی وُو. او په ګناهونو کښے ئې اخته کړي وُو. دَ دے وجے نه دَ نعمت وریادولو سره سم ئې خپله غلطی ئې ورته په ګوته کړله۔

وَاِذْ نَجَّيْنٰكُمْ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ يَسُوْمُوْنَكُمْ سُوْٓءَ الْعَذَابِ يُذَبِّحُوْنَ اَبْنَآءَكُمْ وَيَسْتَحْيُوْنَ نِسَآءَكُمْ ؕ وَفِىْ ذٰلِكُمْ بَلَآءٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ عَظِيْمٌ ﴿۴۹﴾ وَاِذْ فَرَقْنَا بِكُمُ الْبَحْرَ فَاَنْجَيْنٰكُمْ وَاَغْرَقْنَآ اٰلَ فِرْعَوْنَ وَاَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ ﴿۵۰﴾ وَاِذْ وٰعَدْنَا مُوْسٰٓى اَرْبَعِيْنَ لَيْلَةً ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ مِنْۢ بَعْدِهٖ وَاَنْتُمْ ظٰلِمُوْنَ ﴿۵۱﴾ ثُمَّ عَفَوْنَا

یاد کړئ هغه[64] وخت، کله چه مونږه تاسو د فرعونیانو[65] د غلامئ نه آزاد کړئ ــــــ هغوئ تاسو په سخت عذاب کښے نیولی وئ، ستاسو هلکان به ئے وژل او ستاسو جینکئ به ئے ژوندئ پریښودلے او په دے حالت کښے ستاسو د رب د طرفنه په تاسو لوئ آزمیښت[66] وو۔

یاد کړئ هغه وخت، کله چه مونږه سمندر وشلوؤ او ستاسو دپاره مو لار جوړه کړله بیا مو هغے نه تاسو په خیریت سره پورے باسلئ، بیا مو دغلته ستاسو د وړاندې فرعونیان غرق کړل۔

یاد کړئ، کله چه مونږه موسیٰ د څلویښتو شپو ورځو[67] په وعده راوغوښتلو، نو د هغه نه روستو تاسو د غواۍ بچی نه ځان له خدائے[68] جوړ کړو۔ دغه وخت تاسو ډیر زیاتے کړے وُ خو بیا مونږ

[64] د دے نه روستو د ډیرو رکوعګانو پورے چه کوم واقعاتو ته مسلسل اشارے شویدی هغه ټولے د بنی اسرائیلو د تاریخ داسے مشهورے واقعے دی چه د هغے قوم بچی بچی ته معلومے وے. د دے وجے نه د تفصیل بیانولو په ځائے یوے یوے واقعے ته مختصره اشاره شویده. په اصل کښے د دے تاریخ بیانولو مقصد دا دے چه یو طرفته په تاسو باندے د الله تعالیٰ دا احسانات دی او بل طرفته د دے احسانا تو په جواب کښے ستاسو دا غلط کاروونه دی -

[65] د "اٰلِ فرعون" ترجمه مونږ فرعونیان کړیده . په دے کښے د فرعونیانو خاندان او د مصر حکمران طبقه دواړه شامل دی -

[66] آزمیښت د دے خبرے چه په دے سختو کښے تاسو څه مسلمانان پاتے کیږئ او که نه؟ او آزمیښت د دے خبرے چه د دے دومره لوئے مصیبت نه خلاص شوئ نو د الله شکر ګذاره بندګان جوړیږئ او که نه؟

[67] کله چه بنی اسرائیل د مصر نه د وتلو او سینا ته ورسیدل نو الله تعالیٰ حضرت

عَنْكُمْ مِّنْ بَعْدِ ذٰلِكَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۵۲﴾ وَاِذْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ وَالْفُرْقَانَ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ﴿۵۳﴾ وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ يٰقَوْمِ اِنَّكُمْ ظَلَمْتُمْ اَنْفُسَكُمْ بِاتِّخَاذِكُمُ الْعِجْلَ فَتُوْبُوْٓا اِلٰى بَارِئِكُمْ فَاقْتُلُوْٓا اَنْفُسَكُمْ ؕ ذٰلِكُمْ خَيْرٌ لَّكُمْ عِنْدَ بَارِئِكُمْ ؕ فَتَابَ عَلَيْكُمْ ؕ اِنَّهٗ هُوَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ﴿۵۴﴾

تاسو معاف کړئ شايد چه اوس شکر وباسئ۔

ياد کړئ چه (تېک په دغه وخت کله چه تاسو دا ظلم کولو) مونږه موسیٰ له کتاب او فرقان [۶۹] ددے دپاره ورکړو چه تاسو دے په ذريعه نيغه لاربيا مومئ۔

ياد کړئ کله چه موسیٰ (ددے نعمت سره واپس شو، نو هغه) خپل قوم ته اُووئيل چه "اے خلقو، تاسو د غواڅې د عبادت په وجه پخپل ځان سخت ظلم کړے دے، نو خپل خالق ته توبه وباسئ او خپل ځانونه مړه کړئ، په دے کښے ستاسو د خالق په نز ستاسو بهتري ده" هغه وخت ستاسو خالق ستاسو توبه قبوله کړله ځکه چه هغه ډير معاف کونکے او ډير رحم کونکے دے۔

---

موسیٰ د څلوېښتو شپو ورځو دپاره کوهِ طور ته ددے دپاره راوغوختلو چه هلته ورله د نوی آزاد شوی قوم دپاره د شريعت قانون او د ژوند تيرولو هدايات ورکړي۔

[۶۸] د بني اسرائيل کاونډی قومونو د غوا او د غويئ عبادت کولو. په مصر او کنعان کښے ددے عام رواج وُو. د حضرت يوسفؑ نه روستو په بني اسرائيلو تنزل شروع شو او رو رو د قبطيانو غلامان شو. قبطيانو به د هوا عبادت کولو نو د بني اسرائيلو په زړونو کښے هم د غوا قدر او عزت پيدا شو. (د سخي د عبادت واقعه د بائيبل په کتاب خروج، باب ۳۲ کښے هم په تفصيل سره ذکر شويده)۔

[۶۹] فُرقان: هغه څيز چه د هغے په ذريعه د حق او د باطل فرق راښکاره شي. په اُردو ژبه کښے ورته "کسوٹی" وائي، (او دا لفظ په پښتو کښے هم مشهور دے). دلته د فرقان مطلب هغه علم او پوهه ده چه د هغے په ذريعه سړے په حق او په باطل کښے تميز کولے شي۔

[۷۰] يعنې خپل هغه خلق قتل کړئ چا چه سخي ته خدائے وئيلے وُو او د هغه عبادت ئے کړلو۔

وَاِذۡ قُلۡتُمۡ یٰمُوۡسٰی لَنۡ نُّؤۡمِنَ لَکَ حَتّٰی نَرَی اللّٰہَ جَہۡرَۃً فَاَخَذَتۡکُمُ الصّٰعِقَۃُ وَاَنۡتُمۡ تَنۡظُرُوۡنَ ﴿۵۵﴾ ثُمَّ بَعَثۡنٰکُمۡ مِّنۡۢ بَعۡدِ مَوۡتِکُمۡ لَعَلَّکُمۡ تَشۡکُرُوۡنَ ﴿۵۶﴾ وَظَلَّلۡنَا عَلَیۡکُمُ الۡغَمَامَ وَاَنۡزَلۡنَا عَلَیۡکُمُ الۡمَنَّ وَالسَّلۡوٰی ؕ کُلُوۡا مِنۡ طَیِّبٰتِ مَا رَزَقۡنٰکُمۡ ؕ وَمَا ظَلَمُوۡنَا

یاد کړئ کله چه تاسو موسیٰ ته ویلی وُو چه مونږه ستا په وینا هرګز یقین نه کوُو ترڅو چه مونږه په خپلو سترګو خدائے (ستا سره په خبرو کولو) ښکاره وُنه وینو. په دغه وخت کښې تاسو کتل چه یو زبردستے چغه تاسو راګیر کړئ. تاسو مړه پراته وئ، خو مونږ بیا تاسو ژوندی راوُچت کړئ، ښکار دی چه د دے احسان نه روستو تاسو شکر ګذاره شئ.[۷۱] مونږ په تاسو باندے د وریځو سورے وُکړو[۷۲]، د مَن و سلویٰ خوراک مو درته راوُلیږلو او تاسو ته مو وُویل چه مونږه رله کوم پاک څیزونه درکړی دی، هغه خورئ (خو ستا نیکانو قسم چه

[۷۱] دا اشاره چه کومے واقعے ته ده د هغے تفصیل دادے چه کله حضرت موسیٰؑ د څلویښت شپو ورځو په وعده طور ته تشریف ورے وُو نو هغه ته دا حکم شوے وُو چه د ځان سره د بنی اسرائیلو د یا کسان نمائنده ګان هم راوله. بیا چه کله الله تعالیٰ موسیٰ علیه السلام ته کتاب او فُرقان ورکړو، نو هغه دغه کتاب د بنی اسرائیلو نمائنده ګانو ته وړاندے کړو. په دے موقع باندے قرآن وائی چه په بنی اسرائیلو کښې څه شریرانو خلقو دا وُوئیل چه مونږ صرف ستا په وینا باندے دا څنګه اُومنو چه خدائے ستا سره خبرے کړے دی. په دے باندے د الله تعالیٰ غضب نازل شو او هغوی ته ئے سزا ورکړه.

لیکن بائیبل وائی چه:

"هغوی د اسرائیلو خدائے وُلیدو. د هغه د خپو لاندے د نیلم کانړی د یو شان وه چه د آسمان په شان صفا وه. او هغه د بنی اسرائیلو شریفانو ته هیڅ وُنه وُئیل. دغه شان هغوی خدائے وُلیدو او خوراک څکاک ئے وُکړو" (خروج، باب ۲۴- آیت ۱۰-۱۱)

خو عجیبه دا ده چه هم په دے کتاب کښې مخکښې بیکی چه کله حضرت موسیٰؑ خدائے ته عرض وُکړو چه ما ته خپل شان وُښایه، نو خدائے ورته وُفرمائیل چه ته ما نشی لیدلے (اُوګوره خروج باب ۳۳- آیت ۱۸-۲۳).

[۷۲] یعنی د سینا په صحرا کښې، چه هلته د نمر نه د بچ کیدو دپاره څه ځائے نه وُو، مونږ د وریځې په ذریعه ستاسو بچ کیدو انتظام وُکړو. یاد ساتئ چه په دے موقع باندے بنی اسرائیل د لکونو په تعداد کښې د مصر نه راوتلی وُو، او د سینا په علاقه کښې کورونه خو پریږده، د هغوی سره د سر پټولو دپاره خیمے هم نه وے. په دغه زمانه کښې که چرے خدائے پاک په آسمان باندے د څه مودے پورے

وَلٰكِنْ كَانُوْٓا اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴿٥٧﴾ وَاِذْ قُلْنَا ادْخُلُوْا هٰذِهِ الْقَرْيَةَ فَكُلُوْا مِنْهَا حَيْثُ شِئْتُمْ رَغَدًا وَّادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَّقُوْلُوْا حِطَّةٌ نَّغْفِرْ لَكُمْ خَطٰيٰكُمْ ۭ وَسَنَزِيْدُ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٥٨﴾

څه وُکړل) هغه په مونږ باندې هغوی ظلم نهٔ وُو، بلکه پخپله په خپل ځان باندې ظلم اوکړو.

بیا را یاد کړئ کله چه مونږ وئیلی وُو چه "دے ښار ته کلی ته داخل شئ، دَ دے پیداوار چه څه رنګ ستاسو خوښه وی هغه رنګ ئے په مزے سره خورئ، خو دَ کلی په دروازه ټیټ ټیټ ننوځئ او حِطَّةٌ حِطَّةٌ وایئ، مونږ به ستاسو خطاګانے معاف کړو، او په نیکانو خلقو به نور فضل و کرم وکړو.

ورځ نهٔ راوستلے نو دا تو مربه دَ نمرهٔ تاؤنه مړشوے وُو.

۷۳ مَنّ او سلوٰی قدرتی خوراکونه وُو چه دے خلقو ته مسلسل دَ څلویښتو کالو پورے ملاویدل. مَنّ دَ دنړیا دَ تخم پشان یو څیز وُو چه دَ پرخے پشان به په زمکه باندې غوړیدلی پریوتلو. او سلوٰی دَ مړزو دَ قسم یوه مرغئ ده. دا مرغئ دَ خدائے په فضل دومره ډیرے وے چه ټول قوم صرف په دے خوراک ژوند تیره وُو او لوږه پرینے ده راغلے، حال دا دے چه نن صبا یو مالدار ملک ته هم ناسا په یو څو لکه مهاجر راشی نو دَ هغوی دَ خوراک انتظام مشکل شی. (دَ مَنّ او سلوٰی دَ تفصیلی بحث دپاره اوګورئ بائیبل، کتاب خروج، باب ۱۶۔ ګنتی، باب ۱۱، آیت ۷۔۹ و ۳۱، ۳۲ ویشوع، باب ۵۔ آیت ۱۲)۔

۷۴ تراوسه پورے دا پته نهٔ ده لګیدلے چه دا کوم کلے دے. دَ کوم واقعا تو چه ذکر کیږی نو په دغه وخت کښے بنی اسرائیل دَ سینا په صحرا کښے وُو. په دے وجه غالب ګمان دا دے چه دا کلے به دَ سینا یو ښار وُو. خو دا هم ممکنه ده چه دَ دے نه مراد شطّیم وی، چه یریحُو ته مخامخ دَ دریائے اُردُن نه غاړه طرفته آباد وُو. په بائیبل کښے ئے لیکلی دی چه بنی اسرائیلو دا ښار دَ حضرت موسیٰؑ دَ ژوند په آخر وخت کښے فتح کړو او هلته ئے ډیر داسے بد بد کارونه وُکړل چه دَ هغے په وجه پرے خدائے وبا را وستله او څلیریشت زره خلق مړهٔ شول. (ګنتی. باب ۲۵، آیت ۱۔۸)۔

۷۵ یعنی حکم دا وُو چه دَ ظالمانو وطن کتونکو پشان په غرور ده ښار ته مهٔ ننوځئ بلکه دَ خدائے نه دَ یریدونکو خلقو پشان په عاجزئ سره ننوځئ لکه چه څنګه حضرت محمد صلی الله علیه وسلم دَ مکے دَ فتح کولو په موقع کښے ته په عاجزئ داخل شو. او دَ حِطَّةٌ دوه مطلبه کیدے شی یو دا چه دَ خدائے نه دَ خپلو ګناهونو معافی غواړئ او وځئ، بل دا چه دَ لوټ مار او دَ قتلِ عام په ځائے باندې دَ دغه کلی خلقو ته معافی وُکړئ او دغه کلی ته ورننوځئ۔



فَبَدَّلَ الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا قَوْلًا غَيْرَ الَّذِيْ قِيْلَ لَهُمْ فَاَنْزَلْنَا عَلَى
الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا رِجْزًا مِّنَ السَّمَآءِ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ﴿٥٩﴾ وَاِذِ اسْتَسْقٰى
مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ فَقُلْنَا اضْرِبْ بِّعَصَاكَ الْحَجَرَ ؕ فَانْفَجَرَتْ مِنْهُ
اثْنَتَا عَشْرَةَ عَيْنًا ؕ قَدْ عَلِمَ كُلُّ اُنَاسٍ مَّشْرَبَهُمْ ؕ كُلُوْا وَاشْرَبُوْا
مِنْ رِّزْقِ اللّٰهِ وَلَا تَعْثَوْا فِى الْاَرْضِ مُفْسِدِيْنَ ﴿٦٠﴾ وَاِذْ
قُلْتُمْ يٰمُوْسٰى لَنْ نَّصْبِرَ عَلٰى طَعَامٍ وَّاحِدٍ فَادْعُ لَنَا رَبَّكَ
يُخْرِجْ لَنَا مِمَّا تُنْبِتُ الْاَرْضُ مِنْ بَقْلِهَا وَقِثَّآئِهَا وَفُوْمِهَا وَ

---

خو کوم خبره چه وئیلے شوی وه، ظالمانو هغه بدله کړه او نوره ئے تر جوړه کړه۔ آخر مونږه په ظالمانو باندې د آسمان نه عذاب نازل کړو. دا د هغوئ د نافرمانئ کولو سزا وه۔

یاد کړئ کله چه موسیٰؑ د خپل قوم د پاره د اوبو دُعا وکړه نو مونږه اُووئیل چه په خپله همسا تلانے کټ اُووهه۔ نو د هغے نه دولس چینے رواںے شوے او هرے قبیلے ته د خپلو خپلو اُوبو ځائے معلوم شو. (هغه وخت دا وئیلی شوی وُوچه) الله کوم رزق درکړے دے هغه خورئ څکئ او په زمکه کښے فساد مه خورووئ۔

یاد کړئ کله چه تاسو وئیلی وُوچه اے موسیٰؑ، مونږه په یوشان خوراک صبر نه شو کولے. د خپل رب نه دُعا وغواړه چه زمونږ د پاره د زمکے پیداوارسگ ترکاری، خټکی، غنم،

---

[۷۳] هغه کټ یا کمر د اُوسه پورے په سینا کښے شته دے. سیلانیان ئې هغه وینی او د چینو نښے پکښے اوس هم ښکاری- په دولسو چینو کښے د افائیده وه چه د بنی اسرائیلو قبیلے هم دولس وے. خدائے د هرے قبیلے د پاره ځائی له چینه نا پیدا کړله چه د هغوی په مینځ کښے په اوبو باندے جګړه رانشی۔

---

عَدَسِهَا وَبَصَلِهَا ۖ قَالَ أَتَسْتَبْدِلُونَ الَّذِي هُوَ أَدْنَىٰ بِالَّذِي هُوَ خَيْرٌ ۚ اهْبِطُوا مِصْرًا فَإِنَّ لَكُم مَّا سَأَلْتُمْ ۗ وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ وَالْمَسْكَنَةُ وَبَاءُوا بِغَضَبٍ مِّنَ اللَّهِ ۗ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَانُوا يَكْفُرُونَ بِآيَاتِ اللَّهِ وَيَقْتُلُونَ النَّبِيِّينَ بِغَيْرِ الْحَقِّ ۗ ذَٰلِكَ بِمَا عَصَوا وَّكَانُوا يَعْتَدُونَ ﴿٦١﴾

اوګه، دال او پیاز وغیره پیدا کړي" نو موسیٰ اُووئیل: آیا د یو بهتر شیز په ځائے بانډِ تا سو د ادنے درجے شیزونه اغستل غواړئ؟[۷۶] ښه ده، د یوے ښارےته لاړ شئ- آبادئ ته لاړ شئ- تا سو چه څه غواړئ هلته به درته ملاؤ شي" آخر دا چه خبره دے ته ورسیده چه په هغوئ بانډِ د ذلت، د خوارئ، د نادارئ او د بد حالئ ژوند راغے او د الله په غضب کښے راګیر شو. دا نتیجه وه د دے خبرے چه هغوئ د الله د آیاتونو سره کفر[۷۷] وکړو او بیرناحقه ئے پیغمبران قتلول شروع کړل.[۷۸] دا د هغوئ د نافرمانئ نتیجه وه او د هغوئ د دے خبرے نتیجه وه چه د شریعت د حدونو نه بهر تر وتل.[ع]

[۷۶] د ا مطلب نۀ دے چه من او سلویٰ چه بے مشقته درته ملاویږی هغه پریږدئ، او هغه شیزونه غواړئ چه د هغے دپاره به د کر کیلے محنت ضروری وی، بلکه د دے مطلب دا دے چه د کوم لوئ مقصد دپاره تا سو په دے صحرا کښے د ژوند تیرولو دپاره راحصار کړے شوی یئ، د هغے په مقابله کښے تا سو ته سکون خوراک دومره خوښ دے چه هغه لوئ مقصد پریښودلو ته تیار یئ او د لږے مودے دپاره هم د دے شیزونو نه ځان صبره ولے نۀ شئ؟ (د تقابل دپاره ؤګورئ ګنتی، باب ۱۱، آیت ۴-۹).

[۷۷] د آیتونو سره د کفر کولو مختلف صورتونه دی مثلاً یو دا چه د خدائے په رالیږلی شوی تعلیماتو کښے څه خبره چا د څه خیالاتو او خواهشاتو خلاف ؤموندله، او د هغے د منلو نه ئے صفا انکار ؤکړو بل دا چه سړي ته دا معلوم وی چه د خدائے حکم دا دے، خو په صندا و په سرزورئ د هغے خلاف ورزی کوی او د خدائے د حکم څه پروا نۀ ساتی. دریم دا چه د خدائے حکم ورته ښه معلوم وی او په مطلب ئے هم ښه پوهیږی خو سره د دے ئے د خپل خواهش مطابق بدلوی.

[۷۸] بنی اسرائیلو دا خپل جرم په خپل تاریخ کښے په تفصیل سره بیان کړے دے. د مثال په طور مونږ د بائیبل نه یو څو واقعات دلته لیکو:

(۱) د حضرت سلیمانؑ نه روستو کله چه د بنی اسرائیلو بادشاهی په دوؤ ریاستونو کښے تقسیم شوله (یو د یروشلم حکومت یهودیه او بل د سامریه حکومت اسرائیل) نو د هغوئ د یو بل سره

د جنګونو سلسله شروع شوله اوخبره دے تر راؤرسیدله چه ریاستِ یهودیه د خپلو رونړو خلاف د دمشق د ارامی سلطنت نه مدد وغوختلو. په دے بانډِ حناني نبی د یهودیه آستانومے بادشاه ته د خدائے د طرفنه سخت سنبردارے ورکړو. خو آسا دغه تنبیه ارے قبول نه کړو اود خدائے پیغمبرئے جیل ته ؤلیږلو. (۲. تواریخ، باب ۱۶، آیت ۷ - ۱۰).

(۲) حضرت الیاس (ایلیاه ELIJAH) علیه السلام چه کله د بعل په عبادت کولو یهودیان ملامته کړل اوخلقو ته ئے د توحید تعلیم د نوی سرنه بیا شروع کړو نو د سامریه اسرائیلی بادشاه چه نوم ئے اخی آب ؤو، د خپلے مشرکے ښځے په وینا د هغه په مرګ پسے ورپسے شو، تردے پورے چه هغه تر د سینا په غرو نو کښے پناه واخستله. په دے موقع بانډِ چه حضرت الیاس کومه دعا غوښتلے ده، د هغے الفاظ دا دی:

"بنی اسرائیلو ستا وعده پریښودله ...... او ستا پیغمبران ئے په توره قتل کړل، یوزهٔ یو پاتے شوے یم. او س زما په مرګ پسے را پسے دی." (۱. سلاطین، باب ۱۹، آیت ۱ - ۱۰)

(۳) دے اخی آب بادشاه یو بل پیغمبر حضرت میکایاه د حق وینا په وجه جیل ته ؤلیږلو او دا حکم ئے ؤکړو چه دهٔ ته تکلیف ورکونکی ډوډئ او تکلیف ورکونکی اوبهٔ ورکوئ. (۱. سلاطین باب ۲۲ آیت ۲۶ - ۲۷)

(۴) بیا د یهودیه په ریاست کښے چه ښکاره بُتانو ته سجدے کول او بدکاری شروع شوه او زکریا نبی د هغے خلاف آواز ؤچت کړو، نو هغه د یوآس نومے یهودی بادشاه په حکم بانډِ خاص په هیکل سلیمانی کښے د "مقدس" او "قربان ګاه" په مینځ کښے په کانړو ؤویشتلے شو (۲. تواریخ، باب ۲۴ - آیت ۲۱)

(۵) د دے نه روستو کله چه د سامریه اسرائیلی ریاست د آشوریانو د لاسه ختم شو او د یروشلم یهودی ریاست تباه کیدونکے ؤو، نو "یرمیاه" نبی راؤچت شو او د خپل قوم په زوال بانډِ ئے ماتم جوړ کړو او کوشش په کوشش ئے هغوئ ته آواز ؤکړو چه ځان تیک کړئ کنه نو ستا سو انجام به د سامریه نه هم بد وی. خو د قوم د طرفنه نه چه ورته کوم جواب ملاؤ شو هغه دا ؤو چه د هر طرفنه په هغوئ بانډِ د لعنت ملامت باران شروع شو، ؤوهلے شو، قید کړے شو، د خټو نه ډک تالاب کښے په رسئ تړلے د دے دپاره آویزان کړے شو چه د لوږے تندے نه ؤتړقیږی او مړهٔ شی، او په هغوئ دا الزام ؤلګولے شو چه دا د قوم غدار دی او د بهرنو دُشمنانو سره ملاؤ دی. (یرمیاه، باب ۱۵، آیت ۱۰. باب ۱۸، آیت ۲۰، آیت ۱ - ۱۸. باب ۳۶ تا باب ۴۰)

(۶) د یو بل نبی حضرت عاموس په حقله ئے لیکلی دی چه کله هغه د سامریه د اسرائیلی ریاست خلق په خپلو ګمراهو او بدو کارونو بانډِ ؤتیوکلو او د خپلو بدو کارونو د بد انجام نه ئے خبر کړل نو هغوئ ورته ؤویل چه د ملک نه ؤځه او چرته بهر نبوت کوه. (عاموس، باب ۷، آیت ۱۰ - ۱۳)

(۷) حضرت یحیٰی (یوحنا) علیه السلام چه کله د هغه بد اخلاقو خلاف آواز ؤچت کړو کوم چه د یهودیه هیرودیس نومے بادشاه په دربار کښے ښکاره کیدل، نو هغه اول قید کړے شو او بیا بادشاه د خپلے معشوقے په وینا بانډِ د دے نیک انسان نه سر پریکړو او د نذرانے په طور ئے هغے ته په تالی کښے پیش کړو. (مرقس، باب ۶، آیت ۱۷ - ۲۹)

(۸) په آخر کښے په حضرت عیسیٰ علیه السلام بانډِ د بنی اسرائیلو علماؤ او د قوم د سردارانو غصه ځکه راؤچته شوه چه هغه به هغوئ د ګناهونو او د ریا کارئ نه منع کول او د ایمان او د صداقت نصیحت به ئے ورته کولے. د هغه د دے قصور په وجه د هغه خلاف د دروغو مقدمه تیاره کړے شوه، او د رومی عدالت

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَادُوا وَالنَّصَارَىٰ وَالصَّابِئِينَ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٦٢﴾

یقین وکړئ که د نبي عربي منونکي دي او که یهودیان دي، که عیسایان دي او که صابیان دي، چاچه په الله او په ورځ د آخرت باندې ایمان راوړو او نیک عمل ئې وکړو نو د هغه بدله د هغوی رب سره ده او د هغه د پاره د څه یره او د څه غم موقع نشته ؏

نه د هغه د قتل فیصله وکړې شوه، او کله چه د روم حاکم پیلاطس یهودیانو ته وویل چه زه نن د اختر په ورځ ستاسو د پاره یسوعَ یا براَبّا دواړو کې، په دواړو کښې کوم یو د قید نه راخلاص کړم نو د یهودیانو پوره ولس په اتفاق سره دا وویل چه براَبّا داکو پرېږده او یسوع له پانسي ورکړه. (متی، باب ۲۷، آیت ۲۰ تا ۲۶)

دادی د دے قوم د جُرمونو شرمناکه قیصے، او د قرآن په دے آیت کښې دے قیصو ته مختصره اشاره شوې ده. اوس دا ظاهره خبره ده چه کوم قوم خپل فاسقان او فاجران خلق د سرداری او د مشرئ د پاره خوښ کړي او خپل نیکان او صالحان خلق د جیل او د دار د پاره خوښ کړي، نو چه الله تعالی په هغه قوم باندې خپل لعنت نه رالیږي نو آخر څه راولیږي.

؏ د روان عبارت نه دا خبره په خپله معلومیږي چه د لته د ایمان او د نیک عملونو تفصیل بیانول مقصد نه دی چه سړے هغه کومے کومے خبرے ومني او کوم کوم عملونه وکړي چه د خدائے په دربار کښې د اجر مستحق شي. دا خبرے به په خپله موقع بشپړه په تفصیل سره راشي. دلته د یهودیانو دا غلط خیال لرے کول مقصد دے چه هغوئ صرف د خپلې ډلے د پاره نجات او خلاصے یوه تیکه داری ګنړله. هغوئ په دے غلط خیال کښې پراته وُو چه د یهودیانو د الله سره څه داسے خاص رشته ده چه د نورو انسانانو ورسره نشته، او د دے رشتے په وجه چه څوک د یهودیانو د ډلے سره تعلق لري، نو که عملونه او عقیدے ئې هر څنګه وي خو نجات او خلاصے به یا مومي، او باقي نور ټول انسانان چه د یهودیانو د ډلے نه بهر دي هغه صرف د دوزخ د خشاک د پاره پیدا شوي دي. د دے غلط خیال د لرے کولو د پاره ورته دا وئیلے کیږي چه د الله په دربار کښې دا ستاسو ډلے اصل څیز نه دے بلکه هلته چه څه اعتبار دے، هغه د ایمان او د نیک عمل دے. د ایمان او د نیک عمل سره چه کوم انسان د الله په دربار کښې حاضر شي هغه ته به خپل اجر ملاویږي. د خدائے په دربار کښې به فیصله د سړي په صفتونو باندې کیږي، ستاسو د مردم شمارئ په رجسټرونو باندې به نه کیږي.

---

وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّورَ خُذُوا مَا آتَيْنَاكُم بِقُوَّةٍ وَاذْكُرُوا مَا فِيهِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴿٦٣﴾ ثُمَّ تَوَلَّيْتُم مِّن بَعْدِ ذَٰلِكَ ۖ فَلَوْلَا فَضْلُ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهُ لَكُنتُم مِّنَ الْخَاسِرِينَ ﴿٦٤﴾ وَلَقَدْ عَلِمْتُمُ الَّذِينَ اعْتَدَوْا مِنكُمْ فِي السَّبْتِ فَقُلْنَا لَهُمْ كُونُوا قِرَدَةً خَاسِئِينَ ﴿٦٥﴾ فَجَعَلْنَاهَا

یاد کړئ هغه وخت، کله چه مونږه طُور ستاسو دپاسه وُچت کړے وُو او ستاسو نه مو چه وعده اغستلې وه ؟ او دا مو درته وئیلی وُو چه "کوم کتاب مونږ تاسوله درکوو هغه مضبوط اونیسئ او کوم حکمونه او هغه خبرے چه په دے کښے درج دی هغه یاد ے کړئ . په دے ذریعه دا توقع کیدے شي چه تاسو د پرهیزګارئ په لاره روان شئ"، خو دے نه روستو تاسو د خپلے وعدے نه په شاشولئ. د دے باوجود د الله فضل او د هغه رحمت ستاسو سره مل وُو، که نه نو تاسو به کله تباه شوی وئ. بیا تاسو ته د خپل قوم د هغے خلقو قصه خو معلومه ده کُنه چه د سبت[۸۲] قانون ئے مات کړے وُو. مونږ هغوئ ته وُوئیل چه شادوګان شئ او په داسے حالت کښے و سیږئ چه په تاسو باندے د هر طرفه لعنت وي.[۸۳] دغه ش

[۸۱] دا واقعه چه په قرآن کښے په مختلفو ځایونو کښے په کوم انداز بیان کړے شوے ده د هغے نه دا خبره صفا ظاهریږی چه په دغه وخت کښے په بنی اسرائیلو کښے دا یوه مشهوره واقعه وه. لیکن اوس د دے واقعے تفصیلی حالت معلومول ګران دی. بس مختصر دا سے وئیل پکار دی چه د غره په لمن کښے د وعدے اغستلو په وخت کښے یو داسے ډیره حالت پیدا کړے شوے وُو چه هغوئ ته داسے ښکاریدله چه ګنی غر پرے راپریوځی. د سورة اعراف په ایت ۱۷۱ کښے ئے دا رنګ نقشه ښودلے شوے ده. (اوګوره سورة اعراف، حاشیه نمبر ۱۳۲)

[۸۲] سبت یعنی د خالی ورځ. د بنی اسرائیلو دپاره دا قانون مقرر کړے شوے وُو چه د خالی په ورځ به صرف آرام او عبادت کوی. په دغه ورځ به هیڅ قسم د دنیا کار نه کوی، تردے پورے چه د دوډئ پخولو کار به نه پخپله کوی او نه به د نوکرانو نه کار اخلی. په دے باره کښے د ومره تاکیدی حکمونه وُو چه کوم سړے به د دے پلکے ورځے عزت و نه کړو نو د هغه قتلول به واجب وُو. (اوګوره خروج، باب ۳۱، آیت ۱۲-۱۷) لیکن کله چه په بنی اسرائیلو باندے اخلاقی او دینی تنزل راغے نو هغوئ ښکاره د سبت د ورځے بے عزتی شروع کړه تردے پورے چه د هغوئ په ښارونو کښے د سبت په ورځ ښه په آزادئ سره تجارت شروع شو.

[۸۳] د دے واقعے تفصیل وړاندے د سورة اعراف په رکوع ۲۱ کښے راځی. د هغوئ نه د

نَكَالًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهَا وَمَا خَلْفَهَا وَمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿٦٦﴾ وَإِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖۤ إِنَّ اللّٰهَ يَأْمُرُكُمْ أَنْ تَذْبَحُوْا بَقَرَةً ؕ قَالُوْۤا أَتَتَّخِذُنَا هُزُوًا ؕ قَالَ أَعُوْذُ بِاللّٰهِ أَنْ أَكُوْنَ مِنَ الْجٰهِلِيْنَ ﴿٦٧﴾ قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَّنَا مَا هِيَ ؕ قَالَ إِنَّهٗ يَقُوْلُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا فَارِضٌ وَّلَا بِكْرٌ ؕ عَوَانٌۢ بَيْنَ ذٰلِكَ ؕ فَافْعَلُوْا مَا تُؤْمَرُوْنَ ﴿٦٨﴾ قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَّنَا مَا لَوْنُهَا ؕ قَالَ إِنَّهٗ يَقُوْلُ

---

موږ د هغوی انجام د هغه زمانې د خلقو د پاره او د روستو راتلونکی نسل د پاره د عبرت جوړ کړو او د پرېیدونکو خلقو د پاره مو یو نصیحت پرېښود و.

بیا هغه واقعه یاده کړئ، کله چه موسیٰ خپل قوم ته ووئیل چه الله تاسو ته حکم کوی چه یوه غوا ذبح کړئ. دوی ووئیل چه آیا ته زمونږ سره ټوقې کوې؟ موسیٰ ووئیل: چه زۀ په خدائے پورې د دې نه پناه غواړم چه د جاهلانو په شان خبرې وکړم. هغوی اُووئیل چه ډیره ښۀ ده، خپل رب ته درخواست وکړه چه هغه موږ ته د دغې غواګې تفصیل وښائي. موسیٰ اُووئیل د الله فرمان دې چه هغه داسې غوا وی چه نۀ بوډۍ وی او نۀ وچې وی بلکه د منځنی عمر والا دې وی. او کوم حکم چه درته کیږی هغه اُومنئ. هغوی بیا ووئیل چه د خپل رب نه دا تپوس هم وکړه چه د هغې رنګ به څنګه وی. موسیٰ ووئیل الله وائي،

---

شاه ولګانو جوړیدو په حالت کښې اختلاف دے. څوک دا وائي چه د هغوی جسمانی شکل د شاه ولګانو په شان شوے وو او څوک وائی چه د دے نه دا مطلب اخلی چه په هغوی کښې د شاه ولګانو په شان صفتونه پیدا شوی وو. لیکن د قرآن د الفاظو او د انداز بیان نه داسې معلومیږی چه دا بدلیدل صرف د اخلاقو بدلیدل نۀ وو بلکه جسمانی بدلیدل وو. زۀ وایم چه دا خبره قیاس ته ډیره نزدې ده چه د هغوی دماغ به په خپل حال باندې پریښودلے شوی وی لکه څنګه چه ...... وی. او جسم به ئے د شاه ولګانو په شان شوے وی.

---

إِنَّهَا بَقَرَةٌ صَفْرَآءُ فَاقِعٌ لَّوْنُهَا تَسُرُّ النّٰظِرِيْنَ ﴿٦٩﴾ قَالُوا ادْعُ لَنَا رَبَّكَ يُبَيِّنْ لَّنَا مَا هِيَ إِنَّ الْبَقَرَ تَشٰبَهَ عَلَيْنَا وَإِنَّآ إِنْ شَآءَ اللّٰهُ لَمُهْتَدُوْنَ ﴿٧٠﴾ قَالَ إِنَّهٗ يَقُوْلُ إِنَّهَا بَقَرَةٌ لَّا ذَلُوْلٌ تُثِيْرُ الْأَرْضَ وَلَا تَسْقِي الْحَرْثَ ۚ مُسَلَّمَةٌ لَّا شِيَةَ فِيْهَا ۚ قَالُوا الْـٰٔنَ جِئْتَ بِالْحَقِّ ۚ فَذَبَحُوْهَا وَمَا كَادُوْا يَفْعَلُوْنَ ﴿٧١﴾ وَإِذْ قَتَلْتُمْ نَفْسًا فَادّٰرَءْتُمْ فِيْهَا ۚ وَاللّٰهُ مُخْرِجٌ مَّا كُنْتُمْ تَكْتُمُوْنَ ﴿٧٢﴾

چه غوا د زیړ رنګ پکار ده، چه داسې شوخ رنګ ئې وي چه د کتونکو زړه خوشحالیږي. هغوی بیا اوویل چه د خپل رب نه صفا صفا تپوس وکړه چه کوم قسم غوا پکار ده، موږ په دې غوا پسې اکولو کښې حیران شوي یو. که د الله خوښه شوه نو موږ به په دې پته ولږو. موسیٰ جواب ورکړو: الله وائي چه هغه داسې غوا ده چه کار خدمت ترې نه اخستې کیږي، نه زمکه اړوي او نه اوبه راوباسي، صحیح سالمه او بې داغه ده. په دې باندې چغې کړې چه او اوس دې ټیک پته وښودله. بیا هغوی هغه ذبح کړله، که نه نو هسې خو هغوی داسې نه معلومیدل چه دا ئې کړې وي.[83]

او هغه واقعه تاسو ته یاده ده کله چه تاسو یو سړی مړ کړې وو، او بیا د هغه په باره کښې مو جګړې کولې او په یو بل مو د قتل الزام لګولو، او الله دا فیصله کړې وه چه څه تاسو پټوی هغه به الله ښکاره کوي

[83] د خپل ګاونډی قومونو په وجه د دې خلقو په دماغو کښې د غوا لوئي والې او پاکوالې او د غوا عبادت پروت وو او په دې وجه هغوی ته حکم ورکړې شو چه غوا ذبح کړئ. د هغوی د ایمان امتحان هم په دې طریقه اخستې کیدې شو چه که چرې واقعي هغوی د یو خدائے نه سوا بل څوک د عبادت لائق نه مني، نو اول دې هغه بُت په خپلو لاسو مات کړي کوم چه دوئ د عبادت لائق ګڼلو. دا ډیر سخت امتحان وو. د هغوی زړونو ته لا ایمان پوره نه وو کوز شوې نو ځکه ئې بهانې کول شروع کړل او زیاتې خبرې به ئې تپوسلې. خو څومره به ئې تپوس نه زیات کول دومره به دوئ زیات کیریدل، تر دې پورې چه په آخره کښې په هغې خاص قسم زیړ رنګې غوا باندې ورته ګوته کېښودلې شوه، چه په هغې زمانه کښې به خاص د هغې عبادت کیدلو، او ورته ووئیلې شو چه هم دا قسم غوا ذبح کړئ. بائیبل کښې هم دې واقعې طرف ته اشاره شوې ده. خو هلته ښکاره نشته چه بني اسرائیلو په کومو بهانو د دې حکم د نه منلو کوشش کوو. (اذکوره ګنتي، باب ۱۹، آیت ۱-۱۰).

فَقُلْنَا اضْرِبُوهُ بِبَعْضِهَا ۚ كَذَٰلِكَ يُحْيِي اللَّهُ الْمَوْتَىٰ وَيُرِيكُمْ آيَاتِهِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿٧٣﴾ ثُمَّ قَسَتْ قُلُوبُكُم مِّن بَعْدِ ذَٰلِكَ فَهِيَ كَالْحِجَارَةِ أَوْ أَشَدُّ قَسْوَةً ۚ وَإِنَّ مِنَ الْحِجَارَةِ لَمَا يَتَفَجَّرُ مِنْهُ الْأَنْهَارُ ۚ وَإِنَّ مِنْهَا لَمَا يَشَّقَّقُ فَيَخْرُجُ مِنْهُ الْمَاءُ ۚ وَإِنَّ مِنْهَا لَمَا يَهْبِطُ مِنْ خَشْيَةِ اللَّهِ ۗ وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿٧٤﴾

په هغه وخت موږ حکم وکړو چه دَ مړي په يوه حصه باندې مړے اُووهئ. اُوګورئ، په دے طريقه الله تعالى مړي ژوندي کوي او تاسو ته خپلې نښې ښئي دَ دے د پاره ښائي چه تاسو پوهه شئ ۸۵ ـــــ خو آخر داچه دَ داسے ښکاره نښو ليدو نه روستو هم ستاسو زړونه سخت شو، دَ کاڼو په شان سخت شو، بلکه په سختۍ کښے دَ هغے نه هم زيات سخت شو، ځکه چه په کاڼو کښے خو داسے هم دي چه دَ هغوئ نه چينے بهيږي، څه داسے دي چه وَچوي او دَ هغے نه اُوبهٔ را وُځي، او څه دَ خدائے دَ يرے نه ښکته را پريوځي. الله ستاسو دَ کارونو نه ناخبره نهٔ دے.

۸۵ په دے ځائے کښے داخبره ښکاره معلوميږي چه په دغه مړي کښے دوباره دَ دومره ساعت د پاره روح واچولے شو چه هغه خپل قاتل وُښائي. ليکن دَ دے د پاره چه کومه طريقه ښودلے شوې وه، يعني "دَ دے په يوه حصه باندې دَ مړي بدن اُووهئ". نو په دے الفاظو کښے خبره پوره نهٔ صفا کيږي. بيا هم دَ دے دَ ټولو نه زيات نږدے مطلب هغه دے کوم چه پخوانو مُفسرينو بيان کړيدے، يعني داچه دَ کومے غوا دَ ذبح کولو حکم شوے وُو هم دَ هغے په غوښه باندې دَ مړي دَ بدن وهلو حکم وُشو. په دے طريقه په يو وخت دوه ښکارونه وُشو. يو داچه دَ الله دَ قدرت يوه نښه هغوئ ته ښکاره شوله. بله داچه دَ غوا لوئي والے، پاکوالے او خدائي ختمه شوله، ځکه که چرے دے غوا دَ خدائيۍ څه لږ طاقت هم لرلے نو ښکاره وه چه دَ هغې دَ ذبح کولو سره به يو آفت راغلے وے، نهٔ داچه دَ هغې ذبح کول اُلټا فائده مند ثابت شو.

أَفَتَطْمَعُونَ أَن يُؤْمِنُوا لَكُمْ وَقَدْ كَانَ فَرِيقٌ مِّنْهُمْ يَسْمَعُونَ كَلَامَ اللَّهِ ثُمَّ يُحَرِّفُونَهُ مِن بَعْدِ مَا عَقَلُوهُ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿٧٥﴾

اے مسلمانانو! اوس هم دَدے خلقو نه تاسو دا اُمید لرئ چه دوئ به ستاسو په وینا باندې ایمان راوړی؟[۸۶] حالانکه په دوئ کښے دَیو ډلے دا طریقه پاتے شوې ده چه دَ الله کلام ئے واورید و او بیا قصداً ئے سره دَ پوهے په هغے کښے بدلونونه راوستلو

[۸۶] دا خطاب دَ مدینے هغه نوی مسلمانانو ته دے چه څه لږه موده شوی ده چه په نبی عربی صلی الله علیه وسلم باندې ئے ایمان راوړے وو. دَ هغوئ په غوږونو کښے چه دَ ځکنے نه دَ نبوت، دَ کتاب، دَ فرښتو، دَ آخرت او دَ شریعت کومے خبرے پرتے وے، هغه ټولے هغوئ دَ خپلو گاونډیانو یهودیانو نه اوریدلے وے. او دا ئے هم دَ یهودیانو نه اوریدلی وُو چه دُنیا ته به یو بل پیغمبر راځی، او کوم خلق چه دَ هغه ملګرتیا وکړه هغوئ به په ټوله دُنیا کښے خوریږی. دا وجه وه چه کله مدینے والو دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ نبوت شهرت واورید و نو هغه له پخپله په خپله لوړو لوکښے راغلل او ایمان ئے راوړو. اُوس خو هغوئ دا اُمید لرلو چه کوم خلق دَ ځکنے نه په پیغمبرانو او په آسمانی کتابونو پسے روان دی او چه دَ هغوئ دَ وجے نه دَ ایمان لوئ نعمت موږ ته نصیب شوے دے، نو هغوئ به ضرور زموږ ملګرتیا کوی بلکه په دے لار کښے به زموږ نه مخکښے وی. نو دَ دے اُمید و نو سره به دا نوی جوشیان مسلمانان خپلو گاونډی او دوستانو یهودیانو له تلل او هغوئ ته به ئے دَ اسلام دعوت ورکولو. خو چه کله به هغوئ دَ دعوت قبلولو نه انکار وکړو نو دَ اسلام مخالفینو او منافقانو به وئیل چه دا معامله څه شکمنه شان ده، که چرے واقعی دے نبی وے نو آخر ولے به دَ اهل کتابو عالمانو او بزرگانو سره دَ پوهے دَ ایمان راوړلو نه مخ اړوه ولو او خپل انجام به ئے خرابولو. دغه وجه ده چه اول دَ بنی اسرائیلو تاریخی تیرئ بیان کړیشوه، او داوس سادہ مسلمانانو ته وئیلے کیږی چه دَ کوم خلقو بخوانی کارونه څه دا رنګه دی، تاسو دَ هغوئ نه لوئ لوئ اُمید و نه مه ساتئ، که نه نو دَ هغوئ دَ نه منلو په وجه به ستاسو زړونه مات شی. دا خلق دَ دیر پیړو راسے خراب دی. دَ الله کوم آیات و نه چه تاسو دا وری او په تاسو لړزان راشی، هم دَ دغه آیاتونو سره به دَ دوئ تیرو شوو نسلونو لویے ټوقے کولے. دوئ حق دین دَ خپلو خواهشاتو مطابق بدل کړے دے، او په دے وران شوی دین کښے په دے اُمید ژوند تیره وی چه ګنی کامیاب هم دوئ دی. دَ دوئ نه دا اُمید ساتل فضول دی چه ګنی دَ حق دَ آواز په اورېدو سره به دَ هر طرفه په منډه منډه راشی.

[۸۷] دَ "یو ډلے" نه مراد دَ هغوی عالمان او په شریعت پوه خلق دی. دَ "کلام الله" نه مراد تورات زبور او نور هغه کتابونه دی چه دوئ ته دَ خپلو پیغمبرانو په ذریعه رارسیدلی دی. دَ "تحریف" مطلب دا دے چه دَ خبرے خپل اصلی مطلب پریږدی او دَ خپلے مرضا مطابق ترې بل هغه مطلب راخلی چه دَ وئونکی دَ مطلب نه خلاف وی. دغه رنګ په الفاظو کښے ادلی بدلی راوستو ته هم تحریف وائی. دَ

وَاِذَا لَقُوا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا قَالُوْٓا اٰمَنَّا ۚۖ وَاِذَا خَلَا بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضٍ قَالُوْٓا اَتُحَدِّثُوْنَهُمْ بِمَا فَتَحَ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ لِيُحَآجُّوْكُمْ بِهٖ عِنْدَ رَبِّكُمْ ۭ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿۷۶﴾ اَوَلَا يَعْلَمُوْنَ اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا يُسِرُّوْنَ وَمَا يُعْلِنُوْنَ ﴿۷۷﴾ وَمِنْهُمْ اُمِّيُّوْنَ لَا يَعْلَمُوْنَ الْكِتٰبَ اِلَّآ اَمَانِىَّ وَاِنْ هُمْ اِلَّا يَظُنُّوْنَ ﴿۷۸﴾ فَوَيْلٌ لِّلَّذِيْنَ يَكْتُبُوْنَ الْكِتٰبَ بِاَيْدِيْهِمْ ق

(چه په محمد رسول الله باندې) ایمان راوړونکو خلقو سره ملاوېږي نو وائي چه مونږ هم هغه منو او کله چه په خپلو کښې د یو بل سره ځان له ځائې کښې خبرې کوي نو وائي چه بې وقوفان شوي څو نه یئ؟ تاسو دې خلقو ته هغه خبرې ښائې چه الله تاسو ته ښودلې دي او چه صبا لا به ستاسو خلاف ستاسو د رب په دربار کښې د دلیل په طور پیش کړي؟[۸۸] —— او ولې دوئ ته معلومه نه ده چه الله د هغې ټولو خبرو نه خبردار دے کومې چه دوئ پټوي او کومې چه دوئ ښکاره کوي؟ په دوئ کښې یوه بله ډله د اُمیانو ده، چه په کتاب خو پوهېږي نه، بس په خپلو بې بنیاده اُمیدونو او آرزوګانو پسې ورپسې دي او صرف په وهمونو ګمانونو باندې روان دي ډېر زوند تېره وي.[۸۹] نو هلاکت او تباهي ده د هغې خلقو د پاره چه په خپلو لاسونو باندې د شرعې کتاب لیکي

بنی اسرائیلو عالمانو په کلام الٰهي کښې دا دوه قسمه تحریفونه کړي دي.

[۸۸] یعنې هغوئ به په خپلو کښې یو بل ته دا وئیل چه د دغه نبي په حقله په تورات او په نورو آسماني کتابونو کښې کومې پیشن ګوئیانې دي، یا چه زمونږ په مقدس کتابونو کښې کوم آیاتونه او کومې خبرې داسې دي چه زمونږ موجوده ژوند د هغې نه خلاف دے، هغه د مسلمانانو په مخکښې مه کوئ، ګنې نو بیا به دوئ هم دا خبرې ستاسو د رب په دربار کښې ستاسو خلاف د دلیل په طور پیش کوي. دا وو د دغه ظالمانو د الله په باره کښې د خرابې او غلطې عقیدې حال. لکه چه د هغوئ دا خپل خیال وو چه که چرې دوئ په دُنیا کښې خپل تحریفونه او د حق پټولو کار پټ وساتلو، نو په آخرت کښې به په هغوئ مقدمه و نه چلولې شي. څکه خو په ورپسې جمله کښې هغوئ ته داخبردارے ورکړے شوے دے چه ستاسو څه خیال دے چه الله ګنې بې خبره دے.

[۸۹] دا د هغوئ د عوامو حال وو. هغوئ د کتاب د علم نه خالي وو. هیڅ پرده نه پوهېدل چه الله په خپل کتاب کښې د دین څه اُصول ښودلې دي، د اخلاقو او د شریعت لې کومې قاعدې ښودلې دي او د انسان د کامیابۍ او د ناکامۍ د پاره کوم څیزونه ضروري دي. د دے علم نه لرلو په وجه هغوئ د خپلو خواهشاتو مطابق د ځان نه څه خبرې جوړې کړې وې او هغې تمې دین وئیلو او د دروغو په اُمید ونو ئې ژوند تېرولو.

ثُمَّ يَقُولُونَ هٰذَا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ لِيَشْتَرُوا بِهٖ ثَمَنًا قَلِيلًا ۭ فَوَيْلٌ لَّهُمْ مِّمَّا كَتَبَتْ اَيْدِيْهِمْ وَوَيْلٌ لَّهُمْ مِّمَّا يَكْسِبُوْنَ ﴿۷۹﴾ وَقَالُوْا لَنْ تَمَسَّنَا النَّارُ اِلَّآ اَيَّامًا مَّعْدُوْدَةً ۭ قُلْ اَتَّخَذْتُمْ عِنْدَ اللّٰهِ عَهْدًا فَلَنْ يُّخْلِفَ اللّٰهُ عَهْدَهٗٓ اَمْ تَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ مَا لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۸۰﴾ بَلٰى مَنْ كَسَبَ سَيِّئَةً وَّاَحَاطَتْ بِهٖ خَطِيْٓــــَٔتُهٗ

بیا خلقوته وائی چه دا د الله د طرفنه راغلے دے، دا ځکه چه د دے په بدله کښے څه لږه شان فائیده حاصله کړی.[۹] د هغوی د خپلو لاسونو لیکل هم د هغوی د پاره د تباهئ سامان دے او د هغوی دا گټه هم د هغوی د پاره د هلاکت سبب دے. هغوی وائی چه د دوزخ اور به موږ سره هډو لږ ی نه او که لږ ی نو د یو څو ورځو سزا به وی نو وی دی.[۱۰] د دوی نه تپوس وکړه چه آیا تاسو د الله نه څه داسے وعده اخستلی ده چه هغه د هغې خلاف ورزی نه شی کولے؟ یا داخبره ده چه تاسو په الله پورے داسے خبرے کوئ چه د هغې په حقله تاسو ته دا پته نشته چه هغه[تم] د دے ذمه اخستے ده او که نه ده؟ آخر تاسو ته ولے به د دوزخ اور ورولے نه لږی؟ هر چا چه بدی وکړه او د خپلو غلطو کارونو په چکر کښے پریوتو،

[۹] داخبره د هغوی د عالمانو په حقله ده. دے خلقو یواځے دا نه وه کړی چه صرف د الله د کلام معنے ئے د خپلے مرضا مطابق بدلے کړے وے، بلکه دا ئے هم کړی وه چه په بائبل کښے ئے خپل تفسیرونه، د خپل قوم تاریخ، خپل وهمونه او قیاسونه او خپل خیالات او په خپل کوشش جوړ کړے شوی قانونونه د الله د کلام سره گډ وډ کړی وو او دا ټول شیزونه ئے خلقوته په داسے رنګ کښے پیش کول چه گنی دا ټول شیزونه د الله د طرفنه راغلی دی. د هر شان په بائبل کښے د هر یو تاریخی قیصے له، د هر مفسر د قول نه، او د هر قانون دان د قانونی کوشش نه د خدائے قول (Word of God). جوړ شو. په هغې باندې ایمان راوړل فرض شو او د هغې نه په شاکیدل د دین نه په شاکیدل شو.

[۱۰] دا د یهودیانو د عامے غلطئ بیان دے. په دے غلطئ کښے د یهودیانو عام خلق او عالمان ټول اخته وو. هغوی به وئیل که موږ هر څه چه کوو خو د

فَاُولٰٓئِكَ اَصۡحٰبُ النَّارِ ۚ هُمۡ فِيۡهَا خٰلِدُوۡنَ ﴿٨١﴾ وَالَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ اُولٰٓئِكَ اَصۡحٰبُ الۡجَنَّةِ ۚ هُمۡ فِيۡهَا خٰلِدُوۡنَ ﴿٨٢﴾ ع وَاِذۡ اَخَذۡنَا مِيۡثَاقَ بَنِىۡٓ اِسۡرَآءِيۡلَ لَا تَعۡبُدُوۡنَ اِلَّا اللّٰهَ قف وَبِالۡوَالِدَيۡنِ اِحۡسَانًا وَّذِى الۡقُرۡبٰى وَالۡيَتٰمٰى وَالۡمَسٰكِيۡنِ وَقُوۡلُوۡا لِلنَّاسِ حُسۡنًا وَّاَقِيۡمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ ؕ ثُمَّ تَوَلَّيۡتُمۡ اِلَّا قَلِيۡلًا مِّنۡكُمۡ وَاَنۡتُمۡ مُّعۡرِضُوۡنَ ﴿٨٣﴾ وَاِذۡ اَخَذۡنَا مِيۡثَاقَكُمۡ لَا تَسۡفِكُوۡنَ دِمَآءَكُمۡ وَلَا تُخۡرِجُوۡنَ اَنۡفُسَكُمۡ مِّنۡ دِيَارِكُمۡ ثُمَّ اَقۡرَرۡتُمۡ وَاَنۡتُمۡ تَشۡهَدُوۡنَ ﴿٨٤﴾ ثُمَّ اَنۡتُمۡ هٰٓؤُلَآءِ تَقۡتُلُوۡنَ



هغه دوزخي دے او په دوزخ کښے به همیشه وی- او کومو خلقو چه ایمان راوړو او نیک عملونه ئے وکړل هغه جنتیان دی او په جنت کښے به همیشه وسی.ع

یاد کړئ، د اسرائیل د اولاد نه مونږه دا پخه وعده اخستلې وه چه د الله نه بغیر د بل چا عبادت مه کوئ، د مور او پلار، د رشته دارانو، د یتیمانو او مسکینانو سره به سلوک کوئ، خلقو سره بنے خبره کوئ، مونځ قایموئ او زکوٰة ورکوئ، خو د لږ و خلقو نه بغیر تاسو ټول د دے وعدے نه په شا شولئ او تر اوسه پورے په شا کرځئ. بیا لږ شان را یاد کړئ مونږه ستاسو نه دا مضبوطه وعده اخستلې وه چه په خپلو کښے د یو بل وینه مه تویوئ او مه یو بل د خپلو کورونو نه باسئ. تاسو د دے اقرار کړے وو، په دے باندې تاسو پخپله ګواهان يئ. خو نن هم تاسو يئ چه خپل رونړه

---

د جهنم اور په مونږ باندې حرام دے - ځکه چه مونږه یهودیان یو - او که چرے مونږ له سزا هم راکړے شوه خو لږ یو څو ورځې به دوزخ ته لاړ شو او بیا به سیده جنت ته ولیږلے شو.

اَنْفُسَكُمْ وَتُخْرِجُوْنَ فَرِيْقًا مِّنْكُمْ مِّنْ دِيَارِهِمْ تَظٰهَرُوْنَ عَلَيْهِمْ بِالْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ ؕ وَاِنْ يَّاْتُوْكُمْ اُسٰرٰى تُفٰدُوْهُمْ وَهُوَ مُحَرَّمٌ عَلَيْكُمْ اِخْرَاجُهُمْ ؕ اَفَتُؤْمِنُوْنَ بِبَعْضِ الْكِتٰبِ وَتَكْفُرُوْنَ بِبَعْضٍ ۚ فَمَا جَزَآءُ مَنْ يَّفْعَلُ ذٰلِكَ مِنْكُمْ اِلَّا خِزْيٌ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ يُرَدُّوْنَ اِلٰٓى اَشَدِّ الْعَذَابِ ؕ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿۸۵﴾ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا الْحَيٰوةَ الدُّنْيَا بِالْاٰخِرَةِ ز

تتلوئ، دَ خپله دَ ورولئ نه خلق دَ خپلو کورونو نه بے کوره کوئ، سره دَ ظلم او زیاتی دَ هغوئ خلاف ملے جوړه وئ، او کله چه هغوئ په جنګ کښے ونیولے شی او تاسو له راوستلے شی، نو دَ هغوئ دَ خلاصی دپاره فدیه اخلئ او ورکوئ، حالانکه هغوئ دَ خپلو کورونو نه ایستل دَ سر نه په تاسو باندے حرام وُو. نو آیا تاسو دَ کتاب په یوه حصه باندے ایمان راوړئ او دَ بلے حصے سره کفر کوئ؟[92] بیا چه په تاسو کښے کوم خلق داسے کارکوی دَ هغوئ سزا دَ دے نه بغیر بله څه ده چه دَ دُنیا په ژوند کښے خوار او ذلیل ژوند تیر کړی او په آخرت کښے دَ سخت نه سخت عذاب ته ولیږلے شی؟ الله دَ ستاسو دَ هغه کارونو نه ناخبره نه دَے کوم چه تاسو کوئ – دا هغه خلق دی چه آخرت ئے خرڅ کړیدے او دَ دنیا ژوند ئے اخستے

[92] دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ راتلو نه مخکښے دَ مدینے دَ خواؤ شا یهودی قبائلو دَ خپلو ګاونډی عربو قبیلو (اَوس او خَزرَج) سره دَ دوستانے تعلقات قایم کړی وُو- کله چه به دَ عربو یوه قبیله دَ بلے قبیلے سره په جنګ شوله نو دَ دواړو طرفو یهودی دوستان به هم دَ خپلو خپلو عربی دوستانو ملګری شول او دَ یو بل مقابله کښے به په جنګ شول - دَ هغوئ دا کار ښکاره دَ الله دَ کتاب نه خلاف وُو او هغوئ به قصداً دَ کتاب خلاف ورزی کوله - خو دَ جنګ نه روستو چه به کله دَ یوے یهودی قبیلے جنګی قیدیان دَ بلے یهودی قبیلے په لاس ورغلل، نو زورورے قبیلے به هغه قیدیان په فدیے اخستلو سره پرینښودل او کمزورے قبیلے به په فدیے ورکولو خلاصه ول، او دَ دے فدیے اخستلو او ورکولو دَ جواز دپاره به ئے دَ کتاب الله نه دلیلونه پیش کول. ته به لیدے چه هغوئ دَ کتاب الله دا خبره په سر سترګو منله چه جنګی قیدیان دِ په فدیے اخستلو سره پریښودے شی، خو دا حکم ئے نه منلو چه په خپلو کښے دِ هیڅ جنګ و نه کړے شی -

فَلَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ﴿۸۶﴾ وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى
الْكِتٰبَ وَقَفَّيْنَا مِنْ بَعْدِهٖ بِالرُّسُلِ ۖ وَاٰتَيْنَا عِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ
الْبَيِّنٰتِ وَاَيَّدْنٰهُ بِرُوْحِ الْقُدُسِ ۗ اَفَكُلَّمَا جَآءَكُمْ
رَسُوْلٌۢ بِمَا لَا تَهْوٰٓى اَنْفُسُكُمُ اسْتَكْبَرْتُمْ ۚ فَفَرِيْقًا كَذَّبْتُمْ
وَفَرِيْقًا تَقْتُلُوْنَ ﴿۸۷﴾ وَقَالُوْا قُلُوْبُنَا غُلْفٌ ۭ بَلْ لَّعَنَهُمُ اللّٰهُ
بِكُفْرِهِمْ فَقَلِيْلًا مَّا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۸۸﴾ وَلَمَّا جَآءَهُمْ كِتٰبٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ

نو نهٔ به د دوی په سزا کښې څه کمے وکړے شي او نهٔ به دوی ته څوک امداد ورو رسیدے شي؟
موږ موسیٰ له کتاب ورکړو، د هغهٔ نه وروستو پرلپسې رسولان راولیږل، او په آخر کښې مو
عیسیٰ د مریم ځوئ سره د روښانه نښو راولیږو او په پاک روح سره مو د هغهٔ مدد[۹۳] وکړو. بیا دا
ستاسو څه طریقه ده چه کله هم تاسو ته یو رسول ستاسو د نفس د خواهشاتو خلاف یو څیز راوړے
نو تاسو د هغې په مقابله کښې سرکشي کړیده، څه مو دروغژن کړل او څه مو قتل کړل؛ ـــــ هغوی
وائي، زموږ زړونه محفوظ[۹۴] دي. نه، بلکه اصل خبره دا ده چه د دوی د کفر په وجه په
دوی باندې د الله لعنت دے، دغه وجه ده چه دوی لږ ایمان راوړي. او اوس چه کوم کتاب
د الله د طرفه دوی ته راغلے دے، د هغې سره د دوی څه سلوک دے؟

[۹۳] د روح پاک نه مراد د وحي علم هم دے، او جبریل هم چه د وحي علم به ئې راوړلو او خپله
د حضرت مسیح خپل پاکیزه روح ته هم مراد دے، چه هغه الله د پاکو صفتونو مالک جوړ کړے وو.
د "روښانه نښو" نه مراد هغه ښکاره ښکاره علامے دي چه د هغې په لیدلو هر رښتینی او حق
پسند انسان دا پیژندلے شو چه مسیح علیه السلام د الله نبي دے.

[۹۴] یعنې زموږ ده خپل خیال او عقیده دومره مضبوطه ده که تاسو هر څه وایئ خو زموږ
په زړونو باندې به ستاسو د خبرے څه اثر نهٔ وي. دا هم هغه خبره ده چه ټول هغه ضد ناک
خلق ئې وائي څوک چه جاهلیت سره ډک زړهٔ مینه لري. دوی دے ته د عقیدے مضبوطیا وائي
او دیته بنهٔ خبره ورته ښکاري. حالانکه د یو سړي دپاره د دے نه لوئ عیب بل نشته چه هغه
د خپل پلار نیکه په عقیده باندې ټینګ ودریږي، اګر که هغه د پلار نیکه عقیده په قوي دلیلونو
سره غلطه ثابته کړے شي.

مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ ۙ وَكَانُوْا مِنْ قَبْلُ يَسْتَفْتِحُوْنَ عَلَى الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۚ فَلَمَّا جَآءَهُمْ مَّا عَرَفُوْا كَفَرُوْا بِهٖ ۫ فَلَعْنَةُ اللّٰهِ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ﴿۸۹﴾ بِئْسَمَا اشْتَرَوْا بِهٖٓ اَنْفُسَهُمْ اَنْ يَّكْفُرُوْا بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ

سره دَ دے چه هغه دَ هغې کتاب تصدیق کوی کوم چه دَ دوی سره دَ مخکښے نه موجود ؤو، سره دَ دے چه دَ دے کتاب دَ راتلو نه مخکښے به دوی په خپله دَ کافرانو په مقابله کښے دَ فتحے او دَ امداد دعاګانے غوښتلے، خو چه کله هغه دوی ته راغے، او دوی بنه ؤ پیژند وهم، نو دَ هغې دَ منلو نه یې انکار وُکړو.[۹۵] دَ خدائے لعنت دے وی په دے منکرینو باندې، داڅومره خرابه ذریعه ده چه دوی پرې خان له تسلی راولی[۹۶] چه کوم هدایت الله نازل کړیدے

[۹۵] دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ راتلو نه مخکښے یهودیان په بے قراری سره دَ هغې نبی په انتظار کښے ؤو دَ کوم دَ راتلو چه هغوی ته خپلو نبیانو پیشګوئیانے کړے وے. دَ هغه دَ زر راتلو دپاره به ئے دعاګانے غوښتلے چه دَ کافرانو غلبه ختمه شی او بیا دَ هغوی دَ ترقئ دور شروع شی. په خپله مدینے والا دَ دے خبرے ګواهان دی چه دَ محمدؐ دَ نبوت نه مخکښے به دَ هغوی دے یهودیانو ګاونډیانو دَ راتلونکی نبی په اُمید باندې ژوند تیرولو او چه خلقو سره به ئے خبرے کولے نو وئیل به ئے چه "بنه ده، اوس چه څوک زمونږ سره ظلم کوی نو کوی دی، کله چه هغه نبی راشی نو بیا به مونږ دَ دے ظالمانو سره ګوروُ" مدینے والو دَ هغوی دا خبرے اَوریدلے وے، دَ غه وجه وه چه کله هغوی ته دَ نبی صلی الله علیه وسلم حالات معلوم شول نو په خپلو کښے ئے یو بل سره اُووئیل چه چرته دا یهودیان زمونږ نه مخکښے نه شی، راځئ چه اول مونږه په دے نبی باندې ایمان راوړو. خو دا هغوی ته ډیره عجیبه خبره ښکاره شوله، چه هغه یهودیان، چه دَ راتلونکی نبی په انتظار کښے به ئے شپے ورځے تیرولے دَ هغه په راتلو باندې دَ ټولو نه زیات دَ هغه مخالف شول.

او دا چه ئے فرمائیلی دی چه "هغه دوی بنه ؤ پیژندو هم" نو دَ دے ډیر ثبوتونه په هغه زمانه کښے ملاؤ شوی ؤو. دَ ټولو نه زیات معتبر شهادت دَ اُم المؤمنین حضرت صفیّه دے، چه په خپله دَ یو لوئ یهودی عالم لور او دَ بل عالم وریره وه. هغه فرمائی چه کله نبی صلی الله علیه وسلم مدینے ته تشریف راوړو، نو زما پلار او تره دواړه دَ هغه سره دَ ملاویدو دپاره لاړل. ډیر ساعت ئے دَ هغه سره خبرے وُکړلے. بیا چه کله واپس کور ته راغلل نو ما خپلو غوږ ونو واوریدل چه دواړو دا خبرے کولے:

تره: دا واقعی هغه نبی دے چه زمونږ په کتابونو کښے ئے خبر ورکړے شویدے؟

پلار: په خدائے مې دِ قسم وی، هو.

تره: په دے ستا یقین دے؟

بَغۡيًا اَنۡ يُّنَزِّلَ اللّٰهُ مِنۡ فَضۡلِهٖ عَلٰى مَنۡ يَّشَآءُ مِنۡ عِبَادِهٖ‌ۚ فَبَآءُوۡ بِغَضَبٍ عَلٰى غَضَبٍ‌ؕ وَلِلۡكٰفِرِيۡنَ عَذَابٌ مُّهِيۡنٌ ﴿۹۰﴾ وَاِذَا قِيۡلَ لَهُمۡ اٰمِنُوۡا بِمَآ اَنۡزَلَ اللّٰهُ قَالُوۡا نُؤۡمِنُ بِمَآ اُنۡزِلَ عَلَيۡنَا وَيَكۡفُرُوۡنَ بِمَا وَرَآءَهٗ وَهُوَ الۡحَـقُّ مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَهُمۡ‌ؕ قُلۡ فَلِمَ تَقۡتُلُوۡنَ اَنۡۢبِيَآءَ اللّٰهِ مِنۡ قَبۡلُ اِنۡ كُنۡتُمۡ مُّؤۡمِنِيۡنَ ﴿۹۱﴾ وَلَقَدۡ

دَ هغې دَ منلو نه صرف دَ دې ضد په وجه انکار کوي چه الله خپل فضل (وحی او رسالت) دَ خپلې خوښې په بنده باندې راولیږي[۹۹]. نو دوی اوس دَ یو غضب دَ پاسه دَ بل غضب مستحق شویدي او دَ داسې کافرانو دپاره سخته دَ ذلت سزا مقرر ده.

کله چه دوی ته اُو ویلے شي چه څه الله نازل کړیدي په هغې باندې ایمان راوړئ، نو دوی وائي "مونږه خو صرف په هغې څیز باندې ایمان راوړو چه په مونږه (یعنې دَ اسرائیل په نسل) باندې نازل شویدے." دَ هغې نه علاوه چه څه راغلي دي، هغوئ دَ هغې دَ منلو نه انکار کوي، حالانکه هغه حق دي او دَ هغې تعلیم تصدیق او تائید کوي کوم چه دَ هغوئ سره دَ مخکښې نه موجود وُو. ډیره ښه ده، دوئ ته اُووایه: که چرے ستاسو په هغې تعلیم باندې ایمان وي کوم چه تاسو ته راغلے وُو نو دَ دې نه مخکښې مو دَ الله هغه پیغمبران (کوم چه په خپله په بني اسرائیلو کښې پیدا شوي وُو) ولے قتلول؟

پلار: هو.

تره: بیا ستا څه اراده ده؟

پلار: تر څو چه په ما کښې ساه وي تر هغې به دَ دَهٔ مخالفت کوم او دَ دَهٔ خبره به خوربد وته نهٔ پریږدم. (ابن هشام، جلد دوم، صفحه ۱۶۵، طبع جدید).

۹۸ دَ دې آیت دویمه ترجمه داهم کیدے شي: "ډېر خراب څیز دے چه دَ هغې په وجه ئې خپل ځانونه خرخ کړل" یعنې خپله کامیابي او نیکبختي او خپل خلاصے ئې قرباني کړل.

۹۹ دے خلقو دا غوښتل چه راتلونکے نبي دِ دَ دوئ په قوم کښې پیدا شي. خو چه کله هغه په بل داسے قوم کښې پیدا شو چه دوئ په خپله مقابله کښې څه قوم نهٔ گڼرلو نو دَ هغه نهٔ منلو ته تیار شو. لکه چه دَ هغوئ دا مطلب وُو چه دَ نبي رالیږلو په وخت کښې دِ خدائے دَ هغوئ نه تپوس کړے وے، خو چه کله خدائے دَ هغوئ نه تپوس وُنهٔ کړو او چه څوک ئې خوښ وُو خپل فضل ئې په هغه وُکړو، نو دوئ خفه شو.

جَآءَكُم مُّوسَىٰ بِالْبَيِّنَاتِ ثُمَّ اتَّخَذْتُمُ الْعِجْلَ مِن بَعْدِهِ وَأَنتُمْ ظَالِمُونَ ﴿٩٢﴾ وَإِذْ أَخَذْنَا مِيثَاقَكُمْ وَرَفَعْنَا فَوْقَكُمُ الطُّورَ خُذُوا مَا آتَيْنَاكُم بِقُوَّةٍ وَاسْمَعُوا ۖ قَالُوا سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا وَأُشْرِبُوا فِي قُلُوبِهِمُ الْعِجْلَ بِكُفْرِهِمْ ۚ قُلْ بِئْسَمَا يَأْمُرُكُم بِهِ إِيمَانُكُمْ إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٩٣﴾ قُلْ إِن كَانَتْ لَكُمُ الدَّارُ الْآخِرَةُ عِندَ اللَّهِ خَالِصَةً مِّن دُونِ النَّاسِ فَتَمَنَّوُا الْمَوْتَ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿٩٤﴾ وَلَن يَتَمَنَّوْهُ أَبَدًا بِمَا قَدَّمَتْ أَيْدِيهِمْ ۗ

تاسو ته موسیٰ ښکاره ښکاره روښانه نښے راوړلے. بیا هم تاسو داسے ظالمان وئ چه دهغه د تلو سره مو د غواډې عبادت شروع کړو. بیا لږ ه شان هغه وعده رایاده کړئ چه طُور مو ستاسو د پاسه اُوچت کړے وُو او وعده مو درنه اخستلې وه. موږ درته وئیلی وُو چه کوم هدایات موږ درلیږو، دهغے په سختۍ سره پابندی کوئ او په غوږ د نوٹے واؤرئ. ستاسو مشرانو اُووئیل موږه دا وریدل خو منو به ئے نه. او د هغوئ د کفر دا حال وُو چه د هغوئ په زړونو کښے د غوا ډې مینه ناسته وه. ورته وُوایه، کهچرے تاسو مؤمنان یئ، نو دا څو عجیبه ایمان دے چه تاسو ته د داسے خرابو کارونو حکم کوی.

دوئ ته وُوایه که چرے واقعی د الله په نیز د آخرت کور د ټولو انسانانو نه علاوه خالص ستاسو دپاره دی، نو بیا تاسو له پکار دی چه د مرګ آرزوو کړئ،[98] کهچرے تاسو په خپل خیال کښے رښتنی یئ ——— یقین وُکړئ چه دوئ به هیڅ کله د دے آرزو وُنه کړی په دے وجه چه دوئ چپلو لاسونو کومه ګټه ځان له هلته لیږلی ده هغه دوئ د دے نه منع کوی (چه هلته د تلو آرزو وُکړی).

---

[98] دا د هغوئ په دنیا پرستۍ باندې یو نرم او معمولی اعتراض دے. د کومو خلقو چه واقعی د آخرت سره مینه وی هغه به د دنیا په نه مری او نه د مرګ نه یریږی. خو د یهودیانو حال د دے نه بدل وُو او اوس هم بدل دے.

وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِالظّٰلِمِيْنَ ﴿٩٥﴾ وَلَتَجِدَنَّهُمْ اَحْرَصَ النَّاسِ عَلٰى حَيٰوةٍ ۚ وَمِنَ الَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا ۚ يَوَدُّ اَحَدُهُمْ لَوْ يُعَمَّرُ اَلْفَ سَنَةٍ ۚ وَمَا هُوَ بِمُزَحْزِحِهٖ مِنَ الْعَذَابِ اَنْ يُّعَمَّرَ ۗ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِمَا يَعْمَلُوْنَ ﴿٩٦﴾ قُلْ مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّجِبْرِيْلَ فَاِنَّهٗ نَزَّلَهٗ عَلٰى قَلْبِكَ بِاِذْنِ اللّٰهِ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ وَهُدًى وَّبُشْرٰى لِلْمُؤْمِنِيْنَ ﴿٩٧﴾

الله د دې ظالمانو د حال نه ښه خبر دے. ته به اُووينې چه دوی د ټولو خلقو نه زيات په ژوند مئين دی[99]، تر دې پورې چه په دے معامله کښې د مشرکانو نه هم زيات حريصان دی. د دوی هر يو سړے دا غواړی چه زر کاله ژوندے وے، حالانکه دا اُوږده عمر خو هم دوی د عذاب نه نشی وړلے. هر څنګه عملونه چه دوی کوی الله هغه وينی.ع

دوی ته ووايه چه څوک د جبريل سره دښمنی ساتی[100]، هغوی ته دې دا معلومه وی، چه جبريل د الله په حکم سره دا قرآن ستا په زړه باندې نازل کړے دے[101] چه د مخکينو کتابونو تصديق او تائيد کوی[102]، او د مؤمنانو د پاره د هدايت او د کاميابئ زيرے دے[103]

[99] په اصل کښې علیٰ حَيٰوةٍ لفظ استعمال شوے دے چه معنی ئې ده په څه طريقه ژوند. يعنی د هغوی سره صرف د ژوند حرص دے، که هغه هر څنګ ژوند وی که د عزت وی او که د ذلت.

[100] يهوديانو صرف نبی صلی الله عليه وسلم ته او په هغه باندې ايمان راوړونکو ته بد نه وئيل بلکه د خدائے غورے فرښتے جبريل ته بدے هم کنځلے کولے او وئيل به ئې چه هغه زمونږ دښمن دے، هغه د رحمت فرښته نه ده، د عذاب فرښته ده.

[101] يعنی په دا شان ستاسو کنځلے جبريل ته نه دی بلکه د خدائے لوئ ذات ته دی.

[102] مطلب دا دے چه دا کنځلے څکه تاسو کوئ چه جبريل دا قرآن راوړے دے او حال دا دے چه دا قرآن د تورات په تائيد کښې دے. نو ستاسو دا کنځلے تورات ته هم راځی.

[103] په دې کښې دے طرفته نرئ اشاره ده چه اے بے وقوفانو، په اصل کښې ستاسو ناراضګی د هدايت او د نيغې لارې نه خلاف ده. تاسو د هغې صحيح رهنمائئ خلاف جنګيږئ چه که چرے تاسو ئې رهنمائی ومنله، نو ستاسو د پاره د کاميابئ زيرے دے.

مَنْ كَانَ عَدُوًّا لِّلّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَرُسُلِهٖ وَجِبْرِيْلَ وَمِيْكٰلَ فَاِنَّ اللّٰهَ عَدُوٌّ لِّلْكٰفِرِيْنَ ﴿۹۸﴾ وَلَقَدْ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ اٰيٰتٍۭ بَيِّنٰتٍ ۚ وَمَا يَكْفُرُ بِهَآ اِلَّا الْفٰسِقُوْنَ ﴿۹۹﴾ اَوَكُلَّمَا عٰهَدُوْا عَهْدًا نَّبَذَهٗ فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ ؕ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۰۰﴾ وَلَمَّا جَآءَهُمْ رَسُوْلٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ مُصَدِّقٌ لِّمَا مَعَهُمْ نَبَذَ فَرِيْقٌ مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ ۙ كِتٰبَ اللّٰهِ وَرَآءَ ظُهُوْرِهِمْ كَاَنَّهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۰۱﴾ وَاتَّبَعُوْا مَا تَتْلُوا الشَّيٰطِيْنُ عَلٰى مُلْكِ سُلَيْمٰنَ ۚ وَمَا كَفَرَ سُلَيْمٰنُ

(که چیرې دَ جبریل سره دَ دوئ دَ دُشمنۍ دا وجه وي، نو ورته اُووایه چه) څوک دَ الله او دَ هغه دَ فرښتو او دَ هغه دَ رسولا نوا و دَ جبریل او دَ میکائیل دشمنان دي، الله دَ دغه کافرانو دشمن دے موږه تا ته داسے ایا تونه نازل کړي دي چه څو صفا صفا ظاهره ونکی دي. په هغے باندِ دَ عمل کولو نه هغه خلق انکار کوي چه فاسقان دي. ولے همیشه داسے نه ده شوے چه کله هغوئ یوه وعده کړیده، نو په هغوئ کښے دَ یوے نه یوے ډلے ضرور هغه هیره کړیده؟ بلکه اکثر خو یکښے داسے دي، چه په رښتیا سره ئے دَ زړهٔ نه ایمان نه دے راوړے. او چه کله دوئ ته دَ الله دَ طرفنه یو رسول سره دَ داسے کتاب راغے چه هغه دَ دوئ دَ کتاب تصدیق او تائید کوي، نو په دے اهل کتابو کښے یوے ډلے دَ الله کتاب شاته داسے غورزاو کړو لکه چه هغوئ بلهو څه پیژنی نه. او په هغے شیزونو پسے ورپسے شو چه شیطانانو به دَ سلیمانؑ دَ بادشاهۍ په نوم پیش کولو،[۱۰۲] حالانکه سلیمانؑ هیڅرے کفر نه وُو کړے،

[۱۰۲] دَ شیطانو نه مراد پیریانی شیطانان او انسانی شیطانان دواړه کیدے شي. او دلته ترِ دواړو قسمه شیطانان مُراد دي. کله چه په بني اسرائیلو کښ اخلاقي خرابۍ او دمالی تنزل دورا راغے او دَ جهالت، دَ غلامۍ، دَ خوارۍ غریبۍ او دَ ذلت او دَ بد حالۍ په وجه په هغوئ کښے اُوچته حوصلے او کلکے ارادے پاتے نه شولے، نو دَ هغوئ خیال جادو، ټوټکو، تعویذونو بند ونوا ودمونو منترونو طرفته لاړو. هغوئ دَ داسے سوچونو په تلاش کښے شروع شول، چه بغیر دَ کوشش نه او بغیر دَ محنت او مشقت نه صرف په پوکو او منترونو باندِ کار وُشي، دغه

وَلٰكِنَّ الشَّيٰطِيْنَ كَفَرُوْا يُعَلِّمُوْنَ النَّاسَ السِّحْرَ ۗ وَمَآ اُنْزِلَ عَلَى الْمَلَكَيْنِ بِبَابِلَ هَارُوْتَ وَمَارُوْتَ ؕ وَمَا يُعَلِّمٰنِ مِنْ اَحَدٍ حَتّٰى يَقُوْلَآ اِنَّمَا نَحْنُ فِتْنَةٌ فَلَا تَكْفُرْ ؕ فَيَتَعَلَّمُوْنَ

کفر خو هغه شيطانانو کوُ چه خلقو ته به ئے د جادو تعليم ښودلو. هغوئ په هغه څيز پسے ورپسے شو چه په بابل کښے په دوُو فرښتو، هاروت او ماروت باندِ نازل کړے شوے وُو، حالانکه هغه (فرښتو) به چه کله چاته د هغے تعليم ورکولو نو اول به ئے ورته صفا وئيل چه "کورئ، مونږه يو آزميښت يوُ، ته په کفر کښے اخته نه شے"[۱۰۱] بيا به هم دے خلقو

وخت وُو چه شيطانانو دوئ له دوکه ورکول شروع کړل، دوئ ته به ئے وئيل چه د سليمان عليه السلام عظيم الشانه بادشاهي او د هغه لوئ لوئ طاقتونه خو د يو څو نقشونو او منترونو په وجه چليدل، او دغه منترونه او نقشونه مونږه تاسو ته ښايوُ. نو دے خلقو دالوئ نعمت وګنړو او په دے څيزونو پسے ورپسے شول، بيا ئے نه د الله د کتاب سره څه دلچسپي پاتے شوه او نه ئے د داعي حق آواز اوريدلو.

[۱۰۱] د دے آيت په تاويل (معنو) کښے مختلف قولونه دی، خو څو مره چه زما پوهه ده، هغه داده، چه په کومه زمانه کښے د بنی اسرائيلو ټول قوم په بابل کښے قيديان او غلامان شوی وُو، په هغه زمانه کښے به الله تعالیٰ يو دوه فرښتے د انسان په شکل کښے د هغوئ د آزميښت دپاره راليږلی دی. او لکه څنګه چه د لوط قوم ته فرښتے د ښائيستو هلکانو په شکل کښے تلے وے، دغه شان به دے اسرائيلو ته د پيرانو او فقيرانو په شکل کښے تلی وی. او کيدے شي چه دے فرښتو به يو طرفته د جادو کړئ په بازار کښے خپل د جادو کړئ دکان لګولے وی او بل طرفته به ئے د دليل په طور هم يو جادو زده کولو ته دا وئيل چه کوره، مونږ ستاسو دپاره يو آزميښت يوُ، جادو مه زده کوئ او خپل آخرت مه خرابه وئ. خو کيدے شي چه دے خلقو به سره د دے خبره اورې د غه جادو، ټوټکے، نقشونه او تعويذونه زده کول.

د فرښتو په انسانی شکل کښے راتلل او کارکول څه د حيرانتيا خبره نه ده. هغه د الله تعالیٰ بادشاهي کارنده دی. د خپل کار سرته رسولو په باره کښے چه د څه وخت او د څه شکل ضرورت وی هغه اختياره وی. مونږه څه خبر يو چه په دے وخت کښے به زمونږ نه ګيرچاپيره څومره فرښتے په انسانی شکل کښے د کارکولو دپاره راغلی وی. پاتے شوه دا خبره چه فرښتو به يو داسے څيز خلقو ته ښودلو چه هغه په خپله بد وُو، نو د دے دا سے مثال دے لکه چه بغيرة وردئ نه د پوليسو يو سپاهي يو رشوت خورحاکم له نوټونه د رشوت په طور ورکړي او په هغے پسے نښه لګولی وی، او مطلب ئے دا وی چه د رشوت په جُرم کښے ئے په خپله ونيسی او هغه بے عذره شي.

مِنْهُمَا مَا يُفَرِّقُوْنَ بِهٖ بَيْنَ الْمَرْءِ وَزَوْجِهٖ ؕ وَمَا هُمْ بِضَآرِّيْنَ بِهٖ مِنْ اَحَدٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ ؕ وَيَتَعَلَّمُوْنَ مَا يَضُرُّهُمْ وَلَا يَنْفَعُهُمْ ؕ وَلَقَدْ عَلِمُوْا لَمَنِ اشْتَرٰىهُ مَا لَهٗ فِي الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ ؕ وَلَبِئْسَ مَا شَرَوْا بِهٖٓ اَنْفُسَهُمْ ؕ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ (۱۰۲)

د هغوی نه هغه څه زده کول چه په هغې سره د خاوند او د ښځې په مینځ کښې جدائي راولي[۱۰۳] ظاهره خبره وه چه په دے ذریعه هغوی د خدائے د حکم نه بغیر هیچا ته ضرر نه شو رسولے، خو سره د دے به هغوی داسے څیز زده کولو چه پخپله د هغوی د پاره فائده ورکولو والا نه، بلکه نقصان ورکولو والا وو، او هغوی ته دا ښه معلومه وه چه څوک د دے څیز خریدار شو نو د هغوی د پاره په آخرت کښې هیڅ حصه نشته. څومره خراب سامان وو چه د هغې په بدله کښې هغوی ځانونه خرڅ کړل، افسوس چه هغوی ته معلومه وے!

[۱۰۳] مطلب دا دے چه په دے بازار کښې د ټولو نه زیات کوم څیز غوښتلے کیدو هغه دا وو چه څه داسے عمل یا تعویذ ملاؤ شي چه په هغې باندې یو سړے د بل سړي ښځه د هغه نه توری کړي او په خپل ځان باندې عاشقه کړي. دا د هغوی د اخلاقو حال وو چه پکښې ټول خلق اخته وو. د دے نه لاندې مرتبه د بد اخلاقۍ بله یوه هم نشي کیدے چه د یو قوم د خلقو د ټولو نه زیات دلچسپ کار د پردو ښځو سره ستړے جنګول شي او د ټولو نه لویه کامیابي ګڼړي چه په نکاح بندې ښځه د خاوند نه توری کړي او په خپل کور کښې ئے کینوی.

د ښځو او د خاوندانو تعلق په حقیقت کښې د خلقو د کلي والۍ (انساني تمدن) بنیاد دے. که د ښځو او د خاوندانو تعلقات صحیح وو نو د ټولو خلقو کلي والي ژوند به صحیح وي او که د هغوی تعلقات خراب وو نو د ټولو خلقو کلي والي ژوند به خراب وي. د دے وجې نه هغه سړے د ټولو نه زیات فساد کونکے دے چه د هغې ونې جرړې پریکوي چه کومه پخپله د دهٔ او د ټول اولسے د ژوندون ذریعه وي. په حدیث کښې راځي چه ابلیس د خپل مرکز نه د زمکې هر کوټ ته خپل کارندهٔ لیږي. بیا هغه کارندهٔ واپس راشي او خپل خپل کارونه اوره وي. څوک وائي: ما فلانے شر جوړ کړو. څوک وائي: ما فلانے وران کار وکړو. خو ابلیس هر یو ته وائي چه تا هیڅ نه دي کړي. بیا یو راشي او وائي چه ما د یو ښځې او خاوند په مینځ کښې جدائي راوستله. د دے په اوریدلو سره ابلیس هغه د سینې سره جوخت کړي او وائي چه کار تا کړے دے. په دے حدیث چه سړے غور وکړي نو په دے خبره سړے ښه پوهه شي چه د بني اسرائیلو د آزمینت د پاره کومې فرښتې رالیږلے شوې وې هغوی د ښځو او د خاوندانو په مینځ کښې د جدائي راوستلو "عمل" هغوی ته ځکه وړاندې کړو چه په اصل کښې هم دا یوه ذریعه وه چه په هغې د هغوی اخلاق ټیک معلومیدے شو.

وَلَوْ اَنَّهُمْ اٰمَنُوْا وَاتَّقَوْا لَمَثُوْبَةٌ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ خَيْرٌ ۭ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۰۳﴾ ع

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقُوْلُوْا رَاعِنَا وَقُوْلُوا انْظُرْنَا وَاسْمَعُوْا ۭ

که چرې هغوئ ایمان او تقوی اختیار کړې وې، نو د الله په دربار کښې چه د هغې کومه بدله ملاویدله، هغه د هغوئ د پاره ډیره بهتره وه. افسوس چه هغوئ خبر وې[۱۰۷] ع

اے مومنانو! رَاعِنَا مه وایئ، بلکه اُنْظُرْنَا وایئ، او خبره په توجه سره[۱۰۸] اورئ،

[۱۰۷] له په دے رکوع کښې او د دے نه پس دے روستو رکوع کښې د نبی صلی الله علیه وسلم مسلمانان ملګرې د هغه شرارتونو نه خبره کړې شوې دی کوم چه د اسلام او د اسلامی دعوت خلاف د یهودیانو د طرفه کیدل، او د هغه شکونو جوابونه ورکړې شوې دی کوم چه به دے خلقو د مسلمانانو په زړونو کښې د راپیدا کولو کوشش کولو، او هغه خاص خاص خبرې بیان کړې شوې دی چه مسلمانانو او یهودیانو به یو بل سره کولے په دے موقع باندې دے خبرے ته خیال پکار دے چه کله نبی صلی الله علیه وسلم مدینے ته ورسید او د مدینے په اطرافو کښې اسلام خوریدل شروع شو، نو یهودیانو به ځائے په ځائے د مسلمانانو په مذهبی بحثونو کښې په جګړه کول، د ا سیده ساده او دینتے خلق به ئے په بے مطلبه بحثونو په شک شوبوا وپه خبره کښې د خبرے راپیدا کولو په مرض کښې اخته کول، او چنبله د نبی کریم صلی الله علیه وسلم په مجلس کښې به ئے د فریب او دوکے او د مکارئ خبرے کولے، او په دا شان ئے خپل ځان د لاندې د ذهنیت خلق ثابتولو۔

[۱۰۸] کله چه به یهودیان د نبی صلی الله علیه وسلم مجلس ته راتلل نو په سلام اچولو کښې او هغے په نورو خبرو کښې به چه څومره کیدې شو نو د خپل زړه براس به ئے ایستلو. په خبرو کښې به ئے دا سے الفاظ وئیل چه دوه مطلبونه به ئے کیدے شول، په زوره به ئے یو څه او وئیل او پټ د ځان سره به ئے بل څه؟ په ظاهره به ئے ادب کولو او پټ به ئے د نبی صلی الله علیه وسلم سپکا ره هر وخت په خیال کښې ساتلو. هلکښې په قرآن کښې د دے د یر مثالونه بیان کړے شوی دی. دلته د یو دا سے لفظ د استعمال نه مسلمانان منع کړے شوې دی چه د هغے دیرے معنے وې. کله چه به نبی صلی الله علیه وسلم خبرے کولے او د خبرو په دوران کښې به یهودیانو به غوښتل چه صبر وکړه، لږ په دے خبره موږ پوهه کړه، نو هغوئ به لفظ رَاعِنَا وئیلو. د دے لفظ ظاهری مطلب خو دا و چه لږ زموږ لحاظ وکړه، یا زموږ خبره دا وره. خو د دے لفظ نور معنے هم راوتلے. مثلاً په عبرانئ ژبه کښې د دے سره یو شان یو لفظ وو چه معنی ئے دا وه چه "ته کوڼ شے، لږ دا دا وره". او په خپله په عربئ ژبه کښې هم د دے یو بله معنی مغرورانه او ناپوهه او بے وقوفه وه. او په خبرو کښې به دا سے موقع کښې وئیلے کید و کله چه به دا مطلب وو چه ته زموږ دا وره، نو موږ به ستا واورو. او ژبه له به ئے لږ تاو ورکړو او د رَاعِینَا به ئے تر جوړ کړو چه معنی ئے دا وه چه "اے زموږ شپونکیه" د دے وجه نه مسلمانانو ته دا حکم وشو چه تاسو د دے لفظ د استعمال نه پرهیز وکړئ، او د دے په ځائے باندې اُنْظُرْنَا وایئ. یعنی موږ ته توجه وکړئ یا لږ موږ پوهه کړئ. بیا الله وفرمائیل چه "خبره په توجه سره اورئ"،

وَلِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۱۰۴﴾ مَا يَوَدُّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ وَلَا الْمُشْرِكِيْنَ اَنْ يُّنَزَّلَ عَلَيْكُمْ مِّنْ خَيْرٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ ؕ وَاللّٰهُ يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيْمِ ﴿۱۰۵﴾ مَا نَنْسَخْ مِنْ اٰيَةٍ اَوْ نُنْسِهَا نَاْتِ بِخَيْرٍ مِّنْهَاۤ اَوْ مِثْلِهَا ؕ اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۱۰۶﴾ اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ لَهٗ مُلْكُ

دا کافران خو دَ دردناک عذاب مستحق دی. کوم خلق چه دَ حق نه انکار کړے دے، که هغه اهلِ کتاب دی او که مشرکان دی، هغوئ هرګز دا نهٔ خوښوی چه ستاسو دَ رب دَ طرفنه په تاسو باندې څهٔ خیر نازل شی، خو الله چه څوک غواړی هغه دَ خپل رحمت دپارهٔ غوره کوی او هغه لوئ فضل والا دے.

مونږ ره چه خپل کوم آیتونه منسوخ کوؤ یا ئے دَ خلقو نه هیر وؤ، نو دَ هغے په ځائے دَ هغے نه غوره یا کم نه کم دَ هغے په شان آیتونه راوړو.[۱۱۰] ولے تاسو په دے نهٔ یئ پوهه چه الله په هر څیز باندې طاقت لری؟ ولے تاسو ته پته نهٔ ده چه دَ زمکے او دَ آسمانونو بادشاهی

یعنی یهودیانو ته بیا بیا دَ دے خبرے ضرورت څکه راځی چه هغوئ دَ نبی خبرے ته توجه نهٔ کوی او دَ رسول دَ تقریر په دوران کښے هغوئ په خپلو خیالاتو کښے مخنتلی وی، خو تاسو له پکار دی چه دَ نبی خبرے په غور سره اورئ چه دَ دے وینا دَ ترتهٔ هیڅ ضرورت نهٔ راځی.

۱۱۰ دا دَ هغے خاص شُبهے جواب دے چه یهودیانو بهٔ دَ مسلمانانو په زړونو کښے دَ اچولو کوشش کولو. دَ هغوئ دا اعتراض وُو چه که دا مخکنی کتابونه دَ الله دَ طرفنه راغلی وی او دا قرآن هم دَ الله دَ طرفنه راغلے دے، نو دَ هغے کتابونو دَ حکمونو په ځائے په دے کښے دا نور حکمونه ولے ورکړے شویدی؟ په مختلفو وختونو کښے مختلف حکمونه دَ یو خدائے دَ طرفنه څنګه کیدے شی؟ بیا ستاسو قرآن دا دعوای کوی چه کوم یهودیانو او عیسایانو دَ خپل تعلیم یو حصه هیره شوله. آخر دا څنګه کیدے شی چه یو تعلیم خدائے چا ته ورکړے وی او هغه دِ دَ حافظانو نه هیر شی؟ دا ټولے خبرے هغوئ دَ دے دپارهٔ نهٔ کولے چه مسلمانان په غور وُکړی بلکه دَ دے دپاره ئے کولے چه مسلمانان په دے شک کښے پریوځی چه دا قرآن دَ الله دَ طرفنه دے او که نهٔ دے؟ دَ دے په جواب کښے الله فرمائی چه زهٔ مالک یم، دا زما اختیار دے چه زهٔ خپل حکم منسوخ کوم او که دَ خلقو نه ئے هیروم. خو کوم څیز چه زهٔ دَ خلقو نه هیره وم او یا ئے منسوخ کوم، دَ هغے په ځائے دَ هغے نه بهتره څیز راوړم او که نهٔ ئی نو دا نوے حکم په خپل ځائے دومره مناسب وی څومره چه اولنی حکم په خپل ځائے مناسب وُو.

السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَمَا لَكُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ مِنْ وَّلِیٍّ وَّ لَا نَصِیْرٍ ﴿۱۰۷﴾ اَمْ تُرِیْدُوْنَ اَنْ تَسْـَٔلُوْا رَسُوْلَكُمْ كَمَا سُئِلَ مُوْسٰی مِنْ قَبْلُ ؕ وَمَنْ یَّتَبَدَّلِ الْكُفْرَ بِالْاِیْمَانِ فَقَدْ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِیْلِ ﴿۱۰۸﴾ وَدَّ كَثِیْرٌ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ لَوْ یَرُدُّوْنَكُمْ مِّنْۢ بَعْدِ اِیْمَانِكُمْ كُفَّارًا ۚۖ حَسَدًا مِّنْ عِنْدِ اَنْفُسِهِمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا تَبَیَّنَ لَهُمُ الْحَقُّ ۚ فَاعْفُوْا وَاصْفَحُوْا حَتّٰی یَاْتِیَ اللّٰهُ بِاَمْرِهٖ ؕ اِنَّ اللّٰهَ

دَ الله ده او دَ هغه نه بغیر داسې څوک ستاسو خبر اخستونکے او ستاسو مدد کونکے نشته؟

آیا تاسو دَ خپل رسول نه هغه شان تپوسونه کول غواړئ لکه څنګه چه دَ دے نه مخکښے دَ موسٰیؑ نه شوی وو؟[۱۱۰] حالانکه چه چا دَ ایمان لار دَ کفر په لار باندې بدله کړه، هغه دَ صحیح لارے نه بے لارے شو. په اهل کتابو کښے ډیر خلق دا غواړی چه په څه طریقه تاسو دَ ایمان نه کفر طرف ته واپس بیا واړه وی. اګرچه حق هغوی ته ښکاره شوے دے خو دَ خپل نفس دَ حسد دَ وجه نه هغوی ستاسو دپاره دا غواړی. دَ دے په جواب کښے تاسو تر هغې پورے دَ معافئ او دَ چشم پوشئ نه کار واخلئ چه الله ﷻ خپله فیصله جاری کړی یقین لرئ

[۱۱۰] یهودیانو به په معمولی خبرو بحثونه کول او قسما قسم خبرے به ئے مسلمانانو ته وړاندې کولے او ورته به ئے وئیل چه دَ خپل نبی نه دا تپوس وکړئ او دا تپوس وکړئ. الله تعالٰی دَ دے نه مسلمانان خبره وی چه په دے معامله کښے په یهودیانو پسے مه ځئ. دَ دے شیز نه نبی صلی الله علیه وسلم خپله هم مسلمانان بیا بیا خبره ول چه مخکښې اُمتونه، دَ قیل وقال دَ خبرو په وجه او په معمولی خبرو کښے دَ جګړو په وجه تباه شوی دی، او تاسو دَ دے نه ځان وساتئ. دَ کومو خبرو چه الله او دَ هغه رسولؐ بحث نه دے کړے دَ هغې په تلاش کښے مه اخته کیږئ. بس چه څه حکم درته کیږی هغه منئ او چه دَ څه نه منع کړے شوئ دَ هغې نه منع شئ، بے کاره خبرے پریږدئ او دَ کار خبرو ته توجه وکړئ.

عَلٰى كُلِّ شَىْءٍ قَدِيْرٌ ﴿١٠٩﴾ وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ ۗ وَمَا تُقَدِّمُوْا لِاَنْفُسِكُمْ مِّنْ خَيْرٍ تَجِدُوْهُ عِنْدَ اللّٰهِ ۗ اِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿١١٠﴾ وَقَالُوْا لَنْ يَّدْخُلَ الْجَنَّةَ اِلَّا مَنْ كَانَ هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰى ۗ تِلْكَ اَمَانِيُّهُمْ ۗ قُلْ هَاتُوْا بُرْهَانَكُمْ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿١١١﴾ بَلٰى ۚ مَنْ اَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَلَهٗٓ اَجْرُهٗ عِنْدَ رَبِّهٖ ۠ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿١١٢﴾ ع

چه الله (تعالیٰ) په هرشیز باندې طاقت لري. مونځ قایموئ او زکوٰة ورکوئ. تاسو چه د آخرت دپاره کومه نیکي ځان له مخکښې لیږئ، هغه به الله سره بیا مومئ. تاسو چه څه کوئ هغه د الله په نظر کښې دي.

دوئ وائي چه هیڅوک به جنت ته نه ځي ترڅو چه هغه یهودي نه وي یا د (عیسایانو د خیال مطابق) عیسائي نه وي. دا د دوئ ارزوګانې دي.[۱۱۳] دوئ ته اووایه چه خپل دلیل پیش کړئ که چرې تاسو په خپله دعوی کښې رښتني یئ. (په اصل کښې نه تاسو خاص خلق یئ او نه بل څوک) حق دا دے چه چا چې خپل ځان د الله فرمان ته وسپارو او عملاً په نیکه لار روان شو، نو د هغې دپاره د دے اجر د خپل رب سره دے او د داسے خلقو دپاره د څه ویرے یا د څه غم هیڅ موقع نشته.

[۱۱۲] یعني د هغوئ د عناد او د حسد په وجه غصه کیږئ مه، خپله حوصله مه بائیلئ، د هغوئ سره په بحثونو، مناظرو او جګړو کولو کښې خپل قیمتي وخت او خپل قدر عزت مه ضایع کوئ، په صبر سره انتظار کوئ چه الله څه کوي. خپل توتونه په فضولیاتو کښې د لګولو ځائے د خدائے په ذکر او په ښه کارونو کښې ولګوئ ځکه چه د خدائے په دربار کښې دا پکار راځي هغه نه.

[۱۱۳] یعني په اصل کښې دا هسے د هغوئ د زړه خواهشات او ارزوګانې دي، خوهغوئ په دا سے طریقه بیانوي چه ته به وایئ چه ګني په رښتیا به داسے وشي.

وَقَالَتِ الْيَهُودُ لَيْسَتِ النَّصٰرٰى عَلٰى شَيْءٍ ۖ وَّقَالَتِ النَّصٰرٰى لَيْسَتِ الْيَهُودُ عَلٰى شَيْءٍ ۙ وَّهُمْ يَتْلُونَ الْكِتٰبَ ؕ كَذٰلِكَ قَالَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ مِثْلَ قَوْلِهِمْ ۚ فَاللّٰهُ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ فِيمَا كَانُوا فِيهِ يَخْتَلِفُونَ ﴿۱۱۳﴾ وَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ مَّنَعَ مَسٰجِدَ اللّٰهِ أَنْ يُّذْكَرَ فِيهَا اسْمُهٗ وَسَعٰى فِي خَرَابِهَا ؕ أُولٰٓئِكَ مَا كَانَ لَهُمْ أَنْ يَّدْخُلُوهَآ إِلَّا خَآئِفِينَ ۬ؕ لَهُمْ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ وَّلَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ

یهودیان وائي چه دَ عیسایانو سره څه نشته. عیسایان وائي چه دَ یهودیانو سره څه نشته ــــــ حالانکه دواړه کتاب لولي ــــــ او دا قسم دعوے هغه خلق هم کوي چه دَ هغوئ سره دَ کتاب علم نشته دے[۱۱۳]. په کومو اختلافاتو کښے چه دوئ اخته دي، دَ هغے فیصله به الله دَ قیامت په ورځ ؤکړي.

او دَ هغه سړي نه به زیات ظالم څوک وي چه دَ الله تعالیٰ په عبادت خانو کښے دَ الله دَ نوم یادَولو نه خلق منع کوي او دَ هغے په وران ولو پسے ورپسے وي؟ دا خلق په دے عبادت خانو کښے دَ قدم ایښودلو قابل نه دي او که چرے دے عبادت خانو ته لاړ هم شي نو چه یره ورسره وي[۱۱۴]. دَ دوئ دپاره په دُنیا کښے شرمندګي ده او په آخرت کښے

[۱۱۳] یعني دَ عربو مشرکان.

[۱۱۴] یعني ځائے دَ دے چه عبادت خانے دَ داسے قسمه ظالمانو خلقو په قبضه او اختیار کښے وي او دوئ دَ هغے سرپرستان وي، پکار دا ده چه اقتدار دَ خدا پرستو او دَ خدائے نه ډیریدونکو خلقو په لاس کښے وي او هغوئ دِ دَ عبادت خانو سرپرستان وي، بیا که چرے دا شریران خلق هلته لاړ هم شي نو چه دا یره ورسره وي چه که شرارت کوؤ نو سزا به خورو ــــــ دلته دَ مکے دَ کافرانو دے ظلم طرف ته هم نزئ اشاره ده چه هغوئ دَ خپل قوم هغه خلق چه اسلام ئے قبول کړے وُو، دَ بیت الله دَ عبادت نه منع کړي وُو.

عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿١١٤﴾ وَلِلَّهِ الْمَشْرِقُ وَالْمَغْرِبُ ۚ فَأَيْنَمَا تُوَلُّوا
فَثَمَّ وَجْهُ اللَّهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ وَاسِعٌ عَلِيمٌ ﴿١١٥﴾ وَقَالُوا اتَّخَذَ اللَّهُ وَلَدًا ۗ
سُبْحَانَهُ ۖ بَل لَّهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۖ كُلٌّ لَّهُ قَانِتُونَ ﴿١١٦﴾
بَدِيعُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۖ وَإِذَا قَضَىٰ أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُن
فَيَكُونُ ﴿١١٧﴾ وَقَالَ الَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ لَوْلَا يُكَلِّمُنَا اللَّهُ أَوْ تَأْتِينَا

لوئ عذاب۔

مشرق او مغرب ټول د الله دی. کوم طرفته چه تاسو مخ کوئ هغه طرفته د الله مخ دے۔[115] الله ډیرے فراخئ والا او هرڅه پیژندونکے دے۔[116]

د دوئ وینا ده چه الله ځان له ځوی ځوے نیولے دے. الله د دے خبرو نه پاک دے. اصل حقیقت دا دے چه په زمکه او په آسمانونو کښے هرڅه د الله دی، ټول د هغه فرمان منونکی دی، هغه د آسمانونو او د زمکے پیدا کونکے دے، او د کومے خبرے چه هغه فیصله کوی نو د هغے د پاره دا حکم وکړی چه "شه" نو بس هغه شی۔

ناپوهه وائی چه الله ځپله زمونږ سره خبرے ولے نه کوی یا یوه نښه ولے مونږ ته

[115] یعنی الله نه په مشرق کښے دے او نه په مغرب کښے دے. هغه د ټولو طرفونو او د هر ځائے مالک دے، لیکن ځپله په یو طرف یا په یو ځائے کښے خاص مقید نه دے. دغه وجه ده چه د هغه د عبادت د پاره د یو طرف یا د یو ځائے مقرر کولو دا مطلب نه دے چه الله هغے طرفته یا په هغے ځائے کښے دے. او نه دا د شر جګړے او د څه بحث کولو خبره ده چه اول تاسو هلته یا هغے طرفته عبادت کولو او اوس تاسو ولے هغه ځائے یا طرف بدل کړو۔

[116] یعنی الله تعالی په خاص ځائے کښے محدود، بخیل او نادار نه دے لکه څنګه چه تاسو په خپل خیال کښے کنړئ، بلکه د خدائے خدائی فراخه ده او د هغه نظر او سخاوت فراخه ده او هغه تر دا علم هم شته چه د هغه کوم بنده په کوم ځائے کښے په کوم وخت کښے او په کوم نیت سره هغه یادوی۔

اٰيَةٌ ۭ كَذٰلِكَ قَالَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ مِّثْلَ قَوْلِهِمْ ۭ تَشَابَهَتْ قُلُوْبُهُمْ ۭ قَدْ بَيَّنَّا الْاٰيٰتِ لِقَوْمٍ يُّوْقِنُوْنَ ﴿١١٨﴾ اِنَّآ اَرْسَلْنٰكَ بِالْحَقِّ بَشِيْرًا وَّنَذِيْرًا ۙ وَّلَا تُسْـَٔلُ عَنْ اَصْحٰبِ الْجَحِيْمِ ﴿١١٩﴾ وَلَنْ تَرْضٰى عَنْكَ الْيَهُوْدُ وَلَا النَّصٰرٰى حَتّٰى تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ ۭ قُلْ اِنَّ

نه راځي؟[117] هم داسې خبرې د دوی نه مخکښې خلقو هم کولې. د دې ټولو (مخکښنیو روستو ګمراهانو) زړونه یو شان[118] دی. د یقین والو د پاره خو مونږه نښې صفا صفا بیان کړې دی.[119] (د دې نه لویه نښه به څه وی چه) مونږه ته د حق علم سره زیرې ورکونکے او یروونکے ولیږلے.[120] او ستا چه کوم خلقو د جهنم سره څان تړلے دے، د هغوی د طرفنه په تا څه ذمه واری نشته او نه به ستانه د هغوی تپوس کیدے شي.

یهودیان او عیسایان به ستا نه ترهغې پورې راضی نه شي ترڅو چه ته د هغوی په طریقه باندې[121] روان نه شې. صفا ورته اووایه چه

[117] د هغوی مطلب دا وو چه اے خدایا، یا خو ته مخپله مونږ ته مخامخ اووایه چه دا زما کتاب دے، او دا زما حکمونه دی او تا سو په دې پسې راروان شئ، یا د بیا مونږ ته داسې نښه ونبودلے شي، چه په هغې سره زمونږ دا یقین راشي چه محمد صلی الله علیه وسلم څه وائي هغه د خدائے د طرفنه دی.

[118] یعنی د ننن زمانے ګمراهانو بو داسې اعتراض او یوه داسې مطالبه نه ده کړې چه هغه مخکښنیو ګمراهانو نه وی پیش کړی. د پخوانۍ زمانے نه تر ننه پورې د ګمراهۍ یو مزاج دے او هغه بار بار د څه یو قسم شک شبې او اعتراضونه او سوالونه راوړی را اړه وی.

[119] "خدائے په خپله زمونږ سره خبرې ولې نه کوی" دا دومره بے مطلبه خبره ده چه د دې جواب ورکولو ته حاجت نه وُو. جواب صرف د دې خبرې ورکړے شوے دے چه مونږ نه نښه ولې نه ښودلے کیږی. او جواب ئے دا دے چه نښې خو بے شماره دی، خو چه څوک منلو ته تیار نه وی هغه ته به آخر کومه نښه سړے ورښائي.

[120] یعنی نورې نښې څه کوې، د ټولو نه ښکاره نښه خو محمد صلی الله علیه وسلم مخپله ده. د هغه د نبوت نه مخکښنی حالات، په کوم قوم او ملک کښې چه هغه پیدا شوے وُو د هغې قوم او د ملک حالات، او په کومو حالاتو کښے چه هغه لوئ شو او څلویښت کاله ئے ژوند تیر کړو، او بیا د نبی جوړیدو نه روستو چه هغه کومه عظیم الشانه کارنامه وکړه، دا ټول داسې صفا نښې دی چه

هُدَى اللّٰهِ هُوَ الْهُدٰى ؕ وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ اَهْوَآءَهُمْ بَعْدَ الَّذِىْ جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ ۙ مَا لَكَ مِنَ اللّٰهِ مِنْ وَّلِىٍّ وَّلَا نَصِيْرٍ ﴿۱۲۰﴾ اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَتْلُوْنَهٗ حَقَّ تِلَاوَتِهٖ ؕ اُولٰٓئِكَ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ ؕ وَمَنْ يَّكْفُرْ بِهٖ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْخٰسِرُوْنَ ﴿۱۲۱﴾



وقف منزل

لارخو بس هغه ده چه الله ښودلی ده. که چرے تا دَ هغے علم نه روستو چه تا ته راغلے دے، دَ هغوئ دَ خواهشاتو پیروی وکړه، نو ستا دپاره دَ الله دَ گرفت نه بچ کولو کښے دوست او مددگار نشته دے. چا له چه مونږ کتاب ورکړے دے، هغوئ هغه په هغه شان لولی لکه څنګ چه دَ هغے دَ ویلو حق دے. هغوئ په هغے باندے دَ زړهٔ نه ایمان راوړی[۱۲۲]. او چا چه دَ هغے سره دَ کفر رویه اختیار کړه هغوئ په اصل کښے نقصان موندونکی دی ع

---

دَ هغے نه روستو دَ نورو تنبو حاجت نه پاتی کیږی۔

[۱۲۱] مطلب دا دے چه دَ هغوئ دَ خفګان وجه خو دا نه ده چه کنی هغوئ په رښتیا حق ګوری او تا هغوئ ته په حق ښکاره کولو کښے څه کمے کړے دے. هغوئ خو په دے وجه ستا نه خفه دی چه تا دَ الله دَ آیاتونو او دَ الله دَ دین سره دَ هغوئ پشان منافقت ولے و نه کړو، او دَ خدا پرستئ په پرده کښے دِ دَ هغوئ پشان خود پرستی ولے و نه کړه، دَ دین اُصول او حکمونه دِ دَ هغوئ پشان دَ خپلو خیالاتو او خواهشاتو مطابق ولے بدل نه کړل، او دَ هغوئ پشان ریا کاری دِ ولے اختیار نه کړه. نو په دے وجه ته دَ هغوئ دَ رضا کولو فکر پریږده، ځکه چه ترڅو تا دَ هغوئ پشان طریقه نه وی اختیار کړی او دَ دین سره دِ دَ هغوئ پشان معامله نه وی کړی، او دَ هغوئ پشان په غلطو عقیدو او غلطو عملونو کښے نه ئے اخته شوے، نو تر هغے پورے دَ هغوئ ستا نه راضی کیدل مشکل دی۔

[۱۲۲] دا دَ اهلِ کتابو نیکانو خلقو ته اشاره ده چه هغوئ په ایماندارئ او په راستئ سره دَ خدائے کتاب لولی. دغه وجه ده چه څه ته دَ الله کتاب حق وائی هغه هغوئ منی چه حق دی۔

---

يٰبَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اذْكُرُوْا نِعْمَتِيَ الَّتِيْٓ اَنْعَمْتُ عَلَيْكُمْ وَاَنِّيْ فَضَّلْتُكُمْ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۲۲﴾ وَاتَّقُوْا يَوْمًا لَّا تَجْزِيْ نَفْسٌ عَنْ نَّفْسٍ شَيْــًٔـا وَّلَا يُقْبَلُ مِنْهَا عَدْلٌ وَّلَا تَنْفَعُهَا شَفَاعَةٌ وَّلَا هُمْ يُنْصَرُوْنَ ﴿۱۲۳﴾

اے بنی اسرائیلو! یاد کړئ زما هغه نعمت چه ما په تاسو باندې کړے وُو، او دا چه ما دُنیا په ټولو قومونو باندې تاسو غوره کړي وئ، او دَ هغې ورځې نه ویریږئ چه څوک به دَ چا هیڅ په کار نه راځي، نۀ به دَ چا دَ طرفه فدیه قبلیدلے شي، نۀ به سفارش چا ته فایده ورکوي، او نۀ به مجرمانو ته څه مدد وررسیدے شي۔

۱۲۳ دَ دے ځائے نه دَ تقریر دویم سلسله شروع کیږي، په دے باندې د پوهیدو دپاره لاندې خبرے نه په ذهن کښے کینول پکار دي:

(۱) دَ حضرت نوحؑ نه روستو حضرت ابراهیمؑ اولنے پیغمبر وُو چه الله تعالیٰ په ټوله دنیا کښے دَ اسلام دَ خوَره ولو دپاره مقرر کړے وُو۔ اول هغه پخپله دَ عراق نه دَ مصر پورے او دَ شام او دَ فلسطین نه را دالله دَ عربو په مختلفو کوټونو کښے ګرځید او خلقو ته ئے دَ الله دَ فرمان منلو (یعنی دَ اسلام) دعوت ورکړو او بیا ئے دَ خپل دے پیغام خورَولو دپاره په مختلفو علاقو کښے خلیفګان مقرر کړل۔ په شرقِ اُردن کښے ئے خپل وراره حضرت لوطؑ په شام او فلسطین کښے ئے خپل ځوے حضرت اسحاقؑ او په عربو کښے د ننه ئے خپل مشر ځوے حضرت اسماعیلؑ مقرر کړلو۔ او بیا ئے دَ الله تعالیٰ په حکم باندې په مکه کښے هغه کور جوړ کړو چه نوم ئے کعبه دے او هم هغه ئے دَ خدائے په حکم دَ دے پیغمبري کار مرکز مقرر کړو۔

(۲) دَ حضرت ابراهیمؑ دَ نسل نه دوه لوئے څانګے جوړے شوے: یو دَ حضرت اسماعیلؑ اولاد چه په عرب کښه پاتے شو۔ دَ قریشو او دَ څینو عربو قبائلو تعلق دَ دے څانګے سره وُو۔ او کومے عرب قبیلے چه دَ نسل په لحاظ سره دَ حضرت اسماعیلؑ دَ اولاد نه نۀ وے خو زیات تر دَ دوئ دَ مذهب نه متاثره هغوئ به هم خپله سلسله دَ دوئ سره تړله۔ بل دَ حضرت اسحاقؑ اولاد، چه پکښے حضرت یعقوبؑ یوسفؑ، موسیٰؑ، داؤدؑ، سلیمانؑ، یحییٰؑ، عیسیٰؑ او نور ډیر پیغمبران علیهم السلام پیدا شول، او لکه څنګه چه دا خبره مخکښے بیان شوې ده چه دَ حضرت یعقوبؑ نوم خو اسرائیل وُو نو دَ دے وجے نه دا ټول نسل دَ بنی اسرائیل په نوم مشهور شو۔ دَ دوئ دَ تبلیغ دَ وجے نه چه کوم قومونو دَ هغوئ دین قبول کړو، هغوئ خو یا ټول په هغوئ کښے د ننه ورننوتل، او یا خو که نسل په لحاظ سره دَ هغوئ نه جدا وُو خو په مذهب کښے دَ هغوئ تابع وُو۔ په دے ځائے چه کله دَ تنزل او دَ لاندې کیدو زمانه راغلله نو اول پکښے یهودیت پیدا شو او بیا پکښے عیسائیت سر را پورته کړو۔

(۳) دَ ابراهیمؑ اصل کار دا وُو چه دَ ټولے دنیا خلقو ته دعوت ورکړي چه دَ الله حکم ومنی او دَ الله دَ طرف نه چه کوم هدایت راغلے دے دَ هغے مطابق ټول انسانان ځان له ځان لره هم او په شریکه هم خپل ژوند جوړ کړي۔ هغه پخپله دَ الله حکم منو، الله چه کوم علم ورکړے وُو دَ هغې مطابق ئے ژوند تیرولو،

په ټوله دنیا کښې ئې د غه علم خورولو او د کوشش ئې کولو چه ټول انسانان د کائنات د بادشاه منونکی شی. د اخدمت وو چه د هغې د پاره هغوئ د ټولې دنیا امام او پیشوا جوړ کړے شوے وو. د هغه نه روستو د امامت دا منصب د حضرت اسحاقؑ او د حضرت یعقوبؑ نسل ته ملاؤ شو او نوم ئې بنی اسرائیل شو. په دے نسل کښې پیغمبران پیدا کیدل، هم دے نسل ته د نیغې لارے علم ورکړے شو او دا خدمت ورحواله کړے شو چه د ټولې دنیا قومونو ته دا نیغه لار ورو ښائی، او دا هغه لوئ نعمت وو چه الله تعالیٰ ئې د دے نسل خلقو ته بار بار وریاده وی. دے نسل د حضرت سلیمانؑ په زمانه کښې بیت المقدس ځان له خپل مرکز جوړ کړو. او ترڅو چه دا نسل د امامت په منصب باندې قایم وو تر هغې پورے بیت المقدس د مسلمانانو قبله وه او د الله طرفته د دعوت مرکز وو.

(۴) په تیرو لسو رکوعګانو کښې الله تعالیٰ بنی اسرائیلو ته د هغوئ تاریخی جرمونه او د هغوئ هغه حالت چه د قرآن د نازلیدلو په وخت کښې وو، بالکل ټیک ټیک پیش کړو او هغوئ ته ئې دا ظاهره کړه چه مونږ تاسو له کوم نعمت درکړے وو، تاسو د هغې هډو قدر و نه کړو، بلکې دا نه چه تاسو د امامت د منصب حق ادا نه کړو بلکه بیخي له هم د حق نه پشا شوئ. او اوس د یو ډیرو لږو نیکانو خلقو نه علاوه ستاسو په ټول امت کښې څه لیاقت او صلاحیت نه دے پاتے شوے.

(۵) د دے نه روستو هغوئ ته اوس دا ظاهره وی چه امامت څه د ابراهیمؑ د نسل میراث نه دے بلکه دا د هغې رښتینې فرما نبرداری نتیجه ده کوم چه زمونږ بنده ابراهیمؑ کړی وه، او د دے امامت حقدار صرف هغه خلق دی، څوک چه بیخي له د ابراهیمؑ په طریقه روان شو او دا کوشش ئې وکړو چه د ټولې دنیا خلق په دے لاره روان شی. خو اوس تاسو دغه طریقه پرېښودلې ده او د دغې خدمت کولو یا قت د کښې نشته، نو د دے وجې نه د امامت منصب ستاسو نه اخستلے کیږی.

(۶) ورسره په اشارو اشارو کښې دا هم ښائی چه غیر اسرائیلی قومونه د موسیٰ او د عیسیٰ علیهما السلام په واسطه ځان د حضرت ابراهیمؑ سره تړی، هغوئ هم ابراهیمی طریقه پرېښودلې ده. دغه شان د عربو مشرکان هم دی چه صرف د ابراهیمؑ او اسماعیل علیهما السلام سره په تعلق باندې او په نسل او نسب باندې فخر کوی، خو اوس د ابراهیمؑ او د اسماعیلؑ د طریقو نه ډیر لرے تلی دی. په دے وجه باندې په دوئ کښې هم څوک د امامت حقدار نه دی.

(۷) بیا دا خبره کیږی چه اوس مونږه د ابراهیمؑ په بل شاخ بنی اسماعیلؑ کښې هغه رسولؐ پیدا کړے دے، چه د هغې د پاره ابراهیمؑ او اسماعیلؑ دعا کړې وه. د هغه طریقه هم هغه ده کومه چه د ابراهیمؑ، اسماعیلؑ، اسحاقؑ، یعقوبؑ او د نورو پیغمبرانو وه. هغه او د هغه امتیان د هغې ټولو پیغمبرانو تصدیق کوی کوم چه د خدائے د طرفنه دنیا ته راغلی دی او د خدائے لارے ته خلق رابلی. نو اوس په دے وجه د امامت حقدار صرف هغه خلق دی څوک چه د دے رسول پسے روان شو.

(۸) د امامت د بدلیدو د اعلان سره قدرتی طور د قبلې د بدلیدو اعلان هم ضروری وو. ترڅو پورے چه د بنی اسرائیلو د امامت دور وو تر هغې بیت المقدس د اسلام مرکز وو او د مسلمانانو قبله هم وه. بیخي له د نبی عربی صلی الله علیه وسلم او د هغه د امتیانو د دغې وخته پورے بیت المقدس قبله وه خو کله چه د بنی اسرائیلو نه امامت منصب واخستلے شو نو د بیت المقدس د مرکز حیثیت بیخي له ختم شو.

وَإِذِ ابْتَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ رَبُّهُ بِكَلِمَاتٍ فَأَتَمَّهُنَّ ۖ قَالَ إِنِّي جَاعِلُكَ لِلنَّاسِ إِمَامًا ۖ قَالَ وَمِن ذُرِّيَّتِي ۖ قَالَ لَا يَنَالُ عَهْدِي الظَّالِمِينَ ﴿١٢٤﴾ وَإِذْ جَعَلْنَا الْبَيْتَ مَثَابَةً لِّلنَّاسِ وَأَمْنًا وَاتَّخِذُوا مِن مَّقَامِ

یاد کړئ کله چه ابراهیم خپل رب په څو خبرو کښې وَآزمائیلو[۱۲۳] او هغهٔ په هغې ټولو کښې پوره وَختلو، نو الله ورته ووئیل: "زهٔ دَ ټولو خلقو دپاره تا پیشوا جوړه وُم"۔ ابراهیم عرض وُکړو: "آیا دا وعده زما د اولاد سره هم ده؟" الله جواب ورکړو: "زما وعده دَ ظالمانو سره تعلق نهٔ لري[۱۲۵]"۔

او دا (یاد کړئ) چه مونږ دا کور (کعبه) دَ خلقو دپاره مرکز او دَ امن ځائے ګرځولے وُو او خلقو ته مو دا حکم کړے وُو

دَ دے وجه نه دا اعلان وُشو چه اوس دَ الله دَ دین مرکز هغه ځائے دے دَ کوم ځائے نه چه دَ دے رسول دعوت شروع شو۔ او په اول کښې خو دَ ابراهیمؑ دَ دعوت مرکز هم دا ځائے وُو نو په دے وجه دَ اهلِ کتابو او دَ مشرکانو بغیر دَ دے نه بله لار نشته چه دا وُمنی، چه دَ قبلے جوړیدلو دپاره زیات حق کعبه دے۔ دَ ضد خبره بیله ده، چه هغوئ حق حق منی او بیا هم اعتراض کوی۔

(۹) کله چه دَ محمد صلی الله علیه وسلم دَ اُمتیانو دَ امامت او دَ کعبه دَ مرکز جوړیدو اعلان وُشو نو دَ هغے نه روستو الله تعالیٰ د نولسم رکوع نه را واخله تر دَ سورة بقرے دَ آخره پورے مسلسل دے اُمت ته هغه هدایات ورکړی دی، چه په هغے باندې هغوئ له عمل کول پکار دی۔

[۱۲۳] دَ ټولو انسانانو دَ امام او دَ رهنما جوړیدلو دپاره چه حضرت ابراهیمؑ دَ کومو سختو ازمینښتونو نه تیر شویدے او ځان ئے دَ امامت اهل ثابت کړے دے دَ هغې ټولو سختو تفصیل په قرآن کښې په مختلفو ځایونو کښې بیان شوے دے۔ حق چه دَ کوم وخت نه هغه ته ښکاره شوے دے دَ هغې وخت نه را واخله ترڅو مرګ پورے دَ هغهٔ ټول ژوند بس قربانی قربانی وه۔ په دُنیا کښې چه انسان دَ څومره څیزونو سره محبت لري، په هغې کښې داسے یو څیز نهٔ وُو چه هغه ابراهیمؑ دَ حق دپاره قربان کړے نهٔ وُو او په دُنیا کښې چه انسان دَ څومره خطرو نه ډریږی، په هغې کښې یو خطره هم داسے نهٔ وه چه هغهٔ ابراهیمؑ دَ حق په لار کښې برداشت کړی نهٔ وه۔

[۱۲۵] یعنی دا وعده ستاسو دَ نیکانو صالحانو اولاد سره تعلق لري۔ ستاسو په اولاد کښې چه کوم ظالمان وی دَ هغوئ دپاره دا وعده نهٔ ده۔ دَ دے نه دا خبره ځپله ظاهره شوه چه ګمراه یهودی او مشرک بنی اسماعیل په دے وعده کښې نشی راتلے۔

إِبْرٰهِيمَ مُصَلًّى ۖ وَعَهِدْنَآ إِلٰٓى إِبْرٰهِيمَ وَإِسْمٰعِيلَ أَنْ طَهِّرَا بَيْتِيَ لِلطَّآئِفِينَ وَالْعٰكِفِينَ وَالرُّكَّعِ السُّجُودِ ﴿۱۲۵﴾ وَإِذْ قَالَ إِبْرٰهِيمُ رَبِّ اجْعَلْ هٰذَا بَلَدًا اٰمِنًا وَّارْزُقْ أَهْلَهٗ مِنَ الثَّمَرٰتِ مَنْ اٰمَنَ مِنْهُمْ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ۖ قَالَ وَمَنْ كَفَرَ فَأُمَتِّعُهٗ قَلِيلًا ثُمَّ أَضْطَرُّهٗٓ إِلٰى عَذَابِ النَّارِ ۖ وَبِئْسَ الْمَصِيرُ ﴿۱۲۶﴾

چه ابراهیمؑ په کوم ځائے کښې د عبادت د پاره وَدریږی د هغے ځائے نه مستقل د مونځ ځائے جوړ کړئ، او ابراهیمؑ او اسمٰعیلؑ ته مونږ تاکید کړے وُو چه زما دا کور د طواف او د اعتکاف کونکو او د رکوع او د سجدے کونکو د پاره پاک ساتئ۔[124]

او دا (یاد کړئ) چه ابراهیمؑ دُعا وُکړه: "اے زما ربه، دا دے ښار ته د امن ښار جوړ کړے، او د دے په وسیدونکو کښې چه څوک الله او آخرت مني، هغوئ ته د هر قسم میوے ورکړے"۔[125] په جواب کښې خپل رب وفرمائیل: "او چه چا وُ نه مَنل هغه له به هم د دنیا د لږ ژوند سامان ورکوم، خو آخر به ئے د جهنم عذاب ته راکاږم، او هغه بد ترین ځائے دے"۔

۱۲۴ لے د پاک ساتلو مراد صرف دا نه دے چه د خزلو نه دِ پاک وُساتلے شي. د خدائے د کور اصل پاکی دا ده چه په هغه کښې د خدائے د نوم نه بغیر د بل چا نوم وا نه خستلے شي. چا چه د خدائے په کور کښې د خدائے نه بغیر بل چا ته د مالک، د معبود، د حاجت پوره کوونکي او د فریاد آوریدونکي په حیثیت آواز کړو، هغه په حقیقت کښې د خدائے کور گنده کړو. په دے آیت کښې د قریشو د مشرکانو د هغه جُرم ته یوه نرمه نشان اشاره شوی ده چه دا ظالمان خو د ابراهیمؑ او اسمٰعیلؑ په میراث باندے فخر کوی، خو دوئ د میراث د حق ادا کولو په ځائے اُلټا د هغه حق تباه کوی. د هغه وجه ده چه کومه وعده د ابراهیمؑ سره شوی وه، په د هغه وعده کښې لکه څنګه چه بنی اسرائیل نه راځي، د هغه شان دا مشرکان بنی اسماعیل پکښې هم نه راځي۔

۱۲۵ لے حضرت ابراهیم علیه السلام چه د امامت د منصب په باره کښې کوم تپوسونه کړی وُو، د هغے په جواب کښې ورته وئیلے شوی وُو چه د دغه منصب وعده صرف ستا د نیکانو صالحانو اولاد سره ده، د ظالمانو سره نه ده. نو بیا چه کله حضرت ابراهیمؑ د رزق د پاره دُعا کوله نو د خدائے د دغه فرمان خیال ئے وُساتلو او صرف د مومن اولاد د پاره ئے دُعا وُغوښتله، خو خدائے ئے ورله جواب ورکړو او دا ئے ورته وُوئیل چه دو که نه شے نیک صالح امامت ځان له څیز دے

وَاِذْ يَرْفَعُ اِبْرٰهٖمُ الْقَوَاعِدَ مِنَ الْبَيْتِ وَاِسْمٰعِيْلُ ؕ رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا ؕ اِنَّكَ اَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۱۲۷﴾ رَبَّنَا وَاجْعَلْنَا مُسْلِمَيْنِ لَكَ وَمِنْ ذُرِّيَّتِنَآ اُمَّةً مُّسْلِمَةً لَّكَ ۠ وَاَرِنَا مَنَاسِكَنَا وَتُبْ عَلَيْنَا ۚ اِنَّكَ اَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ ﴿۱۲۸﴾ رَبَّنَا وَابْعَثْ فِيْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْهُمْ يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِكَ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَيُزَكِّيْهِمْ ؕ اِنَّكَ اَنْتَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۱۲۹﴾ وَمَنْ يَّرْغَبُ عَنْ مِّلَّةِ اِبْرٰهٖمَ اِلَّا مَنْ سَفِهَ نَفْسَهٗ ؕ



او یاد کړئ کله چه ابراهیمؑ او اسمٰعیلؑ ددې کور دیوالونه وچتول، نو دُعا به ئې کوله: "اې زمونږه ربه، زمونږه دا خدمت قبول کړې، ته د هر څه اورېدونکې او په هر څه پوهېدونکې یې. اې ربه، مونږ دواړه خپل مسلمانان (فرمانبرداران) جوړ کړه، زمونږ د نسل نه یو داسې قوم راپورته کړه چه ستا فرمان منونکي مسلمانان وي، مونږ ته د خپل عبادت طریقه وښایه، زمونږ ګناهونه مونږ ته معاف کړه، ته ډیر معاف کونکې او رحم کونکې یې. او اې ربه، په دې خلقو کښې د دې خپل قوم نه یو داسې رسول راپورته کړه چه هغوئ ته ستا آیتونه واوروي، هغوئ ته د کتاب او د حکمت تعلیم ورکړي او د هغوئ ژوند پاک او صفا کړي.[۱۲۸] ته ډیر طاقت والا او حکمت والا یې".[۱۲۹]

او س داسې څوک دی چه د ابراهیمؑ د طریقې نه نفرت وکړي؟ د هغه چانه بغیر چه ځان ئې پخپله بیوقوف کړې او جاهل کړې دی، بل څوک دا حرکت کولې شي؟

او د دُنیا رزق ځان له څیز دې. نیک صالح امامت به صرف نیکانو مؤمنانو ته ملاویږي، خو د دُنیا رزق به مؤمنانو او کافرانو ټولو ته ورکړې کیږي. د دې نه دا خبره پخپله معلومه شوه چه که چېرې چا ته د دُنیا رزق ډیر ملاویږي نو هغه د په دې نه دوکه کیږي چه الله ګنې د دۀ نه راضي هم دې او د امامت مستحق هم دې.

[۱۲۸] د پاک او صفا ژوند نه مراد دا دې چه د خلقو خیالات، اخلاق، عادتونه، یو بل سره میل ملاپ، کلې کلوبخي، سیاست، غرض دا چه هر څیز پاک او صحیح شي.

وَلَقَدِ اصْطَفَيْنٰهُ فِي الدُّنْيَا ۚ وَاِنَّهٗ فِي الْاٰخِرَةِ لَمِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۱۳۰﴾ اِذْ قَالَ لَهٗ رَبُّهٗٓ اَسْلِمْ ۙ قَالَ اَسْلَمْتُ لِرَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۳۱﴾ وَوَصّٰى بِهَآ اِبْرٰهٖمُ بَنِيْهِ وَيَعْقُوْبُ ۭ يٰبَنِيَّ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰى لَكُمُ الدِّيْنَ فَلَا تَمُوْتُنَّ اِلَّا وَاَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ﴿۱۳۲﴾ ۭ اَمْ كُنْتُمْ شُهَدَاۗءَ اِذْ حَضَرَ يَعْقُوْبَ الْمَوْتُ ۙ اِذْ قَالَ لِبَنِيْهِ مَا تَعْبُدُوْنَ مِنْۢ بَعْدِيْ ۭ قَالُوْا نَعْبُدُ اِلٰهَكَ وَاِلٰهَ اٰبَاۗىِٕكَ اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ اِلٰهًا

ابراهيمؑ خو هغه سړے دے، چه مونږه په ټوله دُنيا کښے دَ خپل کار دپاره غوره کړے وُو او په آخرت کښے به هغه په صالحانو کښے شماريږی. دَ هغه دا حال وُو چه کله ورته خپل رب اُووئيل چه مسلمان شه[۱۳۰]، نو زر يے اُووئيل چه "زهٔ دَ کائناتو دَ مالک مُسلمان شوم". هغه خپل اولاد ته په دے طريقه باندِ دَ تللو وصيت کړے وُو او هم دغه وصيت يعقوبؑ خپل اولاد ته وکړو[۱۳۱]. هغه ورته وئيلی وُو چه "زما بچو، الله ستاسو دپاره دا دين[۱۳۲] غوره کړيدے دے. لهٰذا دَ مرګ پورے مسلمانان دَ سيږئ". بيا وَلے تاسو په هغه وخت کښے موجود وئ شه چه کله يعقوبؑ دَ دے دُنيا نه رخصتيدلو؟ هغه دَ مرګ په وخت کښے دَ خپلو بچو نه تپوس وکړو چه، "بچو، زما نه روستو به تاسو دَ چا بندګی کوئ؟" هغوئ ټولو په جواب کښے اُووئيل چه: "مونږ به دَ هغے يو خدائے بندګی کوُو کوم چه ستا او ستاسو مشرانو دَ ابراهيمؑ، دَ اسماعيلؑ او دَ اسحاقؑ خدائے وُو-

[۱۲۹] دَ دے مقصد دا دے چه دَ محمد صلی الله عليه وسلم دُنيا ته راتلل په اصل کښے دَ حضرت ابراهيم عليه السّلام دَ دُعا جواب دے.

[۱۳۰] مُسْلِم: هغه ته وائي چه خدائے ته دَ فرمانبردارئ سر ښکته کړی، خدائے خپل مالک، آقا، حاکم او دَ عبادت لائق وَمنی، چه خپل ځان ټول خدائے ته حواله کړی او دَ خدائے دَ طرفنه چه کوم هدايت راغلے دے دَ هغے مطابق په دُنيا کښے ژوند تير کړي. په دے طريقه عمل کول او دا عقيده ساتل "اسلام" دے او هم دا دَ ټولو هغو پېغمبرانو دين وُو کوم چه دَ دُنيا مختلف ملکونو او قومونو ته راغلی دی.

[۱۳۱] دَ حضرت يعقوبؑ ذکر ئے پکښے خاص طور ځکه وکړو چه بنی اسرائيل دَ دهٔ اولاد وُو.

[۱۳۲] دين، يعنی دَ ژوند تيرولو طريقه، دَ ژوند نظام، هغه آئين چه په هغے باندِ په دُنيا کښے انسان دَ خپلو ټولو فکرونو او دَ خپلو ټولو کارونو بنياد جوړ کړی.

وَّاحِدًا ۚۖ وَّنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ ﴿۱۳۳﴾ تِلْكَ اُمَّةٌ قَدْ خَلَتْ ۚ لَهَا مَا كَسَبَتْ وَلَكُمْ مَّا كَسَبْتُمْ ۚ وَلَا تُسْـَٔلُوْنَ عَمَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۳۴﴾ وَقَالُوْا كُوْنُوْا هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰى تَهْتَدُوْا ؕ قُلْ بَلْ مِلَّةَ اِبْرٰهٖمَ حَنِيْفًا ؕ وَمَا

او موږ به هم د هغه مسلمانان يو"[۱۳۳]

هغه خوځه خلق وو، چه تېر شول. څه چه هغوئ کټلي، هغه د هغوئ دپاره دي او څه چه تاسو کټئ هغه به ستاسو دپاره وي. ستاسو نه به دا تپوس نه کېږي چه هغوئ څه کول.[۱۳۴]

يهوديان وائي که يهوديان شوئ نو هله به صحيح لارے ته راشئ. عيسايان وائي که عيسايان شوئ نو هله به در ته هدايت نصيب شي. دوئ ته اُووايه چه "نه دا سے نه ده هر څه پرېږدئ يوه د ابراهيم طريقه ده.

[۱۳۳] په بائبل کښے د حضرت يعقوبؑ د وفات حال ډير په تفصيل سره ليکلے شوے دے، خو د دے وصيت پکښے هډو ذکر نشته. البته په تلمود کښے چه د وصيت کوم تفصيل درج دے هغه د ډيره حده پورے د قرآن د بيان سره يو شان دے. په هغے کښے د حضرت يعقوبؑ د خُلے دا الفاظ دي:

"د خپل مالک خدائے بندګي کوئ، هغه به تاسو د ټولو آفتونو نه داسے بچ کړي لکه څنګه چه ستاسو پلا رنيکو نه بچ کوي. ...... د خپلو بچو د خدائے سره محبت پيدا کړئ او د خدائے د حکمونو تعليم ورله ورکړئ چه ژوندئے ډيرشي، ځکه چه خدائے د هغه چا حفاظت کوي چه د حق سره کار کوي او د هغه د لارو باندې ټيک ټيک روان وي." په جواب کښے ورته خپلو بچو اُووئيل: "څه چه را ته تا اُووئيل موږ به د هغے مطابق عمل کوو. خدائے دِ زموږ مل وي." بيا يعقوبؑ اُووئيل: "که چرے تاسو د خدائے د لارے نه اخوا ديخوا نه شولئ نو خدائے به ضرور ستاسو مل وي."

[۱۳۴] يعني که تاسو د هغوئ اولاده يئ خو په حقيقت کښے د هغوئ ستاسو سره څه واسطه نشته. چه تاسو د هغوئ په طريقه باندې نه ځئ نو د هغوئ د نوم اخستلو حق هم تاسو ته نشته. د خدائے په دربار کښے به ستاسو نه دا تپوس نه کېږي چه ستاسو پلا رنيکو څه کول، بلکه دا تپوس به کېږي چه تاسو څه کول.

او دا چه دے فرمائيل چه "څه هغوئ کټلي هغه د هغوئ دپاره دي او څه چه تاسو کټئ هغه به تاسو دپاره وي." نو دا د قرآن د بيان يو خاص انداز دے. موږ چه کوم څيز ته کار يا عمل وايو، قرآن په خپله ژبه کښے هغے ته کسب يا کټه وائي. زموږ د هر کار ښه يا خراب به نتيجه وي، چه د خدائے د خوشحالئ يا د خفګان په شکل کښے به ظاهريږي. د غه نتيجه زموږ کټه ده. د قرآن په نظر کښے اصلي اهميت د دے نتيجے دے، او په دے وجه هغه اکثر زموږ کارو نو ته د "عمل يا د فعل" په ځائے د "کسب" لفظ استعمالوي.

كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۱۳۵﴾ قُوْلُوْٓا اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَمَآ اُنْزِلَ اِلٰٓى اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ وَالْاَسْبَاطِ وَمَآ اُوْتِيَ مُوْسٰى وَعِيْسٰى وَمَآ اُوْتِيَ النَّبِيُّوْنَ مِنْ رَّبِّهِمْ ۚ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ

او ابراهیمؑ د مشرکانو نه نهٔ وو.[۱۳۵] "اے مسلمانانو اُووایئ چه "مونږ ایمان راوړے دے په الله باندې او په هغې هدایت باندې چه مونږ ته نازل شوے دے، او چه ابراهیمؑ، اسماعیلؑ، اسحٰقؑ، یعقوبؑ او د یعقوبؑ اولاد ته نازل شوے وُو، او چه موسیٰؑ او عیسیٰؑ او نورو ټولو پیغمبرانو ته د خپل رب د طرفنه ورکړے شوے وُو. مونږ د هغوئ په مینځ کښې هیڅ فرق

۱۳۵ په دے جواب کښې یوه ښکلے باریکي ده، په هغې باندې د ځان پوهولو دپاره دوه خبرے په خیال کښې ساتئ. یوه دا چه یهودیت او عیسائیت دواړه مذهبونه روستو پیدا شوي دي. "یهودیت" چه د کوم مذهب او د کومو رسمونو او رواجونو نوم دے هغه د مسیح نه مخکښې په دریمه څلورمه صدۍ کښې پیدا شوے دے. او "عیسائیت" چه د کومو عقیدو او مذهبي خیالاتو نوم دے دا خو د مسیحؑ نه هم ډیره موده روستو پیدا شوے دے. اوس دا سوال په خپله پیدا کیږي چه که چرے یهودیت یا عیسائیت د انسان د هدایت دپاره شرط وي، نو حضرت ابراهیمؑ او نور پیغمبران او نیکان خلق چه د دے مذهبونو نه ډیرے صدۍ مخکښې پیدا شوي وُو او دا یهودیان او عیسایان هم دا مني چه هغوئ په هدایت باندې وُو، نو آخر هغوئ دا هدایت د کوم ځائے نه حاصل کړے وُو؟ ښکاره خبره ده چه هغه یهودیت او عیسائیت خو نهٔ وُو. دا خبره په خپله واضحه شوه چه د انسان د هدایت دپاره هغه مذهبي خاصیتونه شرط نهٔ دي چه د هغې په وجه دا یهودیان او عیسایان وغیره په خپله ډیرے ډلے جوړے شوې، بلکه د انسان د هدایت دپاره په هغې نیغه لار تلل شرط دي کومے ته چه صراط مستقیم وائي او په کومه باندې چه هر کله انسان تلے دے نو هدایت ئے موندلے دے.

بله دا چه په خپله د یهودیانو او عیسایانو خپل کتابونه په دے ګواه دي چه ابراهیمؑ د یو الله نه بغیر د بل چا عبادت، پاکوالے، بندګي او اطاعت نهٔ منلو او د هغه تبلیغي کار دا وُو چه د خدائے په صفتونو کښې د الله سره بل څوک شریک نهٔ شي. اوس دا بالکل ظاهره ده چه یهودي او عیسائي مذهبونه دواړه د حضرت ابراهیمؑ د لارے نه بے لارے شوي دي ځکه چه په دواړو مذهبونو کښې د شرک ګډون شوے دے.

مِنْهُمْ ۚ وَنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ ﴿۱۳۶﴾ فَاِنْ اٰمَنُوْا بِمِثْلِ مَآ اٰمَنْتُمْ بِهٖ فَقَدِ اهْتَدَوْا ۚ وَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّمَا هُمْ فِيْ شِقَاقٍ ۚ فَسَيَكْفِيْكَهُمُ اللّٰهُ ۚ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۱۳۷﴾ صِبْغَةَ اللّٰهِ ۚ وَمَنْ اَحْسَنُ مِنَ اللّٰهِ صِبْغَةً ۫

نه کوؤ او موږ د الله مسلمانان یو."

بیا که چرې هغوئ د غه شان ایمان راوړو لکه څنګه چه تاسو راوړے دے، نو په هدایت باندې او که چرې د دے نه ئے مخ واړه وُو، نو صفا خبره ده چه هغوئ په ضد کښے پراته دی. خو اطمینان لرئ چه د هغوئ په مقابله کښے الله ستاسو د حمایت دپاره کافی دے. هغه هر څه اوری او په هر څه باندې پوهه دے.

ورته اووایه چه "د الله په رنګ کښے رنګ شئ.[۱۳۷] د هغه د رنګ نه به بل به رنګ د چا وی؟

[۱۳۶] د پیغمبرانو په منلو کښے د فرق نه کولو مطلب دا دے چه موږ د هغوئ په منلو کښے دا سے فرق نه کوو چه فلانے په حقه وُو او فلانے په حقه نه وُو یا دا چه موږ فلانے منو او فلانے نه منو. دا خو هر چا ته معلومه ده چه د خدائے د طرفه څومره پیغمبران راغلی دی هغوئ ټولو یو صداقت او یوے نیغے لارے ته خلق رابللی دی. نو کوم سړے چه په صحیح معنو کښے حق پرست وی، د هغه دپاره بغیر د دے نه بله لار نشته چه ټول پیغمبران په حقه ومنی. کوم خلق چه یو پیغمبر منی او بل نه منی، هغوئ په حقیقت کښے په هغه پیغمبر پسے هم نه ځی کوم چه هغوئ منی، ځکه چه هغوئ په اصل کښے هغه صراط مستقیم نه دے موندلے کوم چه حضرت موسیٰؑ یا حضرت عیسیٰؑ یا نورو پیغمبرانو خلقو ته ښودلے وُو، بلکه هغوئ صرف د پلار نیکه د پیروئ په وجه یو پیغمبر منی. د هغوئ اصلی مذهب د نسل پرستئ طرفداری ده او د پلار نیکه په پسو سترګو پیروی ده، د یو پیغمبر پیروئ ئے مذهب نه دے.

[۱۳۷] د دے آیت دوه ترجمے کیدے شی، یوه دا چه "موږ د الله رنګ اختیار کړو"، بله دا چه "د الله په رنګ کښے رنګ شئ." د عیسائیت نه مخکښے د یهودیانو دا رواج وُو چه څوک به د هغوئ په مذهب کښے داخل شو نو هغه له به ئے غسل ورکولو او د هغوئ په خیال کښے د دے غسل ورکولو مطلب دا وُو چه د ده ټول ګناهونه لرے شول او ده د ژوندیو نوے رنګ اختیار کړو. روستو دا رواج عیسایانو هم شروع کړو. د د هغوئ اصطباغ یعنی بپتسمه وائی. دا اصطباغ به ئے هغه خلقو له هم ورکولو چه د هغوئ په مذهب کښے به داخل شوا و خپلو بچو له به ئے هم ورکولو. د اصطباغ نه مراد غسل ورکول دی) د دے په حقله ورته قرآن وائی چه په دے رسمی او رواجی رنګ ورکولو کښے څه دی؟ د الله په رنګ کښے رنګ شئ، دا دا سے رنګ دے چه په غسل ورکولو سره پرسړی نه رنګ کیږی بلکه د الله په بندګئ سره پرسړی رنګ کیږی.

وَنَحْنُ لَهٗ عٰبِدُوْنَ ﴿۱۳۸﴾ قُلْ اَتُحَآجُّوْنَنَا فِی اللّٰهِ وَهُوَ رَبُّنَا وَرَبُّكُمْ ۚ وَلَنَآ اَعْمَالُنَا وَلَكُمْ اَعْمَالُكُمْ ۚ وَنَحْنُ لَهٗ مُخْلِصُوْنَ ﴿۱۳۹﴾ اَمْ تَقُوْلُوْنَ اِنَّ اِبْرٰهٖمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ وَالْاَسْبَاطَ كَانُوْا هُوْدًا اَوْ نَصٰرٰى ۗ قُلْ ءَاَنْتُمْ اَعْلَمُ اَمِ اللّٰهُ ۗ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنْ كَتَمَ شَهَادَةً

او مونږ د هغه بندګي کوونکي مخلوق يُو."

اے نبیٔ! دوی ته ووايه چه "آیا تاسو د خدائے په باره کښے زمونږ سره جګړے کوئ؟ حالانکه هغه زمونږ هم رب دے او ستاسو رب هم دے۔[138] زمونږ عملونه زمونږ د پاره دی، او ستاسو عملونه ستاسو د پاره دی، او مونږ خپله بندګي خالص د الله د پاره کوُو۔[139] او که نه تاسو دا وايئ چه ابراهيمؑ، اسماعيلؑ، اسحقؑ، يعقوبؑ او د يعقوبؑ اولاد ټول يهوديان يا عيسايان وُو؟ ورته ووايه چه تاسو زيات علم لرئ که الله؟[140] د هغه سړي نه به بل زيات ظالم څوک وی، چه د هغه په ذمه باندې د الله د طرفنه يو ګواهي وی او د

---

[138] يعني مونږ خو دا وايو چه الله زمونږ د ټولو رب دے او د هغه فرمان منل پکار دی. دا هم څه خبره ده چه په دے باندې تاسو زمونږ سره جګړه کوئ؟ که جګړه کوُو نو مونږ له پکار دی چه جګړه وکړو، تاسو له نه دی پکار، ځکه چه د الله نه بغير بل څوک د بندګئ لائق تاسو جوړه وئ مونږ ده نه جوړه وُو.

د "اَتُحَآجُّوْنَنَا فِی اللّٰهِ" يوه ترجمه دا هم کيدے شی چه "آيا تاسو جګړه زمونږ سره فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ دهٔ؟" د دے ترجمے مطابق به د مطلب دا وی چه که چرے واقعی ستاسو دا جګړه د خدائے د پاره ده او د خپل نفس د پاره نه ده، نو بيا دا ډيره په آسانه حل کيدے شی.

[139] يعني تاسو د خپلو عملونو ذمه وار يئ او مونږ د خپلو عملونو. تاسو که خپله بندګی تقسيم کړې ده او د الله سره مو نور څوک په خدائي کښے شريک کړی دی او د هغوئ عبادت او اطاعت کوئ، نو دا ستاسو خپله خوښه ده، د دے انجام به هم خپله اُوويني. مونږ په زور د دے نه تاسو نه منع کوُو. ليکن مونږ خپله بندګی، اطاعت او عبادت خالص د الله د پاره کوُو. که چرے تاسو دا ومنئ چه مونږ له هم د دے کولو اختيار شته دے، نو بيا به دا جګړه په خپله ختم شی.

[140] دا خبره هغه جاهلانو يهوديانو او عيسايانو ته شوې ده چه واقعی د هغوئ دا خيال وُو چه پيغمبران ټول يهوديان او عيسايان وُو.

---

عِنۡدَهٗ مِنَ اللّٰهِ ؕ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعۡمَلُوۡنَ ﴿۱۴۰﴾ تِلۡكَ اُمَّةٌ قَدۡ خَلَتۡ ۚ لَهَا مَا كَسَبَتۡ وَلَكُمۡ مَّا كَسَبۡتُمۡ ۚ وَلَا تُسۡـَٔلُوۡنَ عَمَّا كَانُوۡا يَعۡمَلُوۡنَ ﴿۱۴۱﴾

سَيَقُوۡلُ السُّفَهَآءُ مِنَ النَّاسِ مَا وَلّٰىهُمۡ عَنۡ قِبۡلَتِهِمُ الَّتِىۡ كَانُوۡا عَلَيۡهَا ؕ قُلۡ لِّلّٰهِ الۡمَشۡرِقُ وَالۡمَغۡرِبُ ؕ يَهۡدِىۡ مَنۡ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسۡتَقِيۡمٍ ﴿۱۴۲﴾ وَكَذٰلِكَ جَعَلۡنٰكُمۡ اُمَّةً وَّسَطًا

هغه پټه کړې؟ ستاسو د کاروِنو نه الله څه ناخبره خو نه دے[۱۴۱] ـــــ هغه څه خلق وُو چه تېر شول. د هغوئ کټه د هغوئ د پاره وه او ستاسو کټه ستاسو د پاره. ستاسو نه به د هغوئ د عملونو په باره کښې تپوس نۀ کېږی"ع .

ناپوهه خلق به ضرور دا وائی چه دا په دوئ څه وَشو، اول چه دوئ کومے قبلے ته مخ کولو د هغے نه یک دم واوړېدل؟ اے نبیؐ دوئ ته ووایه چه "مشرق او مغرب ټول د الله دی. د الله چه چا ته خوښه وی هغه ته سیده لار ښائی"[۱۴۲] او دغه شان خو مونږه ستاسو نه یو "اُمتِ وَسَط" جوړ کړے دے

[۱۴۱] دا خطاب د هغوئ عالمانو ته دے، هغوئ چېله د دے حقیقت نه بے خبره وُو چه موجوده یهودی او عیسائی مذهبونه ډیر روستو پیدا شوی دی، خو بیا هم د هغوئ دا خیال وُو چه حق زمونږ په دلو کښې دے، او عوام به ئے هم په دے دوکه کښے ساتل چه د پیغمبرانو نه ډیر موده روستو د هغوئ عالمانو او صوفیانو چه کومے عقیدے، کومے طریقے او کومے اجتهادی قاعدے جوړې کړې دی، د هغے مطابق په ژوند تیرولو کښے د انسان کامیابی او خلاصے دے. د دے عالمانو نه چه به کله دا تپوس وَشو، چه که دا خبره وی، نو بیا حضرت ابراهیم، اسمٰعیل، اسحٰق، یعقوب وغیره پیغمبرانو علیهم السلام ستاسو کومے ډلے سره تعلق لرلو، نو د دے تپوس د جواب نه به ئے ځان ساتلو، ځکه چه د علم په وجه به هغوئ دا نۀ شو ویلے چه د دے بزرګانو تعلق زمونږ د ډلے سره وُو. لیکن که چرے صفا ئے دا سے ویلے چه دا پیغمبران خو نه یهودیان دی او نه عیسایان، نو بیا خو ئے د سرے دلیل ختمیدلو

[۱۴۲] د هجرت نه روستو په مدینه طیبه کښے نبی صلی الله علیه وسلم د شپاړسو یا اوولسو میاشتو پورے بیت المقدس ته مخ کولو. بیا کعبے طرفته د مخ کولو حکم راغے، د دے تفصیل مخکښے راځی.

[۱۴۳] دا د دے ناپوهانو د اعتراض اولنے جواب دے. د هغوئ سوچ او نظر لنډ وُو، د خاص طرف او د خاص ځائے بندګان جوړ شوی وُو. د هغوئ دا ګمان وُو چه خدائے په یو خاص طرف کښے دے. دا د هغوئ د ناپوهتیا یو اعتراض وُو، د دے وجه نه د ټولو نه روښے د دے اعتراض جواب ورکړے شو چه مشرق او مغرب ټول د الله دی. د یو "طرف" نه د قبلے جوړولو مطلب دا نۀ دے چه الله په هغه طرف

لِّتَكُونُوا شُهَدَاءَ عَلَى النَّاسِ وَيَكُونَ الرَّسُولُ عَلَيْكُمْ شَهِيدًا ؕ

چه تاسو د دنیا په خلقو باندې ګواهان شئ او رسول په تاسو باندې ګواه شي ۱۴۳

کښې دے. کوم خلقو ته چه الله هدایت کړے دے په هغوئ کښې دا انسم تنګ نظري نشته، او د هغوئ دپاره هغه لار فرا بنه ده چه هغوئ په عالمګیر حقیقتونو ته رسیدے شي. (او ګورئ حاشیه ۱۱۵، ۱۱۶)

۱۴۴ دا د محمد صلی الله علیه وسلم د امتیانو د امامت اعلان دے. د لفظ "دغه شان" اشاره دوؤ طرفونو ته ده، د الله د رهنمائي طرفته هم اشاره ده چه د محمد صلی الله علیه وسلم د پیروئ په وجه مؤمنانو ته نیغه لار معلومه شوه او ترقي ئے کوله کوله حتیٰ چه دے مرتبے ته راورسیدل چه "اُمتِ وسط" ترجوړ کړے شو، او د قبلے د بدلید و طرفته ئے هم اشاره ده چه ناپوهانو خو صرف دا دوه طرفونه یو طرفته غرګول ګنړل، خو په اصل کښې د بیت المقدس په ځائے د کعبے نه قبله جوړول دا معنی لري چه الله د بني اسرائیلو نه د پیشوایئ منصب واخستو او اُمتِ محمدؐ ته ئے حواله کړو.

په لفظ "اُمتِ وسط" کښې دومره لویه معنی پرته ده چه په ترجمے سره بل لفظ دغه معنی نشي اداکولے. د اُمت وسط نه مراد یوه داسے اعلیٰ او غوره ډله ده، چه د عدل او د انصاف په لاره باندې ولاړه وي، چه د دنیا په قومونو کښې د صدر حیثیت لري، چه د ټولو سره ئے یو شان د حق او د راستئ تعلق وي، ناروا او ناحقه تعلق ئے د هیچا سره نه وي.

او دا چه ئے وئیلي دي چه تاسوم "اُمتِ وسط" د دے دپاره جوړ کړي یئ چه تاسو په خلقو باندې ګواهان شئ او رسول په تاسو باندې ګواه شي؛ نو د دے مطلب دا دے چه کله په آخرت کښې د ټولو انسانانو نه حساب اخستلے کیږي نو په هغه وخت کښې به رسول په تاسو باندې دا ګواهي کوي چه هغه تاسو ته زما د طرفنه د صحیح فکر کولو، د نیک عمل کولو او د انصاف والانظام قائمولو تعلیم تیک تیک اپوره پوره د رسولے دے او ورسره ئے تاسو ته عملي نمونه هم پیش کړې ده. د دے نه روستو، چونکه تاسو د رسول قائم مقام یئ، نو تاسو به په ټولو انسانانو باندې دا ګواهي کوئ چه رسول تاسو ته څه در رسولي وو هغه تا سو دوئ ته پوره پوره رسولي دي او چه څنګه نمونه رسول تاسو ته پیش کړې وه هغه شان نمونه تا سو دوئ ته پیش کړې ده.

په دے دُنیا کښې چه څوک د خدائے د طرفنه د ګواهئ کولو دپاره مقرر کړے شو، نو دا په حقیقت کښې هغه ته امامت او پیشوائي ورسپارلے شوه، په دے پیشوائي کښې چه څومره فضیلت او عزت دے هغومره پکښې د ذمه وارئ لوئ بوج هم دے. د دے مطلب دا دے لکه څنګه چه رسول الله صلی الله علیه وسلم د خدائے نه یرېدلو، په نیغه روان او د په انصاف قائم وو او د حق ملګرے وو، دغه شان دے اُمت له هم پکار دي چه د ټولے دنیا دپاره یوه نمونه جوړه شي، چه د دوئ قول او عمل ته او د خلقو سره سلوک کولو ته او د دوئ هر څیز ته د دنیا خلق د ګوري او دا ورته معلومه شي چه د خدائے نه یرېده دے ته وائي، صحیح څرګند دا ته وي، انصاف او د حق ملګرتیا خلق دا ته کوي. او د دے دا مطلب هم کیدے شي لکه څنګه چه د خدائے هدایت مونږ ته په رسولو کښې د رسول الله صلی الله علیه وسلم ذمه واري ډیره سخته وه، که هغه

وَمَا جَعَلْنَا الْقِبْلَةَ الَّتِي كُنْتَ عَلَيْهَا إِلَّا لِنَعْلَمَ مَنْ يَتَّبِعُ الرَّسُولَ مِمَّنْ يَنْقَلِبُ عَلَىٰ عَقِبَيْهِ ۚ وَإِنْ كَانَتْ لَكَبِيرَةً إِلَّا عَلَى الَّذِينَ هَدَى اللَّهُ ۗ وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُضِيعَ إِيمَانَكُمْ ۚ

اول چه تاسو کوم طرفته مخ کولو، هغه خو مونږ صرف د دے کتلو د پاره قبله مقرر کړی وه چه څوک په رسول پسے ځی او څوک اُلټا پښا ځی[۱۴۴]. دا کار خو ډیر سخت، خو د هغه خلقو د پاره هیڅ سخت نهٔ وُو چا ته چه الله هدایت نصیب کړے وو. الله به ستاسو دا ایمان هرگز نهٔ ضائع کوی،

پکښے لږه سستی هم کړے ده نو د خدائے په گرفت کښے راتلو، دغه شان دا هدایت ټولے دُنیا ته د رسول زمونږه ذمه داری ده. کچرے مونږ د خدائے په عدالت کښے د دے خبرے گواهی ورنهٔ کړے شوه چه کوم هدایت د الله رسول مونږ ته را رسولے وُو هغه مونږه د ټولے دُنیا انسانانو ته پوره پوره رسولے دے، نو مونږ به په ډیر سخت گرفت کښے راشو، او دا د امامت فخر به راله د د وبال ذریعه جوړه شی. زمونږ د امامت په دوران کښے کوم زمونږ د سستی په وجه څومره غلطے عقیدے او غلط کارونه په دُنیا کښے خوارهٔ شول، او څومره فسادونه او فتنے د خدائے په زمکه کښے راپورته شولے، نو د نورو شریرانو او شیطانانو سره به مونږه هم په گرفت کښے راځو. مونږ نه به دا تپوس کیږی چه کله په دُنیا کښے دا د گناهونو د ظلمونو او د گمراهئ طوفان راپُچت شوے وُو نو تاسو چرته مړهٔ شوی وئ.

[۱۴۴] یعنی د دے دا مقصد وُو چه کوم خلق د جاهلیت یا د وینه یا د خاوره منکر تیا کوی، او کوم خلق د دے پروا نهٔ ساتی او د حقیقت صحیح پیژندگلو کوی. یو طرفته د عربو خلق د خپل وطن او د خپل نسل په فخر کښے اخته وُو، هغوئ ته د عربو کعبه پریښودل او بیت المقدس قبله جوړه ول ډیر گران وُو، دا د هغوئ د قوم پرستئ بُت ماتول وُو. بل طرفته بنی اسرائیل د نسل پرستئ په غرور کښے غرق وُو او خپله د پلارنیکهٔ قبله بدلول ورته مشکل وُو. ښکاره خبره ده چه د کومو خلقو په زړونو کښے د قوم پرستئ او د نسل پرستئ دا خبره وی هغوئ په هغه لاره نهٔ شو تللے په کومه لاره چه د الله رسول دوئ بوتلل غوښتل. نو په دے وجه الله اول بیت المقدس قبله مقرر کړو چه په کومو خلقو کښے عرب قومیت وُو چه هغه د حق پرستو نه بیل شی. او بیا ئے دا قبله پریښوده او کعبه ئے قبله مقرر کړه چه کوم خلق د اسرائیل نسل پرستی کوی هغه هم د حق پرستو نه بیل شی. دغه شان د رسول سره هغه خلق پاتے شو چه د بُت مینه ئے په زړهٔ کښے نه وه صرف د خدائے مینه ئے په زړهٔ کښے وه او صرف د هغهٔ عبادت گذار وُو.

إِنَّ اللَّهَ بِالنَّاسِ لَرَءُوفٌ رَّحِيمٌ ﴿۱۴۳﴾ قَدْ نَرَىٰ تَقَلُّبَ وَجْهِكَ فِي السَّمَاءِ ۖ فَلَنُوَلِّيَنَّكَ قِبْلَةً تَرْضَاهَا ۚ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۚ وَحَيْثُ مَا كُنتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ ۗ

يقين وکړئ چه الله د خلقو په حق کښې ډير مهربانه او رحم والا دے.

دا ستا د مخ بار بار آسمان طرفته وچتيدل موږ ه وينو. نو بس، موږ ه هغه قبلې ته تا اړه وُو کومه چه ستا خوښه ده. مسجدِ حرام طرفته مخ واړه وه. او س چه په کوم ځائے کښې تاسو يئ نو په مانځه کښې مخ هغې طرفته کوئ.[۱۴۶]

[۱۴۶] دا هغه اصل حکم دے چه د قبلې بدلولو په باره کښې شوے وُو. دا حکم د هجرت په دويم کال په زبرګه يا د شوقدر په مياشت کښې نازل شو. د ابن سعد نه روايت دے، هغه وائي چه نبي صلى الله عليه وسلم د بشر بن براء بن معرورؓ کره په دعوت تلے وُو. هلته د ماپښين وخت راغے، نبيؐ خلقوله د ماپښين مونځ ورکولو، دوه رکعتونه شوي وُو او په دريم رکعت کښې د وحي په ذريعه دا آيت نازل شو او هم په دغه وخت کښې نبيؐ او هغه ټولې جمعې د بيت المقدس نه کعبې ته مخ واړه وُو. د دے نه روستو ئے په مدينه کښې او د مدينې په خواؤ شا علاقه کښې د دے عام اعلان وکړو. براء بن عازب وائي چه يو ځائے ته د اعلان آواز په داسے حالت کښې ورسيد وچه خلق په رکوع کښې وُو. د حکم د اوريد لو سره ټول خلق د رکوع په حالت کښې کعبې طرفته واوړيدل. انس بن مالك وائي چه بني سلمه قبيلې ته دا اطلاع په دويمه ورځ د سحر د مانځه په وخت کښې ورورسيده. خلقو يو رکعت کړے وُو چه په غوږو نو کښې ئے دا آواز راغے چه: "خبردار شئ قبله بدله شوی ده او س کعبه قبله ده." د دے په اوريد لو سره ټولو خلقو خپل مخ کعبې ته واړو لو.

بيت المقدس د مدينې نه شمال طرفته دے او کعبه جنوب طرفته ده. او س کوره د قبلې د بدليد و په وجه به امام د مقتديانو نه شاته څي او مقتديان به هم د صفونو ټيک کولو د پاره څه نه څه مزل کوي. دغه وجه ده چه په بعضے روايتونو کښې د دے پوره تفصيل هم ذکر شوے دے.

د دے وينانه چه "ستا د مخ بار بار آسمان طرفته وچتيدل موږه وينو" او دا چه: "موږه هغه قبلې ته تا اړه وُو کومه چه ستا خوښه ده" د دے نه دا خبره صفا معلومه شوله چه د قبلې د بدليد لو د حکم نه مخکښې نبي صلى الله عليه وسلم د دے په انتظار کښې وُو. د هغهؐ خپله دا خيال وُو چه د بني اسرائيلو د امامت دور ختم شوے دے او د دے سره بيت المقدس هم ختم شو. او س اصلي ابراهيمي مرکز طرفته د مخ کولو وخت را غلے دے.

د مسجد حرام معنیٰ ده د حرمت او عزت والا جومات. د دے نه مراد د عبادت هغه ځائے دے چه په مينځ کښې ئے خانه کعبه پرته ده.

وَإِنَّ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتٰبَ لَيَعْلَمُونَ أَنَّهُ الْحَقُّ مِن رَّبِّهِمْ ۗ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا يَعْمَلُونَ ﴿۱۴۴﴾ وَلَئِنْ أَتَيْتَ الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتٰبَ بِكُلِّ آيَةٍ مَّا تَبِعُوا قِبْلَتَكَ ۚ وَمَا أَنتَ بِتَابِعٍ قِبْلَتَهُمْ ۚ وَمَا بَعْضُهُم بِتَابِعٍ قِبْلَةَ بَعْضٍ ۗ وَلَئِنِ اتَّبَعْتَ أَهْوَاءَهُم مِّن بَعْدِ مَا جَاءَكَ مِنَ الْعِلْمِ ۙ إِنَّكَ إِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِينَ ﴿۱۴۵﴾

وقف لازم

کوموخلقو ته چه کتاب ورکړے شوے وو، هغوی ښه پیژنی چه (د قبلې د بدلیدلو) دا حکم د هغوی د خپل رب د طرفنه دے او حق دے، خو د دے باوجود چه هغوی څه کوی الله د هغې نه ناخبره نه دے. که ته دے اهلِ کتابو ته هر څنګه نښه راوړے، خو ممکنه نه ده چه دوی ستا د قبلې پیروی اوکړی او نه ستا دپاره دا ممکنه ده چه ته د هغوی د قبلې پیروی اوکړے او په هغوی کښے یوه ډله هم د بلې ډلې د قبلې پیروی کولو ته تیار نه دی، او کوم علم چه تا ته راغلے دے، د هغې د راتللو نه روستو که چرے تا د هغوی د خواهشاتو پیروی اوکړه نو دا یقینی ده چه ته به په ظالمانو کښے شمار شے[۱۴۵]

کعبے طرفته د مخ کولو مطلب دا نه دے چه که سړے د دنیا په هر کوټ کښے وی نو بالکل د پوزے په سیده کښے د کعبے طرفته مخ کوی. ښکاره خبره ده چه دا سے کول د هر سړی دپاره په هر ځائے کښے او په هر صورت کښے ګران دی. د غه وجه ده چه د کعبے طرفته د مخ کولو حکم شوے دے، او بالکل کعبے ته د سیده کیدو حکم نه دے شوے. د قرآن د ارشاد مطابق خو به سړے ضرور ترمینځه د سپوږمے د کعبے د صحیح طرف معلومولو کوشش کوو، خو دا څه ضروری نه ده چه بالکل کعبے ته سیده طرف د معلوم کړو. چه د کوم طرف په حقله د سړی دا یقین راشی چه دے طرفته کعبه ده نو بس هغه طرفته مونځ کول صحیح دی. او که چرے قبله معلومول مشکل شی، یا قبلے ته مخ کول ګران شی (مثلاً په ګاډی کښے یا په کشتۍ کښے)، نو په کوم طرف باندې چه د قبلې ګمان راشی یا کوم طرفته ورته مخ کول آسان شی، نو هغه طرفته د مونځ کوی. هم دغه شان دومره خبره ده چه که چرے د مانځه په دوران کښے ورته د قبلې صحیح طرف معلوم شی، یا صحیح طرفته مخ کول ورته آسان شی، نو پکار دی چه په مانځه کښے هغے طرفته مخ کړی.

[۱۴۵] مطلب دا دے چه دا خلق د قبلې په باره کښے کوم خبرے کوی د هغې فیصله نه دا سے کیدے شی چه ته دے په دلیلونو سره مطمئن کړے، ځکه چه هغوی ضد او طرفداری کوی او په هیڅ دلیل هغوی د خپلې دلې قبلې پریښودلو ته تیار نه دی. او نه فیصله دا سے کیدے شی چه ته د هغوی قبلے ته واوړے، ځکه چه د هغوی څه یوه قبله خو نه ده چه ته د هغوی قبلے ته واوړے او بیا د قبلې جګړه ختمه شی.

اَلَّذِیۡنَ اٰتَیۡنٰہُمُ الۡکِتٰبَ یَعۡرِفُوۡنَہٗ کَمَا یَعۡرِفُوۡنَ اَبۡنَآءَہُمۡ ؕ وَ اِنَّ فَرِیۡقًا مِّنۡہُمۡ لَیَکۡتُمُوۡنَ الۡحَقَّ وَ ہُمۡ یَعۡلَمُوۡنَ ﴿۱۴۶﴾ اَلۡحَقُّ مِنۡ رَّبِّکَ فَلَا تَکُوۡنَنَّ مِنَ الۡمُمۡتَرِیۡنَ ﴿۱۴۷﴾ وَ لِکُلٍّ وِّجۡہَۃٌ ہُوَ مُوَلِّیۡہَا فَاسۡتَبِقُوا الۡخَیۡرٰتِ ؕ؃ اَیۡنَ مَا تَکُوۡنُوۡا یَاۡتِ بِکُمُ اللّٰہُ جَمِیۡعًا ؕ اِنَّ اللّٰہَ عَلٰی کُلِّ شَیۡءٍ قَدِیۡرٌ ﴿۱۴۸﴾

کوم خلقو ته چه مونږ ه کتاب ورکړے دے، هغوئ هغه ځائے (چه د کوم نه مونږ ه قبله جوړه کړیده) داسے پیژنی لکه څنګه چه خپل اولاد پیژنی، خو په هغوئ کښے یوه ډله سره د پوهے قصدًا حق پټوی. دا بالکل ستا د رب د طرفه یو حق امر دے، نو ته دے په خلقو هرګز په شک کښے نه پریوځے. د هر چا د پاره یو طرف دے چه هغه هغے طرف ته مخ اړه وی. نو تاسو نیکو طرفته مخکښے والے کوئ. په کوم ځائے کښے چه تاسو یئ، الله به تاسو راولی. د هغه د قدرت نه څه څیز بهر نشته.

د هغوئ د پیښے ډلے دی او د هغه ډلے ځان ته قبله دا کمه د یوه ډلے قبلے ته واوړے نو بس یوه ډله به راضی کړے، او د نورو د لوجګړه به پخپل ځائے پاتے شی. او د تولونه لویه خبره داده چه ستا د اکار نه دے چه خلق به رضا کوے او که به نه د هغوئ مخ او که به هغوئ ستا مخی. نه پیغمبر تے ستا کار دا دے، چه مونږ کوم علم تاله درکړے دے په هغے باندے ټینګ د دریږه او د چا پروا مه ساته. او که د خلقو د رضا کولو په فکر کښے د دغے علم نه اخوا دیخوا ورپے نو دا د پیغمبری د شان سره مناسب نه ده، او د دنیا د امامت کوم نعمت چه مونږ درکړے دے دا به د هغے نعمت ناشکری وی.

۱۴۸ہ دا د عربو عامه ژبه ده، چه کوم څیز په یقین سره بیشکه بے شکه پیژنی، نو وائی، چه هغه دا څیز داسے پیژنی لکه چه خپل اولاد پیژنی. یعنی لکه څنګه چه د خپل اولاد په پیژندلو کښے نه دوکه کیږی دغه شان د دے څیز په پیژندلو کښے نه دوکه کیږی. په حقیقت کښے د یهودیانو د عیسایانو عالمان د دے نه بنه خبر وُو چه کعبه ابراهیمؑ جوړه کړی ده، او د هغے نه دیارلس سوه کاله روستو حضرت سلیمانؑ بیت المقدس جوړ کړو او هم د هغه په زمانه کښے قبله مقرر کړے شوله. دا یوه تاریخی واقعه وه او په دے کښے د هغوئ هیڅ شک نه وُو.

---

وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۖ وَإِنَّهُ لَلْحَقُّ مِن رَّبِّكَ ۗ وَمَا اللَّهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُونَ ﴿١٤٩﴾ وَمِنْ حَيْثُ خَرَجْتَ فَوَلِّ وَجْهَكَ شَطْرَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۚ وَحَيْثُ مَا كُنتُمْ فَوَلُّوا وُجُوهَكُمْ شَطْرَهُ لِئَلَّا يَكُونَ لِلنَّاسِ عَلَيْكُمْ حُجَّةٌ إِلَّا الَّذِينَ ظَلَمُوا مِنْهُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِي وَ

او چه په کوم ځائے ورځے هم د هغے ځائے نه خپل مخ (د مانځه په وخت کښے) مسجد حرام طرفته واړوه، ځکه چه دا ستا د رب حقه فیصله ده او الله ستاسو د عملونو نه ناخبره نه دے. او په کوم ځائے چه ورځے نو خپل مخ مسجد حرام ته راګرزوه، او په کوم ځائے کښے چه یئ نو مسجد حرام ته مخ کوئ او مونځ کوئ د پاره د دے چه خلقو ته ستاسو خلاف حجت[150] ملاؤ نشی ——— او چه څوک ظالمان دی د هغوئ ژبه به په هیڅ حال کښے بنده نشی. نو تاسو د هغوئ نه مه بیریږئ، بلکه زما نه بیریږئ ——— او

[149] د اولنئ فقرے او د دویمے فقرے په منځ کښے لږ شان خالی ځائے دے، په دغه خالی ځائے کښے چه اورید ونکے لږ غور فکر وکړی نو مطلب ئے پکښ لے شی. مطلب دا دے چه څوک مونځ کوی خامخا به یو طرفته مخ کوی. خو اصل خیز دغه مخ کول نه دی، بلکه اصل خیز هغه نیکئ دی چه د هغے د حاصلولو د پاره تاسو مونځ کوئ. نو تاسو له پکار دی چه په طرفونو او مقامونو باندې بحث کولو په ځائے د نیکو حاصلولو فکر وکړئ.

[150] یعنی زمونږ دغه حکم پوره پابندی کوئ. هسے نه چه په تاسو کښے څوک د دغے مقرر طرف نه بغیر بل طرفته مونځ وکړی. که په تاسو کښے څوک دا سے اولید لے شو نو ستاسو دشمنان به بیا په تاسو دا اعتراض کوی چه دا څنګه امت وسط دے او دا څنګه د حق پرستئ ګواهان دی، چه دا هم وائی چه دا حکم د الله د طرفنه راغلے دے او بیا د هغه خلاف ورزی هم کوی.

لِاُتِمَّ نِعْمَتِیْ عَلَیْكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَهْتَدُوْنَ ﴿۱۵۰﴾ كَمَاۤ اَرْسَلْنَا فِیْكُمْ رَسُوْلًا مِّنْكُمْ یَتْلُوْا عَلَیْكُمْ اٰیٰتِنَا وَیُزَكِّیْكُمْ وَیُعَلِّمُكُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَیُعَلِّمُكُمْ مَّا لَمْ تَكُوْنُوْا تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۵۱﴾ فَاذْكُرُوْنِیْۤ اَذْكُرْكُمْ وَاشْكُرُوْا لِیْ وَلَا تَكْفُرُوْنِ ﴿۱۵۲﴾ یٰۤاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوا اسْتَعِیْنُوْا بِالصَّبْرِ وَالصَّلٰوةِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ مَعَ

معانقه ۳



۱۵۲ - دَ پاره به دے چه زهٔ په تاسو باندې خپل نعمت پوره کړم[۱۵۱] او په دے امید چه زما دَ حکم په منلو سره به تاسو هغسے دَ فلاح لار بیا مومئ لکه څنګه چه (تاسو ته په دے ځین سره فلاح نصیب شوې ده) مونږ په تاسو کښے خپله ستاسو نه یو رسول راولیږلو، چه تاسو ته زمونږ آیاتونه اوروی ستاسو ژوند پاک او ښائسته کوی، او تاسو ته دَ کتاب او دَ حکمت تعلیم درکوی، او تاسو ته هغه خبرے ښائی چه تاسو ته معلومے نه وے. نو تاسو ما یاد ساتئ، زهٔ به تاسو یاد ساتم، او زما شکر ادا کړئ او دَ نعمتونو ناشکری مه کوئ؟

۱۵۳ - اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، په صبر او په مانځه سره مدد حاصل کړئ. الله دَ

[۱۵۱] دَ نعمت نه مراد هغه امامت او پیشوائی ده چه دَ بنی اسرائیلو نه اغستلی وه او دے اُمت ته حواله کړی وه. چه یو اُمت دَ الله دَ دین دَ کار په وجه دَ ټولے دُنیا دَ قومونو رهنما او پیشوا جوړ شی او دا خدمت ورته حواله شی چه انسانان به دَ خدائے عبادت ته او دَ نیکئ لارے ته رابولی، نو دا په دُنیا کښے دَ هغه اُمت دَ صحیح والی او دَ راستئ لویه فائده ده. دا عهده چه کوم اُمت ته ورکړے شوه، په حقیقت کښے په هغه اُمت باندے الله خپل فضل او انعام پوره کړو. دلته الله دا فرمائی چه دَ قبلے دَ بدلیدلو دا حکم په اصل کښے یوه نښه ده دَ دے خبرے چه الله تاسوله دغه عهده درکړله، نو دا سوله پکار دی چه زمونږ دَ حکم پیروی وکړئ چه هسے نه دَ نافرمانئ په وجه دغه عهده ستاسو نه واغستلے شی. که زما فرمان مومئ نو دا نعمت به په تاسو باندے پوره کړے شی.

[۱۵۲] یعنی دَ دے حکم دَ پیروئ سره دا اُمید ساتئ. دا دَ باد شاهانو په طرز یوه خبره ده. باد شاه که یو نوکر ته دا ووائی چه زمونږ دَ طرف نه دَ فلانئ مهربانئ یا انعام اُمید لرئ، نو بیا هغه نوکر له دا پکار دی چه دَ باد شاه په دے خبره خپل کور کښے خوشحالیانے وکړی او خلق ورته اُمبارکئ ورکړی.

[۱۵۳] دَ امامت دَ عهدے ورکولو نه روستو اوس دے اُمت ته ضروری خبرے ښودلے کیږی. دَ ټولو نه وړومبے ورته دا خبره ښودلے کیدی چه دا څهٔ دَ ګلو نو بستره نهٔ ده چه تاسو پرے سملئ. دا خو یو عظیم الشان او دَ خطرے نه ډک خدمت دے. دَ دے خدمت دَ ذمه واری اغستلو سره به په تاسو

الصّٰبِرِيْنَ ﴿۱۵۳﴾ وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَنْ يُّقْتَلُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتٌ ؕ بَلْ اَحْيَآءٌ وَّلٰكِنْ لَّا تَشْعُرُوْنَ ﴿۱۵۴﴾ وَلَنَبْلُوَنَّكُمْ بِشَيْءٍ مِّنَ الْخَوْفِ وَالْجُوْعِ وَنَقْصٍ مِّنَ الْاَمْوَالِ وَالْاَنْفُسِ وَالثَّمَرٰتِ ؕ وَبَشِّرِ الصّٰبِرِيْنَ ﴿۱۵۵﴾ الَّذِيْنَ اِذَآ اَصَابَتْهُمْ مُّصِيْبَةٌ ۙ قَالُوْٓا

صبر کونکو سرۀ دے. او کوم خلق چه د الله په لار کښے قتل کړے شی، هغوئ ته مړه مه وايئ، دا سے خلق په حقيقت کښے ژوندی دی، خو تاسو ته د هغوئ د ژوند پته نه لګيږی.[۱۵۴] او مونږ به په تاسو باندِ يره ترهه، لوږه، د مال او د سر نقصان او په آمدنو کښے کمے ضرور راولو. او ستاسو آزميښت به پکښے کوو. په دا سے حالاتو کښے چه څوک صبر وکړی، او چه کله په مصيبت راشی، نو وائی چه

ديرمصيبتونه راځی، سخت آزميښتونه به درباندِ کيږی او قسما قسم نقصانات به درباندِ راځی. خو چه کله تاسو د دے مشکلاتو مقابله په صبر او په ټينګ اراده سره وکړو او د خدائے په لار کښے مخکښے روان شولئ، نو بيا د هغے به په تاسو مهربانيانے را ورِيږی.

[۱۵۴] يعنی د دے ذرون خدمت دپاره چه د کوم طاقت ضرورت دے هغه به تاسو ته د دوو څيزونو نه حاصل شی. يو دا چه د صبر صفت په ځان کښے پيدا کړئ. بل دا چه د مونځ په ذريعه خپل ځان مضبوط کړئ. وړاندِ به په مختلفو ځايونو کښے راشی چه د صبر په ذريعه ډيرښه اخلاق صفتونه پيدا کيږی. او په حقيقت کښے صبر د کاميابئ دپاره کنجی ده چه د دے نه بغير يو سړے هم په يو مقصد کښے نشی کاميا بيدلے. دغه شان وړاندِ به د مونځ په باره کښے هم تفصيل راشی چه د دے عظيم الشان کار دپاره مونځ په کومه طريقه مسلمانان تيار وی.

[۱۵۵] د مرګ لفظ او د مرګ خيال په ذهن کښے راوستل د انسان همت او حوصله خرابوی. د غه وجه دا چه مسلمانانو ته او ويلے شو چه د الله په لار کښے شهيد انو ته مړه مه وايئ، هسے نه چه د دے په وجه د مسلمانانو په زړونو کښے د جنګ او د جهاد او د روح وړکولو جذبه کمه شی. د دے په ځائے د مؤمنانو په زړه کښے دا ټينګ يقين ساتی چه کوم سړے د الله په لار کښے سا ورکړی، نو په حقيقت کښے هغه ته هميشه ژوند نصيب شی. دا تصوّر د حقيقت مطابق هم دے او د دے سره په سړی کښے بهادری هم راځی.

إِنَّا لِلَّهِ وَإِنَّا إِلَيْهِ رَاجِعُونَ ﴿١٥٦﴾ أُولَٰئِكَ عَلَيْهِمْ صَلَوَاتٌ مِّن رَّبِّهِمْ وَرَحْمَةٌ ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمُ الْمُهْتَدُونَ ﴿١٥٧﴾ إِنَّ الصَّفَا وَالْمَرْوَةَ مِن شَعَائِرِ اللَّهِ ۖ فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ أَوِ اعْتَمَرَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِ أَن يَطَّوَّفَ بِهِمَا ۚ وَمَن تَطَوَّعَ

مونږ د الله يو او هم د الله طرفته به واپس ځو"[156] نو هغوی ته د خوشحالئ زيرے ورکړه. په هغوی باندې به د خپل رب د طرفنه ډيره مهربانئ وی، د الله رحمت به پرې سورے وی، او هم دغه خلق په نيغه لار روان دی.

بې شکه، صفا و مروه د الله په نښو کښې شامل دی.[157] نو څوک چه د بيت الله حج يا عمره کوی، د هغه د پاره دا څه د ګناه خبره نه ده چه دے دې دواړو غونډو په مينځ کښې سعی وکړی[158] او څوک چه په خپله رضا څه

---

[156] صرف په ژبه دا الفاظ ويل مطلب نه دی، بلکه د زړه نه د دے خبرے قايل کيدل دی چه "مونږ د الله يو". او د الله په لار کښې چه زمونږ څه شيز قربان شو هغه په ټيک ځائے کښې قربان شو، چه د چا شيز وو هم د هغه په کار باندې راغے. او دا چه "مونږ به د الله طرفته واپس ځو"، د دے مطلب دا دے چه په دنيا کښې هميشه د پاره نه شته، هلته به يا روستو خوا مخا به الله ته ځو. نو دا سے ولے نه کوو چه د الله په لار کښې ځان قربان کړو او د الله په دربار کښې حاضر شو. دا د دے نه ډيره بهتره خبره ده چه مونږ د خپل نفس په پالنه کښې لګيا شو او هم په دغه حالت کښې مړه شو.

[157] د ذوالحجه د مياشتے په مقررو ورځو کښې چه د کعبے زيارت کيږی هغے ته حج وائی، او د دغه ورځو نه علاوه په نورو ورځو کښې چه کوم زيارت کيږی هغه ته عمره وائی.

[158] صفا او مروه د مسجد حرام خوا ته دوه غونډئ دی، د دے دواړو غونډو په مينځ کښې منډه وهل د حج د کارونو نه يو کار دے، چه الله تعالیٰ د حج د پاره حضرت ابراهيمؑ ته ښودلے وو. روستو چه بيا کله په مکه کښې او د هغے په خوا و شا علاقو کښې د شرک جاهليت خور شونو په صفا باندې د "اساف" بت او په مروه باندې د "نائله" بت دربار ونه جوړ شو او د هغے نه چارچاپيره طوافونه شروع شول. بيا چه کله د نبی صلی الله عليه وسلم په ذريعه د اسلام رڼا اهل عرب ته رارسيدله نو د مسلمانانو په زړونو کښې دا شک پيدا شو چه دا د صفا او د مروه په مينځ کښې منډه وهل د حج په اصلی کارونو کښې دی او که هسے د شرک د زمانے يو کار دے، هسے نه چه دا سعی هم کښې د شرک يو کار وی. د حضرت عائشهؓ د روايت نه دا معلوميږی چه د مدينے د اوسيدونکو په زړونو کښې د هغه نه د صفا او د مروه په مينځ کښې د منډے وهلو کرکه موجوده وه، ځکه چه دا دوی هغوی

خَيْرًا ۙ فَإِنَّ اللَّهَ شَاكِرٌ عَلِيمٌ ﴿۱۵۸﴾ إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنزَلْنَا مِنَ الْبَيِّنَاتِ وَالْهُدَىٰ مِن بَعْدِ مَا بَيَّنَّاهُ لِلنَّاسِ فِي الْكِتَابِ ۙ أُولَٰئِكَ يَلْعَنُهُمُ اللَّهُ وَيَلْعَنُهُمُ اللَّاعِنُونَ ﴿۱۵۹﴾ إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا وَأَصْلَحُوا وَبَيَّنُوا فَأُولَٰئِكَ أَتُوبُ عَلَيْهِمْ ۚ وَأَنَا التَّوَّابُ الرَّحِيمُ ﴿۱۶۰﴾

وکړي[۱۵۹]، هغه دَ الله په علم کښې دے او الله دَ هغې قدر کونکے دے۔

موږ چه کوم روښانه تعلیمات او هدایات رالیږلي دي او هغه موږ خلقو ته دَ لار ښودَ لو دپاره په خپل کتاب کښې بیان کړي هم دي اوپس دَ هغې نه هغه خوک پټوي نو یقین اُوکړئ چه الله هم په هغوئ باندِ لعنت وائي او ټول لعنت کونکي هم په هغوئ باندِ لعنت لیږي[۱۶۰]۔ البته چه څوک دَ دے کار نه منع شول او دَ خپل عمل اصلاح ئې اُوکړه او چه څه ئې پټول هغه ئې ښکاره بیان کړل، نو زهٔ به هغوی معاف کړم او زهٔ ډیر معاف کونکے او رحم کونکے یم

"مناة" بُت منلو او "اساف" او "نائله" بتان ئې نه منل . دا وجه وه چه کله مسجد حرام قبله مقرر شوه نو دا ضروری وه چه هغه ټولے خبرے صفا شي کومے چه دَ صفا او دَ مروه په باره کښې دَ خلقو په ذهن کښې پرته وے . خلقو ته اُوښیلے شو چه دَ دے دواړو غونډو په منځ کښې منډے وهل دَ حج اصلي کار دے ، او دَ دے ځایونو تقدس او پاکي دَ الله دَ طرفنه ده ، دَ جاهلانو دَ دروغو قصے نه ده .

[۱۵۹] یعنی بنه خبره داده چه دا کار دَ زړهٔ په مینه وُکړئ ، که نۀ نو دَ حکم منلو دپاره ئې خامخا کوئ .

[۱۶۰] دَ یهودي عالمانو دَ ټولو نه لویه ګناه داوه چه هغوئ دَ الله دَ کتاب حکم نۀ خورولو بلکه دَ خپلو بندګانو او دَ مذهبي پیشے دَ خلقو دپاره ئې خاص کړے ؤ، عام خلق خو لا څه کوے چه ځنیله یهودي عوامو ته ئې هم نۀ ښودلو . بیا چه کله دَ عام جهالت په وجه هغوئ بے لارے شول ، نو علماؤ ئې دَ هغوئ دَ اصلاح کوشش اُونۀ کړو، بلکه په عوامو کښې دَ خپل شهرت برقرار ساتلو دپاره په هر بدعت او دَ ګمراهئ په هر کار باندِ خاموش پاتے شول او په خپل قول او عمل باندِ ئې دغه ټولې کارونه جائز کړل . مسلمانانو ته ویلے کیږي چه دَ دا سے قسم کارونو نه ځان ساتئ . دُنیا ته دَ نیغے لارے ښودلو کار چه کوم اُمت ته دَ سپارلے شي نو دَ هغوئ دا فرض وي چه دغه هدایت په دُنیا کښې خور کړي نۀ دا چه دَ بخیل دَ مال پشان ئې پټ کړي .

---

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَمَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ أُولَٰئِكَ عَلَيْهِمْ لَعْنَةُ اللَّهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ ﴿١٦١﴾ خَالِدِينَ فِيهَا ۖ لَا يُخَفَّفُ

چه کومو خلقو کفر عمل[۱۶۱] اختیار کړو او د کفر په حالت کښې مړهٔ شول، په هغوئ باندې د الله او د فرښتو او د ټولو خلقو لعنت دے. د لعنت په دے حالت کښې به هغوئ همیشه وی، نهٔ به

[۱۶۱] د "کفر" اصل معنی پټول دی. د دے نه د انکار معنی پیدا شوه او بیا دا لفظ د ایمان په مقابله کښې استعمالیدل شروع شول. د ایمان معنی منل، او قبلول دی او د دے برخلاف د کفر معنی نهٔ منل او نهٔ قبلول او انکار کول دی. د قرآن په رڼا کښې د کفر د حالت مختلف صورتونه دی:

یو دا چه انسان د سر نه خدائے نهٔ منی، یا د هغهٔ اقتدار اعلیٰ منلو ته تیار نهٔ وی او هغه خپل مالک او معبود او د ټولو کائناتو مالک او معبود نهٔ منی، یا هغه یواځے یو مالک او یواځے بو د عبادت لائق نهٔ منی.

دویم دا چه الله منی خو دا نهٔ منی چه د الله حکمونه او د هغه هدایات یواځے د علم او د قانون خزانه ده.

دریم دا چه دا خبره هم منی چه د الله حکمونه منل پکاردی خو د الله حکمونه چه په کومه ذریعه رارسیدلی دی هغه ذریعه یعنی پیغمبران نهٔ منی.

څلورم دا چه په پیغمبرانو کښې فرق کوی او د خپلے خوښے یا د ضد په وجه څه منی او څه نهٔ منی.

پنځم دا چه پیغمبرانو د خدائے د طرفنه د عقیدے، د اخلاقو او د ژوند د قانون په حقله کوم تعلیمونه بیان کړی دی، هغه ټول یا په هغے کښې څه لږ څیز نهٔ منی.

شپږم دا چه نظریاتی طور خو دا ټول څیزونه منی خو عمل پرے نهٔ کوی او قصداً د الله د حکمونو نه همیشه نافرمانی کوی او په دنیا کښې خپل ژوند په اطاعت نهٔ بلکه په نافرمانئ تیروی.

د فکر او د عمل دا ټولے مختلفے طریقے د الله په مقابله کښې د نافرمانئ او د سرکشئ طریقے دی او په دے کښې هرے طریقے ته قرآن کفر وائی. د دے نه علاوه د قرآن په بعضو ځایونو کښې د کفر معنیٰ د نعمت ناشکری ده او د شکر په مقابله کښې لفظ کفر استعمال کړے شوے دے. د شکر معنیٰ دا ده چه انسان له چا نعمت ورکړے وی، چه د هغهٔ احسان ومنی او د هغهٔ د احسان قدر وکړی او د هغه نعمت د هغهٔ د رضا مطابق استعمال کړی او په زړهٔ کښې د خپل احسان کونکی سره د وفادارئ جذبه ولری. د دے په مقابله کښې کفر یا د نعمت ناشکری دا ده چه سړے یا خو د خپل احسان کونکی احسان نهٔ منی او دغه نعمت د خپل قابلیت یا د بل چا د مهربانئ او د سفارش نتیجه گڼړی، یا د نعمت قدر ونهٔ کړی او هغه بے فایدے ضایع کړی، یا دغه نعمت د هغهٔ د رضا نه خلاف استعمال کړی، یا د هغهٔ د احساناتو باوجود د هغهٔ سره دوکه او بے وفائی وکړی. د دے قسمه کفر ته زمونږ په ژبه کښې عام طور احسان هیرول، نمک حرامی، دوکه بازی او ناشکری وائی.



عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنْظَرُونَ ﴿۱۶۲﴾ وَإِلٰهُكُمْ إِلٰهٌ وَّاحِدٌ ۚ لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ الرَّحْمٰنُ الرَّحِيمُ ﴿۱۶۳﴾ إِنَّ فِي خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ وَاخْتِلَافِ اللَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَالْفُلْكِ الَّتِي تَجْرِي فِي الْبَحْرِ بِمَا يَنْفَعُ النَّاسَ وَمَا أَنْزَلَ اللّٰهُ مِنَ السَّمَاءِ مِنْ مَّاءٍ فَأَحْيَا بِهِ الْأَرْضَ بَعْدَ مَوْتِهَا وَبَثَّ فِيهَا مِنْ كُلِّ دَابَّةٍ ۠ وَّتَصْرِيفِ الرِّيٰحِ وَالسَّحَابِ الْمُسَخَّرِ بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّعْقِلُونَ ﴿۱۶۴﴾

دَ هغوئ په سزا کښې سپکوالے را وستلے شي او نه به هغوئ له نور مهلت ورکړے شي۔ ستاسو خدائے بس یو خدائے دے، دَ هغے رحمٰن او رحیم نه سِوا بل خدائے نشته. (دَ دے حقیقت پیژندلو دپاره که چرے څه دَ نښے نښانے ضرورت وی نو) چه کوم خلق دَ عقل نه کار اخلی، دَ هغوئ دپاره دَ آسمانونو او دَ زمکے په پیدائښت کښے، دَ شپه او ورځ په یو بل پسے مسلسل راتګ په دے کښے، دَ کشتئ چه دَ انسان دَ فائدے څیزونه په دریابونو او سمندرونو کښے وړی راوړی په دے کښے، دَ باران په دے اوبو کښے، چه الله ئے دَ بره نه راوروی بیا په هغے مړه زمکه ژوندئ کوی او دَ دے انتظام په برکت په زمکه کښے دَ هر قسم دَ ساه مخلوق خوروی، دَ هواګانو په دے چلن کښے او په دَ وریځو کښے چه دَ آسمان او دَ زمکے په منځ کښے فرمان منونکی ولاړے دی، بے شمیره نښے دی[۱۶۲]۔

[۱۶۲] یعنی که چرے انسان دَ کائناتو دے کارخانے ته، چه شپه ورځ ئے په سترګو باندې وینی چه روانه ده چلیږی، دے ته دَ څناور په نظرو نه ګوری بلکه دَ عقل نه کار واخلی او په آزاده سوچ او فکر سره په دے ټول نظام غور وکړی، نو دا ټول څیزونه چه دے ئې وینی ګوری دَ دے خبرے دپاره بالکل کافی دی چه دا عظیم الشان نظام دَ یو طاقتور حکیم په حکم چلیږی، ټول اختیارات او اقتدار دَ هغه په لاس کښے دے، په دے انتظام کښے دَ بل چا کل اختیاری مداخلت یا حصه داری نشته، په دے وجه هم دغه یو خدائے په حقیقت کښے دَ ټولو کائناتو خدائے دے دَ هغه نه بغیر دَ بلے هستئ هدو دا اختیار نشته چه دَ هغه سره په خدائئ او په اُلوهیت کښے شریک شي۔

وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّتَّخِذُ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ اَنْدَادًا يُّحِبُّوْنَهُمْ كَحُبِّ اللّٰهِ ؕ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَشَدُّ حُبًّا لِّلّٰهِ ؕ وَلَوْ يَرَى الَّذِيْنَ

(خو داکومے بنے چہ د خدائے پہ یووالی دلالت کوی د دے باوجودهم) څه خلق داسے دی چه د الله نه بغیر بل څوک د هغه مقابله کښے د هغه برابر جوړه وی[۱۶۳] او د هغوئ سره داسے مینه کوی لکه څنګه چه د الله سره مینه پکار ده ——— خوچه په چا کښے ایمان وی هغوئ د ټولو نه زیاته مینه د الله سره لری[۱۶۴] ——— ارمان افسوس دے، چه کوم عذاب به دوئ په سترګو

[۱۶۳] یعنی د خدائی چه کوم صفتونه خاص د الله دپاره دی نو وائی چه په دغه کښے څنے صفتونه د بل چا هم کیدے شی، او د الله تعالیٰ چه په بندګانو باندې څه حقونه دی، هغه ټول حقونه یا په هغے کښے څنے حقونه دوئ خپلو جوړو کړے شوُ خدایانو له ورکوی. مثلاً سبب جوړه ول، حاجت پوره کول، مشکل آسانول، فریاد اوریدل، دُعاګانے قبلول، د پټ او د ښکاره د هر څیز نه خبریدل، دا ټول د الله خاص صفتونه دی. دا حق صرف د یو الله دے چه خلق هغه د ټولو نه لوئ او د برتر طاقت هستی ؤمنی، صرف د هغه بندګی اختیار کړی، د هغه نه خپل حاجتونه ؤغواړی، د امداد دپاره هغه ته آواز وکړی، په هغه بروسه او ساتی، د هغه نه د اُمید و نو طمع او کړی او په پټه او په ښکاره د هغه نه اُویریږی. د غه شان الله د جهانونو بادشاه دے، او د بادشاه په حیثیت دا د الله کار دے چه د خپل رعیت دپاره حلال او حرام مقرر کړی، د رعیت کارا و د رعیت حقونه مقرر کړی، رعیت ته د کولو او د نه کولو کارونه ؤ ښائی، او دا ورته ؤ ښائی چه د الله ورکړے شوی طاقتونه او ذرائع په کومه طریقه استعمال کړی، په کومو کارونو کښے ئے استعمال کړی او د څه مقصد دپاره ئے استعمال کړی. او دا صرف د الله حق دے چه خلق هغه خپل حاکم ؤمنی، د هغه حکم ته قانون ؤوائی، د حکم کولو او د منع کولو اختیارمند هغه ؤمنی، د خپل ژوند د معاملو فیصلے د الله د حکم مطابق وکړی او په نیغه لاره باندې د تللو دپاره الله ته رجوع اوکړی. څوک چه د خدائی ئے د دے صفتونو نه یو صفت هم بل چاله ثابتوی، او د خدائے د حقونو نه یو حق هم بل چاته ورکوی هغه په اصل کښے د الله په مقابله کښے د الله برابر جوړه وی. او دغه شان چه کوم سړے یا یوه ډله د الله په دے صفتونو کښے د یو صفت دعویٰ کوی، او د خدائے په حقونو کښے د یو حق مطالبه د انسانانو نه کوی هغه هم په اصل کښے د خدائے مقابل او برابر جوړیږی خواه که هغه په خپله ژبه د خدائی دعویٰ کوی او که نه کوی.

[۱۶۴] یعنی چه ایمان ئے راوړو نو هغه له پکار دی چه په هر څه کښے د ټولو نه مخکښے د الله رضا لټوی، او په خپل زړه کښے د الله محبت دومره پیدا کړی چه بیا د هغے دپاره د هر څه محبت قربانولے شی.

ظَلَمُوٓا إِذْ يَرَوْنَ الْعَذَابَ ۙ أَنَّ الْقُوَّةَ لِلَّهِ جَمِيعًا ۙ وَأَنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعَذَابِ ﴿١٦٥﴾ إِذْ تَبَرَّأَ الَّذِينَ اتُّبِعُوا مِنَ الَّذِينَ اتَّبَعُوا وَرَأَوُا الْعَذَابَ وَتَقَطَّعَتْ بِهِمُ الْأَسْبَابُ ﴿١٦٦﴾ وَقَالَ الَّذِينَ اتَّبَعُوا لَوْ أَنَّ لَنَا كَرَّةً فَنَتَبَرَّأَ مِنْهُمْ كَمَا تَبَرَّءُوا مِنَّا ۗ كَذَٰلِكَ يُرِيهِمُ اللَّهُ أَعْمَالَهُمْ حَسَرَاتٍ عَلَيْهِمْ ۖ وَمَا هُمْ بِخَارِجِينَ مِنَ النَّارِ ﴿١٦٧﴾



باندې وینې هغه ئن دے ظالمانو ولید لے چه ټول طاقتونه او ټول اختیارات خو د الله په قبضه کښې دی او په سزا ورکولو کښې هم الله ډیر سخت دے. چه بیا کله هغه سزا ورکوی هغه وخت به دا سے حال وی چه په دنیا کښې په کوم مشرپے خلق تلی وی، هغه مشر به د خپلو پیروکارو خلقو نه خان خلاصوی، خوسزا به ورته خامخا ملاویږی او د هغوی ټولے ذریعے او سهبونه به ختمیږی. او کوم خلق چه په دنیا کښې په هغوی پسے روان وُو، هغوی به وائی چه هائے افسوس کچرے یله موقعه مونږ له راکړے کیدے شوه نو مونږ به د دوی نه خپله بیزاری ڈ غمے ښودلی وه لکه څنګه چه ئن دوی زمونږ نه بیزاره کیږی.[۱۲۵] په دے طریقه به الله دے خلقو ته د دوی د دنیا عملونه په دا سے شان ښکاره کوی چه دوی به د ا رمانونو و د ښیمانتیا لاسونه مروړی خو د دُوزخ نه به د وتلو لار نه مومی ع

[۱۲۵] دلته خاص طور د ګمراه کونکو مشرانو ولید رانو انجام او د هغوی د ناپوهه پیروکارو انجام په دے وجه ذکر شوے دے چه د کومے غلطئ په وجه مخکینی اُمتونه بے لارے شوی دی د هغے غلطئ نه مسلمانان خان و ساتی او په خپلو مشرانو او لید رانو کښې نیکان خلق و پیژنی او په غلطو مشرانو پسے د تللو نه خان بچ کړی.

يَا أَيُّهَا النَّاسُ كُلُوا مِمَّا فِي الْأَرْضِ حَلَالًا طَيِّبًا ۖ وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوَاتِ الشَّيْطَانِ ۚ إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُبِينٌ ﴿١٦٨﴾ إِنَّمَا يَأْمُرُكُمْ بِالسُّوءِ وَالْفَحْشَاءِ وَأَنْ تَقُولُوا عَلَى اللَّهِ مَا لَا تَعْلَمُونَ ﴿١٦٩﴾ وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّبِعُوا مَا أَنْزَلَ اللَّهُ قَالُوا بَلْ نَتَّبِعُ مَا أَلْفَيْنَا عَلَيْهِ آبَاءَنَا ۗ أَوَلَوْ كَانَ آبَاؤُهُمْ لَا يَعْقِلُونَ شَيْئًا وَلَا يَهْتَدُونَ ﴿١٧٠﴾ وَمَثَلُ الَّذِينَ كَفَرُوا كَمَثَلِ الَّذِي يَنْعِقُ بِمَا لَا يَسْمَعُ إِلَّا

اے خلقو! پہ زمکہ کښې چه کوم حلال او پاک څیزونه دي هغه خورئ او د شیطان په ښودلو شوو لارو باندې مه ځئ[166] هغه ستاسو ښکاره دښمن دے، تا سو ته د بدئ او د بے حیائی حکم کوي او دا درته وائي چه هغه خبرے هم په الله باندې ورآړوئ د کومو خبرو په حقله چه تا سو ته دا علم نشته چه دا الله وئیلي دي.[167]

کله چه دوئ ته وئیلے شي چه الله کوم حکمونه نازل کړي دي په هغې پسے روان شئ نو په جواب کښې دوئ وائي چه موږ خو به په هغه طریقو پسے ځو په کومو طریقو چه موږه خپل پلاران او نیکونه لیدلي دي.[168] دیره ښه ده! خوکه چرے د دوئ پلارانو او نیکونو د عقل نه کار نه وي اخستے او نیغه لار دے نه وي موندلې نو آیا بیا به هم دوئ په هغوئ پسے ځي؟ دے کومو خلقو چه د خدائے په ښودلے شوي لار باندې د تللو نه انکار کړے دے د دوئ مثال بالکل داسے دے لکه چه یو شپونکے څناورو ته آواز کوي او هغه څناور د هاهو د آواز نه علاوه

[166] یعنی د خوراک څکاک په معامله کښې د خپلو هغو او د جاهلانه رسمونو تړولے پابندئ ماتے کړئ.

[167] یعنی د خپلو خیالي رسمونو او خیالي پابندو په باره کښې دا خیال کول چه دا د خدائے د طرف نه مذهبي کارونه دي، دا په اصل کښې د شیطان لویه کارنامه ده. ځکه چه په حقیقت کښې د دے هیڅ سند نشته چه دا د الله د طرف نه دي.

[168] یعنی د دے خپل خیالي پابندو د پاره د هغوئ سره د دے نه سوا بل هیڅ سند او دلیل نشته چه څه د پاره په دا چه نیکونو هم دغسے روان ده. ناپوهان په دے کښې پراته دي چه کښې په یوه طریقه باندې د تللو د پاره دا دلیل بالکل کافي دے.

دُعَآءً وَّنِدَآءً ۭ صُمٌّۢ بُكْمٌ عُمْيٌ فَهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ﴿۱۷۱﴾ يٰٓاَيُّهَا
الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُلُوْا مِنْ طَيِّبٰتِ مَا رَزَقْنٰكُمْ وَاشْكُرُوْا
لِلّٰهِ اِنْ كُنْتُمْ اِيَّاهُ تَعْبُدُوْنَ ﴿۱۷۲﴾ اِنَّمَا حَرَّمَ عَلَيْكُمُ

بل هیڅ نهٔ اوری.[169] دا کانړه دی، ګونګیان دی، ړانده دی، ځکه ئې خبره په عقل کښې نهٔ راځی.
اے مؤمنانو، که چرے تاسو په حقیقت کښې د الله بندګی کونکی یئ نو کوم پاک څیزونه چه مونږ
تاسو له درکړی دی هغه بے تکلیفه خورئ او د الله شکر وباسئ.[170] د الله د طرف
که څه پابندی په تاسو باندې ده نو هغه دا ده

[169] د دے مثال دوه اړخونه دی. یو دا چه د دے خلقو مثال د هغه بے عقله څناورو دے چه په خپلو شپونکو
پسے روستو روان وی او د هغوی په آواز نو باندې اګر څه حرکت کوی خو په مطلب ئې هیڅ نهٔ پوهیږی. او
بل مطلب ئې دا دے چه کله سړے دوی ته د دعوت او د تبلیغ خبرے کوی نو داسے معلومیږی لکه چه څوک
څناورو ته آواز کوی چه هغوی آواز خو آوری خو په دے نهٔ پوهیږی چه د آواز کونکی څه مطلب دے.
الله تعالیٰ داسے الفاظ استعمال کړی دی چه دا دواړه مطلبونه پکښې راځی.

[170] یعنی که چرے تاسو ایمان راوړے وی او د خدائے قانون منئ، لکه څنګه چه تاسو دعوی کوئ،
نو بیا چه د هندو مذهب عالمانو، د عیسائی مذهب عالمانو، جوګیانو او دنیا پریښودونکو راهبانو او
پخوانیو تاسو پلارانو نیکونو د څان نه کوم د ذات پات او د جاهلیت د زمانے پابندئ ایښودلی دی، هغه
ټولے پابندئ ماتے کړئ. څه چه خدائے حرام کړی دی د هغے نه خو ضرور ځان ساتئ، خو چه کوم څیزونه
الله حلال کړی دی په هغے کښې شک مه کوئ هغه بے منع خورئ څکئ. دے خبرے ته د نبی صلی الله
علیه وسلم دا حدیث هم اشاره کوی. نبیﷺ فرمائی مَنْ صَلّٰی صَلٰوتَنَا وَاسْتَقْبَلَ قِبْلَتَنَا وَاَکَلَ
ذَبِیْحَتَنَا فَذٰلِکَ الْمُسْلِمُ الخ یعنی څوک چه هغه مونځ کوی کوم چه مونږ کوؤ او هغه قبلے ته مخ کوی کوم
ته چه مونږ مخ کوؤ او زمونږ د لاس ذبحه خوری هغه مسلمان دے. مطلب دا دے که یو سړے مونځ
هم کوی او قبلے ته هم مخ کوی خو تر هغه وخته پورے چه اسلام کښې پوره داخل نهٔ دے تر څو چه هغه
د خوراک څښاک په معامله کښې د جاهلیت د وهمونو او پابندونه ځان نهٔ وی خلاص کړے. ځکه
چه د جاهلیت په پابندو باندې ټینګ وسیدل د دے خبرے علامه ده چه لا تراوسه پورے
د ده د بدن د رګونو نه د جاهلیت زهر نهٔ دی وتلی.

الْمَيْتَةَ وَالدَّمَ وَلَحْمَ الْخِنْزِيرِ وَمَا أُهِلَّ بِهِ لِغَيْرِ اللَّهِ ۖ فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَلَا عَادٍ فَلَا إِثْمَ عَلَيْهِ ۚ إِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٧٣﴾ إِنَّ الَّذِينَ يَكْتُمُونَ مَا أَنزَلَ اللَّهُ مِنَ الْكِتَابِ وَيَشْتَرُونَ بِهِ ثَمَنًا قَلِيلًا ۙ أُولَٰئِكَ مَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ إِلَّا النَّارَ

چه مُرداره مهٔ خورئ، دَ وینے او دَ خنزیر دَ غوښے نه ځان ساتئ او هغه څیز مهٔ خورئ چه په هغے باندِ دَ الله دَ نوم نه علاوه دَ بل چا نوم اخستلے شوے وی.[171] هۆ چه کوم سړے مجبوره وی او دَ قانون ماتولو اراده ئے نهٔ وی یا دَ ضرورت نه زیاتے نهٔ کوی، نو که هغه دده څیزونو نه څه وخوری، نو گناه پرِ نشته، الله بخښونکے او رحم کونکے دے.[172]

حق دادے چه کوم خلق هغه حکمونه پټوی چه الله په خپل کتاب کښے نازل کړی دی، او دَ دُنیا په لږه فایدهٔ باندِ هغه قربانوی، هغوئ په اصل کښے په خپلو گېډو کښے اوُر اچوی.[173]

[171] په دے کښے دَ هغه ځناور غوښه هم شامل ده چه دَ خدائے دَ نوم نه علاوه دَ بل چا په نوم باندِ ذبح شوے وی، او هغه خوراک پکښے هم شامل دے چه دَ الله دَ نوم نه علاوه دَ بل چا په نوم باندِ نذر شوے وی. حقیقت دادے که ځناور وی، که غلّه وی یا بل دَ خوراک څه څیز وی، په اصل کښے دَ هغے مالک الله تعالیٰ دے، او الله دغه څیزمونږ له راکړے دے. نو په دے وجه مونږ له پکار دی که دَ نعمت شکر بیه ادا کوُو یا خیرات کوُو یا نذر منو، نو چه صرف دَ الله په نوم ئے کوُو. دَ الله نه بغیر دَ بل چا دَ نوم اخستلو مطلب دادے چه مونږه دَ خدائے په ځائے باندِ یا دَ خدائے سره دَ بل چا لوئی واے هم منو او په بل چا هم دَ نعمت ورکولو یقین لرو.

[172] په دے آیت کښے دَ حرامو څیزونو دَ استعمالو لو دپاره درے شرطونه دی. یو دا چه سړے واقعی مجبور وی. مثلاً دَ لوږے یا دَ تندے نه دَ مرگ خطره وی، یا دَ بیمارئ په وجه دَ مرگ خطره وی او په دے حالت کښے دَ حرام څیز نه علاوه بل څیز نهٔ ملاوېږی. بل دا چه دَ خدائے دَ قانون دَ ماتولو اراده ئے په زړهٔ کښے نهٔ وی. دریم دا چه دَ ضرورت نه زیاتے نهٔ کوی، مثلاً دَ حرام څیز په یو څو نوړو یا په څو څاڅکو یا په یو څو تهونو باندِ که چرے دَ مرگ خطره ورکیدے شی نو چه دَ هغے نه زیات دَ هغے څیز استعمال ئے نهٔ کړی.

[173] مطلب دادے چه په عامو خلقو کښے څومره غلط توهمات خواره شوی دی او غلط رسمونه رِواجونه جوړ شوی دی او دَ بے ځایه پابندو کوے نوے نوے لارے جوړے شوی دی دَ دے ټولو ذمه واری په هغه عالمانو باندِ ده چه هغوئ سره دَ الله دَ کتاب علم وُو لیکن عامو خلقو ته ئے نهٔ رسولو.

وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَلَا يُزَكِّيْهِمْ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۱۷۴﴾ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اشْتَرَوُا الضَّلٰلَةَ بِالْهُدٰى وَالْعَذَابَ بِالْمَغْفِرَةِ ۚ فَمَآ اَصْبَرَهُمْ عَلَى النَّارِ ﴿۱۷۵﴾ ذٰلِكَ بِاَنَّ اللّٰهَ نَزَّلَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ ؕ وَاِنَّ الَّذِيْنَ اخْتَلَفُوْا فِى الْكِتٰبِ لَفِىْ شِقَاقٍ بَعِيْدٍ ﴿۱۷۶﴾ لَيْسَ الْبِرَّ اَنْ تُوَلُّوْا وُجُوْهَكُمْ قِبَلَ الْمَشْرِقِ وَالْمَغْرِبِ وَلٰكِنَّ الْبِرَّ



دَ قیامت په ورځ به الله هرګز دَ هغوئ سره خبری ؤ نه کړي او نه به ئے پاکیزه ؤ ګرځوی،[۱۷۴] او دَ هغوئ دپاره دردناکه سزا ده. دا هغه خلق دی چه دَ هدایت په بدله کښے ئے ګمراهی واخستله او دَ بخشش په بدله کښے ئے عذاب واخستلو. دَ دوئ څه عجیبه حوصله ده چه دَ دوزخ عذاب ته تیښګ دی. دَ دے ټولو وجه دا ده چه الله تعالیٰ خو ټیک ټیک دَ حق مطابق کتاب نازل کړے وُو خو چه کومو خلقو په کتاب کښے اختلافات را ؤ ایستل هغوئ په خپلو جګړو کښے دَ حق نه ډیر لرے لاړل ع

نیکی دا نه ده چه تاسو خپل مخونه مشرق ته کړئ یا مغرب ته،[۱۷۵] بلکه نیکی دا ده چه

او بیا چه کله دَ جهالت په وجه په خلقو کښے غلط طریقے او غلط رواجونه شروع شول نو په هغه وخت کښے هم دے ظالمانو دَ خولے نه غږ نه ایستلو. بلکه ډیرو کښے خپله فائده په دے کښے لیدله چه د الله د کتاب په حکمونو باندِ پرده پرته وی نو ښه ده.

۱۷۴ے دَ پیشواګانو چه دَ خپل ځان په حقله په عامو خلقو کښے کومے دَ دروغو خبرے خورے کړے دی، دا په اصل کښے دَ هغے جواب دے. دا پیشواګان دا کوشش کوی چه دَ خلقو په زړونو کښے دا خبره کینوی چه دوئ ډیر پاک او مقدس خلق دے، چا چه دَ دوئ لمن ؤ نیوله دوئ به دَ هغه سفارش کوی او هغه به په الله باندِ بخښی. او دغه شان دَ ډیرو خلقو دَ هغوئ په حقله دا خیال پیدا شوے هم وُو. دَ دے په جواب کښے الله تعالیٰ فرمائی چه مونږ به هرګز دَ دوئ سره نه مخا مخیږو او نه به دوئ ته پاک او مقدس خلق اُووایو.

۱۷۵ے مشرق ته او مغرب ته طرفونو ته مخ کول ئے هسے دَ مثال په طور وئیلی دی اصلی مقصد دا په ذهن کښے کینول دی چه دَ مذهب یو څو ظاهری رسمونه ادا کول او یو څو خاص مذهبی کارونه کول او د پرهیزګارئ څه خاص شکل جوړه ول هغه حقیقی نیکی نه ده کومه چه دَ الله سره وزن او قدر لری.

مَنْ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَالْمَلٰٓئِكَةِ وَالْكِتٰبِ وَالنَّبِيّٖنَ ۚ وَاٰتَى الْمَالَ عَلٰى حُبِّهٖ ذَوِي الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنَ وَابْنَ السَّبِيْلِ ۙ وَالسَّآئِلِيْنَ وَفِي الرِّقَابِ ۚ وَاَقَامَ الصَّلٰوةَ وَاٰتَى الزَّكٰوةَ ۚ وَالْمُوْفُوْنَ بِعَهْدِهِمْ اِذَا عٰهَدُوْا ۚ وَالصّٰبِرِيْنَ فِي الْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ وَحِيْنَ الْبَاْسِ ؕ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ صَدَقُوْا ؕ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ ﴿۱۷۷﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِصَاصُ فِي الْقَتْلٰى ؕ

سړے پہ الله باندِ او پہ ورځ دَ آخرت باندِ او پہ فرښتو باندِ او دَ الله پہ نازل کړے شوی کتاب باندِ او دَ هغہ پہ پیغمبرانو باندِ دَ زړہ دَ اخلاصہ ایمان راوړی، او دَ الله پہ محبت کښ خپل غورہ مال پہ رشتہ دارانو او یتیمانو باندِ، پہ مسکینانو او مسافرانو باندِ، چہ څوک دَ امداد دپارہ لاس ونیسی پہ هغوئ باندِ او دَ غلامانو پہ آزادولو باندِ خرچ کړی، مونځ قائم کړی او زکوٰۃ ورکړی. او نیکان خلق هغہ دی چہ کلہ وعدہ وکړی نو هغہ پورہ کوی، او دَ غریبئ او دَ مصیبت پہ وخت کښے او دَ حق او دَ باطل پہ جنګ کښے صبر کوی. دا رښتینی خلق دی او هم دا خلق پرهیزګاران دی.

اے هغہ خلقو چہ ایمان مو راوړے دے. ستاسو دپارہ دَ قتل پہ مقدمو کښے دَ قصاص[۱۷۶] حکم لیکلے شوے

[۱۷۶] قِصَاص، یعنی دَ وینے بدلہ، مطلب دا چہ دَ سړی سرہ هغہ کار وکړے شی کوم چہ دۂ دَ بل سرہ کړے وی. خو دَدے دا مطلب نۂ دے چہ قاتل پہ کوم طریقہ سړے وژلے وی هم پہ هغہ طریقہ بہ قاتل او وژلے شی، بلکہ مطلب ئے صرف دا دے چہ دَ روح اخستلو کوم کار دۂ دَ مقتول سرہ کړے دے هغہ بہ دَدۂ سرہ او کړے شی.

اَلْحُرُّ بِالْحُرِّ وَالْعَبْدُ بِالْعَبْدِ وَالْاُنْثٰى بِالْاُنْثٰى ؕ فَمَنْ عُفِیَ لَهٗ مِنْ اَخِیْهِ شَیْءٌ فَاتِّبَاعٌۢ بِالْمَعْرُوْفِ وَاَدَآءٌ اِلَیْهِ بِاِحْسَانٍ ؕ

که آزاد سړي قتل کړے وی نو دَ هغه آزاد سړي نه دِ بدله واخستلے شي، که قاتل غلام وی نو دَ هغه غلام دِ قتل کړے شي، او که ښځه دا جرم وُکړي نو دَ هغے ښځے نه دِ بدله واخستلے شي.[۱۷۷] هو که چرے دَ قاتل سره دَ هغه رُوردَ څه نرمئ کولو دپاره تیار وُشي[۱۷۸]، نو پکار دی چه په ښه طریقه دَ وینے دَ تاوان فیصله وُشي او دَ قاتل دِ پاره ضروري ده چه په راستئ سره دَ وینے تاوان ادا کړي.

[۱۷۷] دَ جاهلیت په زمانه کښے دَ خلقو دا طریقه وه چه دَ یوے ډلے یا دَ یو خاندان سړي به دَ بلے ډلے یا دَ بل خاندان سړے مړ کړو نو دَ مړي دَ طرف خلقو به دَ قاتل دَ ډلے نه دَ خپلے خوښے قیمت اغستلو. صرف دَ مړي په بدله کښے دَ قاتل په مړ کولو دَ هغوئ زړهٔ نه یخیدو. هغوئ به دَ خپل مړي په بدله کښے په سوؤنو خلق مړهٔ کول غوښتل. که چرے دَ هغوئ یو عزت مند سړے به دَ بلے ډلے دَ یو معمولي سړي دلاسه مړ شو نو بیا به دَ هغوئ دَ اصلي قاتل په مړ کولو تسلي نهٔ کیدله، هغوئ به دا غوښتله چه دَ قاتل دَ ډلے نه دِ هم یو داسے معزز سړے مړ کړے شي او که داسے نهٔ وی نو بیا دِ دَ هغے معزز سړي په بدله کښے ډیر سړي مړه کړے شي. او که چرے داسے به وُشوه چه یو عزت مند سړي به یو ادنیٰ سړے مړ کړو نو هغوئ به دا نهٔ خوښوله چه دَ دغے ادنیٰ مړي په بدله کښے دِ دغه عزت مند قاتل مړ کړے شي. دا حالت یوازے دَ پخوانۍ جاهلیت نهٔ وُو، موجوده زمانه کښے چه کوم قومونه ډیر مهذب گنړلے شي، هغوئ اکثر په خپلو سرکاري اعلانونو کښے دا خبره بغیر دَ څه شرم نه دُنیا ته اوره وی چه که چرے زمونږ یو سړے مړ کړے شو نو مونږ به دَ هغے په بدله کښے پنځوس سړي مړه کوؤ. اکثر دا خبرونه مونږ په خپلو غوږونو اورو چه دَ یو سړي په قتل باندے دومره دومره گانړه شوی کسان په گولئ وُویشتلے شو. یو "مهذب" قوم په دے شلمه صدئ کښے دَ خپل یو سړي (سرلي استیک) بدله دَ ټول مصري قوم نه واغستله. بل طرفته دَ دے تش په نوم مهذب قومونو په عدالتونو کښے دا کار کیږي چه که قاتل دَ حاکم قوم سړے وی او مقتول دَ محکوم قوم نه وی نو دَ هغوئ جیان صاحبان دَ قصاص دَ فیصلے نه ځان ساتي. دا خرابئ دی چه دَ دے دَ ختمولو حکم الله تعالیٰ په دے آیت کښے کړے دے. فرمائي چه دَ مړي په بدله کښے دے ته مهٔ گورئ چه قاتل څوک دے او مقتول څوک دے خو صرف او صرف صحیح قاتل مړ کوئ.

[۱۷۸] په ډیره ښکلے طریقه سره ئے دَ "رُور" په ویلو دَ نرمئ سفارش هم کړے دے. مطلب دا دے چه که ستا او دَ بل سړي په مینځ کښے دَ پلار دَ مرګ دوشمنی هم وی خو بیا هم هغه ستا انساني رُور دے. په دے وجه که چرے دَ خپل یو خطا کار رُور په مقابله کښے دَ بدلے اغستلو اراده پریږدے نو دا ستا دَ انسانیت سره ډیره مناسبه ده ——— دَ دے آیت نه دا هم معلومه شوه چه دَ اسلام دَ سزا په قانون کښے دَ قتل پورے دَ لوئ جرم په معامله کښے راضي نامه

ذٰلِكَ تَخْفِيفٌ مِّن رَّبِّكُمْ وَرَحْمَةٌ ۗ فَمَنِ اعْتَدَىٰ بَعْدَ ذٰلِكَ فَلَهُ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿۱۷۸﴾ وَلَكُمْ فِي الْقِصَاصِ حَيَاةٌ يَا أُولِي الْأَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴿۱۷۹﴾ كُتِبَ عَلَيْكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ إِن تَرَكَ خَيْرًا ۖ الْوَصِيَّةُ لِلْوَالِدَيْنِ

دا ستاسو دَ رب دَ طرفه آسانتیا او رحمت دے. دَدے نه روستو هم که چا زیاتے وُکړو[۱۸۰] نو دَ هغه دپاره دردمنه سزا ده ــــــ اے عقل والو! ستاسو دپاره په قصاص کښے ژوندون دے[۱۸۱]. اُمید دے چه تاسو به دَدے قانون دَ خلاف ورزئ نه ځان وُساتئ۔

په تاسو باندِ فرض کړے شوی ده چه کله په تاسو کښے څوک دَ مرګ وخت راشی او دَ هغه نه مال پاتے کیدو، نو دَ مور او پلار او دَ رشته دارانو دپاره دِ په ښه طریقے سره

کیدے شی. دَ مړی وارثانو ته دا حق حاصل دے چه قاتل معاف کړی او چه کله ئے معاف کړو نو بیا دَ عدالت دپاره دا جائز نه دی چه دَ قاتل په مرګ باندِ ټینګار وُکوی. هغه دومره ده که چرے وارثانو قاتل معاف کړو نو قاتل به دَ وینے قیمت ورکوی، لکه څنګه چه په روستو آیت کښے ارشاد شوے دے۔

[۱۷۹] دَ "مَعرُوف" لفظ په قرآن کښے ډیر ځله استعمال شوے دے. دَدے نه مراد په صحیح طریقے سره ښیګلے کار کول دی، داسے ښیګلے کار چه دَ هغے نه عام خلق خبروی او چه دَ هغے په حقله یو منځګړے سړے چه یو طرفته ئے هم څه ذاتی فائده نه وی، دا اووائی چه بیشکه حق او انصاف هم دا دے او دا مناسبه او ښکلی طریقه ده. دَ اسلام په اصطلاح کښے عام رواج (Common Law). ته هم "عرف" او "معروف" وئیلے شی، خو دا صرف په هغه معاملو کښے استعمالیدے شی چه دَ کوم په باره کښے شریعت څه خاص قاعده نه وی مقرر کړی۔

[۱۸۰] مثلاً دا چه دَ مړی وارث دَ تاوان اخستلو نه روستو بیا دَ بدلے اخستلو کوشش وُکړی، یا قاتل په تاوان ورکولو کښے هغه دَغه اُوکړی او دَ مړی دَ وارث احسان هیر کړی۔

[۱۸۱] دا دَ یو بل جا هلے خبرے رد دے چه پخوا هم په ډیرو خلقو کښے وه او ننن صبا هم په ډیرو خلقو کښے شته. لکه څنګه چه دَ جاهلانو یو ډلے په بدله اخستلو کښے ډیره سختی اختیار کړیده دغه شان یو بل ډلے دَ معافئ په طرف ډیره نرمی اختیار کړیده او دَ مرګ دَ سزا خلاف ئے دومره تبلیغ کړے دے چه ډیر خلق دَ مرګ سزا ته په ښه نظر نه ګوری او دَ دُنیا ډیرو ملکونو دا سزا بالکل ختم کړی ده. دغه وجه ده چه قرآن عقل والو ته خبردارے ورکوی چه په قصاص کښے دَ خلقو دپاره ژوندون دے. کوم خلق چه دَ هغے انسان روح عزتمند ګڼړی چا ته چه پخپله دَ انسان روح عزتمند نه دے، هغوئ په اصل کښے خپل دشمن ځان ته غیږ نیسی. څکه چه یو قاتل دَ مرګ نه مخ کول دَ ډیرو بے ګناه انسانانو دَ سر خطره پیدا کول دی

وَالْاَقْرَبِيْنَ بِالْمَعْرُوْفِ ۚ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِيْنَ ﴿۱۸۰﴾ فَمَنْۢ بَدَّلَهٗ بَعْدَ مَا سَمِعَهٗ فَاِنَّمَآ اِثْمُهٗ عَلَى الَّذِيْنَ يُبَدِّلُوْنَهٗ ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿۱۸۱﴾ فَمَنْ خَافَ مِنْ مُّوْصٍ جَنَفًا اَوْ اِثْمًا فَاَصْلَحَ بَيْنَهُمْ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۸۲﴾ ع

وصیّت وکړي. دا حق دے په پرهیزګارانو خلقو باندې[۱۸۲]. بیا چه چا وصیّت واوریدو او روستو ئے هغه بدل کړو نو د هغې ګناه په هغې بدلونکو باندې ده. الله هر څه اوري او په هر څه پوهه دے. البته دومره ده که د چا سره دا یره وه چه وصیت کونکي په خطایا په قصد بانډې انصاف کړي ده، او بیا هغه د هغې خلقو په مینځ کښې چه د چا سره د امعامله تعلق لري، اصلاح وکړي، نو په هغه باندې څه ګناه نشته، الله بښونکے او مهربانه دے. ع

[۱۸۲] دا حکم په هغې زمانه کښې شوے وُو چه د میراث د تقسیم د پاره څه قانون نه وُو مقرر شوے. په هغې وخت کښې په هر سړي باندې دا فرض کړے شوے چه د وصیت په ذریعه د خپلو وارثانو حصے مقرر کړي چه د هغه د مرګ نه روستو بیا په خاندان کښې جګړے نه وي او د چا حق دار حق ونه وهلے شي. روستو چه بیا کله الله تعالیٰ په خپله د میراث د تقسیم د پاره یو قانون جوړ کړو (چه مخکښې په سورة نساء کښې به راشي) نو نبي صلی الله علیه وسلم د وصیت د حکمونو او د میراث د حکمونو دوه قاعدے بیان کړے.

یوه دا چه اُوس د وارث په حق کښې څوک وصیّت نشي کولے، یعني د کوم رشته دارانو حصے چه په قرآن کښې مقرر کړے شوي دي، د هغوئ په حصو کښې نه د وصیّت په ذریعه څه کمے زیاتے کیدے شي، نه یو وارث د میراث نه محرومه کیدے شي او نه یو وارث ته د هغه د خپلې حصے نه علاوه بل څه څیز د وصیت په ذریعه ورکړے کیدے شي.

بله دا چه وصیت صرف د ټول جایئد او د دریمې حصے پورے کیدے شي.

د دے دوؤ قاعدو نه روستو اوس د دے آیت مطلب او منشا دا ده چه سړے د خپل دوه برخې مال د دے د پاره پریږدي چه د هغه د مرګ نه روستو د قاعدے مطابق د هغه په وارثانو باندې تقسیم شي او د یوے حصے د مال وصیّت دِ د هغه رشته دار په حق کښې وکړي چه په میراث کښې ئے حصه نه رسي خو د امداد ورکولو مستحق وي، یا څوک غیر رشته دار وي خو کا مداد محتاجه وي یا د عامه فائدے د کار ونو نه په یو کار کښې د دګو وصیت دِ وکړي. روستو خلقو د وصیت دا حکم د سفارش طور باندې یو حکم وګڼړو او بیا رو رو د دے د وصیت دا طریقه عام طور ختمه شوه. لیکن په قرآن مجید کښې دا حکم د خدائے تعالیٰ د طرفنه په پرهیزګارانو باندې یو حق ګرځولے شوے دے. که چرے دا حق ورکول شروع شول نو ډیرے دا سے خبرے به په خپله حل شي چه هغه د میراث په باره کښې خلق په پریشانۍ کښې اچوي. مثلاً د هغه نوسو معامله چه نیکو نه ئے ژوندي وي او مور پلار ئے مړه شي.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ كُتِبَ عَلَيْكُمُ ٱلصِّيَامُ كَمَا كُتِبَ عَلَى ٱلَّذِينَ مِن قَبْلِكُمْ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُونَ ﴿۱۸۳﴾ أَيَّامًا مَّعْدُودَٰتٍ ۚ فَمَن كَانَ مِنكُم مَّرِيضًا أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ أَيَّامٍ أُخَرَ ۚ وَعَلَى ٱلَّذِينَ يُطِيقُونَهُۥ فِدْيَةٌ طَعَامُ مِسْكِينٍ ۖ فَمَن تَطَوَّعَ خَيْرًا فَهُوَ خَيْرٌ لَّهُۥ ۚ

اے خلقو چه ایمان مو راوړے دے، په تاسو باندې روژے فرض کړے شوے، لکه څنګه چه ستاسو نه وړاندې د پیغمبرانو په اُمتونو باندې فرض کړے شوی وے - امید دے چه د دے نه په تاسو کښے د تقوی صفت پیدا شي[183]. یو څو مقرر ورځے روژے دی. که په تاسو کښے څوک بیمار وی یا په سفر کښے وی نو په نورو ورځو کښے دِ هغومره پوره روژے ونیسی - او کوم خلق چه د روژے نیولو طاقت لری (او نه ئے نیسی) نو هغوی دِ فدیه ورکړی. د یوے ورځے فدیه یو مسکین ته خوراک ورکول دی، او څوک چه په خپله خوښه زیاته نیکي وکړی[184]، نو دا د هغه د پاره بهتره ده -

[183] د اسلام د نورو ډیرو حکمونو په شان روژه هم رو رو فرض کړے شوی ده. نبی صلی الله علیه وسلم په اول کښے مسلمانانو ته حکم کړے وو چه په هره میاشت کښے صرف درے ورځے روژے نیسئ، خو دا روژے فرض نه وے. بیا د هجرت په دوېم کال کښے د رمضان د روژو دا حکم نازل شو، خو په دے کښے دومره رعایت وساتلے شو چه کوم خلق د روژے نیولو طاقت لری او بیا هم روژے نه نیسی، نو هغوی دِ د یوے روژے په بدله کښے یو مسکین باندې ډوډۍ اُخوروی. روستو بیا بل حکم نازل شو او دا عام رعایت منسوخ کړے شو. لیکن مریض او مسافر او امید داره ښځه یا بچی له پئ ورکوونکی ښځه او دا سے بوډا کسان خلق چه د روژو نیولو طاقت نه لری، د هغوی د پاره دا رعایت هم د غه شان باقی وساتلے شو، او هغوی ته دا حکم وشو چه کله بیا دا عذر ختم شی نو بیا دِ هغومره قضا روژے ونیسی څومره چه تیرِ د رمضان په میاشت کښے قضا شوی دی -

[184] یعنی د یو نه په زیاتو خلقو باندې ډوډۍ اُخوروی او یا دا مطلب دے، چه روژه هم ونیسئ او په مسکین ډوډۍ هم اُخوروی -

وَاَنْ تَصُوْمُوْا خَيْرٌ لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۱۸۴﴾ شَهْرُ رَمَضَانَ الَّذِيْٓ اُنْزِلَ فِيْهِ الْقُرْاٰنُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَبَيِّنٰتٍ مِّنَ الْهُدٰى وَالْفُرْقَانِ ۚ فَمَنْ شَهِدَ مِنْكُمُ الشَّهْرَ فَلْيَصُمْهُ ۖ وَمَنْ كَانَ مَرِيْضًا اَوْ عَلٰى سَفَرٍ فَعِدَّةٌ مِّنْ اَيَّامٍ اُخَرَ ۗ

لیکن که تاسو پوهیږئ نو تاسو په حق کښې دا ډیره ښه ده چه روژه ونیسئ.[185]
رمضان هغه میاشت ده، چه پکښې قرآن نازل کړے شو چه هغه د انسانانو د پاره سراسر هدایت دے او په هغه کښې داسې صفاصفا د ښود نې خبرې دي چه سرې ته ښیغه لار ښائي او د حق او د باطل په منځ کښې فرق ښکاره کوي. نو د اوس نه چه په کوم سړي دا میاشت راشي، په هغه باندې لازم دي چه د دے ټولې میاشتې روژې ونیسي. او څوک چه مریض وي یا په سفر باندې وي، نو هغه دې په نورو ورځو کښې د هغومره روژو تعداد پوره کړي[186]

[185] د دے ځائے پورے اولنے حکم دے چه د رمضان د روژو په باره کښې په دویم هجري کښې د جنګ بدر نه مخکښې نازل شوے وُو. د دے نه دا روستنۍ آیتونه د دے نه یو کال روستو نازل شوي دي خو د دے مضمون د مناسبت په وجه په دے بیان کښې شامل کړے شول.

[186] په سفر کښې روژه نیول یا نه نیول د سړي په خپل اختیار باندې پرېښودلے شوي ده. د نبي صلی الله علیه وسلم سره چه به کوم صحابه رضی الله عنهم په سفر تلل په هغوئ کښې به څه روژه نیوله او څه به نه نیوله خو هیڅ به په بل اعتراض نه کولو. په خپله نبي ﷺ به په سفر کښې کله روژه نیوله او کله به ئے نه نیوله. په یو سفر کښې د یو سړي حال خراب شو او دا پرېو تلو او څار چاپېره ترې خلق راجمع شو. نبي صلی الله علیه وسلم چه دا حال ولید و نو وے فرمائیل چه دا ولے؟ خلقو ورته ووئیل چه دا د روژے د وجه نه. نبي ﷺ وفرمائیل چه دا نیکي نه ده. او د جنګ په موقع کښې خو به نبي ﷺ حکم کولو چه روژے مه نیسئ چه په جنګ کښې دشمن ته کمزوري نه ښئ. د حضرت عمر رضی الله عنه نه روایت دے هغه وائي چه مونږ د نبي صلی الله علیه وسلم سره دوه ځله په رمضان کښې جنګ ته تلي یو. یو ځل په جنګ بدر کښې او بل ځل د مکې د فتح کولو په موقع باندې، او په دواړو کښې مونږ روژے پرېښودلے وے. د ابن عمر څخه بیان کوي چه د مکې د فتح کولو په موقع باندې نبي ﷺ فرمائیلي وُو چه "انه یوم قتال فافطروا." په نورو روایتونو کښې دا الفاظ دي چه "انکم قد دنوتم من عدوکم فافطروا اقوى لکم" یعنې د دشمن سره مقابله راپېښه ده، روژے پرېږدئ چه په جنګ کښې طاقتور یئ.

يُرِيدُ اللّٰهُ بِكُمُ الْيُسْرَ وَلَا يُرِيدُ بِكُمُ الْعُسْرَ وَلِتُكْمِلُوا الْعِدَّةَ وَلِتُكَبِّرُوا اللّٰهَ عَلٰى مَا هَدٰىكُمْ وَلَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿۱۸۵﴾

الله ستاسو سره نرمي کول غواړي، سختي کول نهٔ غواړي. دَ دے وجے نه تاسو ته دا طريقه خودلے کيږي چه تاسو دَ روژو تعداد پوره کړے شئ او کوم هدايت چه الله تاسو له درکړے دے په هغے باندې دالله دَ لويئ اظهار وکړئ او دَ الله لويئ ومنئ او شکر ايستونکي شئ۔[۱۸۶]

دَ عام سفر په معامله کښے دا خبره دَ نبی ﷺ دَ يو ارشاد نه نهٔ واضحه کيږي چه دَ څومره فاصلے په سفر کښے روژه پريښودلے شي او دَ صحابه کرامو عمل په دے باره کښے دَ يو بل نه مختلف دے. صحيح خبره دا ده چه څومره فاصلے ته عام خلق سفر وائي او په کومه فاصله کښے چه دَ سفر بوج په سړي باندې راځي، هغه فاصله دَ روژے دَ نهٔ نيولو دپاره کافي ده۔

په دے خبره اتفاق شوے دے چه په کومه ورځ سړے سفر شروع کوي دَ هغے ورځے دَ نهٔ نيولو سړي ته اختيار دے. که غواړي خوبنه شي نو په کور کښے دے خوراک وکړي او بيا دے روان شي او که ئے خوښه شي نو دَ کور دَ وتلونه پس دے روستو خوراک وکړي. دواړه کارونه دَ صحابوؓ نه ثابت دي.

که چرے په يو ښار باندې دشمن حمله وکړي نو آيا دَ هغے ښار خپل خلق دَ جهاد په وجه روژه پريښودے شي او که نه؟ دَ دے خبرے په باره کښے دَ علماؤ په منځ کښے اختلاف دے. څينې عالمان دَ روژے دَ نهٔ نيولو اجازت نهٔ ورکوي. خو علامه ابن تيميه په ډيرو قوي دليلونو سره فتوىٰ ورکړې ده چه روژه نهٔ نيول بالکل جائز دي۔

[۱۸۶] يعنی الله يوائے دَ رمضان مياشت دَ روژے دپاره خاص کړې نهٔ ده، بلکه کوم خلق چه دَ رمضان په مياشت کښے دَ څهٔ شرعي عذر په وجه روژے ونهٔ نيسي، هغوي په نورو ورځو کښے دَ هغے قضا راوړے شي. ځکه چه قرآن يو نعمت دے او الله تاسو له درکړے دے، هسے نه چه دَ دے نعمت دَ ادا کولو دَ قيمتي موقعے نه تاسو بے نصيبه پاتے شئ۔

دلته په دے خبره خان پوهه کول پکار دي چه دَ رمضان دَ مياشتے روژے يوائے عبادت او يوائے دَ پرهيزګارئ تربيت نهٔ دے، بلکه دَ قرآن په ذريعه چه الله تعالیٰ موږ ته کومه نيغه لار ښودلې ده دا يو عظيم الشان لوئ نعمت دے، او دا روژے نيول دَ دے لوئ نعمت شکريه ادا کول هم دي. حقيقت دا دے چه يو هوښيار انسان په ښه طريقے سره دَ چا دَ نعمت شکر وباسي او دَ چا احسان مني، نو هغه دَ هغے مقصد پوره کولو کوشش کوي دَ کوم مقصد دپاره چه ورله چا نعمت ورکړے وي. قرآن موږ ته دَ دے مقصد دپاره راکړے شوے دے چه موږ دَ الله دَ رضا لار ونيسو، په هغه پسے روان شو او دُنيا په هم دَ ځان سره روانه کړو. دَ دے مقصد پوره کولو دپاره دَ تيارولو ښه ذريعه روژه ده. دغه وجه ده چه دَ قرآن دَ نازليدو په مياشت کښے زموږ روژے نيول يوائے عبادت نهٔ دے او نهٔ يوائے دَ اخلاقو تربيت دے بلکه دَ دے سره دَ قرآن، چه يو لوئ نعمت دے، صحيح او مناسب شکر ايستل هم دي۔

وَإِذَا سَأَلَكَ عِبَادِي عَنِّي فَإِنِّي قَرِيبٌ ۖ أُجِيبُ دَعْوَةَ الدَّاعِ إِذَا دَعَانِ ۖ فَلْيَسْتَجِيبُوا لِي وَلْيُؤْمِنُوا بِي لَعَلَّهُمْ يَرْشُدُونَ ﴿١٨٦﴾ أُحِلَّ لَكُمْ لَيْلَةَ الصِّيَامِ الرَّفَثُ إِلَىٰ نِسَائِكُمْ ۚ هُنَّ لِبَاسٌ لَّكُمْ وَأَنتُمْ لِبَاسٌ لَّهُنَّ ۗ عَلِمَ اللَّهُ

او اے نبی، که چرې ستانه زما بندګان زما په حقله تپوس وکړي، نو هغوئ ته ووایه چه زه هغوئ ته نزدې یم. آواز کوونکے چه کله ما ته آواز کوي نو زه د هغه آواز اورم او جواب ورکوم نو په دې وجه هغوئ له هم پکار دي چه زما بلنه قبوله کړي او په ما باندې ایمان راوړي.[188] د دې خبرې ورته ته واوره وه کیدې شي چه په نیغه لار روان شي.[189]
د روژو په دوران کښې د شپې د ښځو سره ملاویدل ستاسو د پاره حلال کړې شوي دي. هغوئ ستاسو د پاره جامې دي، او تاسو د هغوئ د پاره جامې یئ. الله ته معلومه شوه چه

۱۸۸ یعنی اګرچه نه تاسو ما لیدلے شئ او نه زما په سترګو لیدے شئ، خو دا خیال مه کوئ چه زه ستاسو نه لرې یم. نه، بلکه زه خپل هر بنده ته دومره نزدې یم چه هر وخت ئې زه کله نه خپل حاجت غوښتلے شي، ترڅو پورې چه که په زړه کښې دننه زما نه څه اوغواړي نو زه هغه هم اورم، او نه صرف اورم نه بلکه د هغې مطابق فیصله هم کوم. کومې بې اختیاره او بې حقیقته هستئ چه تاسو خپله ناپوهیا ځان له معبودان او پالونکي جوړ کړي دي، د هغوئ دربارونو ته د خپل حاجت غوښتلو د پاره خو تاسو منزلونه کوئ او ځئ، او بیا هم نه هغوئ ستاسو خبره اوریدے شي او نه په کښې دا طاقت شته چه ستاسو د درخاستونو مطابق څه فیصله وکړې شي. لیکن زه، چه د دې فراخه دنیا یو بادشاه او د ټولو اختیاراتو او طاقتونو مالک یم، تاسو ته دومره نزدې یم چه تاسو په هر وخت کښې او په هر ځائے کښې بغیر د څه ذریعې او سفارش نه نیغ په نیغه ما ته خپل فریادونه رارسولے شئ. نو په دې وجه تاسو د دې بې اختیاره او د دروغجنو خدایانو در په در تلل پریږدئ او دا ناپوهیا مه کوئ. زه چه کوم څیز ته تاسو رابلم هغه قبول کړئ، په ما پورې ځان ټینګ کړئ، زما طرف ته راشئ، په ما بروسه وکړئ، زما بندګي اختیار کړئ او زما فرمان ومنئ.

۱۸۹ یعنی چه ستا په ذریعه ورته حقیقت معلوم شي او سترګې ئې د غریږي او هغه نیغې لارې ته راشي په کومه کښې چه د دوئ ته خپله فائده ده.

أَنَّكُمْ كُنتُمْ تَخْتَانُونَ أَنفُسَكُمْ فَتَابَ عَلَيْكُمْ وَعَفَا عَنكُمْ ۖ فَالْآنَ بَاشِرُوهُنَّ وَابْتَغُوا مَا كَتَبَ اللَّهُ لَكُمْ ۚ وَكُلُوا وَاشْرَبُوا حَتَّىٰ يَتَبَيَّنَ لَكُمُ الْخَيْطُ الْأَبْيَضُ مِنَ الْخَيْطِ الْأَسْوَدِ مِنَ الْفَجْرِ ۖ

تاسو دَ خپل ځان سره پټ په پټه خیانت کوئ، خو هغه ستاسو غلطي معاف کړه او په تاسو ئې چشم پوشي وکړه. او س تاسو خپلو ښځو ته دَ شپې ورځئ او کوم مزه چه الله ستاسو دِپاره جائز کړې ده هغه اخلئ.[190] هم دغه رنګه دَ شپې تر هغې پورې خورئ څکئ کله چه[191] دَ تورې تیرې شپې نه دَ صبا سپینه رڼا ښکاره شي.[192][193]

[190] یعنی لکه څنګه چه جامه او دَ بدن په منځ کښې بله پرده نشته، دواړه یو بل سره نښتې یو ځائې وی، دغه شان تعلق ستاسو دَ ښځو او ستاسو هم دَ یو بل سره دے.

[191] په اول کښې اګرچه دَ دے قسم څه صفا حکم موجود نۀ وُو چه دَ رمضان دَ میاشتې په شپو کښې دِ څوک دَ خپلو ښځو سره نۀ ملاویږی، خو دَ خلقو په خپله دا خیال وُو چه ګنې په رمضان کښې دَ شپې ښځو سره ملاویدل جائز نۀ دی. خو دَ دے خیال با وجود به هغوئ اکثر دَ خپلو ښځو سره ملاویدل. دا داسے وه لکه چه په خپله دَ خپل ځان سره خیانت کوی او دَ دے نه دا یَره پیدا کیدله چه په دوی کښې به دَ جُرم او دَ ګناه ذهن پوخ شي. دغه وجه ده چه اول ورته الله تعالیٰ دغه خپل خیانت په ګوته کړو او بیائې ورته وُفرمایل چه دَ رمضان په میاشت کښې دَ خپلو ښځو سره ملاویدل ستاسو دِپاره جائز دی. او س دا کار په خپل خیال کښې بد مۀ ګڼرئ، بلکه دَ الله دَ اجازت نه فائده واخلئ او په صفا زړۀ سره ملاویږئ.

[192] په دے باره کښې هم اول اول خلق په غلطئ کښې پراتۀ وُو دَ چا دا خیال وُو چه دَ ماسختن دَ مانځۀ نه روستو خوراک څکاک حرامیږی او دَ چا دا خیال وُو چه دَ شپې تر څو پورې سړے ویخ وی تر هغې پورې خوراک څکاک کولے شی خو چه کله اُودۀ شو او بیا دو باره پاسید نو بیا څه خوراک نۀ شی کولے. دا حکمونه خلقو په خپله په خپل خیال کښې جوړ کړی وُو او دَ دے په وجه به اکثر دیر په تکلیف کښې وُو. په دے آیت کښې دَ دے قسم غلطئ ختمے کړے شوی دی. په دے کښې دَ روژے حد دَ صبا ختلو نه را واخله تر دَ نمر پریوتلو پورې مقرر کړے شو او دَ نمر پریوتلو نه تر دَ صبا ختلو پورې ټوله شپه دَ خوراک څکاک او دَ خپلو ښځو سره دَ ملاویدلو آزادی ورکړے شوه.

[193] اسلام دَ خپلو عبادتونو دِپاره دَ وختونو داسے طریقه مقرر کړې ده چه دَ هغې نه په ټوله دنیا کښې دَ هر قسم خلق په هر وخت او په هر ځائے کښې ځان له وختونه مقرره ولے شی. اسلام په ګهړو باندې دَ وخت مقرره ولو په ځائې دَ هغې نښو په ذریعه وخت مقرره وی چه هغه

ثُمَّ اَتِمُّوا الصِّيَامَ اِلَى الَّيْلِ ۚ وَلَا تُبَاشِرُوْهُنَّ وَاَنْتُمْ

بیا دا نتول کار و نه پریږدئ او د شپې پورې خپله روژه پوره کړئ ۔ او کله چه تاسو په جماتونو کښې اعتکاف کوونکی یئ، نو د خپلو ښځو سره

په تهوله دنیا کښې ښکاره په نظر راځي. خو څه ناپوه خلق د وخت معلومولو په دے طریقه باندې عام طور دا اعتراض کوي چه کومے علاقے قطبین ته نږدے دي په هغے کښې په دے طریقه وختونه نشي معلومیدلے ځکه چه هلته شپے ورځے په خو خو میاشتو وي. حالانکه دا اعتراض هغه خلق کوي چه د ملکونو په حالاتو پوره علم نه لري. په حقیقت کښې هلته نه هغه شان شپږ میاشتے شپه وي او نه هغه شان شپږ میاشتے ورځ لکه څنګه چه دلته زمونږ د خطِ استوا سره خوا و شا ته د وسیدونکو خلقو شپه او ورځ وي. هلته که د شپے دورون او که د ورځے خو باقاعده د سحر او د ماښام پته لګی او هم د دغے سحر او ماښام په وجه د هغے ځائے خلق زمونږ په شان ځان له د اوده کیدلو او د پاسیدلو او د کارکولو وختونه مقرره وي. کله چه د ګهړو رواج عام نه وو په هغے وخت کښے هم د "فن لینډ" د "ناروے" او د "ګرین لینډ" وغیره خلقو خپل وختونه معلومول او د وختونو معلومولو ذریعه ئے هم دغه د آسمان د لمنو سره د تیرے او د رڼا ښیے وے. نو لکه څنګه چه په نورو معاملاتو کښے هغوئ ځان له د دے نښونو وختونه مقرره وی دغه شان د مانځه او د پیشمنی او د روژه ماتی د پاره هم د دے نښونو وختونه ځان له مقرره وے شی ۔

۱۹۴ د شپے پورے د روژے پوره کولو مراد دا دے چه د کوم ځائے نه د شپے حد شروع کیږی په هغه ځائے ستاسو د روژے حد ختم شو ۔ او دا خو هر چا ته معلومه ده چه د شپے حد د نمر پریوتلو نه شروع کیږی. نو د نمر پریوتلو سره روژه ماتول پکار دی ۔ د پیشمنی او د روژه ماتے صحیح علامه دا ده چه کله په آخره شپه کښے نمرخاته طرفته د آسمان په لمنه کښے د صبا سپینوالے راڅیږی نو د پیشمنی وخت ختم شی او کله چه د ورځ په آخروخت کښے د نمرخاته طرفته د شپے تیاره په پورته کید وشی نو د روژه ماتی وخت شی. ن صبا خلقو د پیشمنی او د روژه ماتی په وختونو کښے ډیر احتیاط په وجه بے ځایه سختی شروع کړیده ۔ خو لیکن شریعت د دے دوارو وختونو د پاره څه داسے وختونه نه دی مقرر کړی چه کنی کیو څو سیکنډ و نو یا ډیو څو منټونو اخوا دیخوا کید لو په وجه به د سری روژه خرابه شی ۔ د شپے د تیارے نه چه د صبا سپینوالے راښکاره کیږی نو په دے کښے ډیر وخت لګی که چرے یو سړے عین د صبا خلو په وخت کښے راویښ شی نو د هغه د پاره دا بالکل صحیح ده چه ژر راپا سی او څه ژخوری وڅکی، دا حدیث دے چه نبی ؐ فرمائیلی دی که په تاسو کښے څوک پیشمنے کوی او آذان واوری نو فوراً دِ نه بس کوی بلکه د خپل حاجت مطابق دِ ؤ خوری وڅکی ـ دغه شان د روژه ماتی په وخت کښے هم د نمر پریوتلو نه روستو د رڼا ختمیدلو پورے انتظار کولو ته ضرورت نشته. نبی صلی الله علیه وسلم به د نمر پریوتلو سره بلال رض ته آواز کولو چه راوړه زما شربت ۔ بلال رض به عرض وکړو چه یارسول الله اوس خو لا د ورځے رڼا ده ۔ نبی ؐ به وفرمائیل چه کله د شپے تیاره د نمرخاته نه په راپورته کید وشی نو د روژے وخت ختم شی ۔

عٰكِفُوْنَ ۙ فِي الْمَسٰجِدِ ؕ تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ فَلَا تَقْرَبُوْهَا ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ اٰيٰتِهٖ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ﴿۱۸۷﴾ وَلَا تَاْكُلُوْٓا اَمْوَالَكُمْ بَيْنَكُمْ بِالْبَاطِلِ وَتُدْلُوْا بِهَآ اِلَى الْحُكَّامِ

مه یو ځائے کیږئ.[۱۹۵] دا د الله تړلی شوی حدونه دی، دے ته مه نزدے کیږئ.[۱۹۶] دغه شان الله تعالیٰ خپل حکمونه بنده په تفصیل سره خلقو ته بیانوی اُمید دے چه هغوئ به د غلطو طریقو نه بچ شی.

او تاسو په خپلو کښے د یو بل مالونه په ناروا طریقه مه خورئ او مه ئے حاکمانو ته د مه

[۱۹۵] په اعتکاف کښے د ناستے مطلب دا دے چه سړے د رمضان آخری لس ورځے په جماعت کښے تیرئ کړی او دا ټولے ورځے د الله د یاد دپاره وقف کړی. د اعتکاف په حالت کښے سړے د خپلو انسانی حاجتونو دپاره د جمات نه بهر تر وتلے شی، خو دا لازمی ده چه ځان به د شهوتی خوندونو نه لرے ساتی.

[۱۹۶] دا ئے ونه فرمائیل چه د دے حدونو نه وا نوړئ، بلکه دا ئے وفرمائیل چه دے ته مه نزدے کیږئ. د دے دا مطلب دے چه د کوم ځائے نه د ګناه حد شروع کیږی، بالکل د هغه ځائے په آخری غاړه ګرځیدل د سړی دپاره خطرناک دی. سړے هله روغ پاتے کیدے شی چه د سرحد نه دومره لرے اُوسی چه په هیره ئے هم قدم د حد نه بهر ته ونه وځی. دا خبره په هغه حدیث کښے بیان شوی ده چه په هغے کښے نبی صلی الله علیه وسلم فرمائیلی دی چه "لِكُلِّ مَلِكٍ حِمًى وَاِنَّ حِمَى اللّٰهِ مَحَارِمُهٗ. فَمَنْ رَتَعَ حَوْلَ الْحِمٰى، يُوْشِكُ اَنْ يَّقَعَ فِيْهِ" په عربئ ژبه کښے حِمیٰ هغه چمن ته وائی چه هغه یو سردار یا یو بادشاه د عامو خلقو دپاره منع کړے وی. نبی دا تشبیه استعمال کړی ده او فرمائی چه "د هر بادشاه یو چمن وی او د الله چمن د الله هغه حدونه دی چه هغه د حلالو او د حرامو او د فرمانبردارئ او د نافرمانئ فرق ښکاره کوی. کوم څناور چه د چمن نه چاپیره ګرځیږی کیدے شی چه یوه ورځ په چمن کښے د ننه داخل شی." افسوس دے چه ډیر داسے خلق چه د شریعت د اصلی مطلب نه ناخبره دی، هغوئ همیشه د اجازت د آخری حدونو پورے تللو ته زور لګوی، او ډیر عالمان او بزرګان هم د دے غرض دپاره سند ورته ګوری. او هغوئ ته د جواز آخری حدونه ښائی چه هغوئ په هغه نوئ ګرځه ګرځیدل شروع کړی په کومه ګرځه چه د فرمان او د نافرمانئ په منځ کښے صرف د ویښته هومره فاصله پاتی کیږی. نتیجه ئے داده چه اکثر خلق په ګناه کښے اخته دی او د ګناه نه هم ورهاندے په ګمراهئ کښے مبتلا دی ځکه چه د دغے حدونو نزدے ګرځه پیژندل او ګناه ته ځان تابو کښے ساتل د هر چا د وس کار نه دے

لِتَأْكُلُوا فَرِيقًا مِّنْ أَمْوَالِ النَّاسِ بِالْإِثْمِ وَأَنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿۱۸۸﴾ ع يَسْأَلُونَكَ عَنِ الْأَهِلَّةِ ۖ قُلْ هِيَ مَوَاقِيتُ لِلنَّاسِ وَالْحَجِّ ۗ وَلَيْسَ الْبِرُّ بِأَن تَأْتُوا الْبُيُوتَ مِن

غرض د پاره وړئ چه تاسو په قصد او په زیاتی سره د بل د مال څه حصه وخورئ[197]
خلق ستا نه د سپوږمئ د لوئیدو او د وړیدو په باره کښې تپوس کوي، ورته او وایه چه
دا د خلقو د پاره د تاریخونو مقرره ولو او د حج علامتونه دي[198] - هم دغه رنګې دوئ ته
او وایه چه دا څه د نیکئ کار نه دے چه تاسو خپلو کورونو ته

[197] د دے آیت یو مطلب خو دا دے چه دا کوشش مه کوئ چه د حاکمانو نه د رشوت په ذریعه ناجائزه فائده واخلئ. او بل مطلب ئے دا دے چه کله تاته دا بنه پته وي چه دا مال د بل سړي دے، خو د هغه سره د خپل ملکیت ثبوت نشته یا ترته په چالاکئ د هغه مال خوړلے شې، نو د هغه مقدمه عدالت ته مه وړه. کیدے شي چه د عدالت حاکم په ظاهره د دغه مال فیصله ستا په حق کښې وکړي خو په اصل کښې په دغه فیصله د غلط بیانئ وجه وي. نو که عدالت ستا په حق کښې فیصله هم کړي وي خو په حقیقت کښې ته د دغې مال جائز مالک نشې جوړیدلے. د خدائے په نزد به دغه مال ستا د پاره حرام وي. حدیث دے چه نبي صلی الله علیه وسلم وفرمائیل "انما انا بشر وانتم تختصمون الی ولعل بعضکم یکون الحق بحجته من بعض، فاقضی له علی نحو ما اسمع منه. فمن قضیت له بشیء من حق اخیه فانما اقطع له قطعة من النار" یعني بهرحال زه یو انسان یم. کیدے شي چه تاسو ماله یوه مقدمه راوړئ او په تاسو کښې د یو سړي چالاکئ د بل نه زیاته وي او زه د هغوئ د دلیلونو مطابق د هغوئ په حق کښې فیصله وکړم. خو په دے به ځان پوه کړئ که چرے د غه شان تاسو د خپل رور حق زما د فیصلے په ذریعه واخستلو نو په اصل کښې تاسو د دوزخ یوه ټوکړه واخستله.

[198] د سپوږمئ وړیدل او لوئیدل یو داسے منظر دے، چه په هره زمانه کښې ورته د انسان خیال خوږیدلے او د دے په حقله قسما قسم وهمونه، خیالونه او رسمونه د دنیا په قومونو کښې هم وو او اوس هم شته. په عربو کښې هم د دے قسم وهمونه وو. په سپوږمئ به ئے او بد فال نیول، د میاشتے څه ورځے نیک بختے او څه بد بختے ګڼڵې، څه خاص ورځ د سفر د پاره یا د څه کار شروع کولو د پاره یا د واده کولو د پاره نیکه یا بده ګڼڵې، او دا یقین ئے ساتلو چه انسان په قسمتونو باندې د سپوږمئ د ختلو او د پریوتلو او د سپوږمئ د وړیدلو او لوئیدلو او د سپوږمئ د رفتار او د تندر نیولو اثر دی. دا قسمه توهم خبره د نورو جاهل قومونو په شان په عربو کښې هم وه او په هغوئ کښې د دے په حقله مختلف وهمي او خیالي رسمونه موجود وو. د نبي صلی الله علیه وسلم نه د دے خبرو د حقیقت په باره

ظُهُوْرِهَا وَلٰكِنَّ الْبِرَّ مَنِ اتَّقٰى ۚ وَاْتُوا الْبُيُوْتَ مِنْ اَبْوَابِهَا وَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۱۸۹﴾ وَقَاتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ الَّذِيْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ وَلَا تَعْتَدُوْا ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ

دَ شا دَ طرفه ورننوځئ. نيکي خو په اصل کښې داده چه سړے دَ الله دَ ناراضګئ نه بچ شي. نو خپلو کورونو ته په دروازه باندې ورځئ. البته دَ الله نه بيريږئ. کيدے شي چه تاسو خلاصے نصيب شي[199]

او تاسو دَ الله په لار کښې دَ هغې خلقو سره جنګيږئ چه تاسو سره جنګيږي، خو زياتے مه کوئ[200]. ځکه چه الله

کښې تپوس وُکړے شو. نو په جواب کښې ورته الله وُفرمائيل چه دَ سپوږمئ وريدل او لوئيدل ستاسو دپاره يوه قدرتي جنتري ده بل هيڅ نه ده، چه په آسمان کښې ښکاره شي نو که ټوله دنيا خلق ته په يو وخت دَ هغوئ دَ ورځو حساب ښائي. دَ حج ذکرې پکښې خاص طور دَ دے دپاره وُکړو چه دَ عربو په مذهبي، کلي والئ او ګډوَد کښې تجي په ډوند کښې دَ حج ډيرلوئ اهميت وُو. دَ کال څلور مياشتے دَ حج او دَ عمرے دپاره خاص وے. په دغه مياشتو کښې به جنګونه بند وُو، په لارو کښې به څه خطره نه وه او دَ امن په وجه به کاروبار ډير نا ئيده مند وُو.

[199] دَ کوم وهمي رسمونو چه په عربو کښې رواج وُو په هغې کښې يو دا وُو چه هغوئ به کله دَ حج دپاره احرام وُ تړلو نو بيا به خپلو کورونو ته په دروازه نه ورننوتل، بلکه دَ شا دَ طرفه به يا په ديوال ورا وريدل او يا به ئې دَ شا په ديوال کښې کهړکئ جوړه کړه او په هغې به ورننوتل. دغه رنګے چه کله به دَ سفر نه واپس را تلل نو خپلو کورونو ته به دَ شا دَ طرفه ورننوتل. په دے آيت کښې نه يوائې دا رسم ختم کړے شوے دے، بلکه دَ دے وينا سره ټول وهمونه ختم کړے شوي دي چه نيکي په اصل کښې دَ الله نه دَ يرے او دَ الله دَ حکمونو دَ خلاف ورزئ نه دَ بچ کيدو نوم دے. دَ پلار نيکه نه پاتې شوي رسمونه هيڅ نيکي نه ده او نه دَ دغه رسمونو انسان دَ نيک بختئ او بدبختئ سره څه تعلق شته.

[200] يعني څوک چه دَ خدائے په کار کښې ستا لاربندُه وي او په دے وجه ستا دښمنان وي چه ته دَ خدائے دَ حکم مطابق دَ ژوند اصلاح کول غواړے، او هغوئ دَ دے اصلاحي کار دَ بند ولو دپاره زور ظلم استعماله وي نو ته ورسره هم جنګ وُکړه. دَ دے نه مخکښې چه مسلمانان کمزورئ او خوارئ وُو هغوئ ته دا حکم وُو چه صرف تبليغ کوئ او دَ مخالفينو په زور زياتي باندې صبر کوئ. خو چه کله په مدينه کښې دَ مسلمانانو يو وړوکے شان رياست جوړ شو نو په اول ځل ورته دا حکم کيږي چه کوم خلق دَ دے اصلاحي کار په لار کښې سره دَ وسلے ته راځي نو هغوئ له دَ توره جواب په توره ورکړئ. دَ دے نه روستو دَ بدر جنګ وُشو او دَ

الْمُعْتَدِيْنَ ﴿۱۹۰﴾ وَاقْتُلُوْهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوْهُمْ وَاَخْرِجُوْهُمْ مِّنْ حَيْثُ اَخْرَجُوْكُمْ وَالْفِتْنَةُ اَشَدُّ مِنَ الْقَتْلِ ۚ وَلَا تُقٰتِلُوْهُمْ عِنْدَ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ حَتّٰى يُقٰتِلُوْكُمْ فِيْهِ ۚ فَاِنْ قٰتَلُوْكُمْ فَاقْتُلُوْهُمْ ۭ كَذٰلِكَ جَزَاۗءُ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۹۱﴾ فَاِنِ انْتَهَوْا فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۹۲﴾

زیاتی کونکی نهٔ خوښیږی[۲۰۱]. دَ هغوئ سره جنګ کوئ کوم ځائے کښے چه ستاسو دَ هغوئ سره مقابله راشی او دَ هغه ځائے نه هغوئ وباسئ دَ کوم ځائے نه چه هغوئ تاسو ایستلی یئ ځکه چه قتل کول اګرچه بد کار دے، خو فتنه دَ هغے نه هم زیات بد کار دے[۲۰۲] . او دَ مسجد حرام په خوا کښے چه هغوئ ستاسو سره ترڅو پورے جنګ نهٔ کوی نو تاسو ورسره هم جنګ مه کوئ خو که هغوئ هلته هم دَ جنګ نه منع نهٔ شول نو بیا تاسوئے هم په خلاص مټ وژنئ ځکه چه دَ داسے کافرانو سزا هم داده. بیا که چرے هغوئ منع شول نو یقین ساتئ چه الله معاف کونکے او رحم کونکے دے[۲۰۳].

او دَ جنګونو سلسله شروع شوه.

[۲۰۱] یعنی دَ خپل دینوی او ذاتی غرضونو دپاره جنګ مهٔ کوئ. دَ هغه خلقو سره جنګ مهٔ کوئ چه دَ دینِ حق لار نهٔ بندوی او مهٔ په جنګ کښے دَ جاهلیت طریقے استعمالوئ. په ښځو، ماشومانو، بوډاګانو او زخمیانو باندِ ظلم کول، دَ دُشمنانو دَ مړو نه اندامونه پرےکول، پټی او مالونه تباه کول او نور داسے دَ ظلم کارونو ته "دَ حد نه زیاتے" وائی، او په حدیث کښے دَ دے ټولو کارونو نه منع کړے شوی ده. دَ آیت مطلب دادے چه طاقت په هغه ځائے کښے استعمالول پکار دی چه کوم ځائے کښے ضروری وی او هغومره دِ استعمال کړے شی چه څومره پکار وی.

[۲۰۲] دلته دَ فتنے دلفظ مطلب دَ انګریزئ دَ دے لفظ (Persecution). پشان دے، یعنی چه یوه ډله یا یو سړے وی او هغه ته دَ موجوده وخت دَ خیالاتو او نظریاتو په ځائے څه نور خیالات او نظریات حق ښکاره شوی وی او هغه ئے قبول کړی وی. او بیا هغه په خپلو خلقو کښے تر دَ خولے په تبلیغ سره دَ اصلاح کولو کوشش کوی او بل څوک دے په ظلم زور دَ دے نه منع کوی نو دے ته فتنه وائی. دَ آیت مطلب دادے چه دَ انسان وینه تویه ول بیشکه ډیر بد کار دے، خو چه څوک دَ حق نه خلق په زور منع کوی او په زبردستئ سره خپله خبره په خلقو منی، نو دَ قتل نه ډیر زیات بدکار دے، او داسے خلق دَ توُرے په زور لرے کول بالکل جائز دی.

وَقٰتِلُوْهُمْ حَتّٰى لَا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ وَّيَكُوْنَ الدِّيْنُ لِلّٰهِ ؕ فَاِنِ انْتَهَوْا فَلَا عُدْوَانَ اِلَّا عَلَى الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۹۳﴾

تاسو دَ هغوئ سره جنګ کوئ ترهغې پورې چه فتنه پاتې نشي او دين دَ الله دپاره شي [۲۰۴]. بيا که چرې هغوئ منع شول، نو ځان پوه کړئ چه دَ ظالمانو نه بغير په بل چا زياتے کول جائز نه دي [۲۰۵].

[۲۰۳] يعنې تاسو چه په کوم خدائے ايمان راوړے دے دَ هغه دا صفت دے چه که دَ لوئ نه لوئ مجرم او ګنهګار دَ خپلو غلطو کارونو نه واپس شي او توبه وُباسي نو هغه ئے معاف کوي. دا صفت تاسو هم په خپل ځان کښے پيدا کړئ. "تخلقوا باخلاق الله" تاسو دَ بدلے اخستلو دپاره جنګ مه کوئ بلکه دَ خدائے دَ دين دَ لارے دَ صفا کولو دَ پاره جنګ کوئ. تر کومه پورے چه څوک دَ خدائے په لار کښے رکاوټ او بندېز پيدا کوي ترهغې پورے تاسو دَ هغه سره جنګيږئ، خو چه کله هغه خپله رويه بدله کړي او مشکلات پيدا کوي نو بيا ورته څه مه وايئ.

[۲۰۴] دلته دَ فتنے لفظ دَ مخکښې نه لږ په بدله معنیٰ استعمال شوے دے، دَ مخکښے روستو عبارت نه صفا پته لږي چه دلته دَ "فتنے" نه مراد هغه حالت دے چه په هغے کښے دين دَ الله په ځائے دَ بل چا دَ پاره وي، او دَ جنګ مقصد دا دے چه دا فتنه ختمه شي او دين صرف دَ الله دپاره شي. په عربئ ژبه کښے دَ "دين" معنیٰ "حکم منل" دي او په عام استعمال کښے دَ دين نه مراد دَ ژوند هغه نظام دے چه څوک بالاتر او منلے شي او بيا دَ هغه دَ حکمونو او دَ قانون لاندې ژوند تيرېږي. دَ دين دَ دے تشريح نه دا خبره معلومه شوه چه دَ خلقو هغه حالت چه په هغوئ بانډې دَ بنده حکم چليږي، او دَ الله دَ قانون مطابق ژوند کښے نشي تيريدے، نو هغه دَ فتنے حالت دے او دَ اسلامي جنګ اصلي مقصد دا دے چه دَ دے فتنے په ځائے دا حالت قائم شي چه په هغے کښے دَ خدائے مخلوق دَ خدائے دَ قانون لاندې ژوند تيرکړي.

[۲۰۵] دَ منع کېدو نه مطلب دا نه دے چه کافران دَ خپل کفر او شرک نه منع شي، بلکه دا ئے مطلب دَ چه دَ فتنے نه منع شي. کافر، مشرک، او دهريه، هر چا ته دا اختيار حاصل دے چه څنګه عقيده لري، لري دي او چه دَ چا عبادت کول غواړي دَ هغه عبادت دِ کوي او يا که دَ هيڅا عبادت نه کوي نو نه دِ کوي. دَ دَ بيلے لارے نه دَ راوستلو دپاره به مونږ هم پوه کوُو او هغوئ ته به نصيحت کوُو، خو دَ دَه سره به جنګ نه کوُو. ليکن دَ دَ ته دا حق هرګز نشته چه دَ خدائے په زمکه بانډې دَ خدائے دَ قانون په ځائے بل باطل قانون جاري کړي او دَ خدائے بندګان دَ خدائے نه بغير دَ بل چا بندګان جوړ کړي. دَ دے فتنے دَ لرے کولو دپاره به دَ موقعے او دَ وس مطابق دَ تبليغ او دَ تورے دواړو نه کار اخستلے کيږي او مومن به دَ هغے وخته پورے په آرام نه کيني ترڅو چه کفار دَ دے فتنے نه منع شوي نه وي.

او دا چه دے فرمائيلي که چرے هغوئ منع شول نو دَ ظالمانو نه بغير په بل چا زياتے کول جائز نه دي؟ نو دَ دے نه دا مطلب را وځي چه کله دَ باطل نظام په ځائے دَ حق نظام قائم شي نو عام خلق خو به معاف کړے شي، ليکن حق والو ته دا حق حاصل دے چه دا هغه خلقو له سزا ورکړي کوم چه دَ خپل اقتدار په وخت کښے دَ حق دَ لارے بندولو دپاره ډير ظلم او زياتے کړے وي، اګر چه په

اَلشَّهْرُ الْحَرَامُ بِالشَّهْرِ الْحَرَامِ وَالْحُرُمٰتُ قِصَاصٌ ؕ فَمَنِ اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ فَاعْتَدُوْا عَلَيْهِ بِمِثْلِ مَا اعْتَدٰى عَلَيْكُمْ ۪ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ مَعَ الْمُتَّقِيْنَ ﴿۱۹۴﴾

دَ عزت دَ میاشتې بدلهٔ هم دَ عزت میاشت ده او دَ ټولو عزتونو لحاظ به یو شان برابر کیږي[۲۰۶] نو چا چه په تاسو باندې زیاتے وکړو، تاسو هم هغه شان زیاتے په هغه باندې وکړئ. لیکن دَ الله نه یره کوئ او په دے پوهه شئ چه هغه دَ هغې خلقو سره دے چه دَ هغه دَ حد و نو ماتولو نه ځان ساتي.

---

په دے معامله کښے هم دَ نیک صالحه مومنانو سره دا ښائي چه دَ معافئ نه کار واخلي او دَ ظالمانو نه بدله وانه خلي. خو چه چا دیر زیات جرمونه کړي وی هغوئ ته سزا ورکول بالکل جائز دی او نبی صلی الله علیه وسلم پخپله دَ دے اجازت نه نایدۀ اغستلی ده چه دَ هغه نه زیات معافی کونکے بل څوک نهٔ وو. دَ جنګ بدر په قیدیانو کښے عُقبه بن ابي مُعیط او نضر بن حارث قتل کړے شو او دَ فتح مکے نه روستو اُو وِلسُ کسان په عام معافئ کښے وانهٔ خلل او بیا په هغوئ کښے څلورو کسانو ته دَ مرګ سزا ورکړو. دا ټول دَ دے اجازت وجه وه.

[۲۰۶] په عربو کښے دَ حضرت ابراهیمؑ دَ وخت نه دا طریقه را روانه وه چه دَ ذی القعده او دَ ذی الحجے او دَ محرم دره میاشتے دَ حج دپاره مقرر، وے او دَ رجب میاشت دَ عمرے دپاره مقرر کړے شوی وه او په دے څلورو واړو میاشتو کښے جنګ جګړه او لوټ مار په دے وجه منع وو چه دَ کعبے زیارت کونکی په امن سره دَ خدائے کورته لاړ شي او په امن سره واپس کورته راشي. دا وجه وه چه دے میاشتو ته به دَ عزت میاشتے (حرام میاشتے) ویلے کیدے. دَ آیت مطلب دا دے که کافران دے میاشتے عزت کوی نو مسلمانان دِ هم عزت کوی او که چرے کافران ئے عزت نهٔ کوی او په دے میاشتو کښے په مسلمانانو زیاتے کوی نو مسلمانانو ته هم په دے عزتمنو میاشتو کښے دَ بدلے اغستلو اجازت ده.

دَ دے اجازت ضرورت په دے وجه پیښ شو چه عربو دَ جنګ جګړه او دَ لوټ مار دپاره دَ "نسي" یوه قاعده جوړه کړي وه. دا داسے یوه طریقه وه چه هغوئ به دَ چا نه بدله اغستله یا به ئے دَ لوټ مار نیت وُو نو په دے عزتمنو میاشتو کښے به ئے حمله وکړه او بیا به ئے دَ دے میاشتے په بدله کښے په نورو میاشتو کښے یوه میاشت په ځان جنګ وغیره حرام کړل، او په دے طریقه به ئے دَ عزتمنے میاشت بدل پوره کولو. په دے وجه مسلمانانو وئیل چه کفار خو دَ نسي طریقے په بهانه په حرام میاشتو کښے جنګ کوی نو موږ به څه وکړو. دَ دے جواب په دے آیت کښے شوے دے.

---

وَاَنْفِقُوْا فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ وَلَا تُلْقُوْا بِاَیْدِیْكُمْ اِلَى التَّهْلُكَةِ ۚۛ وَاَحْسِنُوْا ۚۛ اِنَّ اللّٰهَ یُحِبُّ الْمُحْسِنِیْنَ ﴿۱۹۵﴾ وَاَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلّٰهِ ؕ فَاِنْ اُحْصِرْتُمْ فَمَا اسْتَیْسَرَ مِنَ الْهَدْیِ ۚ وَلَا تَحْلِقُوْا رُءُوْسَكُمْ حَتّٰى یَبْلُغَ الْهَدْیُ مَحِلَّهٗ ؕ

---

دَ الله په لاره کښې خرچ کوئ او خپل ځان په خپلو لاسونو مه هلاکه وئ[208]. دَ احسان طریقه اختیار کړئ ځکه چه الله احسان کونکی خوښوی[209].

دَ الله دَ رضا دپاره چه کله دَ حج او دَ عمرے نیت وکړئ نو هغه پوره کوئ، او که چرے په یو ځائے کښې رابند کړے شوئ نو بیا چه څه قربانی درته آسانه وی هغه الله ته پیش کړئ[210] او تر هغې پورے خپل سرونه مه خروئ ترکومه پورے چه قربانی خپل ځائے ته رسیدلی نه وی[211].

---

[208] دَ الله په لاره کښې دَ خرچ کولو نه مراد دَ الله دَ دین دَ قایمولو په کوشش کښې خپل مال لګول دی. دَ آیت مطلب دا دے که چرے تاسو دَ خدائے دَ دین دَ وچتولو دپاره خپل مالونه نه لګوئ او دَ دین په مقابله کښې درته خپلے ذاتی فایدے غوره ښکاری نو دا به ستاسو دپاره په دُنیا کښې هم دَ هلاکت سبب وی او په آخرت کښې هم. په دنیا کښې به دَ کافرانو غلامان او ذلیله شئ او په آخرت کښې به درته سخت تپوس کیږی.

[209] دَ احسان لفظ دَ حُسن نه وتلے دے، او معنیٰ ئے یو کار په ښه طریقه سره کول دی. دَ کار یوه درجه دا ده چه سړی ته کوم خدمت حواله شوے وی، بس هغه وکړی. او دَ کار بله درجه دا ده چه هغه په ښه طریقے سره وکړی په هغې کښې خپل پوره قابلیت او خپل ټول ذرایع استعمال کړی او دَ هغې کار دَ پوره کولو کوشش دَ زړهٔ دَ اخلاصه وکړی. اوله درجه صرف دَ حکم منلو درجه ده، چه دَ هغې دپاره صرف تقوای او یره کافی ده. او دا دویمه درجه دَ احسان درجه ده، چه دَ هغې دپاره محبت او دَ زړهٔ مینه پکار ده.

[210] یعنی که چرے په لاره کښې څه داسے سبب پیښ شی چه دَ هغې په وجه سړے وړاندې نشی تللے او دَ مجبورئ نه رامنع شی نو دَ اوښ، غوا، چیلئ نه چه کوم درته آسان وی هغه دَ الله دپاره قربانی کړی.

[211] په دے خبره کښې اختلاف دے چه دَ قربانئ خپل ځائے ته دَ رسیدلو نه څه مراد دے. حنفی علماء وائی چه دَ دے ځائے نه مراد حرم شریف دے. یعنی که چرے سړے په لاره کښې دَ مجبورئ دَ وجه نه منع شی نو دَ قربانئ څاروے یا دَ هغې قیمت دِ ولیږی چه دَ حرم په حدو نو کښې دَ دهٔ دَ طرفه قربانی وکړے شی. او امام مالکؒ او امام شافعیؒ وائی چه سړے په کوم ځائے کښې رابند کړے شوے وی هلته دِ قربانی وکړی.



وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿۱۹۶﴾ اَلْحَجُّ اَشْهُرٌ مَّعْلُوْمٰتٌ ۚ فَمَنْ فَرَضَ فِيْهِنَّ الْحَجَّ فَلَا رَفَثَ وَلَا فُسُوْقَ ۙ وَلَا جِدَالَ فِي الْحَجِّ ۗ وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ يَّعْلَمْهُ اللّٰهُ ۗ وَتَزَوَّدُوْا فَاِنَّ خَيْرَ الزَّادِ التَّقْوٰى ۫ وَاتَّقُوْنِ يٰٓاُولِي الْاَلْبَابِ ﴿۱۹۷﴾

وقف النبی صلی اللہ علیہ وسلم

دَ الله دَ دے حکمونو دَ خلاف ورزئ نه ځان ساتئ او ښه ځان پوهه کړئ چه الله سخت سزا ورکولو والا دے۔

دَ حج میاشتے ټولو ته معلومے دی. څوک چه په دے مقررو میاشتو کښے دَ حج نیت وکړی هغه له ځان خبره وَل پکار دی چه دَ حج په دوران کښے هغه نه څه شهوتی کار،[213] څه بد عمل[215] او دَ جنګ جګړے خبره وَنه شی[216] او تاسو چه کوم نیک کار کوئ، الله په هغے پوهه دے. دَ حج دَ سفر دپاره دَ لارے توښه دَ ځان سره واخلئ او دَ ټولو نه بهتره توښه پرهیزکاری ده. نو اے عقلمندو! زما دَ نافرمانئ نه ځان وساتئ[217]

چه هغوئ په یو سفر کښے عُمره او حج دواړه کولے شی. لیکن دَ هغے خلقو سره ئے دا رعایت وَنه کړو څوک چه دَ میقاتونو په حدونو کښے دننه دَ مکے خوا وشا کښے وسیږی ځکه چه دَ هغوئ دپاره عُمرے له ځان له سفر کول او حج له ځان له سفر کول څه ګرانه خبره نه ده۔

دَ حج دَ ورځو دَ راتللو نه وړومبے په دغه وخت کښے دَ عُمرے کولو مطلب دا دے چه سړے عُمره وکړی او بیا احرام مات کړی او دَ احرام دَ پابندو نه ځان آزاد کړی۔ بیا چه کله دَ حج ورځے راشی نو بیا دِ نوے احرام وتړی۔

[214] دَ احرام په حالت کښے نه یواځے دَ ښځے خاوند دَ یو بل سره په شهوت ملاویدل منع دی، بلکه هغوئ له پکار دی چه شهوتی خبرے هم نه کوی۔

[215] دَ ګناه کارونه خو هسے هم ناجائزه دی، لیکن دَ احرام په حالت کښے دَ هغے ګناه نوره هم سخته شی۔

[216] تر دے پورے چه نوکرته سخته خبره کول هم جائز نه دی۔

[217] دَ جاهلیت په زمانه کښے دَ حج په سفر کښے دَ لارے توښه دَ ځان سره وړل یو دُنیا والا کارګڼلے شو او دَ یو مذهبی سړی نه به خلقو دا امید ساتلو چه هغه به دَ خدائے کور ته دَ دنیا سامان هډو وَړی نه. په دے آیت کښے دے خیال ته غلط وئیلی شوی دی او دا حکم شوے دے چه دَ لارے توښه نه وړل څه نیکی نه ده. اصل نیکی دَ خدائے نه ویره، دَ خدائے دَ حکمونو دَ خلاف ورزئ نه ځان ساتل او پاک ژوند تیره ول دی. کوم مسافر چه خپل اخلاق نه صحیح کوی، دَ خدائے نه نه یریږی او بد کارونه

لَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ اَنْ تَبْتَغُوْا فَضْلًا مِّنْ رَّبِّكُمْ ؕ فَاِذَآ اَفَضْتُمْ مِّنْ عَرَفٰتٍ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ عِنْدَ الْمَشْعَرِ الْحَرَامِ ۪ وَاذْكُرُوْهُ كَمَا هَدٰىكُمْ ۚ وَاِنْ كُنْتُمْ مِّنْ قَبْلِهٖ لَمِنَ الضَّآلِّيْنَ ﴿۱۹۸﴾ ثُمَّ اَفِيْضُوْا مِنْ حَيْثُ اَفَاضَ

او که دَ حج سره سره تاسو دَ خپل رب نه فضل هم دَ غواړئ نو په دے کښے څه ګناه نشته^۲۱۸^ بیا چه کله دَ عرفات نه روان شئ نو دَ مشعرِ حرام (مُزدَلفے) سره دَ دریږئ، الله یادکړئ، او هغه شان ئے یادکړئ چه څنګه هغه تاسو ته هدایت کړے دے، ګنئ نو دَ دے نه وړاندے خو تاسو په شاړو سرو وئ.^۲۱۹^ بیا چه دَ کوم ځائے نه نور ټول خلق واپس کیږی دَ هغے ځائے نه تاسو هم

کوی، هغه که دَ ځان سره دَ لارے توښه وه نه نی او په ظاهره ځان فقیرښکاره کړی نو هیڅ فایده ئے نشته. دَ خدائے او دَ خلقو په نظر کښے بد لیله وی او خپل هغه مذهبی کار بے سپک کړی دَ کوم دپاره چه دے سفر کوی. لیکن دَ چا په زړه کښے چه دَ خدائے یره وی او اخلاق ئے صحیح وی نو دَ خدائے سره به هم دَ هغه عزت وی او خلق به هم دَ هغهٔ عزت کوی اګر که ئے دَ ځان سره دَ لارے توښه دیره اغستلی وی.

^۲۱۸^ دا هم دَ پخوانو عربو یو جاهلانه خیال وُو چه دَ حج په سفر کښے به ئے د رزق کټلو کار بد ګنړلو، ځکه چه دَ هغوئ په خیال کښے رزق ګټل یو دُنیاوالا کار وُو او دَ حج په شان یو مذهبی کار کښے دَ دُنیا کارکول ښهٔ نهٔ وُو. قرآن دے خیال ته غلط وائی، هغه وائی چه یو خداپرست سړے چه دَ خدائے تعالیٰ دَ قانون احترام کوی، هغه که دَ خپل رزق دپاره څه کوشش کوی نو دا په اصل کښے هغه دَ خپل رب فضل تلاش کوی، او په دے کښے هیڅ ګناه نشته چه یو سړے دَ خپل رب دَ رضا دپاره سفر کوی او ورسره ورسره دَ خپل رب فضل هم تلاش کوی.

^۲۱۹^ یعنی دَ جاهلیت په زمانه کښے چه دَ خدائے دَ عبادت سره دَ شرک او دَ جاهلیت کوم کارونه شریک شوی وُو هغه ټول پریږدئ او کوم هدایت چه الله تاسو ته نصیب کړے دے دَ هغے مطابق خاص دَ یو الله عبادت کوئ.

النَّاسُ وَاسْتَغْفِرُوا اللّٰهَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿١٩٩﴾ فَاِذَا قَضَيْتُمْ مَّنَاسِكَكُمْ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَذِكْرِكُمْ اٰبَاۗءَكُمْ اَوْ اَشَدَّ ذِكْرًا ۭ فَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّقُوْلُ رَبَّنَآ اٰتِنَا فِي الدُّنْيَا وَمَا لَهٗ فِي الْاٰخِرَةِ مِنْ خَلَاقٍ ﴿٢٠٠﴾ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّقُوْلُ

واپس شئ او د الله نه معافي غواړئ[٢٢٢]، یقیناً هغه معاف کونکے او رحم کونکے دے. بیا چه کله د خپل حج ارکان پوره کړئ، نو کله څنګه چه به مو مخکښې د پلار نیکونو ذکر کولو دغه شان او سرۍ الله ذکر کوئ، بلکه د هغې نه هم زیات کوئ[٢٢٣] (خو د خدائے په یادو ونکو خلقو کښې هم ډیر فرق دے) په هغوئ کښې څوک داسې دي چه وائي چه اے زمونږ ربه مونږ ته په دنیا کښې ټول هر څه راکړے. د داسې سړي دپاره په آخرت کښې هیڅ حصه نشته او څوک وائي،

[٢٢٢] د حضرت ابراهیمؑ او د حضرت اسماعیلؑ د زمانې نه د عربو د حج عامه طریقه دا وه چه په نهمه ذی الحجه به د منیٰ نه عرفات ته تلل. او شپه له به مزدلفې ته واپس کیدل او هلته به ئے شپه کوله. خو چه روستو کله رو رو د قریشو عزت قایم شو نو هغوئ اُووئیل چه مونږه اهل حرم یو، دا زمونږ د شان سره نه ښائیږي چه مونږه د عامو عربیانو سره عرفات ته لاړ شو. نو هغوئ په دے طریقه ځان له خپل شان قایم کړو چه د مزدلفې پورے به لاړل نو دوئ به د دغه ځائے نه واپس شول او د عامو خلقو سره به عرفات ته نه تلل. او بیا دغه د عزت شان بنی خزاعه او بنی کنانه او د هغه نورو قبیلو ته هم حاصل شو د چا سره چه د قریشو د دا د خپلوۍ جوړه شوې وه. په آخر کښې خبره دے تناو رسیدله چه د کومو قبیلو به د قریشو سره وعده وه، نو تش د دے وعدے په وجه به د هغوئ شان هم د عامو عربیانو نه اوچت شو او هغوئ به هم عرفات ته تلل پریښودل. د اخرا و دا غرور په دے آیت کښې ختم کړے شوے دے. په آیت کښې دا وینا خاص کر قریشو او د هغوئ رشته دارانو او د هغوئ حلیف قبائلو ته ده، او د عامه وینا هغه ټولو خلقو ته ده چه کله دا قسم شان ځان له جوړول غواړي، هغوئ ته دا حکم وشو چه نور ټول خلق کوم ځائے ته ځي، د هغوئ سره تاسو هم ځئ، چه هغوئ کوم ځائے ودریږي هلته تاسو هم ودریږئ او هم د هغوئ سره واپس کیږئ او تر اوسه پورے چه مو د سنت ابراهیمي څومره خلاف ورزي کړیده د هغه د الله نه معافي غواړئ.

[٢٢٣] عربیان چه به د حج نه وزګار شو نو په منیٰ کښې به ئے جلسے کولے، چه په هغې کښې به د هرے قبیلے خلقو د خپل پلار نیکه کارنامے ډیر په فخر سره بیانولے او په هغه به ئے فخر کولو. د دے په باره کښې الله فرمائي چه دا جاهلانه خبرے پریږدئ، او کوم وخت چه به مو په فضول کارونو کښې تیروو، اوس هغه د الله په یاد او د الله په ذکر کښې تیروئ. د دے ذکر نه مراد په منیٰ کښې ذکر کول دي.

رَبَّنَآ اٰتِنَا فِی الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّفِی الْاٰخِرَةِ حَسَنَةً وَّقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿۲۰۱﴾ اُولٰٓئِكَ لَهُمْ نَصِيْبٌ مِّمَّا كَسَبُوْا ۭ وَاللّٰهُ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴿۲۰۲﴾ وَاذْكُرُوا اللّٰهَ فِیْٓ اَيَّامٍ مَّعْدُوْدٰتٍ ۭ فَمَنْ تَعَجَّلَ فِیْ يَوْمَيْنِ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ۚ وَمَنْ تَاَخَّرَ فَلَآ اِثْمَ عَلَيْهِ ۙ لِمَنِ اتَّقٰى ۭ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّكُمْ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿۲۰۳﴾ وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يُّعْجِبُكَ قَوْلُهٗ فِی الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا

چه اے زمونږه ربه! مونږه په دُنیا کښے هم ښهٔ کړے او په آخرت کښے هم ښهٔ کړے، او دَ اُور دَ عذاب نه مونږ ساتے. دَ داسے خلقو به دَ خپلے گټے مطابق (په دواړو ځایونو کښے) حصه وی او په حساب کولو کښے دَ الله هیڅ وخت نهٔ لگی. دا دَ شمار څو ورځے دی، دا تاسو له دَ الله په یاد کښے تیره ول پکار دی. بیا که چا تلوار وُکړه او په دوه ورځو کښے واپس شو نو خیر دے، او که څوک څه ورځے روستو واپس شو نو هم خیر دے[۲۲۳] څهٔ گناه پکښے نشته. خو شرط پکښے دا دے چه دا ورځے هغه په پرهیزگارئ سره تیرے کړے وی ــــ دَ الله دَ نافرمانئ نه ځان ساتئ او ښهٔ یقین لرئ چه یوه ورځ به دَ هغه مخے ته تاسو پیش کیږئ. په انسانانو کښے داسے هم شته چه دَ هغه خبرے دَ دنیا په ژوند کښے تا ته ډیرے ښے معلومیږی

[۲۲۳] یعنی په ایام تشریق کښے دَ منیٰ نه مکے ته که څوک دَ ذی الحجے په دولسمه ورځ واپس شو یا دَ ذی الحجے په دیارلسمه نو هیڅ خبره نهٔ ده. اصل خبره هلته ورځے تیره ول نهٔ دی، بلکه دَ خدائے ذکر کول دی. یعنی چه څومره ورځے هلته تیره وے نو په هغے کښے دَ خدائے سره ستاسو تعلق وے، آیا دَ خدائے ذکر کوئ یا په میلو ټیلو کښے کړځئ.

وَيُشْهِدُ اللّٰهَ عَلٰى مَا فِىْ قَلْبِهٖ ۙ وَهُوَ اَلَدُّ الْخِصَامِ ﴿۲۰۴﴾ وَاِذَا تَوَلّٰى سَعٰى فِى الْاَرْضِ لِيُفْسِدَ فِيْهَا وَيُهْلِكَ الْحَرْثَ وَالنَّسْلَ ؕ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الْفَسَادَ ﴿۲۰۵﴾ وَاِذَا قِيْلَ لَهُ اتَّقِ اللّٰهَ اَخَذَتْهُ الْعِزَّةُ بِالْاِثْمِ فَحَسْبُهٗ جَهَنَّمُ ؕ وَلَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿۲۰۶﴾ وَمِنَ النَّاسِ مَنْ يَّشْرِىْ نَفْسَهُ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ رَءُوْفٌۢ بِالْعِبَادِ ﴿۲۰۷﴾ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا ادْخُلُوْا فِى

او هغه په خپله نیک نیتۍ باندې خدای ته هر وخت گواه کوي،[۲۲۳] خو په حقیقت کښې هغه د حق بدترین دُشمن وي.[۲۲۴] چه کله ورته اقتدار حاصل شي[۲۲۵] نو په زمکه باندې ئې ټول منډې ترړې د دې دپاره وي چه فساد جوړ کړي، فصلونه تباه کړي او د انسانانو نسل برباد کړي ـــــ حالانکه الله تعالیٰ (چه دے ئې ځان له گواه کوي) هر گز فساد نه خوښوي ـــــ او کله چه هغه ته وُوئیلے شي چه الله نه وُیریږه نو د خپل عزت خیال ئې په گناه باندې بندې ټینگ کړي. د داسې سړي دپاره خو بس جهنم کافي دے او جهنم ډیر خراب ځائے دے. بل طرفته په انسانانو کښې داسې هم شته چه د الله د رضا په تلاش کښې خپل ځان وقف کوي او په داسې بندگانو باندې الله ډیر مهربان دے. اے ایمان والو! تاسو په اسلام کښې پوره

[۲۲۳] یعنې وائي چه خدائے گواه دے چه زه صرف خیر لټوم، زما کښې خپل څه غرض نشته، زه صرف د حق دپاره یا د خلقو د فائدې دپاره کار کوم.

[۲۲۴] د "اَلَدُّ الْخِصَامِ" معنیٰ ده "هغه دشمن چه د ټولو دُشمنانو نه زیات خطرناک وي". یعنې چه د حق په مخالفت کښې څومره ممکن وي هغه کوي. دروغ وائي، بے ایمانی کوي، دوکه او وعده خلافي کوي او د هر قسم خراب کار نه مخ نه اړوي.

[۲۲۵] د "اِذَا تَوَلّٰى" دوه مطلبونه کیدے شي یو هغه چه موږ په ترجمه کښې بیان کړے دے. او بل مطلب ئې دا هم کیدے شي چه "د دے مزیدارو خوندورو خبرونه" کله هغه واپس شي" نو بیا دا کار وته کوي.

السِّلۡمِ كَآفَّةً ۪ وَلَا تَتَّبِعُوۡا خُطُوٰتِ الشَّيۡطٰنِ‌ؕ اِنَّهٗ لَـكُمۡ عَدُوٌّ مُّبِيۡنٌ ﴿۲۰۸﴾ فَاِنۡ زَلَلۡتُمۡ مِّنۡۢ بَعۡدِ مَا جَآءَتۡكُمُ الۡبَيِّنٰتُ فَاعۡلَمُوۡٓا اَنَّ اللّٰهَ عَزِيۡزٌ حَكِيۡمٌ ﴿۲۰۹﴾ هَلۡ يَنۡظُرُوۡنَ اِلَّاۤ اَنۡ يَّاۡتِيَهُمُ اللّٰهُ فِىۡ ظُلَلٍ مِّنَ الۡغَمَامِ وَالۡمَلٰٓـئِكَةُ وَقُضِىَ الۡاَمۡرُ‌ؕ

پوره داخل شئ[۲۲۶] او په شیطان پسې مه ځئ ځکه چه هغه ستاسو ښکاره دُشمن دے. کوم صفا او ښکاره هدایات چه تاسو ته راغلي دي، که د هغې نه روستو بیا تاسو بے لارے شوئ، نو یقین لرئ چه الله په هرڅه باندې غالب هم دے او حکمت والا او دانا دے.[۲۲۷] (د دے ټولو نصیحتونو او هدایتونو نه روستو هم چه داخلق نیغ نه شو، نو) آیا دوئ او س د دے خبرے انتظار کوي چه الله د فرښتو سره د وریځو په چهترئ کښې بښکله دوئ ته راشي او فیصله وُکړے شي؟[۲۲۸] ——

[۲۲۶] یعنی خپل ټول ژوند د اسلام تابع کړئ. ستاسو خیالونه، ستاسو نظریئے (د ژوند اصول)، ستاسو علمونه، ستاسو طور طریقې، ستاسو معاملے او ستاسو هڅه منډه تر ره د د اسلام تابع وی. دا سے نه چه خپل ژوند په مختلفو حصو کښې تقسیم کړئ څه حصے په اسلام کښې راولئ او څه حصے د اسلام نه بهر د ساتئ.

[۲۲۷] یعنی هغه زبردست طاقت هم لری او دا هم پیژني چه خپلو مجرمانو له کوم قسم سزا ورکړي.

[۲۲۸] په دے خبره باندې غور پکار دے. په دے کښې یو ویرونکے حقیقت پروت دے. په دے دُنیا کښې د انسان ټول آزمیښت صرف د دے خبرے دے چه هغه نالیدلے حقیقت منئ او که نه، او بیا د حقیقت منلو نه روستو، سره د دے چه د نافرمانئ اختیا رورله شته، دے په خپل اخلاق طاقت حکم منی او که نه. د دے غرض دپاره الله تعالیٰ د پیغمبرانو، د کتابونو او د معجزو په رالیږلو سره د عقل او د اخلاق امتحان ضرور اختلے دے خو حقیقت ئے هیچرے داسے نه دے ښکاره کړے چه بیا پرا پیان راوړل خامخا ضروری وی. ځکه چه د حقیقت د ښکاره کیدو نه روستو خو امتحان بالکل بے مطلبه کیږی او په امتحان کښې د کامیابئ او د ناکامئ هیڅ مطلب نه پاتے کیږی. په دے وجه الله دلته فرمائي چه د هغه وخت انتظار مه کوئ چه کله الله او د هغه د بادشاهئ کارکونکے فرښتے بښکله ستاسو وړاندې راشي، ځکه چه هغه خو به بیا د فیصلے وخت وی، بیا به فیصله کیږی او آزمیښت به ختم شی. د ایمان راوړلو او د حکم منلو قدر خو تر هغه وخته پورے دے تر کومے پورے چه حقیقت ستاسو نه په ظاهره پټ وی او تاسو ئے صرف په دلیلونو باندې ومنئ او د خپله عقلمندئ ثبوت ورکړئ، او صرف د پوهے او د نصیحت په خبره د هغې پیروی شروع کړئ، او د خپل اخلاق طاقت ثبوت پیش کړئ. خو چه کله حقیقت در ته ښکاره شی او تاسو په ظاهری سترګو اُوینئ چه خدائے په تخت ناست دے، او د ټول کائنات



وَإِلَى اللَّهِ تُرْجَعُ الْأُمُورُ ﴿٢١٠﴾ سَلْ بَنِي إِسْرَاءِيلَ كَمْ آتَيْنَاهُمْ مِنْ آيَةٍ بَيِّنَةٍ ۗ وَمَنْ يُبَدِّلْ نِعْمَةَ اللَّهِ مِنْ بَعْدِ مَا جَاءَتْهُ فَإِنَّ اللَّهَ شَدِيدُ الْعِقَابِ ﴿٢١١﴾ زُيِّنَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا الْحَيَاةُ الدُّنْيَا وَيَسْخَرُونَ مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا ۘ وَالَّذِينَ

وقف لازم

آخر ټول معاملې خو خاص الله ته پیش کیدونکې دي.ع

دَ بني اسرائیلو نه تپوس وکړه چه څومره صفا او ښکاره نښې مونږه هغوئ ته ښودلې دي (او بیا دا تپوس ترې هم وکړه چه) دَ الله دَ نعمت ملاویدو نه روستو کوم قوم هغه نعمت په بدبختۍ کښې بدلوي نو هغوئ ته الله څنګه سخته سزا ورکوي.[229]

کوم خلقو چه دَ کفر لاره اختیار کړې ده، دَ هغوئ دپاره دَ دُنیا ژوند ډیر ښائیسته جوړ کړې شوې دے. دا سې خلق په مؤمنانو پورې ټوقې کوي، خو دَ قیامت په ورځ

یادشاهي دَ هغهٔ په حکم چلیږي، او دا فرښتې دَ زمکې او دَ آسمان په انتظام کښې لګیادي کار کوي، او دَ هغهٔ دَ طاقت په مقابله کښې د رته خپل ځان کمزورې ښکاره شي، نو که په دغه وخت کښې تاسو ایمان راوړئ او حکم منلو ته غاړه کیدئ، نو دَ دغه ایمان او اطاعت به څه قیمت وي؟ په دغه وخت کښې خو به سُور کافر او دَ ناکارونه ناکاره مجرم او نافرمانه انسان هم دَ حکم منلو نه انکار نشي کولے. دَ ایمان راوړلو او دَ حکم منلو مُهلت خو بس تر هغې وخته پورې دے تر څو پورې چه دَ حقیقت ښکارد کیدو وخت نهٔ وي راغلے. کله چه هغه وخت راغے نو بیا نهٔ مُهلت شته او نهٔ آزمیښت، بلکه بیا خو هغه دَ فیصلې وخت دے.

[229] دا تپوس چه دَ بني اسرائیل قوم نه شوے دے، دَ دے دوه وجې دي. یوه دا چه دَ کُنړ راتو نه دَ عبرت اغستلو په نسبت دَ دے ژوندي قوم نه عبرت اغستل ډیر بهتر دي. بله دا چه بني اسرائیل هغه قوم دے چه دَ کتاب او دَ نبوت په ذریعه ورته دَ دُنیا دَ پیشوائۍ منصب حواله کړې شوې وو، او بیا دغه قوم دَ دے نعمت نه خپل ځان دَ دنیا پرستۍ، دَ منافقت او دَ ګمراهۍ په وجه محرومه کړو. دَ دے قوم نه روستو اوس چه کومې دلې ته دَ امت دا منصب حواله شوے دے، هغوئ ته هم دَ دے قوم دَ انجام نه ښهٔ سبق ملاویدے شي.

---

اتَّقَوْا فَوْقَهُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۗ وَاللّٰهُ يَرْزُقُ مَنْ يَّشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿۲۱۲﴾ كَانَ النَّاسُ اُمَّةً وَّاحِدَةً ۫ فَبَعَثَ اللّٰهُ النَّبِيّٖنَ مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ ۠ وَاَنْزَلَ مَعَهُمُ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ لِيَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ فِيْمَا اخْتَلَفُوْا فِيْهِ ۗ وَمَا اخْتَلَفَ فِيْهِ اِلَّا الَّذِيْنَ اُوْتُوْهُ مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ بَغْيًۢا بَيْنَهُمْ ۚ

به پرهیزګار خلق دَ هغوئ په مقابله کښے پرُوچت مقام باندِ وی. پاتے شوه دُنیا رزق هغه دَ الله اختیار دے، چه چاته ئے خوښه وی هغه ته ئے بے حسابه ورکوی.

په اول کښے ټول خلق په یوه طریقه باندِ وُو. (روستو بیا دا حالت پاتے نهٔ شو او اختلافات شروع شو) پس دَ هغے نه الله پیغمبران راولیږل چه په صحیح لار تللو باندِ خوشخبری ورکونکی وُو او دَ غلطو تللو دَ انجام نه یرونکی وُو، او دَ هغوئ سره ئے یو حق کتاب دَ دے دپاره نازل کړو چه دَ حق په باره کښے په خلقو کښے کوم اختلافات راغلی دی، دَ هغے فیصله وُکړی ——— او دَ دے اختلافاتو پیدا کیدو لو وجه دا نهٔ وه چه اول خلقو ته حق نهٔ وُو ښودلے شوے. نه) اختلاف هغه خلقو وُکړو، چا ته چه دَ حق علم ورکړے شوے وُو. هغوئ دَ روښانه هدایاتو ملاویدلو نه روستو صرف په دے وجه حق پریښودو او مختلفے طریقے ئے جوړکړے چه هغوئ په خپلو کښے زیاتے کول غوښتل ۲۳۰

۲۳۰ ناپوهه خلق چه کله دَ "مذهب" تاریخ دَ خپل قیاس او ګمان په بنیاد باندِ لیکی، نو وائی چه انسان اول دَ شرک په تیرو کښے پروت وُو، بیا رُو رُو درجه په درجه دَ شرک تیارهٔ ختمه شوه او رڼا ترده پورے زیاته شوه چه انسان دَ توحید مقام ته راورسید لو. "قرآن" دَ دے برخلاف وائی چه په دُنیا کښے دَ انسان ژوند دَ اول نه پوره په رڼا کښے شروع شوے دے. الله تعالیٰ چه دَ ټولو نه اول کوم انسان پیدا کړے وُو هغه ته ئے دا هم ښودلی وُو چه حقیقت څه دے او ستا دپاره صحیح لار کومه یوه ده. دَ هغے نه روستو دَ یوے مودے پورے دَ آدم نسل په نیغه لار باندِ قایم وُو او ټول یو امت وُو. بیا روستو خلقو نوے نوے لارے او مختلفے طریقے جوړے کړلے. دَ هغے وجه دا نهٔ وه چه خلقو ته حقیقت نهٔ وُو ښودلے شوے، بلکه دَ هغے وجه دا وه چه دَ حق پیژندلو نه روستو بعضے خلقو دَ خپل جائز حق نه زیات شان او زیاتے فائدے حاصلول غوښتل او خلق په یو بل باندِ دَ ظلم زیاتی کولو خواهشمند وُو. دَ دے خرابئ لرے کولو دپاره الله تعالیٰ پیغمبران رالیږل شروع کړل. دا

فَهَدَى اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لِمَا اخْتَلَفُوْا فِيْهِ مِنَ الْحَقِّ بِاِذْنِهٖ ؕ وَاللّٰهُ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۲۱۳﴾ اَمْ حَسِبْتُمْ اَنْ تَدْخُلُوا الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَاْتِكُمْ مَّثَلُ الَّذِيْنَ خَلَوْا مِنْ قَبْلِكُمْ ؕ مَسَّتْهُمُ الْبَاْسَآءُ وَالضَّرَّآءُ وَزُلْزِلُوْا حَتّٰى يَقُوْلَ

نو کوم خلق چه په پیغمبرانو باندې ایمان راورو، هغوئ ته الله په خپل حکم د هغه حق لار ؤ ښودله چه په هغې کښې خلقو اختلاف کړے وُو، الله چه چا ته غواړی، هغه ته نیغه لار ښائی۔

۲۳۱ وَلے ستاسو څه خیال دے چه تاسو به جنت ته هم دغه شان داخل شئ، اوحال دا دے چه په تاسو لا تِهول هغه څه نۀ دی تیر شوی کوم چه ستاسونه وړاندې په ایمان والو باندې تیر شوی دی؟ په هغوئ ډیرے سختئ تیرے شوے، ډیر مصیبتونه پرې راغلل، وُجړتولے شو، تردے پورے چه د هغې وخت رسول او د هغه

پیغمبران دَدے د پاره نۀ وُو رالیږلی شوی چه هر یو نبی دِ په خپل نوم یو نوَے مذهب جوړ کړی او ځان له یو نوے اُمت جوړ کړی۔ بلکه د هغوئ د رالیږلو غرض دا وُو چه خلقو ته هغه ورکړ شوی حقه لار وُښائی او د هغوئ نه بیا یو اُمت جوړ کړی۔

۲۳۱ د تیرې آیت او دَدے آیت په منځ کښې یوه پوره قیصه ده، چه هغه دلته په دے وجه نۀ ده ذکر کړے شوی چه دا آیت پخپله هغه قیصې ته اشاره کوی او د قرآن په مکی سورتونو کښې (چه د سورة بقرے نه مخکښے نازل شوی وُو) دا قیصه په تفصیل سره بیان شوی هم ده۔ پیغمبران چه کله دُنیا ته راغلی دی، نو هغوئ او په هغوئ باندې ایمان راوړونکو خلقو د خدائے د باغیانو او سرکشو خلقو سره سخته مقابله کړیده او هغوئ خپل ځانونه په خطره کښې اچولی دی او د باطلو طریقو په مقابله کښې ئے د حق دین د قایمه ولو کوشش کړے دے۔ دَدے دین لاره په یو وخت کښې هم د ګلونو پالنګ نۀ وُو چه کنی چا اَمَنّا وُوئیل او هغه پرې په آرام سملاستو. بلکه په هره زمانه کښې د اٰمَنّا وئیلو سره دا ضروری ده چه چا په کوم دین ایمان راوړے دے، د هغې دین د قایمولو کوشش دِ وکړی او چه په لار کښې ورته کوم شیطانی طاقتونه مخے له راځی د هغې مضبوطه مقابله دِ وکړی۔

الرَّسُوْلُ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَعَهٗ مَتٰى نَصْرُ اللّٰهِ ؕ اَلَآ اِنَّ نَصْرَ اللّٰهِ
قَرِيْبٌ ﴿۲۱۴﴾ يَسْـَٔلُوْنَكَ مَاذَا يُنْفِقُوْنَ ؕ قُلْ مَآ اَنْفَقْتُمْ
مِّنْ خَيْرٍ فَلِلْوَالِدَيْنِ وَالْاَقْرَبِيْنَ وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ
وَابْنِ السَّبِيْلِ ؕ وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ ﴿۲۱۵﴾
كُتِبَ عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ وَهُوَ كُرْهٌ لَّكُمْ ۚ وَعَسٰٓى اَنْ تَكْرَهُوْا
شَيْـًٔا وَّهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ ۚ وَعَسٰٓى اَنْ تُحِبُّوْا شَيْـًٔا وَّ
هُوَ شَرٌّ لَّكُمْ ؕ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۲۱۶﴾ يَسْـَٔلُوْنَكَ
عَنِ الشَّهْرِ الْحَرَامِ قِتَالٍ فِيْهِ ؕ قُلْ قِتَالٌ فِيْهِ كَبِيْرٌ ؕ وَ

سره ملګري مؤمنان پوښتنه وکړه چه د الله مدد به کله راځي ـــــ په هغه وخت کښې هغوی له تسلي ورکړې شوه چه د الله مدد نزدې دے۔

خلق تپوس کوی چه موږ به څه خرچ کړو؟ په جواب کښې ورته اُووایه چه تاسو څه مال خرچ کوئ هغه په خپل مور او پلار باندې، په رشته دارانو باندې، په یتیمانو، مسکینانو او مسافرانو باندې خرچ کوئ. او تاسو چه څه نیکی کوئ الله د هغې نه خبر دے۔

تاسو ته د جنګ حکم شوے دے او هغه ستاسو خوښ نه دے ـــــ کیدے شي چه یو څیز ستاسو خوښ نه وی او هغه ستاسو د پاره ښه وی. او کیدے شي چه یو څیز ستاسو خوښ وی او هغه ستاسو د پاره ښه نه وی۔ الله پوهیږی، تاسو نه پوهیږئ

خلق ستا نه تپوس کوی چه په عزتمنه میاشت کښې جنګ کول څنګه دی؟ ورته ووایه چه په دے کښې جنګ کول ډیر بد کار دے، خو

صَدٌّ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَكُفْرٌۢ بِهٖ وَالْمَسْجِدِ الْحَرَامِ ۙ وَاِخْرَاجُ اَهْلِهٖ مِنْهُ اَكْبَرُ عِنْدَ اللّٰهِ ۚ وَالْفِتْنَةُ اَكْبَرُ مِنَ الْقَتْلِ ؕ وَ

دَ خدائے دَ لارے نہ خلق منع کول او دَ الله سره کفر کول او دَ مسجد حرام لار په خدا پرستو خلقو بانِدِ بندہ ول او دَ حرم وسید ونکی دَ حرم نہ وشړل دَ الله په نِز دَ دے نہ هم زيات بد کار دے او فتنہ دَ وينو تویولو نہ ډیره سخته ده[232]

[232] دَ دے خبرے تعلق دَ یوے واقعے سره دے. دَ دويمے هجرئ دَ رجب په میاشت کښے نبی صلی الله علیه وسلم دَ اتو سړو یوه ډله نخله طرفته لیږلے وه (دا نخله دَ مکے او دَ طائف په مینځ کښے یو ځائے دے) او ورته ئے دا حکم کړے وُو چه دَ قریشو دَ تیاریٔ او دَ هغوئ دَ ارادو پته اولګوئ. نبی ورته دَ جنګ کولو اجازت نه وُو کړے. خو هغوئ له په لاره کښے دَ قریشو یوه وړوکی شان تجارتی قافله مخے له ورغله، هغوئ پرِ حمله وکړه یو سړے ئے ترِ قتل کړو او نور تهول ئے ونیول او سره دَ مالہ ئے مدینے ته راوستل. دا واقعه په داسے وخت کښے وشوه، چه دَ رجب میاشت ختمید له او دَ شعبان میاشت شروع کیدله، او په دے کښے شک وُو چه حمله دَ رجب په عزتمنه میاشت کښے شوی ده او که نه ده، خو قریشو او دَ هغوئ سره پټ یهودیانو او دَ مدینے منافقانو هم دَ مسلمانانو خلاف خبرے شروع کړے، او دا واقعه ئے ښه مشهوره کړله او سخت اعتراضونه ئے شروع کړل، وئیل به ئے چه دا خلق یو طرفته ځان ته الله والا وائی او بل طرفته ئے حال دا دے چه په ماه حرام یعنی عزتمنه میاشت کښے هم دَ وینے تویولو نه نه بَربیږی. دَ دے اعتراضونو جواب په دے آیت کښے شوے دے. دَ جواب خلاصه دا ده چه بیشکه په ماهِ حرام کښے جنګ کول ډیر بد کار دے، لیکن دا اعتراض دَ هغه چا سره نه ښائی چا چه دیارلس کاله پرله پسے په خپلو ورونړو صرف په دے وجه ظلم کولو چه هغوئ په یو خدائے ایمان راوړے وُو، او په خپل وطن کښے ئے دومره تنګ کړل چه هغوئ ئے په وطن پریښودو لو مجبوره کړل. او چه په دے ئے هم تسلی وُنه شوله نو په دغه خپلو ورونړو باندِ ئے دَ مسجد حرام لار هم بنده کړه، حالانکه مسجد حرام دَ هیچا جایداد نه دے او په تیرو دوه زره کالو کښے دا نه ده شوے چه څوک دَ دے دَ زیارت نه منع کړے شوے وی. اوس چه کوم ظالمان دا کارونه کوی، هغوئ په کومه خوله په دے معمولی جګړه دا سخت سخت اعتراضونه کوی، حالا په دے جګړه کښے چه څه شوی دی هغه دَ نبی دَ اجازت نه بغیر شوی دی. دا خوبی دومره خبره شوی ده چه دَ مسلمانانو دَ ډلے دَ یو څو کسانو نه دَ خپل طرفنه یو کار شوے دے.

په دے ځائے کښے دا خبره هم یاد ساتل پکار دی چه کله دے ډلے تیدیان او مال غنیمت نبی صلی الله علیه وسلم ته راوړل او په هغه وخت ورته هغوئ وُ فرمائیل چه ما خو تاسو له دَ جنګ اجازت نه وُو درکړے. او هغوئ چه کوم مال غنیمت راوړے وُو دَ هغے نه ئے دَ بیت المال حصه هم وانه خستله. دَ دے نه دا معلومه شوه چه دَ هغوئ دا لوټ ناجائزه وُو. عام مسلمانانو هم هغوئ په دَ خپل کار باندِ سخت ملامته کړی وُو او په مدینه کښے یو داسے څوک نه وُو چه هغوئ دَ کار ستائنه ئے وکړی وُو

لَا يَزَالُونَ يُقَاتِلُونَكُمْ حَتّٰى يَرُدُّوكُمْ عَنْ دِينِكُمْ إِنِ اسْتَطَاعُوا ۚ وَمَنْ يَرْتَدِدْ مِنْكُمْ عَنْ دِينِهِ فَيَمُتْ وَهُوَ كَافِرٌ فَأُولٰئِكَ حَبِطَتْ أَعْمَالُهُمْ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ ۖ وَأُولٰئِكَ أَصْحَابُ النَّارِ ۖ هُمْ فِيهَا خَالِدُونَ ﴿۲۱۷﴾ إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَاجَرُوا وَجَاهَدُوا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ ۙ أُولٰئِكَ

هغوئ خو به ستاسو سره د خپل وَس مطابق ترهغې پورې جنګيږي چه تاسو د دې خپل دين نه واړه وي. (او ځان ښه پوه کړئ چه که) په تاسو کښې څوک د خپل دين نه واوړيدو او هغه د کفر په حالت کښې مړ شو نو د هغه عملونه به په دُنيا او په آخرت دواړو کښې ضايع شي. د داسې خلق ټول دوزخيان دي او هميشه به په دوزخ کښې وي.[۲۳۳] د دې نه برخلاف چه کومو خلقو ايمان راوړې دې او د خدائ په لار کښې ئې کورونه پرېښودلي دي او جهاد ئې کړې دې،[۲۳۴] هغوئ

---

[۲۳۳] په مسلمانانو کښې چه د کومو ساده کانو خلقو په ذهن کښې د نيکئ او د صُلحې يو غلط خيال ناست وُو، په هغوئ باندې د مکې د کافرانو او د يهوديانو د اعتراضونو ډير اثر شوې وُو. په دې آيت کښې هغوئ ته وئيلې شوي دي چه تاسو د دې خپلو خبرو نه دا اُميد مه لرئ چه ستاسو او د هغوئ په مينځ کښې به صفائي راشي. هغوئ اعتراضونه د صفائي راوستلو په غرض نه کوي هغوئ خو تاسو بدنامول غواړي. هغوئ په دې خبره خفه دي چه تاسو په دې دين باندې ايمان ولې راوړې دې او په دنيا کښې لې ولې خورَوئ نو ترڅو چه هغوئ په خپل کفر باندې ټينګ وي او تاسو په دې دين باندې ټينګ يئ، ترهغې به ستاسو او د هغوئ په مينځ کښې په هيڅ شان صفائي رانشي. او دا سې دشمنان تاسو معمولي دُشمنان مه ګڼړئ. څوک چه ستاسو نه مال، سره زر يا زمکه په زور اخستل غواړي هغه د کم درجې دشمن دې. خو چه څوک تاسو د حق دين نه اړه ول غواړي هغه ستاسو د ټولو نه لوئ دشمن دې. ځکه چه اولنې خو به صرف ستاسو دنيا خرابه کړي، ليکن دا دويم تاسو د آخرت په هميشه عذاب کښې اچوي.

[۲۳۴] د جهاد معنیٰ ده، د څه مقصد حاصلولو د پاره خپل پوره کوشش کول. د دې معنیٰ صرف جنګ نه ده. د جنګ د پاره خو لفظ "قتال" استعمال شوې دې. لفظ جهاد د دې نه ډيره فراخه معنیٰ لري او په دې کښې د هر قسمه کوشش کول شامل دي. مجاهد هغه سړي ته وائي چه هر وخت د خپل مقصد په کار کښې لګيا دي، په دماغ د هغې د پاره سوچونه کوي، په ژبه او قلم د هغې تبليغ کوي، په لاسونو او په پښو باندې د هغې د پاره منډې ترړې او محنت کوي، خپلې ټولې وسيلې د هغې د ترقئ د پاره

يَرْجُوْنَ رَحْمَتَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۲۱۸﴾ يَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ ؕ قُلْ فِيْهِمَآ اِثْمٌ كَبِيْرٌ وَّ مَنَافِعُ لِلنَّاسِ ؗ وَ اِثْمُهُمَآ اَكْبَرُ مِنْ نَّفْعِهِمَا ؕ وَيَسْـَٔلُوْنَكَ مَاذَا يُنْفِقُوْنَ ؕ قُلِ الْعَفْوَ ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُوْنَ ﴿۲۱۹﴾ فِى الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ؕ وَيَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْيَتٰمٰى ؕ قُلْ اِصْلَاحٌ

په جائزه دي چه دَ الله دَ رحمت امید ولري او الله دَ هغوئ غلطي معاف کونکے او په هغوئ باندِ خپل رحمت کونکے دے.

ستانه پټوس کوي چه دَ شرابو او دَ جوارئ څه حکم دے؟ ورته اُووايه چه په دے دواړو څيزونو کښے ډيره خرابي ده. اګرچه په دےکښے دَ خلقو دپاره څه فايدے هم دي خو دَ دے ګناه دَ دے دَ فايدُو نه ډيره زياته ده.[۲۳۵]

ستانه پټوس کوي چه مونږ دَ خدائے په لار کښے څه وَلګوُو؟ ورته اُووايه چه څه ستا سو دَ ضرورت نه زيات وي. دغه شان الله ستاسو دپاره صفا صفا حکمونه بيانَوي، شايد چه تاسو دَ دُنيا او دَ آخرت دَ دواړو فکرُوکړئ.

ستانه پټوس کوي چه دَ يتيمانو سره څه معامله وُکړو، ورته اُووايه چه په کوم کار کښے دَ هغوئ

استعمالوي، او په دے لاره کښے چه ورله څه بندېزونه راشي دَ هغے مقابله بشه په طاقت سره کوي، او که دَ سرور کولو ضرورت راشي نو دَ هغے نه هم مخ نهٔ اړه وي. دے ته "جهاد" وائي. او جهاد في سبيل الله دے ته وائي چه دا ټول هر څه دَ الله دَ رضا دپاره او دَ دے غرض دپاره وُکړے شي چه دَ الله دين دَ الله په زمکه قائم شي او دَ الله کلمه په ټولو کلمو باندِ غالبه شي. دَ دے نه سوابل هیڅ غرض دَ مجاهد نهٔ وي.

[۲۳۵] دا دَ شرابو او دَ جوارئ په حقله اولنے حکم دے، په دے کښے صرف دَ شرابو او دَ جوارئ دَ ناخوښئ اظهار شوے دے. غرض پکښے دا دے چه دَ دے څيزونو دَ حرامولو قبلولو ته دَ خلقو ذهن تيار شي. روستو بيا دَ شرابو په نشه کښے مونځ کول منع کړے شو. او بيا شراب او جوارئ او دَ دے قسم ټول څيزونه قطعاً حرام کړے شو.
(اوګوره سورة نسآء آيت ۴۳ او سورة مائدة آيت ۹۰)

لَهُمْ خَيْرٌ ۖ وَإِنْ تُخَالِطُوهُمْ فَإِخْوَانُكُمْ ۚ وَاللَّهُ يَعْلَمُ الْمُفْسِدَ
مِنَ الْمُصْلِحِ ۚ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَأَعْنَتَكُمْ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ
حَكِيمٌ ﴿٢٢٠﴾ وَلَا تَنْكِحُوا الْمُشْرِكَاتِ حَتَّىٰ يُؤْمِنَّ ۚ وَلَأَمَةٌ
مُؤْمِنَةٌ خَيْرٌ مِنْ مُشْرِكَةٍ وَلَوْ أَعْجَبَتْكُمْ ۗ وَلَا تُنْكِحُوا
الْمُشْرِكِينَ حَتَّىٰ يُؤْمِنُوا ۚ وَلَعَبْدٌ مُؤْمِنٌ خَيْرٌ مِنْ مُشْرِكٍ

نیکړه وی هغه کار کول بهتر دی.[۲۳۶] که چرے تاسو خپل خرچ او د هغوی خرچ یو ځائے کړئ او یو ځائے ئې وسیږئ نو دا هم ښهٔ خبره ده. آخر هغه ستاسو په رورولئ کښے خو راځی. چه څوک بدکونکے وی او څوک ښیګړه راوستونکے وی، د دواړو حال الله ته ښکاره دے. که الله غوښتلے نو په دے معامله کښے به ئے په تاسو سختی کړی وه، خو هغه چه څنګ اختیار والا دے دغه شان حکمت والا هم دے.

تاسو د مشرکانو ښځو سره هرګز نکاح مهٔ کوئ، ترڅو چه هغوی ایمان نهٔ وی راوړے. یوه مؤمنه وینځه د شریف خاندان د مشرکے ښځے نه بهتره ده، اګر که هغه ستاسو ډیره خوښه وی. او د خپلو ښځو نکاح د مشرکانو سړو سره هیچرے مهٔ کوئ، ترڅو چه هغوی ایمان نهٔ وی راوړے. یو مومن غلام د شریف مشرک نه بهتر دے

[۲۳۶] د دے آیت د نازلیدو نه مخکښے په قرآن مجید کښے د یتیمانو د حقونو د حفاظت په باره کښے سخت سخت حکمونه راغلی وُو او تر دے پورے حکم شوے وُو چه "د یتیم مال ته نزدے مهٔ ورځئ" او دا حکم چه "کوم خلق د یتیمانو مال په ظلم سره خوری هغوی په خپلو خیټو کښے اُور اچوی". د دے سختو حکمونو په وجه هغه خلق چه د یتیمانو بچو تربیت کولو ډومره یریدلی وُو چه هغوی د یتیمانو خوراک څښاک د ځان نه بیل کړے وُو او د دے ډومره احتیاط باوجود هغوی یریدل چه چرته د یتیم د مال څه حصه د هغوی د مال سره شریکه نشی. د دغه وجه وه چه هغوی د نبی صلی الله علیه وسلم نه تپوس وُکړو چه، د دے یتیمانو بچو سره صحیح معامله څه رنګ وُکړو.

وَلَوْ اَعْجَبَكُمْ ؕ اُولٰٓئِكَ یَدْعُوْنَ اِلَی النَّارِ ۚۖ وَاللّٰهُ یَدْعُوْٓا اِلَی الْجَنَّةِ وَالْمَغْفِرَةِ بِاِذْنِهٖ ۚ وَیُبَیِّنُ اٰیٰتِهٖ لِلنَّاسِ لَعَلَّهُمْ یَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۲۲۱﴾ وَیَسْـَٔلُوْنَكَ عَنِ الْمَحِیْضِ ؕ قُلْ هُوَ اَذًی ۙ فَاعْتَزِلُوا النِّسَآءَ فِی الْمَحِیْضِ ۙ وَلَا تَقْرَبُوْهُنَّ حَتّٰی یَطْهُرْنَ ۚ

اگرکه هغه ستاسو ډیرخوښ وی. داخلق تاسو ؤورطرفته رابلی[۲۳۷] او الله په خپل حکم تاسو جنت او مغفرت طرفته رابلی، او هغه خپل حکمونه خلقو ته صفا بیانوی، امید دے چه هغوئ به سبق زده کړی او نصیحت به قبول کړی ؏

ستا نه تپوس کوی چه دَحیض څه حکم دے؟ ورته ؤوایه چه دا دَگندګئ یو حالت دے[۲۳۸] په دے کښے دَ ښځو نه ځان له ؤ ساتئ او هغوئ ته مه نزدے کیږئ تر څو چه هغوئ پاکے شوی نهٔ وی.[۲۳۹]

۲۳۷ ـه کوم حکم چه دَ مشرکانو سره دَ وادهٔ دَ نهٔ کولو په باره کښے بره بیان شوے وُو دا دَ هغے حکم اصلی وجه ده. دَ ښځے او دَ سړی په منځ کښے دَ نکاح تعلق صرف دَ خپل شهوت دفع کولو یو تعلق نهٔ دے، بلکه دا دیو انسان دَ بل انسان سره دَ یو ځائے ؤسیدلو په اخلاقو کښے دننه دَ زړهٔ یو ژور تعلق دے. دَ یو مؤمن او دَ بل مشرک په منځ کښے که چیرے دَ زړهٔ دا تعلق جوړشی، نو لکه څنګه چه دا امکان دے چه دَ مومن خاوند یا دَ مومنے ښځے دَ اثر دَ وجے نه به مشرکه ښځه یا مشرک خاوند او دَ هغوئ خاندان او دَ هغوئ بچی دَ اسلامی عقیدے او دَ اسلامی ژوند رنګ واخلی، نو دغه شان دا امکان هم شته چه دَ مشرک خاوند یا دَ مشرکې ښځے دَ خیالاتو او دَ طور طریقو نه به مومنه ښځه یا مومن سړے، دَ هغوئ خاندان او دَ هغوئ بچی رنګ واخلی، او زیات امکان خو دَ دے خبرے دے چه دَ دے تسره. ښځے خاوند دَ کور نه به دَ اسلام او دَ کفر یو داسے نیمچه بچی او نیمچه خاندان راپیدا شی، چه که کافران ئے هم څومره خوښه وی، خو اسلام ئے په هیڅ حال خوښولو ته تیار نهٔ دے. کوم سړے چه صحیح مومن وی هغه صرف دَ خپلو خواهشاتو پوره کولو د پاره دا خطره په خپل سرنشی اخستلے چه دَ هغه په کور کښے دِ کافرانه او مشرکانه خیالات او طور طریقے ترقی ؤکړی او هم پله دَ ده په ژوند باندِ دِ دَ کفر او دَ شرک اثر ؤشی او بالفرض که چیرے یو مومن دَ یو مشرک په عشق کښے اخته شی خو بیا هم هغهٔ له دَ خپل ایمان په وجه دا پکار دی چه دَ خپل دین دَ خاطره خپل عشقی جذبات قربانی کړی.

۲۳۸ ـه په اصل کښے دَ "اَذًی" لفظ استعمال شوے دے چه دَ هغے معنیٰ ګندګی هم ده او بیماری هم ده. حیض صرف یوه ګندګی نهٔ ده، بلکه دا په بدنی لحاظ سره یو داسے حالت دے چه په هغے کښے ښځه دَ جوړوالی په نسبت نا جوړتیا ته ډیره نزدے وی.

فَاِذَا تَطَهَّرۡنَ فَاۡتُوۡهُنَّ مِنۡ حَيۡثُ اَمَرَكُمُ اللّٰهُ‌ؕ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ التَّوَّابِيۡنَ وَيُحِبُّ الۡمُتَطَهِّرِيۡنَ ﴿۲۲۲﴾ نِسَآؤُكُمۡ حَرۡثٌ لَّكُمۡ فَاۡتُوۡا حَرۡثَكُمۡ اَنّٰى شِئۡتُمۡ‌ وَقَدِّمُوۡا لِاَنۡفُسِكُمۡ‌ؕ وَاتَّقُوا اللّٰهَ

بیا چه کله هغوئ پاکے شي، نو په هغه طریقه ورله ورځئ څنګه چه الله تاسو ته حکم کړے دے.[۲۴۰] الله هغه خلق خوښوي چه د بدئ نه ځان ساتي او پاک ژوند تیره وي. ستاسو ښځے ستاسو پټي دي. ستاسو خوښه ده چه څنګه غواړئ هغه شان خپل پټي ته لاړ شئ.[۲۴۱] خو د خپل وړاندې ژوند فکر وکړئ[۲۴۲] او د الله د ناراضګئ نه ځان ساتئ.

[۲۳۹] دا قسمه خبرے قرآن مجید په اشارو اشارو کښے بیانوي او دغه وجه ده چه قرآن "ځان له وسیږئ" او "نزدے مه ورځئ" الفاظ استعمال کړي دي. خو د دے مطلب دا نه دے چه د حیض په مرض کښے د بچو ښځے سره په یو کټ کښے د ناستے نه او په یو ځائے د خوراک کولو نه ځان ساتئ او لکه د یهودیانو، هندوانو او د نورو قومونو پشان ورله هډو کوټے مه ورورئ. نبي صلی الله علیه وسلم چه د دے حکم کومه تشریح کړیده د هغے نه دا معلومیږي چه په دے حالت کښے د ښځے سره د کوروالي کولو نه ځان ساتل پکار دي، باقي نور ټول تعلقات د پخپل ځائے باندې برقرار وي.

[۲۴۰] دلته د حکم نه مراد شرعي حکم نه دے، بلکه هغه فطري حکم ترے مراد دے چه د انسان او د حیوان او د هر ساه لرونکي څیز په طبیعت کښے ایښوده شوے دے، او بغیر د ښودنے نه ترے هر څیز پخپله بنه خبر دے.

[۲۴۱] یعني الله پاک دا ښځے د سړو دپاره د سیل ځائے نه دے جوړ کړے، بلکه د دواړو په منځ کښے د پټي او د کرونده کر پشان تعلق دے. پټي ته کروند کر صرف د سیل دپاره نه ځي بلکه د دے دپاره ځي چه د پټي نه پیداوار واخلي. د انسانیت پټي ته هم د انسانانو کروند کر له د دے دپاره تلل پکار دي چه د هغے نه د انسانانو پیداوار حاصل کړي. خدائے دا نه وائي چه ته په دے پټي کښے کر په کومه طریقه کوے، البته دا وائي چه خه پټي ته بیل خوا مه ځه او د دے غرض دپاره ځه چه د پټي نه پیداوار واخلے.

[۲۴۲] د دے دوه مطلبونه دي او دواړه یو شان اهم دي. یو دا چه د خپل نسل جاري ساتلو دپاره کوشش وکړئ چه ستاسو د دنیا نه د تللو نه مخکښے ستاسو په ځائے نور کار کوونکي ودریږي. بل دا چه کوم نسل به ستاسو پخپله روستو په دنیا کښے پاتے کیږي د هغوئ نه د ښه دینداره او خوش اخلاقه سړو جوړولو کوشش وکړئ. په روستنئ فقره کښے په دے خبره باندې زور ورکړے شوے دے چه که چرے د دے دواړو فرضونو په ادا کولو کښے تاسو په قصد باندې ناراستي وکړه نو الله به تاسو نه تپوس کوي.

وَاعْلَمُوْٓا اَنَّكُمْ مُّلٰقُوْهُ ؕ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۲۲۳﴾ وَلَا تَجْعَلُوا اللّٰهَ
عُرْضَةً لِّاَيْمَانِكُمْ اَنْ تَبَرُّوْا وَتَتَّقُوْا وَتُصْلِحُوْا بَيْنَ النَّاسِ ؕ
وَاللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿۲۲۴﴾ لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِيْٓ اَيْمَانِكُمْ
وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ بِمَا كَسَبَتْ قُلُوْبُكُمْ ؕ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ ﴿۲۲۵﴾
لِلَّذِيْنَ يُؤْلُوْنَ مِنْ نِّسَآئِهِمْ تَرَبُّصُ اَرْبَعَةِ اَشْهُرٍ ۚ

---

ځان بنۀ پوه کړئ چه یوه ورځ به دَهغه سره ملاویږئ. او اے نبیؐ، چاچه ستاهدایات ومنل هغوئ ته (د) کامیابئ او دَ نیک بختئ خوشخبری وا وره وه.

دَ الله نوم دَ داسے قسمو نو خوړلو دپاره مه استعمالوئ، چه دَ هغے مقصد دَ نیکئ او دَ پرهیزګارئ او دَ خدائے دَ مخلوق په منځ کښے دَ ښیګړے دَ کارونو نه منع کیدل وی.[۲۲۳] الله ستاسو ټولے خبرے اَوری او په هر څۀ باندِ پوهه دے. کوم بے مطلبه قسمونه چه بے ارادے تاسو خورئ، په هغے باندِ الله تاسو نۀ نیسی،[۲۲۴] خو کوم قسمونه چه په رښتیا سره دَ زړۀ نه تاسو خورئ، دَ هغے پښتنه به ضرور الله کوی. الله ډیر معاف کونکے او صبرناک دے.

کوم خلق چه دَ خپلو ښځو سره دَ تعلق نۀ ساتلو قسم وخوری، دَ هغوئ دپاره دَ څلورو میاشتو مهلت دے.[۲۲۵]

---

[۲۲۳] دَ صحیح حدیثونو نه معلومیږی چه که چا دَ یوے خبرے قسم وخوړو او بیا ورته هغه ته پته ولګیدله چه دَ دے قسم په ماتولو کښے خیر او ښیګړه ده، هغه له پکار دی چه قسم مات کړی او کفاره ورکړی. دَ قسم دَ ماتولو کفاره لس مسکینانو ته خوراک ورکول، یا هغوئ ته کپړه پټول یا غلام آزادول یا درے ورځے روژے نیول دی. (ذکر د سورة مائده، آیت ۸۹)

[۲۲۴] یعنی دَ تکیه کلام په طور چه کوم قسمونه بے ارادے په خُله راشی، دَ هغے نه کفاره شته او نه په هغے باندِ خدائے څوک نیسی.

[۲۲۵] دَ شریعت په ژبه کښے دے ته ایلاء وائی. دَ ښځے او دَ خاوند په منځ کښے تعلقات همیشه ښۀ نۀ پاتے کیدے، کله ناکله ضرور په خپل منځ کښے خفګان پیدا کیږی. لیکن دَ خدائے شریعت هغه خفګان نۀ خوښوی چه هسے خوړ دا په دَ یو بل سره په قانون کښے تړلی شوی وی خو دَ ژوند په روزګار کښے دِ دَ یو بل نه داسے لرے وَ سیږی لکه چه هغوئ ښځه خاوند نۀ وی. دَ دے قسمه خفګان دپاره الله تعالیٰ دَ څلورو میاشتو وخت مقرر کړو.

فَإِنْ فَاءُو فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿٢٢٦﴾ وَإِنْ عَزَمُوا الطَّلَاقَ فَإِنَّ اللَّهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٢٧﴾ وَالْمُطَلَّقَاتُ يَتَرَبَّصْنَ بِأَنفُسِهِنَّ

کہ چرے هغوئ (دَ قسم نه) واپس شو، نو الله معاف کونکے او مهربانه دے.[246] او که چرے هغوئ دَ طلاق ارادہ کړی وه نو په دے دِ ځان پوهه کړی چه الله هرڅه اوریدونکے او په هرڅه پوهه دے.[247]

کومو ښځو ته چه طلاق ورکړے شوی وی، هغوئ دِ دَ دریو ځلو میاشتے[248] ناجوړتیا پورے

چه یا خو په دے دوران کښے خپل تعلقات سم کړی، او که نه نو دَ ښځے والئ او دَ خاوند والئ رشته ختم کړی، چه دواړه دَ یو بل نه آزاد شی او چه دَ چا سره موخوښه وی دَ هغوئ سره نکاح وکړی.

چونکه په آیت کښے دَ "قسم خوړلو" الفاظ استعمال شویدی. نو په دے وجه حنفی او شافعی عالمانو دَ آیت نه دا مراد اخستے دے چه که خاوند دَ ښځے سره دَ ښځے والئ دَ تعلق نه ساتلو قسم خوړلے وی نو هله دا حکم دے، او که قسم ئے نه وی خوړلے او دَ ښځے والئ تعلق ئے ختم کړے نو بیا که هر څو مره ډیره موده تیره شی خو دَ دے آیت حکم به پرِ نه لګی. خو دَ مالکی عالمانو رائے دا ده چه که قسم ئے خوړلے وی او که نه وی، په هرصورت کښے دَ ښځے والئ تعلق پریښودلو دپاره هم دا څلور میاشتے مهلت دے. دَ امام احمد یو قول هم دَ دے په تائید کښے دے. (بدایة المجتهد، جلد دوم، ص ۸۸ طبع مصر ۱۳۳۹ھ)

دَ حضرت علی او دَ ابن عباس او دَ حسن بصری دا رائے ده چه دا حکم صرف دَ هغے تعلق پریښودلو دپاره دے چه دَ څه خفګان دَ وجے نه وی. او چه په مینځ کښے څه خفګان نه وی او تعلقات ئے دَ یو بل سره ښه وی، خو دَ څه خیر نیبکړے دَ وجے نه جسمانی رابطه قطع شی نو بیا دَ هغوئ دپاره دا حکم نه دَے لیکن دَ نورو دینی عالمانو دا رائے ده چه هر هغه داسے قسم چه دَ ښځے او دَ خاوند په مینځ کښے جسمانی رابطه ختموی، هغے ته ایلاء وائی، او دا قِسم حالت دَ څلورو میاشتو نه زیات نه دے پکار که په رضا وی او که په نارضا.

[246] ځینو عالمانو دَ دے نه دا مطلب اخستے دے چه که په دے موده کښے چا دننه خپل قسم مات کړو او بیا ئے دَ ښځے والئ تعلق قایم کړو نو دَ قسم ماتولو کفاره پرِ نشته، الله به ئے دا سے معاف کړی. لیکن دَ اکثرو فقهاؤ رائے دا ده چه دَ قسم ماتولو کفاره به ورکوی. دَ غفور رحیم مطلب دا نه دے چه کفاره ورکولو نه معاف کړے شو، بلکه دَ دے مطلب دا دے چه الله به ئے کفاره هم قبول کړی او دَ خفګان په دوران کښے چه ئے په یو بل کوم زیاتے کړے وی هغه به ورته هم معاف کړے شی.

[247] دَ حضرات و عثمان، ابن مسعود او زید بن ثابت وغیره په نزد قسم نه دَ واپس کیدو موقع په څلورو میاشتو کښے دننه دننه ده. دَ دے موده دَ تیریدلو نه پس په دا مطلب دے چه خاوند دَ طلاق ورکولو اراده کړے ده

ثَلٰثَةَ قُرُوْٓءٍؕ وَلَا يَحِلُّ لَهُنَّ اَنْ يَّكْتُمْنَ مَا خَلَقَ اللّٰهُ فِىْٓ اَرْحَامِهِنَّ اِنْ كُنَّ يُؤْمِنَّ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِؕ وَبُعُوْلَتُهُنَّ اَحَقُّ بِرَدِّهِنَّ فِىْ ذٰلِكَ اِنْ اَرَادُوْٓا اِصْلَاحًاؕ وَلَهُنَّ مِثْلُ الَّذِىْ عَلَيْهِنَّ بِالْمَعْرُوْفِۖ وَلِلرِّجَالِ عَلَيْهِنَّ دَرَجَةٌؕ وَاللّٰهُ

ځان وساتي او دَ هغوئ دپاره دا جائز نۀ دي چه الله دَ هغوئ په خېټو کښې څۀ پيدا کړي وي، هغه پټ کړي. داسې کار هغوئ له هرګز نۀ دے پکار، که هغوئ په الله او په ورځ دَ آخرت باندې ايمان لري. کۀ دَ هغوئ خاوندان صحيح تعلقات ساتلو ته تيار وي، نو دَ دے عدت په دوران کښې هغوئ دَ دے حقدار دي چه واپس خپلې ښځې واخلي[۲۲۹]

دَ عامې طريقې مطابق دَ ښځو هم هغه شان حقوند دي، لکه څنګه چه دَ سړو حقونه په هغوئ باندې دي. البته دومره خبره ده چه دَ سړو په ښځو باندې يوه درجه زياته ده — او دَ

تو په دے وجه دَ دے موده دَ تېرېدو لو سره به طلاق پخپله واقع کېږي او هغه به طلاق بائن وي، يعنې دَ عدت په دوران کښې به خاوند ته دَ رجوع کولو حق نۀ وي. هن دومره خبره ده که ښځه خاوند دواره وغواړي نو دوباره نکاح کولې شي. دَ حضراتو عمر، علي، ابن عباس او ابن عمر نه هم داسې يو قول نقل شوے دے. او حنفي فقهاؤ دا رائے قبوله کړے ده.

سعيد بن مسيب، مکحول، زُهري وغيره حضرات خو ددے رائے سره تر دے حده پورے متفق دي چه دَ څلورو مياشتو تېرېدو نه روستو به طلاق پخپله واقع کېږي، ليکن دوئ وائي چه دا طلاق به رجعي وي، يعنې دَ عدت په دوران کښې به خاوند ته دَ رجوع کولو حق حاصل وي، خو که خاوند رجوع ونۀ کړي نو بيا دَ عدت تېرېدو نه روستو که دواړه وغواړي نو نکاح کولې شي.

دَ دے نه برخلاف دَ حضرت عائشې، ابوالدرداء او دَ مدينې دَ نورو ډېرو فقهاؤ رائے دا ده چه دَ څلورو مياشتو دَ تېرېدو نه روستو به معامله عدالت ته پېش کړے شي او دَ عدالت حاکم به خاوند ته حکم وکړي چه يا خو خپلې ښځې ته رجوع وکړه او يا ورله طلاق ورکړه. دَ حضرت عمر، دَ حضرت علي او دَ ابن عمر يو قول ددے رائے په تائيد کښې هم دے. او امام مالک او شافعي دا رائے قبوله کړے ده.

[۲۲۸] يعنې که ناسو خپله ښځه په نارواخبره باندې پريښودلې وي، نو دَ خدائے دَ يره دَ زړۀ نه مۀ وباسئ هغه ستاسو دَ زياتي نه ناخبره نۀ دے.

[۲۲۹] دَ دے آيت په حکم کښې دَ فقهاؤ په منځ کښې اختلاف دے. يوه ډله وائي چه تر څو پورے ښځې دَ دريم حيض نه روستو لامبلې نۀ وي تر هغې پورے طلاق بائن نۀ کېږي او خاوند ته دَ رجوع کولو حق حاصل دے. دَ حضراتو ابوبکر، علي، ابن عباس، ابوموسٰی اشعري، ابن مسعود او دَ لويو لويو صحابو دا رائے ده او حنفي فقهاؤ دا رائے قبوله کړے ده. دَ دے برخلاف بله ډله وائي چه

عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۲۲۸﴾ اَلطَّلَاقُ مَرَّتٰنِ فَاِمْسَاكٌۢ بِمَعْرُوْفٍ اَوْ تَسْرِيْحٌۢ بِاِحْسَانٍ ؕ وَلَا يَحِلُّ لَكُمْ اَنْ تَاْخُذُوْا مِمَّآ اٰتَيْتُمُوْهُنَّ

تولو د پاسه لوئی اختیار والا او حکمت والا الله موجود دے. ع

طلاق دوه ځله دی، بیا خو دِ یا په ښه طریقه ښځه وُساتلے شی او یا خو دِ په ښهٔ طریقه هغه رخصت کرے شی. [۲۵۰]

او دَ رخصت کولو په وخت کښے تاسو له دا جائز نهٔ دی چه تاسو هغوئ له څه ورکړی دی، دَ هغه

ښځے ته دَ دریم حیض راتللو سره دَ خاوند دَ رجوع کولو حق ختم شو. دا رایۓ دَ حضرت عائشه، ابن عمر او دَ زید بن ثابت ده. او شافعی او مالکی فقهاؤ دا رایۓ اختیار کړیده. خو دا یا د لوئی چه دا حکم هله دے چه کله خاوند ښځے ته یو یا دوه طلاق ورکړی وی. او که دریے طلاق ئے ورکړی وُو نو بیا خاوند ته دَ رجوع کولو حق نشته.

[۲۵۰] په دے آیت کښے دَ یوے لوئی خرابئی اصلاح شوی ده. په عربو کښے دا قاعده وه چه یو سړی به خپلے ښځے ته بے شمیره طلاقونه ورکولے شو. دَ کومے ښځے نه به چه کوم خاوند خفه شو نو هغه به ورله بیا بیا طلاقونه ورکول او بیا بیا به ئے ورته رجوع کوله، دَ ښځے غریبے به نهٔ دَ هغه سره ښهٔ ژوند تیرولو او نهٔ به دَ هغهٔ نه آزادیدلے شوه چه دَ بل چا سره نکاح وُکړی. دَ قرآن مجید دا آیت دَ دے ظلم دروازه بنده وی. دَ دے آیت تر مخه سړی ته دا حق حاصل دے چه خپلے ښځے له زیات نه زیات دوه ځله طلاق رجعی ورکړی. کوم سړی چه خپلے ښځے له دوه ځله طلاق ورکړی او بیا ئے ښځے ته رجوع وُکړی، نو بیا ئے چه په ټول عمر کښے دے ښځے ته کله دریم طلاق ورکړو نو دغه ښځه ترۀ همیشه دپاره په دریو طلاقو جدا شوله.

دَ قرآن او دَ حدیث نه چه دَ طلاقو کومه صحیح طریقه معلومیږی هغه دا ده چه ښځے ته دِ دَ پاکوالی په حالت کښے یو طلاق ورکړے شی. که دَ ښځے خاوند خفګان په داسے وخت کښے وُو چه ښځه دَ حیض په مرض ناجوړه وه نو په دغے وخت کښے طلاق ورکول ښهٔ نهٔ دی، بلکه دَ ښځے دَ پاکوالی پورے انتظار پکار دے. بیا که دِ یو طلاق نه رو سترګو دویم طلاق ورکول غواړی، نو بل ځل دِ په دویم پاکوالی کښے یو بل طلاق ورکړی، که څۀ نو ښۀ خبره خو دا ده چه په یو طلاق صبر وُکړی. په دے طریقه کښے خاوند ته دا حق حاصل وی که وُغواړی نو په عدت کښے دننه دننه رجوع کولے شی، او که دَ عدت موده تیره هم شی خو بیا هم دوئ په خپله رضا دوباره نکاح کولے شی. لیکن که په دریم پاکوالی کښے ئے په دریم ځل طلاق ورکړو نو بیا نهٔ خاوند ته دَ رجوع کولو حق حاصل دے او نهٔ دواړه بیا نکاح کولے شی. پاتے شوه دا خبره چه په یو وخت کښے په یو ځل دریے طلاقونه ورکړے شی، لکه څنګه چه ننَ صبا دَ جاهلانو عامه طریقه ده، نو په شریعت کښے دَ دے سخته ګناه ده. نبی صلی الله علیه وسلم په دے ډیر سخت وئیلی دی او دَ حضرت عمرؓ نه دا خبره تر دے پورے ثابته ده چه دَ هغه په زمانه کښے به کوم سړی

شَيْـًٔا إِلَّآ أَن يَخَافَآ أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ ٱللَّهِ ۖ فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا يُقِيمَا حُدُودَ ٱللَّهِ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا فِيمَا ٱفْتَدَتْ بِهِۦ ۗ تِلْكَ حُدُودُ ٱللَّهِ فَلَا تَعْتَدُوهَا ۚ وَمَن يَتَعَدَّ حُدُودَ ٱللَّهِ فَأُو۟لَـٰٓئِكَ هُمُ ٱلظَّـٰلِمُونَ ﴿٢٢٩﴾ فَإِن طَلَّقَهَا فَلَا تَحِلُّ لَهُۥ

څه بیرته واپس واخلئ[251] لیکن دا خبره چه که ښځه خاوند دواړه یریږي چه د الله په قانون باندې به قایم پاتې نشي، دا بیا ښې شامل نه ده. که چرې دا یره وه چه تاسو یریږئ چه هغوی دواړه به د الله په حدونو قایم پاتې نشي، نو که هغوی دواړه په خپل منځ کښې دا معامله وکړي چه ښځه خپل خاوند له څه ورکړي او ځان جدا کړي[252] نو په دې کښې څه ګناه نشته، دا د الله مقرر شوې حدونه دی، د دې نه اخوا مه اوړئ. او څوک چه د الله د حدونو نه اخوا اوړي، هغه ظالمان دي. بیا که چرې (د دویم ځل طلاق ورکولو نه روستو خاوند ښځې له په دریم ځل) طلاق ورکړل،

په یو وخت کښې خپلې ښځې له درې طلاق ورکړل نو هغه به په دُرو وهلو. بیا هم د څلورو واړو امامانو په نزد ګناه سره درې واړه طلاقه کیږي او دا سخت طلاق دی.

[251] یعني مهر او هغه کالي او ګاڼه وغیره چه خاوند خپلې ښځې له ورکړي وي، د هغې نه څه څیز واپس غوښتل د خاوند حق نه دے. دا خبره هسې هم د اسلام د اخلاقي اصولو نه خلاف ده چه څوک چاله څه شے د تحفې په طور یا د بخښنې په طور ورکړي، او هغه تر بیا واپس غواړي. دا یو ذلیل حرکت دے. او په حدیث کښې د دے حرکت مثال د هغه سپي پشان دے چه خپل قے واپس څټلې ستي. او خاص طور د یو خاوند دپاره خو دا ډیره د شرم خبره ده چه ښځې له طلاق ورکړي او بیا د رخصت کولو په وخت کښې د هغې نه هغه ټول څه منع کول غواړي چه ده ورله بخښلي ورکړي وو. د دے برعکس اسلام خلقو ته دا اخلاق ښايي چه سړے کومې ښځې له طلاق ورکړي نو د رخصتولو په وخت کښې دې ورله څه نه څه ورکړي او بیا ئې دې رخصت کړي. لکه څنګه چه وړاندې په آیت ۲۴۱ کښې فرمایلې شوی دی.

[252] په شریعت کښې دے ته "خُلع" وائي، یعني چه ښځه خپل خاوند ته څه ورکړي او طلاق ترې واخلي. دا کار که چرې د ښځې او د خاوند په منځ کښې په کور دننه وُشي او په خپلو کښې څه مقرر کړي، نو چه څه مقرر شو، هم هغه دې ورکوي، لیکن که چرې دا معامله عدالت ته لاړله، نو عدالت به صرف د دے خبرې تحقیق کوي چه آیا دا ښځه په رښتیا د دے سړي نه دومره خفه ده چه د دهٔ سره ئې ګذاره نشي کیدے. چه دا تحقیق وُشي نو بیا عدالت ته اختیار دے چه د حالاتو مطابق څه غواړي، هغه دې مقرر کړي، خاوند به هغه تیلوی او ښځې له به طلاق ورکوي،

مِنۢ بَعۡدُ حَتّٰى تَنۡكِحَ زَوۡجًا غَيۡرَهٗ ؕ فَاِنۡ طَلَّقَهَا فَلَا جُنَاحَ عَلَيۡهِمَاۤ اَنۡ يَّتَرَاجَعَاۤ اِنۡ ظَنَّاۤ اَنۡ يُّقِيۡمَا حُدُوۡدَ اللّٰهِ ؕ وَتِلۡكَ حُدُوۡدُ اللّٰهِ يُبَيِّنُهَا لِقَوۡمٍ يَّعۡلَمُوۡنَ ﴿۲۳۰﴾ وَاِذَا طَلَّقۡتُمُ النِّسَآءَ فَبَلَغۡنَ اَجَلَهُنَّ فَاَمۡسِكُوۡهُنَّ بِمَعۡرُوۡفٍ اَوۡ سَرِّحُوۡهُنَّ بِمَعۡرُوۡفٍ ۖ وَلَا تُمۡسِكُوۡهُنَّ ضِرَارًا لِّتَعۡتَدُوۡا ۚ وَ

نو هغه ښځه د هغه دپاره نه حلالیږی، سوا د دے نه چه هغه ښځه د بل سړی سره نکاح وکړی، او بیا هغه ورله طلاق ورکړی.[۲۵۳] د دے نه روستو که چرے هغه اول خاوند او دا ښځه دا خیال وکړی چه د الله په قانون باندے قایم و سیږی، نو بیا که هغوئ یو بل ته رجوع وکړی نو جائز دی. دا د الله مقرر شوی حد ونه دی، چه هغه ئے د هغه خلقو د هدایت دپاره صفا بیانوی، چه هغوئ (د الله د حد ونو ماتولو په انجام باندے) پوهه دی.

او کله چه تاسو ښځو له طلاق ورکړئ او د هغوئ عدت پوره کیدو ته نزدے شی نو یائے په ښه طریقه د ځان سره حصارے کړئ او یائے په ښه طریقه رخصت کړئ. خاص د تنګولو په غرض هغوئ مه حصاره وئ ځکه چه دا زیاتے دے، او چه چا داسے وکړه،

---

عام طور فقهاؤ دا خبره نه ده خوښه کړے چه کوم مال خاوند ښځے له ورکړے وی او بیا د هغے نه د زیات مال مطالبه وکړی.

د خُلع په مسئله کښے چه کوم طلاق ورکړے کیږی، هغه رجعی نه دی، بلکه طلاق بائن دی. چونکه ښځے دا طلاق په پیسو غښتلے وی، نو په دے وجه خاوند ته دا حق حاصل نه وی چه د دے طلاق نه واپس شی. خو که دا سړے او ښځه بیا د یو بل سره راضی شی او دوباره نکاح کول وغواړی نو دا ورله بالکل جائز دی.

جمهور علماء وائي چه د خُلع عدت هغه دے کوم چه د طلاق دے. لیکن په ابوداؤد، ترمذی او ابن ماجه وغیره کښے ډیر روایات داسے دی چه د هغے نه معلومیږی چه نبی صلی الله علیه وسلم د خُلع عدت یو حیض مقرر کړے وو او د دے مطابق حضرت عثمان رضی د یوے مقدمے فیصله کړی وه. (ابن کثیر جلد اول، ص ۲۷۶)

[۲۵۳] د صحیح حدیثونه معلومیږی چه که یو سړی ښځے له د دے طلاق ورکړی او بیائے ځان ته د حلالولو دپاره د سازش په طور بل چا ته په نکاح ورکړه، او د دے مخکښے نه ئے ورسره دا خبره پخه کړی وه چه د نکاح کولو نه روستو به ورله طلاق ورکوی، نو دا سراسر یو ناجائزه کار دے. دا نکاح نه ده بلکه زنا ده

مَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَقَدْ ظَلَمَ نَفْسَهٗ ؕ وَلَا تَتَّخِذُوْٓا اٰيٰتِ اللّٰهِ هُزُوًا ۡ وَّاذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَمَآ اَنْزَلَ عَلَيْكُمْ مِّنَ الْكِتٰبِ وَالْحِكْمَةِ يَعِظُكُمْ بِهٖ ؕ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ۟ع (۲۳۱) وَاِذَا طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ فَبَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ فَلَا تَعْضُلُوْهُنَّ اَنْ يَّنْكِحْنَ اَزْوَاجَهُنَّ اِذَا تَرَاضَوْا بَيْنَهُمْ



هغه په حقیقت کښې په خپل ځان باندې ظلم وکړو.[۲۵۴] د الله د آیاتو نو نه لوبې مه جوړه وئ. دا مه هیره وئ چه الله څومره لوئ نعمت په تاسو باندې کړے دے. هغه تاسو ته نصیحت کوی چه کوم کتاب او حکمت هغه په تاسو نازل کړے دے، د هغې د عزت خیال ساتئ.[۲۵۵] د الله نه ویریږئ او پوه شئ چه الله د هرے خبرے نه خبر دے.ع

او کله چه تاسو خپلو ښځو ته طلاق ورکړئ او هغوئ خپل عدت پوره کړي، نو بیا تاسو هغوئ د دینه مه منع کوئ چه د خپل خیال مطابق خاوندانو سره نکاح وکړي، هر کله چه هغوئ

او په داسے سازشي نکاح او طلاق و باندې دغه ښځه او لنی خاوند ته هر ګز نه حلالیږی. د حضرت علی او ابن مسعود او ابوهریره او عقبه بن عامر رضی الله عنهم نه متفقه روایت دے چه نبی صلی الله علیه وسلم په دے طریقه باندې ځان له ښځه حلالوونکی او په سازشي نکاح اخستونکی سړي باندې لعنت ویلے دے.

[۲۵۴] یعنی دا یے کول صحیح نه دي چه یو سړے خپلے ښځے له طلاق ورکړي او بیا د عدت تیریدو نه مخکښې ورته صرف په دے غرض رجوع وکړي چه ده له د هغے د تنګولو موقع په لاس ورشي. الله فرمائي چه رجوع په دے نیت سره کوئ چه بیا کدے نه به بنده ژوند تیروئ. کنه نو بیا بهتره خبره دا ده چه ښه په شرافت سره ئے رخصت کړئ. (د زیاتے تشریح دپاره وګورئ حاشیه نمبر ۲۵)

[۲۵۵] یعنی دا حقیقت مه هیره وئ چه الله تاسوله د کتاب او حکمت تعلیم درکړے دے او د دنیا د مشرئ عظیم الشان منصب ئے درحواله کړے دے. تاسو ئے "اُمت وسط" جوړ کړے دے. تاسو ئے د نیکئ او د راستئ ګواهان جوړ کړی یئ. ستاسو دا کار نه دے چه د حیلو بهانو په ذریعه د الله د آیاتو نو سره لوبے وکړئ، د قانون د اصلی مطلب نه برخلاف د الفاظو په زور غلط مطلبونه را نا جائزه فایدے واخلئ، او د دنیا ته د نیغے لارے ښسود لو ځائے بخپله بچپل کورونو کښے ظالمان او بے لارے شئ.

بِالْمَعْرُوفِ ۗ ذٰلِكَ يُوعَظُ بِهٖ مَنْ كَانَ مِنْكُمْ يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ۗ ذٰلِكُمْ اَزْكٰى لَكُمْ وَاَطْهَرُ ۗ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿٢٣٢﴾ وَالْوَالِدٰتُ يُرْضِعْنَ اَوْلَادَهُنَّ حَوْلَيْنِ كَامِلَيْنِ لِمَنْ اَرَادَ اَنْ يُّتِمَّ الرَّضَاعَةَ ۚ وَعَلَى الْمَوْلُوْدِ لَهٗ رِزْقُهُنَّ وَكِسْوَتُهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ ۗ لَا تُكَلَّفُ نَفْسٌ اِلَّا وُسْعَهَا ۚ لَا تُضَآرَّ وَالِدَةٌۢ بِوَلَدِهَا وَلَا مَوْلُوْدٌ

دَ دستور مطابق دَ یو بل سره په نکاح کولو باندِ راضي شي. [256] نصیحت درته کیږي چه داسے کار هیڅکله مه کوئ، که چیرے تاسو په الله او په ورځ دَ آخرت باندِ ایمان راوړونکي یئ. ستاسو دپاره ډیره غوره او پاکیزه طریقه داده چه دَ دے کار نه منع شئ. الله پوهیږي، تاسو نه پوهیږئ.

کوم پلاران چه غواړي چه دَ هغوئ اولاد پوره موده دَ تي پئ وخوري، نو میاندے دِ خپلو بچوته پوره دوه کاله پئ ورکړي. [257] په دے مسئله کښے به دَ بچي پلار رهغوئ له خوراک او کپړه جامے دَ رواج مطابق ورکوي. خو په چا باندِ دَ هغه دَ وس نه زیات بوج نه اچول پکار دی. نه خو دِ مور په دے وجه په تکلیف کښے واچولے شي، چه بچے دَ هغے دے، او نه دِ پلار

---

[256] یعني کړ یو ے ښځے له دَ هغې خاوند طلاق ورکړل، او دَ عدت په وخت کښے ئے ورته رجوع و نه کړه، بیا دَ عدت تیریدو نه روستو هغوئ دواړه بیرته خپلو کښے دوباره نکاح کولو ته تیار شو، نو دَ ښځے رشته دارانو له پکار دي چه هغوئ دَ نکاح کولو نه منع نه کړي. دَ دے دا مطلب هم کیدے شي چه کوم سړي خپلے ښځے له طلاق ورکړل، او ښځه دَ عدت تیریدو نه روستو آزاده شوه، او هغه بیا چرته بل چا سره نکاح کول غواړي، نو دَ مخکیني خاوند له دا نه دي پکار چه هغه په څه چل دَ غه نکاح خرابه کړي او دا کوشش شروع کړي چه کومه ښځه دَ پریښودلې دَه چه هغه هر وڅوک په نکاح قبوله نه کړي.

[257] دا دَ هغے مسئلے حکم دے، کله چه ښځه خاوند دَ یو بل نه، دَ طلاق په ذریعه یا دَ خُلع په ذریعه یا دَ فسخ او دَ تفریق په ذریعه جُدا شوي دي، او دَ ښځے په غیږ کښے پئ خوړونکے بچے وي.

لَهٗ بِوَلَدِهٖ ۚ وَعَلَى الْوَارِثِ مِثْلُ ذٰلِكَ ۚ فَاِنْ اَرَادَا فِصَالًا عَنْ تَرَاضٍ مِّنْهُمَا وَتَشَاوُرٍ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَا ؕ وَاِنْ اَرَدْتُّمْ اَنْ تَسْتَرْضِعُوْٓا اَوْلَادَكُمْ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اِذَا سَلَّمْتُمْ مَّآ اٰتَيْتُمْ بِالْمَعْرُوْفِ ؕ وَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿۲۳۳﴾ وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا يَّتَرَبَّصْنَ بِاَنْفُسِهِنَّ اَرْبَعَةَ اَشْهُرٍ وَّعَشْرًا ۚ فَاِذَا بَلَغْنَ اَجَلَهُنَّ

په دے وجه تنګ کړے شی چه بچے دَهغهٔ دے ــــــ دِبِچَیٔ ورکونکے ښځے دا حق لکه څنګه چه دَ بچی په پلار باندِ دے، دغه شان دَهغهٔ په وارث باندِهم دے[۲۵۸] ــــــ خوکه دواړه په خپله رضا او مشورے سره بچے دَ تِی نه پریکول غواړی، نو خیر دے څه ګناه پکښے نشته. او که چرے تاسو غواړئ چه ستاسو بچوله بله ښځه پَئ ورکړی، نو په دے کښے هم څه ګناه نشته خو په دے شرط چه دَهغے کومه مزدوری مقرر کړئ هغه ورلهٔ دَعامے طریقے مطابق ورکړئ. دَ الله نه ویریږئ او په دے ځان پوه کړئ چه څه تاسو کوئ په هغے ټولو دَ الله نظر دے.

په تاسو کښے چه څوک مړه شی، او روستو ترینه ښځے پاتے شی، نو هغوئ دِ خپل ځانونه څلور میاشتے او لس ورځے په انتظار کښے وساتی.[۲۵۹] بیا چه کله دَ هغوئ عدت پوره شی،

[۲۵۸] یعنی که چرے پلار مړ شی، نو څوک چه دَ هغه ځائے دَ بچی سرپرست وی هغه به دا خوراک وی.

[۲۵۹] دا دمړګ نه روستو دَ انتظار عدت پوره کول دَ هغے ښځو دپاره هم دے دَ کوموسره چه خاوندان هډو ملاؤ شوی نهٔ وی. لیکن اُمید واره ښځه په دے حکم کښے شامله نهٔ ده. دَهغے دَ انتظار عدت دَ بچی دَ پیدا کیدلو پورے دے، خواه که بچے دَ خاوند دَ مړګ نه روستو په هغه ورځ پیدا شی او که پکښے څو میاشتے ولږی.

"دَ خپل ځان بیا انتظار کښے دَ ساتلو" مطلب یوائے دا نهٔ دے، چه هغه دِ په دے موده کښے دَ چا سره نکاح نهٔ کوی، بلکه دَ هغے نه دا مراد هم دے چه خپل ځان دِ دَ ډول سنګار نه هم وساتی. په احادیثو کښے صفا حکمونه دی چه دَ عدت په دوران کښے ښځے له رنګدار جامے اغوستل، کالی اچول، رانجه، خوشبوئی او نور رنګ پورے کول او وېښتو کښے ډول پیدا کول نهٔ دی پکار. البته په دے خبره کښے اختلاف دے چه دَ عدت په دوران کښے ښځه دَ کور نه بهر وتے شی

فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا فَعَلْنَ فِيٓ أَنْفُسِهِنَّ بِالْمَعْرُوفِ ۗ وَاللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرٌ ﴿٢٣٤﴾ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيمَا عَرَّضْتُمْ بِهِۦ مِنْ خِطْبَةِ النِّسَآءِ أَوْ أَكْنَنتُمْ فِيٓ أَنفُسِكُمْ ۚ عَلِمَ اللَّهُ أَنَّكُمْ سَتَذْكُرُونَهُنَّ وَلَٰكِن لَّا تُوَاعِدُوهُنَّ سِرًّا إِلَّآ أَن تَقُولُوا قَوْلًا مَّعْرُوفًا ۚ وَلَا تَعْزِمُوا عُقْدَةَ النِّكَاحِ حَتَّىٰ يَبْلُغَ الْكِتَٰبُ أَجَلَهُۥ ۚ وَاعْلَمُوٓا أَنَّ اللَّهَ يَعْلَمُ مَا فِيٓ أَنفُسِكُمْ

نو دَ هغوئ اختيار دے چه دَ خپل ځان په باره کښے په مناسب طريقه څه کول غواړي، هغه دِ وکړي په تاسو باندِ دَ هغے هيڅ ذمه واري نشته. الله ستاسو دَ ټولو دَ عملونو نه خبر دے. دَ عدت په دوران کښے که تاسو دَ دغے کونډو ښځو سره دَ کوږدن کولو اراده په اشارو کنايو کښے ظاهره کړئ اوکه په زړهٔ کښے ئے پټه وساتئ، نو خبر دے، داڅه بده خبره نه ده. الله په دے پوهه دے چه دَ دغے کونډو خيال به ستاسو په زړونو کښے ضرور راځي. خو خيال کوئ چه پټے وعدے لوز ورسره ونه کړئ. که څه خبره کول ورسره غواړئ نو په عامه مناسبه طريقه ئے ورسره کوئ. او تر هغے پورے دَ نکاح تړلو فيصله مهٔ کوئ ترڅو پورے چه عدت نه وي پوره شوے. ښهٔ پوهه شئ چه الله ستاسو دَ زړونو

اوکه نه شي. حضرات عمر، عثمان، ابن عمر، زيد بن ثابت، ابن مسعود، اُمِّ سلمه، سعيد بن مُسيّبؒ، ابراهيم نخعي، محمد بن سيرينؒ او نور لوړ امامان (خدائے دِ پرے رحم وکړي) دَ دے خبرے قائل دي چه دَ عدت په دوران کښے ښځے له پکار دي چه په هغه کور کښے وسيږي چه په کوم کور کښے ئے خاوند وفات شوے وه. دَ ورځے دَ څه ضرورت دپاره بهر وتلے شي، خو وسيدل ورله هم په هغه کور کښے پکار دي. دَ دے برعکس حضرت عائشه، ابن عباس، حضرت علي، جابر بن عبدالله، عطاءؒ، طاؤسؒ، حسن بصري، عمر بن عبدالعزيز او ټول اهل ظاهر دَ دے خبرے قائل دي چه ښځه دَ خپل عدت وخت کوم ځائے غواړي هلته تيرولے شي او دَ عدت په دوران کښے سفر هم کولے شي.

فَاحْذَرُوْهُ ۚ وَاعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ ﴿٢٣٥﴾ ع لَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ اِنْ طَلَّقْتُمُ النِّسَآءَ مَا لَمْ تَمَسُّوْهُنَّ اَوْ تَفْرِضُوْا لَهُنَّ فَرِيْضَةً ۚۖ وَّمَتِّعُوْهُنَّ ۚ عَلَى الْمُوْسِعِ قَدَرُهٗ وَعَلَى الْمُقْتِرِ قَدَرُهٗ ۚ مَتَاعًا ۢ بِالْمَعْرُوْفِ ۚ حَقًّا عَلَى الْمُحْسِنِيْنَ ﴿٢٣٦﴾ وَاِنْ طَلَّقْتُمُوْهُنَّ مِنْ قَبْلِ اَنْ تَمَسُّوْهُنَّ وَقَدْ فَرَضْتُمْ لَهُنَّ فَرِيْضَةً فَنِصْفُ مَا فَرَضْتُمْ اِلَّآ اَنْ يَّعْفُوْنَ اَوْ يَعْفُوَا الَّذِيْ بِيَدِهٖ عُقْدَةُ النِّكَاحِ ۚ وَاَنْ

پہ حال باندِ خبر دے. نو دَ هغه نه ویرېږئ او دا هم خبر شئ چه الله ډېر صبرناک دے، ورپه ورپه خبرے معاف کوی۔ ع

ستاسو دپاره په دے کښے هیڅ ګناه نشته، چه خپلو ښځو له، هغوئ ته دَ لاس وروړلو نه یا هغوئ ته دَ مهر مقررولو نه، طلاق ورکړئ. په داسے مسئله کښے هغوئ له څه نه څه ضرور ورکول پکار دی.[۲۶۵] مالدار سړے دِ دَ خپل حیثیت مطابق او غریب دِ دَ خپل حیثیت مطابق په عامے مناسبے طریقے سره څه ورکړی، دا حق دے په نېکانو خلقو باندِ. او که چرے تاسو ښځینے دَ لاس وروړلو نه مخکښے طلاق ورکړو، لیکن مهر مو ورله مقرر کړے وُو، نو په داسے مسئله کښے به نیم مهر ورکوئ. دا بېله خبره ده چه ښځه دَ نرمئ سلوک وکړی (او مهر وانخلی) یا هغه سړے چه دَ هغهٔ سره دَ نکاح واک اختیار دے، هغه دَ نرمئ نه کار واخلی (او پوره مهر ورکړی)، او چه تاسو (یعنی سړی)

[۲۶۵] دغه شان دَ خپلوئ کولو نه روستو دَ خپلوئ پرېښودو سره ښځے ته څه نه څه نقصان ضرور رسی، دَ دے وجه نه الله حکم وکړو چه دَ خپل حیثیت مطابق هغے له څه ورکړئ.

تَعْفُوْٓا اَقْرَبُ لِلتَّقْوٰى ؕ وَلَا تَنْسَوُا الْفَضْلَ بَيْنَكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿۲۳۷﴾ حٰفِظُوْا عَلَى الصَّلَوٰتِ وَ الصَّلٰوةِ الْوُسْطٰى ۗ وَقُوْمُوْا لِلّٰهِ قٰنِتِيْنَ ﴿۲۳۸﴾ فَاِنْ خِفْتُمْ

د نرمۍ نه کار واخلئ، نو دا د تقوىٰ سره ډېره مناسبه ده. په خپلو معاملاتو کښې سخاوت مه هېروئ[۲۶۱]. ستاسو کار الله وينى۔

د خپلو مونځونو حفاظت کوئ[۲۶۲]، خصوصاً د داسې مونځ چه د مانځه ټولې خوبۍ پکښې راجمع دى[۲۶۳]. خدائے ته په داسې طريقه ودرېږئ لکه څنګه چه فرمان منونکے غلام درېږى. چه ډېرے او د بدامنۍ حالت وى

[۲۶۱] يعنى د انسانانو په خپلو کښې د ښه تعلقاتو ساتلو دپاره دا ضرورى ده چه هغوئ په خپلو کښې د سخاوت او د فراخدلۍ سلوک کوى. که چرے هر يو سړے تيک په خپل قانونى حق باندې تينګ ودرېږى، نو په شريکه د يوځائے ژوند تېرولو ژوند به هيچرے ښه نه شى۔

[۲۶۲] د يو بل سره په شريکه د ژوند تېرولو د قانون بيانولو نه روستو الله تعالىٰ دا تقرير د مونځ کولو په تاکيد باندې ختموى، ځکه چه مونځ هغه ذريعه ده چه په انسان کښې د خدائے ډېره پيدا کوى او په انسان کښې د خدائے د حکمونو د منلو او د نيکۍ او د پاکوالى جذبه پيدا کوى او انسان په صحيح لاره قايم ساتى. که دا ذريعه نه وى نو انسان هيچرے د خدائے په قانون باندې په پابندۍ سره کلک نشى پاتے کيدے او آخر به په نافرمانۍ کښې هغه طرفته لاړ شى کوم طرفته چه يهوديان تلى وُو۔

[۲۶۳] په اصل کښې د "صَلٰوةُ الْوُسْطٰى" لفظ استعمال شوے دے. بعضے مفسرين وائى چه د دے نه مراد د سحر مونځ دے، بعضے وائى چه د ماسپخين مونځ دے، بعضے وائى چه د ماښام مونځ دے او بعضے وائى چه د ماخستن مونځ دے. ليکن په دے کښې يو قول هم د نبى صلى الله عليه وسلم نه نقل شوے نه دے صرف د تشريح کونکو خپرے دى. د ټولو نه زيات قولونه د مازيګر د مانځه په حق کښې دى او دا ويلے کيږى چه نبى صلى الله عليه وسلم دے مونځ ته صلوٰة وسطىٰ ويلى دى. د هغوئ دليل دا دے چه په جنګ احزاب کښې نبى صلى الله عليه وسلم د مشرکانو د حملے د وجے نه د ومره مشغول وُو چه نمر پريوتو او د مازيګر مونځ ئے ونه کړے شو. په دغه وخت کښې نبى ﷺ وفرمائيل چه "خدائے دِ د دے خلقو قبرونه او کورونه د اور نه ډک کړى، دوئ زمونږ نه صلوٰة وسطىٰ قضا کړو." د دے وجه نه دا خيال وکړے شو چه نبى ﷺ د مازيګر مونځ ته صلوٰة وسطىٰ ويلى دى، حالانکه زمونږ په نزد د دے دا ډېر ښکلے مطلب دے چه د جنګ د دے مشغولتيا زمونږ نه د اعلىٰ درجے مونځ قضا کړو، بے وخته به ئے وکړو او زر زر به ئے وکړو خو په خشوع او خضوع او اطمينان او آرام سره به ئے ونه کړے شو. د وُسطىٰ معنىٰ د منځ والا شيز هم دے او داسے شيز هم چه هغه اعلىٰ او غوره وى. د صلوٰة وسطىٰ

فَرِجَالًا اَوْ رُكْبَانًا ۚ فَاِذَآ اَمِنْتُمْ فَاذْكُرُوا اللّٰهَ كَمَا عَلَّمَكُمْ مَّا لَمْ تَكُوْنُوْا تَعْلَمُوْنَ ﴿٢٣٩﴾ وَالَّذِيْنَ يُتَوَفَّوْنَ مِنْكُمْ وَيَذَرُوْنَ اَزْوَاجًا ۖۚ وَّصِيَّةً لِّاَزْوَاجِهِمْ مَّتَاعًا اِلَى الْحَوْلِ غَيْرَ اِخْرَاجٍ ۚ فَاِنْ خَرَجْنَ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْ مَا فَعَلْنَ فِيْٓ اَنْفُسِهِنَّ مِنْ مَّعْرُوْفٍ ۗ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿٢٤٠﴾ وَلِلْمُطَلَّقٰتِ مَتَاعٌۢ بِالْمَعْرُوْفِ ۗ حَقًّا عَلَى الْمُتَّقِيْنَ ﴿٢٤١﴾ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ

نو که پیاده یئ یا په سورلئ د پاسه، څنګه چه درته اسانه وي مونځ کوئ. او چه کله امن شي نو الله په هغه طریقه یادوئ چه کومه طریقه هغه تاسو ته ښودلې ده، چه پرومبي تاسو ته معلومه نه وه.

په تاسو کښې[۲۶۲] چه کوم خلق مړه کیږي او روستو ترینه ښځې پاتې کیږي، هغوئ له پکار دي چه د خپلو ښځو په حق کښې داوصیت وکړي چه یو کال پورې دې ورته د ورېځ او خرچه ورکیدې شي او د کوره دې باهر نشي ایستلې کیدې. بیا که چرې هغوئ پخپله بهر ووځي، نو د خپل ځان په حقله چه هغوئ په عامه مناسبه طریقه هر څه کوي د هغې ذمه واري په تاسو نشته، الله په ټولو باندې غالب اختیار لرونکې او حکیم او دانا دې. دغه شان چه کومو ښځو له طلاق ورکړې شوې وي، هغوئ له دې هم د رخصتولو په وخت کښې په مناسبه طریقه څه نه څه ورکړې شي. دا حق دې په پرهیزګارانو خلقو باندې.

دغه شان الله تاسو ته خپل حکمونه صفا صفا بیانوي.

مطلب مخکښې مونځ هم کیدې شي او دا سې مونځ هم کیدې شي چه په صحیح وخت باندې الله تعالیٰ طرفته پوره توجه او خشوع سره ادا کړې شي او چه په هغې کښې د مونځ ټولې خوبئ موجود وي. دا روستنۍ فقره چه "الله ته د فرمانبردارو بندګانو پشان ودریږئ" پخپله د دې تفسیر کوي.

[۲۶۲] د تقریر سلسله بره ختم شوې وه، دا کلام د هغې د زیاتی کره شوی حصې یعنې تتمې او ضمیمې په طور دې.

لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿۲۴۲﴾ اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ خَرَجُوْا مِنْ دِيَارِهِمْ وَهُمْ اُلُوْفٌ حَذَرَ الْمَوْتِ ۖ فَقَالَ لَهُمُ اللّٰهُ مُوْتُوْا ۫ ثُمَّ اَحْيَاهُمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُوْنَ ﴿۲۴۳﴾ وَقَاتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَاعْلَمُوْٓا

امید دے چہ تاسو بہ پہ عقل فکر سرہ کار کوئ. ع

آیا تاسو[265] د هغه خلقو په حال باندې هم څه غور کړے دے، چه د مرګ د ویرے نه په خپلو کورونو پریښودلی وُو او د زرګونو په تعداد کښې وُو؟ الله هغوئ ته وفرمائیل چه مړه شئ. بیا ئې ورله هغه دوباره ژوند ورکړو.[266] حقیقت دا دے چه الله په انسان باندې ډیر لوئ فضل کونکے دے خو اکثر خلق شکر نه ادا کوی. ـــــ اے مسلمانانو! د الله په لار کښې جنګ کوئ او ښه خبر شئ چه

[265] د دے ځائے نه د تقریرونو دویم سلسله شروع کیږی، په دے تقریرونو کښې مسلمانانو ته د الله په لار کښې د جهاد کولو او د مال قربانولو تلقین شوے دے، او هغوئ ته د نصیحت شوے دے چه د هغه کمزورو نه ځان وساتئ چه د هغې په وجه بنی اسرائیلو ته زوال راغلے. په دے ځائے باندې د ځان پوهه کولو دپاره دا خبره په خیال کښې ساتل پکار دی چه مسلمانان په دغه وخت کښې د مکے نه ایستلی شوی وُو، د کال یونیم کال راسے ئې په مدینه کښې پناه اخستلی وه، او د کافرانو د ظلمونو د لاسه ئې پخپله خوشحله دا مطالبه کړی وه چه موږ ته د جنګ اجازت راکړے شی. خو چه کله ورته د جنګ کولو حکم ورکړے شو، نو بیا پکښې ځینے خلق یریدل، لکه څنګه چه د شپیږ ویشتم رکوع په آخر کښې دی. د دے وجه نه دلته د بنی اسرائیلو د تاریخ دوه لوئے واقعے هغوئ ته د عبرت دپاره بیان شوی دی.

[266] دا د بنی اسرائیلو د خروج واقعے ته اشاره ده. د سورة مائده په څلورم رکوع کښې الله تعالیٰ د دے تفصیل بیان کړے دے. دا خلق په کثیر تعداد کښې د مصر نه وتلی وُو. په دښتو او صحراګانو کښې بے کوره ګرزیدل. پخپله ئې په یو ځائے کښې د دیرے اچولو دپرشوق وُو. خو چه کله ورته د الله په اشاره حضرت موسیٰ حکم ورکړو چه ظالمان کنعانیان د فلسطین د زمکے نه وباسئ او دغه علاقه ځان له فتح کړئ، نو هغوئ بزدلی ښکاره کړه او د مخکښے تللو نه ئے انکار وکړو. نو آخر دا چه الله تعالیٰ هغوئ د څلویښتو کالو پورے په دغه زمکه کښې سرګردانه پریښودل، تر دے پورے چه د هغوئ یو نسل ختم شو او بل نسل ئے د دښتو او صحراګانو نه راوچت شو. پس د هغه نه الله تعالیٰ هغوئ له په کنعانیانو باندې غلبه ورکړه دا سے معلومیږی چه د دے معاملے ته مرګ او دوباره ژوندو ټیلے شوے دے.

إِنَّ اللّٰهَ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿۲۴۴﴾ مَنْ ذَا الَّذِي يُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا فَيُضٰعِفَهُ لَهُ أَضْعَافًا كَثِيرَةً ۚ وَاللّٰهُ يَقْبِضُ وَيَبْصُۜطُ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿۲۴۵﴾ أَلَمْ تَرَ إِلَى الْمَلَإِ مِنْ بَنِي إِسْرَاءِيلَ مِنْ بَعْدِ مُوسٰى ۘ إِذْ قَالُوا لِنَبِيٍّ لَهُمُ ابْعَثْ لَنَا مَلِكًا نُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ ۖ قَالَ هَلْ عَسَيْتُمْ إِنْ كُتِبَ

وقف لازم

الله هرڅه اوري ونکے او په هرڅه پوهه دے. په تاسو کښې څوک دی چه الله تعالیٰ له قرض حسن ورکړي[۲۶۶]، چه الله ئے ورله بیا په څوڅو چنده زیات واپس ورکړي؛ کمول هم د الله په اختیار کښې دی او زیاتول هم، او د هغه طرفته به تاسو واپس ځئ.

بیا تاسو په هغه معامله هم څه غور کړے دے چه د موسیٰ نه روستو د بنی اسرائیلو سردارا نو پیښه شوی وه؛ هغوئ خپل پیغمبرته وئیل چه مونږ له یو بادشاه مقرر کړه چه مونږ د الله په لار کښې جنګ وکړو[۲۶۷]. پیغمبر تپوس وکړو: هسے نه چه تاسو ته د جنګ

[۲۶۶] د "قرضِ حسن" لفظی ترجمه ده "ښه قرض" او د دے نه مراد داسے قرض دے چه خالص د نیکئ په جذبه بے غرضه ورکړے شی. په دے طریقه چه کوم مال د خدائے په لار کښې خرچ کړے شی، هغه ته الله تعالیٰ په خپله ذمه قرض وائي او دا وعده کوی چه زۀ به نۀ صرف قرض ادا کوم بلکه په څوڅو چنده به ئے زیات ورکوم. لیکن شرط پکښې دا دے چه هغه قرض حسن وی، یعنی د خپل څه غرض د پاره ئے نه ورکوی بلکه صرف د الله د رضا د پاره ئے په هغه کارونو کښې لګوی چه کوم کارونه الله خوښ وی.

[۲۶۷] دا تقریباً د مسیح نه زر کاله مخکښې واقعه ده. په هغه وخت کښې په بنی اسرائیلو باندې عمالقه غالب شوی وو او هغوئ د اسرائیلیانو نه د فلسطین اکثرے علاقے په زورا خستلے وے. په دغه زمانه کښې سموئیل نبی د بنی اسرائیلو حکومت کولو، خو هغه ډیر بوډا شوے وو. په دے وجه د بنی اسرائیلو سردارانو ضرورت وګڼړو چه څوک بل سړے د هغوئ مشر شی او د هغه په مشرئ کښې دوئ جنګ وکړی. لیکن په دغه وخت کښې په بنی اسرائیلو کښې دومره جاهلیت راغلے وو او هغوئ د غیر مسلمه قومونو د طور طریقو نه دومره اثر قبول کړے وو چه د هغوئ د دماغونو نه د خلافت او د بادشاهئ فرق وتلے وو. د غه وجه وه چه هغوئ د خلیفه مقرر کولو د پاره نه بلکه د بادشاه مقرر کولو د پاره درخواست کړے وو. په دے باره کښې چه د بائیبل په کتاب سموئیل اول کښې کوم تفصیلات بیان شوی دی هغه دا دی:

"سموئیل په خپل ټول ژوند کښې د اسرائیلو عدالت کولو . . . . بیا ټول اسرائیلی مشران بزرګان راجمع شو او په رامه کښې سموئیل ته لاړل او ورته ئے اُووئیل چه کوره

تہ کمزوره شوې يئ او ستاسو ځامن ستاسو په لار باندې نه ځي. او س ته موږ له څوک باد شاه مقرر کړه چه د نورو قومونو په شان موږ له عدالت کار کوي ...... دا خبره په سموئيل بده ولګيده او د خدا وند نه ئې دعا وغوښتله، او خدا وند سموئيل ته ووئيل چه دا خلق څه تا ته وائي هغه ته غوږ ونيسه ځکه چه هغوئ ستا نه بلکه زما سپکاوے کړے دے چه زه د هغوئ باد شاه نشوم ...... او سموئيل هغه خلقو ته چه باد شاه ئې غوښتلو، د خدا وند دا ټولے خبرے واورولے او ورته ئې ووئيل چه کوم باد شاه به په تاسو باد شاهي کوي، د هغه به دا طريقه وي چه ستاسو ځامن به د خپلو ګاډو د پاره او په خپلو سورو کښے نوکران ساتي، او هغوئ به د هغه د ګاډو نه مخکښے منډے وهي او هغه به هغوئ د زرو زرو سرداران او د پنځو سو پنځوسو جمعداران جوړ وي، او په چا به يوے کوي او فصلونه به ئې ريبي او د خپل ځان د پاره به پرِ د جنګ وسلے او د ګاډو سازونه جوړ وي، او ستاسو د لوڼو نه به د درو اخلو او د ډوډئ ترکارئ پخولو کار اخلي، ستاسو د فصلونو او د انګورو بڼو پټي او د زيتون بڼے باغونه به ستاسو نه واخلي او خپلو خدمتګارانو له به ئې ورکړي او ستاسو د پټو او د انګورو د باغونو لسمه حصه به خپلو غلامانو او نوکرانو له ورکړي او ستاسو نوکران او وينځے او ستاسو ښکلي ځوانان او ستاسو خره به ستاسو نه واخلي او په خپل کار به ئې ولګوي او ستاسو د ګډو بيزو نه به هم لسمه حصه واخلي. نو تاسو به د هغه غلامان شئ او بيا به د هغه باد شاه نه، چه تاسو ځان له خوښ کړے وي، فرياد کوئ، خو خدا وند به تاسو له جواب نه درکوي. د دے نه روستو هم خلقو د سموئيل خبره وا نوريدله او ووئيل چه نه، موږ خو باد شاه غواړو چه زموږ د پاسه وي او چه موږ د نورو قومونو په شان شو، چه موږ له فيصله کوي، چه زموږ نه مخکښے مخکښے ځي او زموږ د طرف نه جنګيږي ..... خدا وند سموئيل ته ووئيل چه ته د دوئ خبره ومنه او دوئ له يو باد شاه مقرر کړه.» (باب ۸ آيت ۵ تا باب ۸ آيت ۲۲)

" بيا سموئيل خلقو ته ووئيل ...... کله چه تاسو وليدل چه د بني عمون باد شاه ناحس په تاسو حمله وکړه، نو تاسو ما ته ووئيل چه په موږ به يو باد شاه باد شاهي کوي، حالانکه خدا وند ستاسو خدائے ستاسو باد شاه وو. نو اوس خپل باد شاه ته ګورئ چه تاسو خوښ کړو او تاسو ورله درخواست کړے وو. ګورئ خدا وند په تاسو باندې باد شاه مقرر کړے دے. که چرے تاسو د خدا وند سو نه يريږئ او د هغه عبادت وکړئ او د هغه خبره ومنئ او نافرماني ئې ونکړئ او تاسو او ستاسو باد شاه په خدا وند خپل خدائے پسے روان شوئ، نو خير دے، ليکن که چرے تاسو د خدا وند خبره ونه منله او د هغه نافرماني مو وکړه، نو د خدا وند لاس به ستاسو خلاف شي، لکه څنګه چه هغه ستاسو د پلارنيکه خلاف شوے وو ...... تاسو ته به پته ولږي او تاسو به ئې وويني هم چه تاسو د خدا وند په مخ وړاندې کښے د ځان د پاره د باد شاه غوښتلو په ذريعه څومره

عَلَيْكُمُ الْقِتَالُ اَلَّا تُقَاتِلُوْا ۖ قَالُوْا وَمَا لَنَآ اَلَّا نُقَاتِلَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَقَدْ اُخْرِجْنَا مِنْ دِيَارِنَا وَاَبْنَآئِنَا ۖ فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ تَوَلَّوْا اِلَّا قَلِيْلًا مِّنْهُمْ ۗ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِالظّٰلِمِيْنَ ﴿۲۴۶﴾ وَقَالَ لَهُمْ نَبِيُّهُمْ اِنَّ اللّٰهَ قَدْ بَعَثَ لَكُمْ

حکم وکړے شی او بیا تاسو جنګ ونۀ کړئ. هغوئ اُووئیل: بنه دا څنګ کیدے شی چه مونږ د خدائے په لار کښے جنګ نۀ کوو، مونږ خو د خپلو کورونو نه شړونکی شوی یُو او زمونږ بال بچ د زمونږ نه جدا کړے شوی دی. خو چه کله هغوئ ته د جنګ حکم وکړے شو، نو د لږ وکسانو نه بغیر نور ټول پښا شو، او الله د هغو ظالمانو نه ښه خبر دے.

د هغوئ نبی هغوئ ته ووئیل چه الله طالوت[269] ستاسو دپاره بادشاه

لئے شرارت کړے دے ..... اوس پاتے شوم زۀ، خو خدائے دِ نۀ کړی چه ستاسو دپاره په دُعا نۀ غوښتلو د خدائے ګنهګار شم، خو زۀ به تاسو ته هغه لار چه هغه ښه نیغه وی ښایم."

(باب ۱۲ آیت ۱۲ تا ۲۳)

د کتاب سموئیل د دے بیان نه معلومیږی چه د بادشاهئ دا مطالبه د الله او د هغه د نبی خوښه نۀ وه. اوس پاتے شو دا سوال چه په قرآن مجید کښے په دے ځائے کښے د بنی اسرائیلو د سردارانو په دے مطالبه باندِ بد ولے نۀ دی وئیلی شوی، نو د دے دا جواب دے چه د لته دا قیصه الله تعالیٰ د کوم غرض دپاره بیان کړی ده نو د هغے د دے سره هیڅ تعلق نشته چه د هغوئ دا مطالبه صحیح وه او که نۀ وه. د لته خو د دے قیصے مقصد دا دے چه بنی اسرائیل څومره بزدله او زړه شوی وُو او په هغوئ کښے څومره خپل مطلبی راغلی وه او په هغوئ کښے د اخلاقو څومره کمے وُو چه د هغے په وجه په آخر کښے هغوئ پریوتل. او د دے قیصے بیا نولو غرض دا دے چه مسلمانان د دے نه عبرت واخلی او خپل ځان کښے دا قسمه کمزورئ پیدا نۀ کړی.

[269] په بائبل کښے د دۀ نوم ساول دے. دا د بن یمین قبیلے د یو خوکالو یو ځوان وُو. "په بنی اسرائیلو کښے د دۀ نه بل څوک ښکلے نۀ وُو او د دومره د ننګ لوړ وُو چه نور خلق به د دۀ د اوږے پورے وُو". د دۀ د پلار نه څو خرے ورک شوے وُوا و دے د هغے خرکتلو دپاره راوتلے وُو، په لاره کښے چه کله د سموئیل نبی ځائے ته ورو رسید، نو الله تعالیٰ نبی ته اشاره وکړه چه دا هغه سړے دے چه مونږ د بنی اسرائیلو د بادشاهئ دپاره خوښ کړے دے. سموئیل نبی هغه خپل کور ته راوستلو د تیلو کوپئ ئے د هغۀ په سر باندِ واړوله او ښکل ئے کړو او ورته ئے ووئیل چه "خدائے ته مسح کړے دپاره د دے چه ته د هغه د میراث پیشوا شے." د دے نه روستو هغه د بنی اسرائیلو په عامه اجتماع کښے د هغه د بادشاهئ اعلان وکړو. (۱- سموئیل، باب ۹ و ۱۰)

طَالُوتَ مَلِكًا ۚ قَالُوٓا أَنَّىٰ يَكُونُ لَهُ الْمُلْكُ عَلَيْنَا وَنَحْنُ
أَحَقُّ بِالْمُلْكِ مِنْهُ وَلَمْ يُؤْتَ سَعَةً مِّنَ الْمَالِ ۚ قَالَ إِنَّ
اللَّهَ اصْطَفَاهُ عَلَيْكُمْ وَزَادَهُ بَسْطَةً فِي الْعِلْمِ وَالْجِسْمِ ۖ وَاللَّهُ
يُؤْتِي مُلْكَهُ مَن يَشَاءُ ۚ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٤٧﴾ وَقَالَ لَهُمْ
نَبِيُّهُمْ إِنَّ آيَةَ مُلْكِهِ أَن يَأْتِيَكُمُ التَّابُوتُ فِيهِ سَكِينَةٌ
مِّن رَّبِّكُمْ وَبَقِيَّةٌ مِّمَّا تَرَكَ آلُ مُوسَىٰ وَآلُ هَارُونَ تَحْمِلُهُ

---

مقرر کړے دے. چه دا ئے واوريدل نو ئے وؤيل: "په مونږ باندِ دَ بادشاه جوړيدو هغه څنګه حقدار شو؟ دَ هغه نه خو مونږ زيات دَ بادشاهۍ حقدار يُو. هغه خو څه لوئے مالدار سړے نهٔ دے." پيغمبر ورله جواب ورکړو: "خدائے ستاسو په مقابله کښے هغه خوښ کړے دے او هغه له ئے دماغي او جسماني دواړه قابليتونه زيات ورکړي دي او دَ خدائے اختيار دے چه خپله بادشاهي چا ته غواړي هغه له ئے ورکوي، الله ډيره لويه فراخي لري او هر څه دَ هغه په علم کښے دي." دَ دے سره ورته خپل پيغمبر دا هم اُووئيل چه "دَ خدائے دَ طرفنه دَ هغه دَ بادشاه کيدو نښه دا ده چه دَ هغه په زمانه کښے به هغه صَندَق تاسو ته بيا ملاؤ شي چه په هغه کښے ستاسو دَ رب دَ طرفنه ستاسو دپاره دَ زړهٔ دَ اطمينان سامان پروت دے، او چه په کښے دَ آلِ موسیٰ او دَ آلِ هرون پريښودلے شوی تبرکات پراته دي، او چه په دے وخت کښے

---

دا په بني اسرائيلو کښے دويم سړے وو چه دَ خدائے په حکم سره "مسح" شو او دَ مشرۍ دپاره مقرر کړے شو. دَ دے نه وړاندِ حضرت هارون دَ سردار کاهن (Chief Priest). په حيثيت سره مسح کړے شوے وَو، دَ دے نه روستو دريم حضرت داؤد عليه السلام مسح کړے شو او څلورم مسيح حضرت عيسیٰ عليه السلام شو. ليکن دَ طالوت په باره کښے دا يو تشريح نهٔ په قرآن کښے شته او نهٔ په حديث کښے چه هغه له نبوت هم ورکړے شوے وُو. صرف دَ بادشاهۍ دپاره دَ هغه خوښول دَ دے دپاره کافي نهٔ دي چه هغه دِ نبي وَ منلے شي.

الْمَلٰٓئِكَةُ ۭ اِنَّ فِىْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۲۴۸﴾ فَلَمَّا فَصَلَ طَالُوْتُ بِالْجُنُوْدِ ۙ قَالَ اِنَّ اللّٰهَ مُبْتَلِيْكُمْ بِنَهَرٍ ۚ فَمَنْ شَرِبَ مِنْهُ فَلَيْسَ مِنِّىْ ۚ وَمَنْ لَّمْ يَطْعَمْهُ

دَ فرښتو په حفاظت کښ دے۔ که چرے تاسو مؤمنان يئ نو دا ستاسو دپاره ډيره لويه نښه ده۔ ع

بيا چه کله طالوت دَ لښکر سره روان شو نو وے وئيل: "چه په يو دريا ب باندِ دَ الله دَ طرفنه ستاسو آزميښت کيدونکے دے۔ چا چه دَ هغے اوبۀ وُڅکلے، هغه به زما ملګرے نۀ وی۔ زما ملګرے صرف هغه دے

۲۷۰؎ دے دے په باره کښ دَ بائيبل بيان دَ قرآن نه ترڅه حده پورے مختلف دے۔ خو بيا هم دَ اصلي واقعے دپر معلومات دهغے نه کيږی۔ دَ هغے نه معلوميږی چه دا صُندَق چه بنی اسرائيلو به ورته "دبادشاهۍ دزمانے صُندَق" وئيلو، په يو جنګ کښ فلسطيني مشرکانو دبنی اسرائيلو نه په زور وا غستلو۔ ليکن دا صُندَق چه دَ مشرکانو په کوم ښار او په کوم کلی کښ کيښودے شو هلته وُبارا غله۔ آخر دا چه هغوی دَ يرے نه دا صندق دغوا يا نو په يو ګاډی کښ کيښود و او ګاډے يئ وَشاړو۔ غالباً دے کار ته قرآن په دے الفاظو سره اشاره کړې ده چه په دغه وخت کښ دا صندق دَ فرښتو په حفاظت کښ وُو، ځکه چه دا ګاډے بغير د چلونکی نه دغے روان کړے شوے وُو۔ او د الله په حکم دا د فرښتو کار وُو چه دا ګاډے دَ بنی اسرائيلو طرف ته راولی۔ باقے شوه دا خبره چه" په دے صندق کښ ستاسو دپاره د زړۀ دا طمينان سامان پروت دے"۔ نو دے حقيقت دَ بائيبل د بيان نه دا معلوميږی چه بنی اسرائيلو دا صندق ډير برکت والا او دځان دپاره ئے د فتحے او د کاميابئ نښه ګڼڼله۔ کله چه دا صندق دَ هغوی د لاس نه اُووتلو نو د ټول قوم زړونه پريوتل او دهر اسرائيلی دا خيال پيدا شوچه د خدائے رحمت زمونږ نه واپس شو او زمونږ ه خرابے ورځے راغللے۔ پس دے صندق واپس ملاويدل دا سرائيليا نو د زړۀ د مضبوتيا لوئ سبب وُو او په دے ذريعه دَ هغوی پريوتلی زړونه بيا پورته کيدے شو۔

"دَ آلِ موسٰی او دَ آلِ هارون پريښودلے شوی تبرکات" چه په دے صندق کښ پراته وُو، دَ هغے نه مراد د کانړی هغه تختئ دی چه په طورِ سينا کښ الله حضرت موسٰی له ورکړے وے۔ د دے نه علاوه د تورات هغه اصلی نسخه هم په دے کښ وه چه حضرت موسٰی په خپله په چاليکلی وه او بنی لاری قبيلے ته ئے سپارلے وه۔ دَ "من" نه ډک يو بوتل هم پکښ پروت وُو دپاره ددے چه راتلونکی نسلونه د الله تعالٰی هغه احسان ياد کړی، چه هغه په صحرا کښ د هغوی د پلار نيکو نو سره کړے وُو۔ او غالباً د حضرت موسٰی هغه همسا هم پکښ پرته وه چه يوه عظيم الشانه معجزه وه۔

فَإِنَّهُ مِنِّيٓ إِلَّا مَنِ اغْتَرَفَ غُرْفَةًۢ بِيَدِهِۦ ۚ فَشَرِبُوا مِنْهُ
إِلَّا قَلِيلًا مِّنْهُمْ ۚ فَلَمَّا جَاوَزَهُۥ هُوَ وَالَّذِينَ ءَامَنُوا مَعَهُۥ
قَالُوا لَا طَاقَةَ لَنَا الْيَوْمَ بِجَالُوتَ وَجُنُودِهِۦ ۚ قَالَ الَّذِينَ
يَظُنُّونَ أَنَّهُم مُّلَٰقُوا اللَّهِ كَم مِّن فِئَةٍ قَلِيلَةٍ غَلَبَتْ
فِئَةً كَثِيرَةًۢ بِإِذْنِ اللَّهِ ۗ وَاللَّهُ مَعَ الصَّٰبِرِينَ ﴿٢٤٩﴾ وَلَمَّا
بَرَزُوا لِجَالُوتَ وَجُنُودِهِۦ قَالُوا رَبَّنَآ أَفْرِغْ عَلَيْنَا

چه څوک پرښنده مړه نه کړي، هغه یوه لپه نیمه که څوک وڅکي، نو وې څکي" خو د لږو کسانو نه بغیر نورو ټولو ورځه د دریاب نه ځان موړ کړو[٢٧١]

بیا چه کله طالوت او هغه ملګري مسلمانان د دریاب نه پورې غاړه لاړل، نو هغوئ طالوت ته اُووئیل چه نن په مونږ کښې د جالوت او هغه د لښکر سره د مقابلے کولو طاقت نشته.[٢٧٢] لیکن چه څوک په دے پوهه وو چه یوه ورځ به د الله سره مخامخ کیږو، هغوئ اُووئیل" ډیر ځله داسے شوے ده چه یوه وړه ډله د الله په حکم سره په یوه لویه ډله باندې غالب شوې ده. الله د صبر کونکو ملګرے دے." او کله چه هغوئ د جالوت او هغه د لښکر سره مقابلے ته رُوتل، نو دُعا ئے وُکړه چه "اے زمونږه ربه په مونږه صبر

[٢٧١] کیدے شي چه دے نه مراد دریائے اُردُن وي یا یو بل وړکوټے دریاب وي. طالوت دا غوښتل چه د بني اسرائیلو لښکر دے دریاب نه پورے غاړه پورے باسي، خو هغه ته معلومه وه چه د بني اسرائیلو اخلاق خراب شوي دي، نو په دے وجه ئے دا ازمینت وُکړو چه د کار والا او بے کاره خلق جُدا جُدا شي. ښکاره خبره ده چه کوم خلق د لږ ساعت د پاره خپله تنده په قابو کښ نشي راوستلے، نو په هغوئ باندې به څه بروسه وُشي چه د هغې دشمن سره به په بهادرۍ مقابله وُکړي، د کوم دشمن د لاسه چه ئے ځکښے ماتے خوړلے ده.

[٢٧٢] غالباً دا به هغه خلق وئیلي وي کوم چه په دریاب باندې او له خپله بے صبرۍ ښکاره کړې وه.

صَبْرًا وَّثَبِّتْ اَقْدَامَنَا وَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۲۵۰﴾ فَهَزَمُوْهُمْ بِاِذْنِ اللّٰهِ ۙ وَقَتَلَ دَاوٗدُ جَالُوْتَ وَاٰتٰىهُ اللّٰهُ الْمُلْكَ وَالْحِكْمَةَ وَعَلَّمَهٗ مِمَّا يَشَآءُ ؕ وَلَوْلَا دَفْعُ اللّٰهِ النَّاسَ بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ ۙ لَّفَسَدَتِ الْاَرْضُ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ ذُوْ فَضْلٍ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿۲۵۱﴾

را وَوَرَه وسے، زموږه پښے کلکے کړے او دکافرانو په ډله باندِ موږ له فتح راکړے"، آخر دا چه د الله په حکم هغوئ کافروله ماتے ورکړه او دا وُد[۲۷۳] جالوت قتل کړو او الله ورله بادشاهي او حکمت ورکړو او کوم څیزونه چه هغه غوښتل د هغے علم ئے ورله ورکړو ——— که چرے دغه شان الله تعالیٰ د انسانانو یوه ډله د بلے ډلے په ذریعه نه لرے کولے نو د زمکے نظام به خراب شوے وَو،[۲۷۴] لیکن دُنیا په خلقو باندِ د الله لوئ فضل دے (چه هغه دغه شان د فساد لرے کولو انتظام کوی) -

[۲۷۳] په دغه وخت کښ داوُد علیه السلام یو کم عمره ځلمے وُو. دے اتفاق چرته د طالوت لښکرته عین په هغه وخت را ورسید و. کله چه د فلسطینیانو د فوج غټ پهلوان جالوت (جولیت) د بنی اسرائیلو فوج ته مقابلے له را وتلے وُو او په اسرائیلیانو کښ هیچا زړه نه شو کولے چه د دهٔ مقابلے ته را وځی - حضرت داوُد چه دا حال ولید و نو یکدم د هغه مقابلے ته میدان ته راغے او هغه ئے قتل کړو - په دے وجه هغه د ټولو اسرائیلیانو د سترګو تور شو، طالوت خپله لور هغه ته واده کړه او آخر دا چه هغه د اسرائیلیانو بادشاه شو. (د تفصیل د پاره وګوره سموئیل اول، باب ۱۷ او ۱۸) -

[۲۷۴] یعني الله تعالیٰ د زمکے د انتظام برقرا رساتلو د پاره دا قانون جوړ کړے دے چه هغه د انسانانو مختلفو ډلو ته یو خاص حد پورے په زمکه کښ غلبه او طاقت ورکوی، خو چه کله یوه ډله د حد نه بهر وتل شروع کړی نو د یو بلے ډلے په ذریعه هغه د هغے زور ختموی. که چرے داسے وے چه د یو قوم او د یوے ډلے واک اختیار په زمکه همیشه دے نو دا یقیني ده چه د خدائے په ملک کښ به یو لوئ فساد راپورته شوے وے -

تِلْكَ اٰيٰتُ اللّٰهِ نَتْلُوْهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ ۭ وَاِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۲۵۲﴾

تِلْكَ الرُّسُلُ فَضَّلْنَا بَعْضَهُمْ عَلٰي بَعْضٍ ۘ مِنْهُمْ

مَّنْ كَلَّمَ اللّٰهُ وَرَفَعَ بَعْضَهُمْ دَرَجٰتٍ ۭ وَاٰتَيْنَا عِيْسَى ابْنَ
مَرْيَمَ الْبَيِّنٰتِ وَاَيَّدْنٰهُ بِرُوْحِ الْقُدُسِ ۭ وَلَوْ شَاۗءَ اللّٰهُ
مَا اقْتَتَلَ الَّذِيْنَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَا جَاۗءَتْهُمُ
الْبَيِّنٰتُ وَلٰكِنِ اخْتَلَفُوْا فَمِنْهُمْ مَّنْ اٰمَنَ وَمِنْهُمْ مَّنْ كَفَرَ ۭ
وَلَوْ شَاۗءَ اللّٰهُ مَا اقْتَتَلُوْا ۣ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَفْعَلُ مَا يُرِيْدُ ﴿۲۵۳﴾ ع

دا د الله اّیتونه دي چه موږ ئې ټیک ټیک تا ته اوروو، او بیشکه ته د هغه خلقو نه ئې چه د رسول په حیثیت لیږلی شوي دي. دا رسولان (چه زموږ د طرفه انسانانو ته د نیغې لارې ښودلو دپاره مقرر شول) موږ دوئ له د یو بل نه ؤچتې مرتبې ورکړې. په هغوئ کښې څوک داسې وو چه خدائے ورسره مخامخ خبرې وکړې، او چا لره ئې په بل حیثیت لوړې مرتبې ورکړې، او په آخرکښې ئې عیسیٰؑ د مریم ځوی له روښانه نښې ورکړې او په پاک روح سره ئې د هغه مدد وکړو. که چرې الله غوښتلے، نو دا کیدے نشو چه د دې رسولانو نه روستو کومو خلقو روښانه نښې لیدلے وې، هغوئ په خپلو کښې جنګ کړے وې، خو (دا د الله طریقه دا نه وه چه هغه خلق په زور باندې د اختلاف کولو نه منع کړي، په دې وجه) هغوئ په خپلو کښې اختلاف وکړو، بیا چا ایمان راوړو او چا د کفر لار اختیار کړه. هو، که الله غوښتلے نو دوئ به هیچرې جنګ نه کولے، خو الله چه څه غواړي هغه کوي.[۲۷۵] ع

[۲۷۵] مطلب دا دے چه د رسولانو په ذریعه د علم حاصلیدلو نه روستو کوم اختلافات په خلقو کښې راپیدا شول، او د اختلافاتو نه خبره جنګونو ته ورسیدله، نو د دې وجه دا نه وه چه، توبه خدایه توبه، خدائے کمزورے وو او هغه سره د دې اختلافاتو او د دې جنګونو ختمولو طاقت نه وو. نه، که چرې هغه غوښتلے، نو هیچا دا طاقت نه وو چه د پیغمبرانو د خبرې نه ئې نافرماني کړې وے او د کفر په لاره تلے وے او هغه په زمکه کښې ئې فساد پورته کړے وے. خو د الله دا اراده

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَنفِقُوا مِمَّا رَزَقْنَاكُم مِّن قَبْلِ أَن يَأْتِيَ يَوْمٌ لَّا بَيْعٌ فِيهِ وَلَا خُلَّةٌ وَلَا شَفَاعَةٌ ۗ وَالْكَافِرُونَ هُمُ الظَّالِمُونَ ﴿٢٥٤﴾ اللَّهُ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ ۚ

اې هغه خلقو چه ایمان مو راوړې دے، څه مال اسباب چه مونږ تاسو له درکړے دے، د هغې نه ولګوئ[۲۷۶] مخکښې د دې نه چه هغه ورځ راشي چه نه به پکښې اخستل خرڅول کیږي، او نه به پکښې دوستي په کار راځي او نه به پکښې سفارش چلیږي. او ظالمان په اصل کښې هم هغه کسان دي چه د کفر لاره اختیاروي[۲۷۷]

الله هغه همیشه ژوندے ذات چه ټول کائنات یې په تابو کښې دے، د هغه نه بغیر بل خدائے نشته دے.[۲۷۸]

نه وه چه انسانانو ته دا په خپل اختیار سره د کار کولو واک واخلي او هغوی د یوې خاص لارې په تللو باندې مجبور کړي. الله تعالیٰ د امتحان اغستلو په غرض انسانان په زمکه باندې پیدا کړي وو، د دې وجې نه ئې هغوی له د هر قسم عقیدے عملونو او د هر قسمه کار کولو آزادي ورکړه، او پیغمبران ئې هغوی ته د دے د پاره نه دي رالیږلي چه په زور باندې خلق ایمان طرفته راولي، بلکه د دے د پاره ئې رالیږلي دي چه دا کوشش وکړي چه خلق د واضحه او صفا دلیلونو په ذریعه نیغې لارې ته راوبلي. نو دا څومره اختلافات چه پیدا شول او دا څومره جنګ جګړے چه وشوے، د دے وجه دا ده چه الله خلقوله په خپل اختیار د کار کولو کومه آزادي ورکړے وه، نو د ئې آزادۍ نه خلقو کار واغستو او په مختلفو مختلفو لارو لاړل، د دے وجه دا نه ده چه الله ئې حضرت په نیغه لاره سمول غوښتل خو هغه په خپل کار کښې کامیاب نه شو، معاذ الله!.

۲۷۶ مطلب ئې د خدائے په لاره کښې خرڅ کول دي. حکم دا دے چه کوم خلقو د ایمان لاره اختیار کړې ده، هغوی له په کار دي چه په کوم مقصد باندې د هغوی ایمان دے د هغې د پاره مالي قربانۍ اوکړي.

۲۷۷ دلته د کفر په لاره باندې تلونکو نه مراد یا خو هغه خلق دي، چه د خدائے د حکم منلو نه انکار وکړي او خپل مال ورته د الله د رضا نه زیات خوږ شي. یا هغه خلق دي چه د قیامت د ورځې د راتلو یقین ئې نه وي. یا هغه خلق دي چه په دے دوکه کښې پراته دي چه په آخرت کښې به هغوی ته په څه طریقه د خلاصۍ موندلو د دوستۍ او د سفارش په ذریعه د کار ایستلو موقع ملاؤ شي.

۲۷۸ یعني بیوقوفانو خلقو که هر څومره خدایان جوړ کړي دي، خو اصل واقعه دا ده چه خدائے پوره په پوره د بل چا شرکت نه بغیر هغه لا فاني او همیشه ژوندے ذات دے، چه ژوند چا ورکړے نه دے بلکه په خپله په خپل ژوند ژوندے دے او چه د هغه په طاقت د کائناتو دا ټول نظام روان دے چلیږي. په خپله بادشاهۍ کښې د خدائي د ټولو اختیاراتو مالک هغه په خپله دے. بل څوک نه د هغه په

لَا تَأْخُذُهُ سِنَةٌ وَّلَا نَوْمٌ ؕ لَهٗ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ مَنْ ذَا الَّذِيْ يَشْفَعُ عِنْدَهٗۤ اِلَّا بِاِذْنِهٖ ؕ يَعْلَمُ مَا بَيْنَ اَيْدِيْهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ ۚ وَلَا يُحِيْطُوْنَ بِشَيْءٍ مِّنْ عِلْمِهٖۤ اِلَّا بِمَا شَآءَ ۚ

هغه لره نه خوب ورځي او نه په هغه پرکالی راځي [۲۷۹]. په ځمکه او په آسمانونو کښ چه څه دي، دا د هغه دي [۲۸۰]. څوک دي چه د هغه په دربار کښ د هغه د اجازت نه بغير سفارش وکړے شي؟ [۲۸۱] څه چه د خلقو په وړاندې دي، هغه هم په علم کښ دي، او څه چه د خلقو د سترګو نه پناه دي د هغې نه هم خبر دے او د هغه د علم نه هيڅ څيز د مخلوق په عقل کښ نشي راتلے سوا د دے نه چه هغه پخپله د څه څيز علم هغوی له ورکول وغواړي [۲۸۲].

صفاتو کښ د هغه شريک دے او نه د هغه په اختياراتو کښ او نه د هغه په حقونو کښ. د دې وجه ده چه په ځمکه يا په آسمان کښ په هر ځائے کښ چه د هغه نه بغير يا د هغه سره شريک بل څوک د عبادت لائق وګرزولے شو، نو هغه به بالکل دروغ وي او د حقيقت خلاف به جنګ وي.

۲۷۹ دا د هغې خلقو د غلطو خيالاتو جواب دے چه د الله تعالیٰ ذات د خپلو ناقص خدايانو سره يو شان کوي او د هغه کمزورئ الله سره تړي کوم کمزورئ چه د انسانانو سره مناسب دي. مثلاً د بائيبل کتاب دا بيان چه خدائے په شپږو ورځو کښ ځمکه او آسمان جوړ کړل او په اوومه ورځ ئے آرام وکړو.

۲۸۰ يعنې هغه د ځمکے او د آسمان مالک دے او څه چه په ځمکه او آسمان کښ دي، د هغې مالک دے. د هغه په ملکيت، د هغه په انتظام او د هغه په بادشاهئ کښ د چا قطعاً څه حصه نشته. د دے نه روستو چه ته په کائناتو کښ د بل چا خيال کولے شې هغه به ضرور د دے کائناتو يو فرد وي، او څوک چه د کائناتو فرد دے، هغه د الله ملکيت او غلام دے، نه چه د الله سره شريک او برابر دے.

۲۸۱ کوم مشرکان چه د بزرګانو خلقو يا فرښتو يا د نورو هستو په باره کښ دا خيال او ګمان لري چه د خدائے په دربار کښ د دوئ ډير زور چليږي، په کوم خبره چه ټينګ شي هغه ترې نه پريږدي ترڅو چه په خدائے ئې نه وي منلے، کوم کار چه وغواړي هغه په خدائے کولے شي. هغوی ته دا ويلے کيږي چه د دوئ زور چليدل خو لا پريږده، د دوی نه لوئ يو پيغمبر او يو مقرب فرښته د ځمکے او د آسمانونو د بادشاه په دربار کښ بے اجازته خبره قدرې هم نشي کولے.

۲۸۲ د دے حقيقت د ظاهرېدو نه د شرک بنياد نور هم کمزورې شو. پره د الله تعالیٰ لا محدوده حاکميت او هغه اختياراتو د پيش کړے شوي دا چه د هغه په حکومت کښ نه خو د هيڅ د پاره څوک شريک شته او نه د هغه په دربار کښ د چا دا سے زور چليږي چه هغه په خپلو سفارشونو سره د الله په فيصلو کښ دخل وکړے شي. او د سے په يو بل حيثيت سره دا ښودلے کيږي چه بل څوک

وَسِعَ كُرْسِيُّهُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ ۚ وَلَا يَئُوْدُهٗ حِفْظُهُمَا ۚ وَهُوَ الْعَلِيُّ الْعَظِيْمُ ﴿۲۵۵﴾ لَآ اِكْرَاهَ فِي الدِّيْنِ ۙ قَدْ تَّبَيَّنَ

د هغه حکومت[۲۸۳] په آسمانونو او په ځمکه باندې خور دے او دا ددوئ د ساتنې او حفاظت د هغه د پاره څه دستړي والي کار نه دے. بس هغه یو لوئ شان والا او وچت ذات دے.[۲۸۴] د دین په معامله کښ څه زور زیاتے نشته دے.[۲۸۵] صحیح خبره د غلطو خیالاتو نه

به د الله په کار کښ دخل څنګه وکړے شي، ځکه چه د بل چا سره هغه علم هډو شته دے نه چه د هغې په ذریعه د کائناتو په نظام او مصلحتونو باندې پوه شي. که انسان دے او که پیری دے، که فرښته ده او که نور مخلوق دی، د ټولو علم کم او نیمګړے دے. داسې څوک نشته چه د کائناتو ټول حقیقتونه ورته معلوم وی. او که چرې په یوه وړه حصه کښ هم دیو بنده سفارشونه چلیږي او بندګان پکښ خپل دخل وکړي نو د ټول جهان نظام به ګډوډ شي. د کائناتو په نظام باندې پوهیدل خو څانګے پریږده، بندګان خپله دخپل ځان په مصلحتونو او حکمتونو باندې نه پوهیږي. د انسان په مصلحتونو باندې خو هم یو الله پوهیږي او د انسان د پاره دے نه بغیر بله لار نشته چه د هغه خدائے په ورښا باندې اعتماد وکړي چه هغه د علم اصلي خزانه ده.

[۲۸۳] په اصل کښ د "کرسی" لفظ استعمال شوے دے، چه د عام طور رخلق د حکومت او د اقتدار دپاره وائی. په اردو (یا پښتو) ژبه کښې هم څوک د کرسي لفظ وائي نو مطلب ئې حاکمانه اختیارات وی.

[۲۸۴] دا آیت د "آیت الکرسی" په نوم مشهور دے په دے کښ د الله تعالیٰ د پیژندګلو داسې مکمل تعریف شوے دے چه د هغې مثال نشته. د دے وجې نه په حدیث کښ دا د قرآن د ټولونه لوره آیت ګرځولے شوے دے.

په دے ځائے کښ دا سوال پیدا کیږي چه د لته د الله تعالیٰ د ذات او د صفاتو د ذکر په کوم مناسبت سره راغلے دے؟ د دے د پاره یو ځل هغه تقریر بیا ذکوره کوم چه د دوه دیرشم رکوع نه راروان دے. اول خو مسلمانان دے ته تیار کړے شوی دی چه د حق دین د قائمولو په لار کښ چنپلو ځانونو او مالونو سره جهاد وکړي او د هغه کمزورئ نه ځان بچ کړي کومه چه په بني اسرائیلو کښ پیدا شوی وه. بیا په دے حقیقت پوه کړے شوی دی چه کامیابي د انسانانو په شماره او د سامانونو په ډیروالي باندې نه ده بلکه د انسان په ایمان، صبر او په ضبط او اراده باندې ده. بیا د جنګ حکمت ته الله تعالیٰ اشاره کړې ده، چه د دنیا د نظام برقرار ساتلو د پاره هغه همیشه د انسانانو یوه ډله د بله ډلے په ذریعه دفع کوی، او که نه چرې یوے ډلے ته د همیشه د پاره اقتدار ملاؤ شي نو د نورو خلقو د پاره به ژوند تیرول مشکل شي. بیا هغه شک ختم کړے شوے دے چه اکثر به د بے علمه خلقو په زړونو کښ راتلو، هغه دا چه که چرې الله تعالیٰ خپل پیغمبران د اختلافاتو او د جګړو ختمولو د پاره رالیږلی وُو، او د هغوئ د راتلو نه روستو هم اختلافات او جګړے ختمے نه شوے، نو آیا د الله دومره طاقت نه وُو چه هغه دا خرابیانے لرے کول غوښتل خو لرې ئې نه کړے شوے. د دے د جواب ورکړے شو چه د الله د سر نه دا اراده نه وه چه د خلقو اختلافات په زور ختم کړي او د انسانانو په زور باندې یوه خاص لارے ته راواړه وی، کینې نو د انسان هم طاقت وُو چه د الله د ارادے نه خلاف تله دے. بیا په یوه فقره کښ د تقریر اصلي مضمون ته اشاره شوی ده

الرُّشْدُ مِنَ الْغَيِّ ۚ فَمَنْ يَكْفُرْ بِالطَّاغُوتِ وَيُؤْمِنْ بِاللَّهِ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَىٰ لَا انْفِصَامَ لَهَا ۗ وَاللَّهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٥٦﴾ اللَّهُ وَلِيُّ الَّذِينَ آمَنُوا يُخْرِجُهُمْ مِنَ

جُدا جُدا کړے شوی پراتۀ دی. اوس چه څوک د طاغوت[256] نه انکار وکړی او په الله ایمان راوړی نو هغۀ داسے مضبوطه ذریعه را ونیوله کومه چه هیڅکله ماتیدونکې نه ده، او الله (چه د هغۀ سهارا یې نیولې ده) هر څه اوریدونکے او په هر څه باندې پوهه دے. کوم خلق چه ایمان راوړی، د هغوی مددګار الله تعالیٰ دے او هغه هغوی د تیارونه

چه د الله په لارکښ جانی او مالی د وایه قربانی ډیره ضروری ده. د دے نه روستو اوس د ا بیان کیږی چه که د انسانانو عقیدے، نظریئے، طریقے او مذهبونه هر څومره مختلف وی خو هغه اصلی حقیقت، چه په هغے باندې د زمکے او د آسمانونو نظام قایم دے، په دے آیت کښ بیان کړے شوے دے. د انسانانو د نه پوهیدو او د غلطو عقیدو په وجه په دے حقیقت کښ څه فرق نه راځی. خو د الله د امنشا نه ده چه د دے حقیقت په منلو باندې د خلق په زور مجبور کړے شی. چه چا د ا حقیقت ومنلو هغه به په خپله په ګټه کښ پاتے شی او چه چا د ا حقیقت و نه منلو هغه ته به په خپله نقصان ورسیږی.

[255] دلته د "دین" نه مراد د الله په حقله هغه عقیده ده، کومه چه بره په آیت الکرسی کښ بیان شوې ده، او د ژوند هغه ټول نظام نه مراد دے کوم چه د دے عقیدے نه جوړیږی. د آیت مطلب دا دے چه د "اسلام" دا نظام په زور باندې په چا نشی منلے کیدے څکه چه دا داسے شے دے چه په چا باندې په زور ورونه تپلے شی.

[256] "طاغوت" په لغت کښ هر هغه سړی ته ویلے کیږی چه هغه خپل جائز حد نه وتلے وی. قرآن طاغوت هغه انسان ته وائی چه د بندګئ د حد نه وتی، بلکه په خپله د خدائی دعوی وکړی او د خدائے د بندګانو نه خپله بندګی اخلی. د خدائے په مقابله کښ د بنده د سرکشئ درے مرتبے دی. اوله مرتبه دا ده چه بنده د خدائے حکم منل حق ګڼړی خو د عمل په لحاظ سره د خدائے د حکمونو خلاف ورزی کوی. دے ته فسق وائی. دویمه مرتبه دا ده چه بنده د خدائے د حکم منلو نه مخ واړوی یا خو په خپل اختیار ژوند تیروی او یا د خدائے نه بغیر د بل چا بندګی اختیار کړی. دے ته کفر وائی. دریمه مرتبه دا ده چه بنده د خدائے نه باغی شی او د هغه په بادشاهئ کښ د هغه په مخلوق باندې خپل حکم چلول شروع کړی. دے آخری مرتبے ته چه بنده ورسیږی نو دے ته طاغوت وائی او هیڅوک په الله باندې صحیح ایمان ته هغه نشی کیدے ترڅو چه دے طاغوت نه هغه انکار و نه کړی.

الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ ۬ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اَوْلِيٰٓـُٔهُمُ الطَّاغُوْتُ
يُخْرِجُوْنَهُمْ مِّنَ النُّوْرِ اِلَى الظُّلُمٰتِ ۭ اُولٰۗىِٕكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ
هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿٢٥٧﴾ اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْ حَاۗجَّ اِبْرٰهٖمَ فِيْ

رڼا ته راوُباسي[۲۸۷]. او کوم خلق چه د کفر لاره اختیاره وی، د هغوی ملګری او مددګاران طاغوت[۲۸۸] دی او هغه هغوی د رڼا نه تیرو طرفته راکاږی۔ دا وُور ته تلونکے خلق دے حالته به هغوی همیشه وی۔

تا د هغه سړی په حال باندِ غور نه دے کړے، چه دَ ابراهیمؑ سره ئے جګړه کړی وه[۲۹۰]؟

[۲۸۷] دَ تیرو نه مراد د جهالت تیرَه دی، چه په دے کښ ثوک ورک شی نو هغه بیا د خپلے کامیابئ او د نیک بختئ دلارے نه لرے لاړشی او بیا خپل ټول طاقتونه او کوششونه په غلطو لارو کښ لګول شروع کړی. او د رڼا نه مراد د حق علم دے او د دے علم په وجه انسان ته خپل ځان، د کائنات حقیقت او د خپل ژوند مقصد صفا ښکاری او بیا صحیح عمل شروع کړی۔

[۲۸۸] طاغُوت دلته دَ جمعے یعنی د طواغیت په معنیٰ استعمال شوے دے. یعنی چه انسان دَ خدائے نه مخ داړه وی نو بیا دَ طاغوت په پنجه کښ نه ګنلی، بلکه د ډیرو طواغیت په هغه باندِ مسلط ئی. یو طاغوت شیطان دے چه سړی ته د دروغو نوے نوے خبرے ښکلے کوی او هغهٔ له پیرو کد ورکوی۔ دویم طاغوت د انسان خپل نفس دے چه سړی نه د جذباتو او دَ خواهشاتو غلام جوړه وی او د ژوند په کږو شیغو لارو ئے روانه وی۔ او د غیے نور بے شمیره طاغوتان بهر په دنیا کښ هر ځائے موجود دی۔ ښځه او بچی، خپل خپلوان، رورولی او خاندان، دوست او آشنا، خلق او قوم، پیشوا او مشران، حکومت او حاکمان، دا ټول د هغهٔ د پاره طاغوت وی، او په دے کښ هر یو د هغه نه د خپل غرض بنده جوړه وی، او د بے شمیره مالکانو دا یو غلام ټول عمر په دے چکر کښ پروت دی چه کوم یو مالک خوشحاله کړي او د کوم مالک د خفګان نه ځان وُساتی۔

[۲۸۹] بره دا دعوه شوی ده چه د مومن الله پاک ملګرے او مددګار وی او هغه ئے د تیرو نه رڼا ته وُباسی، او د کافرانو مددګاران طاغوتان دی او هغه هغوی د رڼا نه تیرو طرفته راکاږی. او س د دے په تفصیل کښ د مثال په طور درے واقعے پیش کیږی. په دیکښ اولنے مثال دیو داسے سړی دے چه هغه ته بنه په واضحه دلیلو نو سره حقیقت پیش کړے شو او هغه د رنه بے جوابه هم پاتے شو۔ خو چونکه هغه خپلے واګے د طاغوت په لاس کښ ورکړے وے. نو په د غه وجه هغه د حق واضحه کیدلو نه روستو هم رڼا ته رانغے او په تیرو کښ سرګردانه پاتے شو۔ روستو د دوه مثالونه د داسے دوؤ سړو دی چه هغوی د الله سهارا نیولے وه، نو الله پاک هغوی دَ

رَبِّهٖٓ اَنْ اٰتٰىهُ اللّٰهُ الْمُلْكَ ۘ اِذْ قَالَ اِبْرٰهٖمُ رَبِّيَ الَّذِيْ يُحْيٖ وَ

وقف لازم

جګړه پرے خبرو باندے وه چه د ابراهیم رب څوک دے، او په دے وجه باندے وه چه هغه سړی ته الله حکومت ورکړے وو.[۲۹۰] کوم وخت کښې چه ابراهیم ورته ووئیل چه "زما رب هغه دے

تیرو نه رڼا ته په داسے طریقه راوویستل چه د غیبو پټ حقیقتونه ئے ورته په سترګو ووخودل.

[۲۹۰] د دے سړي نه مراد نمرود دے چه د ابراهیمؑ د وطن (عراق) بادشاه وو. د کومے واقعے ذکر چه دلته په قرآن کښې کیږي، د هغے هیڅ ذکر په بائیبل کښې نشته. خو په تلمود کښې دا واقعه موجوده ده او تر ډیره حده پورے د قرآن سره یو شان ده. په هغے کښې دي چه د حضرت ابراهیمؑ پلار د نمرود په بادشاهۍ کښې د ټولو نه لوئے عهده دار (Chief Officer of the State) وو. حضرت ابراهیمؑ چه کله ښکاره د شرک مخالفت او د توحید تبلیغ شروع کړو او په بُت خانه کښې ئے بُتان مات کړل، نو هغه پلار پخپله د هغه مقدمه نمرود بادشاه ته پیش کړه او بیا هغه خبره وشوه کومه چه دلته په قرآن کښې بیان شوې ده.

[۲۹۱] یعني په کومه خبره چه جګړه وه هغه دا وه چه ابراهیمؑ چا ته خپل رب وائي. او دا جګړه په دے وجه پیدا شوې وه چه د هغه سړي یعني نمرود ته خدائے حکومت ورکړے وو. جګړه چه په کومه خبره وه په هغے باندے د ځان پوهه کولو دپاره په لاندې حقیقتونو نظر ساتل پکار دي:

(۱) د پخوانۍ زمانے نه تر ننه زمانے پورے ټول مشرکان په شریکه دا خبره مني چه الله تعالیٰ د ټولو ربونو رب دے او د ټولو خدایانو خدائے دے. خو یوازے هغه رب او خدائے او د عبادت لائق نه مني.

(۲) مشرکانو همیشه خدائي په دوو حصو کښې تقسیم کړې ده. یوه د فطرت نه پورته (فوق الفطری) خدائي ده چه په سبب جوړه ولو حکمراني کوي او چه هغے ته انسانان خپل حاجتونه او مشکلات د مدد کولو دپاره پیش کوي. په دے خدائي کښې مشرکان د الله تعالیٰ سره ارواحان، فرښتې، پیریان، ستوري او نورے ډیرے هستۍ شریکه وي. د هغوی نه دعاګانے غواړي، د هغوی رواجي عبادت کوي، او د هغوی په دربارونو باندے نذرونه مني. بله د شریک کارونو او د سیاسي معاملاتو خدائي (حاکمیت) ده چه د ژوند دپاره د قانون جوړه ولو د اختیارلري چه حکم منل ئے ضروري وي او په دنیاوي معاملاتو کښې ورته مکمل اختیارات حاصل وي. دا دویم قسم خدائي د دنیا ټولو مشرکانو تقریبًا په هره زمانه کښې د الله تعالیٰ نه اخستلے ده او دپاره ئے ورسره د شاهي خاندانو او مذهبي کارکونکي خلق شریک کړي دي. اکثرو شاهي خاندانو خلقو د دے دویم قسم خدائۍ دعوے کړي دي، او د دے خپلے خدائۍ د مضبوطولو دپاره ئے ورسره د اول قسم دعوی هم کړې ده چه مونږ د اول قسم خدایانو اولادیو. او په دے کارکښې ورسره مذهبي خلق هم شریک شوي دي.

(۳) نمرود هم د دے دویم قسمه خدائۍ دعوی کړې وه. هغه د الله تعالیٰ د وجود نه منکر نه وو. هغه دا دعوی نه وه کړې چه د زمکے او د آسمانونو پیدا کونکے او د کائناتو چلونکے هغه پخپله دے. هغه دا نه وو وئیلي چه په سببونو جوړه ولو حکمراني زما ده. بلکه هغه د دے خبرے دعوی کړې وه چه

يُمِيتُ قَالَ أَنَا أُحْيِي وَأُمِيتُ قَالَ إِبْرَاهِيمُ فَإِنَّ اللَّهَ يَأْتِي بِالشَّمْسِ مِنَ الْمَشْرِقِ فَأْتِ بِهَا مِنَ الْمَغْرِبِ فَبُهِتَ الَّذِي كَفَرَ

چه د هغهٔ په اختیار کښ ژوند او مرګ دے، نو هغه ورته جواب ورکړو چه "ژوند او مرګ زما په اختیار کښ دی." ابراهیم ورته اووئیل چه "ښه، الله نمر د مشرق نه راخیژوی، ته ئے د نمر پریواته د طرف نه راوخیژوه." په دے خبره هغه د حق نه منکر سړے حیران پاتے شو، [۲۹۲]

دے وطن عراق او د دے د وسیدونکو خود مختاره حاکم زهٔ یم، زما خبره قانون دے، زما نه پورته بل داسے اختیار والا نشته چه زما نه تپوس وکړی، او د عراق هر هغه وسیدونکے باغی او غدار دے چه په دے شان سره ما خپل رب نه منی یا زما نه بغیر بل چا ته رب وائی.

(۳) ابراهیم علیه السلام چه ورته کله اُووئیل چه زهٔ صرف یو رب العلمین خپل خدائے او رب منم او هغه نه بغیر بل چا خدائی قطعًا نه منم، نو دا صرف د قومی مذهب او د مذهبی خدایانو په باره کښ یوه نوے عقیده نه وه، بلکه د دے خبرے اثر په قومی ریاست او د هغې په مرکزی اقتدار باندې پریوتلو د غه وجه وه چه حضرت ابراهیمؑ د بغاوت په جُرم کښ نمرود بادشاه ته پیش کړے شو.

۲۹۲ د اخو د حضرت ابراهیمؑ د ولے خبرے نه معلومه شوه ده چه رب د الله تعالیٰ نه بغیر بل څوک نشی کیدے، خو بیا هم نمرود د هغې جواب د پرپه بے ادبئ سره ورکړو. لیکن د ابراهیمؑ د دویمے خبرے نه روستو د هغه د پاره جواب ورکول مشکل شو. هغه ته ښه پته وه چه نمر سپوږمئ څو د هغه خدائے په فرمان چلیږی، کوم ته چه ابراهیمؑ رب وئیلے دے. نو بیا که هغه جواب ورکولو نو آخر څه به ئے وئیل؟ خو په دے سره چه کوم حقیقت هغه ته ښکاره شو، د هغې په منلو سره ئے خپله خود مختاره بادشاهی ختمیدله، او د دغې بادشاهئ پریښودو د پاره ئے د نفس طاغوت تیار نه ؤ. نو په دے وجه هغه صرف حیران شو، لیکن د خود پرستئ د تیارو نه د حق پرستئ رڼا ته رانغے. که چرے د دے طاغوت په ځائے باندې هغه خدائے خپل ملګرے او مددګار جوړ کړے وے، نو هغه ته به د حضرت ابراهیمؑ د دے تبلیغ په وجه نیغه او صحیح لار ښکاره شوی وه.

په تلمود کتاب کښ دا بیان دے چه د دے نه روستو حضرت ابراهیمؑ د دغه بادشاه په حکم سره قید کړے شو. د لسو ورځو پورے هغه په جیل کښ وؤ. بیا بادشاه کونسل د ابراهیمؑ د ژوندی سوزولو فیصله وکړه او هغه په اُور کښ د غورزولو هغه واقعه وشوه کومه چه په سورة انبیاء رکوع ۵، په سورة العنکبوت رکوع ۲، ۳، او په سورة الصّافات رکوع ۴ کښ بیان شوی ده -

وَاللّٰهُ لَا یَهۡدِی الۡقَوۡمَ الظّٰلِمِیۡنَ ﴿۲۵۸﴾ اَوۡ کَالَّذِیۡ مَرَّ عَلٰی قَرۡیَۃٍ وَّ هِیَ خَاوِیَۃٌ عَلٰی عُرُوۡشِهَا ۚ قَالَ اَنّٰی یُحۡیٖ هٰذِهِ اللّٰهُ بَعۡدَ مَوۡتِهَا ۚ فَاَمَاتَهُ اللّٰهُ مِائَۃَ عَامٍ ثُمَّ بَعَثَهٗ ؕ قَالَ کَمۡ لَبِثۡتَ ؕ قَالَ لَبِثۡتُ یَوۡمًا اَوۡ بَعۡضَ یَوۡمٍ ؕ قَالَ بَلۡ لَّبِثۡتَ مِائَۃَ عَامٍ فَانۡظُرۡ اِلٰی طَعَامِکَ وَ شَرَابِکَ لَمۡ یَتَسَنَّهۡ ۚ وَ انۡظُرۡ

خو الله ظالمانو ته سمه او صحیح لار نه ښائی۔

یا د مثال په طور هغه سړی ته وګوره، چه په یو داسے کلی باندې تیر شو، چه چتونه ئے پر مخے را پریوتی وو۔ هغه اوویل چه دا دے کلی خلق، چه هلاک شوی دی، دا به الله دوباره څنګه ژوندی کوی؟[۲۹۳] نو په دے خبره الله د هغه روح قبض کړو او هغه د سلو کالو پورے مړ پروت وو۔ بیا الله پاک هغه دوباره ژوندے کړو او تپوس ئے ترې وکړو چه "وایه څو مره موده پروت وے؟" هغه اوویل چه "یوه ورځ یا یو څو ګنټے به پروت ووم۔"[۲۹۴] الله ورته اوفرمائیل چه "په تا باندې په دے حالت کښ سل کاله تیر شوی دی۔ اوس د لږ خپل د خوراک او د اوبو ته وګوره چه پکښ لږ تغیر هم نه دے راغلے۔ بل طرفته لږ شان خپل

---

[۲۹۳] دا یو غیر ضروری بحث دے چه هغه سړے څوک وو او هغه کلے کوم یو وو. د کوم اصلی مقصد د پاره چه دلته دا قیصه ذکر شوی ده، هغه صرف دا دے چه الله د چا ولی او مددګارے شو نو الله هغه ته څنګه رڼا ورکړه. دغه سړی او د دغه ځائے د معلومولو نه مونږ سره څه ذریعه شته او نه د هغے څه فائده شته. البته د ومره خبره ده چه د د رستنی بیان نه دا معلومیږی چه دا ذکر د کوم سړی شوے دے هغه به ضرور یو نبی وی۔

[۲۹۴] د دے تپوس دا مطلب نه دے چه دغه بزرګ د مرګ نه روستو د ژوند نه منکر وو یا د هغه په دے کښ څه شک وو، بلکه هغه حقیقت په سترګو لیدل غوښتل، لکه څنګه چه انبیاؤ ته خود لے کیږی۔

إِلَىٰ حِمَارِكَ وَلِنَجْعَلَكَ آيَةً لِّلنَّاسِ ۖ وَانظُرْ إِلَى الْعِظَامِ كَيْفَ نُنشِزُهَا ثُمَّ نَكْسُوهَا لَحْمًا ۚ فَلَمَّا تَبَيَّنَ لَهُ قَالَ أَعْلَمُ أَنَّ اللَّهَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿٢٥٩﴾ وَإِذْ قَالَ إِبْرَاهِيمُ رَبِّ أَرِنِي كَيْفَ تُحْيِي الْمَوْتَىٰ ۖ قَالَ أَوَلَمْ تُؤْمِن ۖ قَالَ بَلَىٰ وَلَٰكِن لِّيَطْمَئِنَّ قَلْبِي ۖ قَالَ فَخُذْ أَرْبَعَةً مِّنَ الطَّيْرِ فَصُرْهُنَّ إِلَيْكَ ثُمَّ اجْعَلْ عَلَىٰ كُلِّ جَبَلٍ مِّنْهُنَّ جُزْءًا ثُمَّ ادْعُهُنَّ يَأْتِينَكَ سَعْيًا ۚ وَاعْلَمْ أَنَّ اللَّهَ عَزِيزٌ حَكِيمٌ ﴿٢٦٠﴾ ع



خرته ډېر وګوره (چه دهغو کو پورته خاورې شوې دي) او دا کار مونږ ددې دپاره وکړو چه تا دخلقو دپاره یوه نمونه جوړه ولګوو[295]. بیا وګوره چه دهډوکو دا پنجره مونږ ده څنګه را اوچتوو او غوښه پوستکی ورته څنګه وراغوندوو." دغه شان چه حقیقت ورته کله بالکل ښکاره شو نو وې وئیل چه: "ما ته معلومه ده چه الله په هر څیز قدرت لري."

او هغه واقعه هم یاده لره، کله چه ابراهیمؑ وئیلي وو چه "اے زما ربه! ما ته وښایه، ته مړي څنګه ژوندي کوې؟" الله ورته وفرمائیل "ولې ته ایمان نه لرې؟" هغه عرض وکړو چه "ایمان لرم خو زړه اطمینان م پکار دے."[296] الله وفرمائیل چه "ښه ده څلور مرغۍ راونیسه او هغه دځان سره بلدې کړه. بیا دهغوئ یوه یوه حصه په یو یو غر باندې کیږده. بیا ورته آواز وکړه، نو په منډه به تا خوا له راشي. ښه پوه شه چه الله غالب اختیار والا او حکمت والا دے."[297] ع

[295] دیو داسې سړي واپس را ژوندي کیدل، چه سل کاله مکمل مړ وي، یا خلقو مړ شمېرلے وو، دخپله زمانې په خلقو کښې دیوے ژوندۍ نمونه دپاره کافي وو.

[296] یعنی هغه تسلي، چه د سترګو په لیدلو سره کیږي.

[297] ددې دا تیے او ددې نه دپاسنۍ دا تیے بعضے خلقو عجیبه عجیبه تشریحګانے کړي دي. لیکن د پیغمبرانو سره چه د الله کوم سلوک دے، که سړے ښه په هغے ځان پوه کړي، نو بیا دا خبره ضرورت نشي راتلے. په دے ژوند کښې چه عام مومنانو له کوم خدمت کول پکار دے، دهغې دپاره خو صرف په غیبو ایمان راوړل (یعنې بې لیدلو منل) کافي دي. لیکن پیغمبرانو ته چه الله کوم خدمت حواله کړے دے، دهغې دپاره ضروري وه چه پیغمبرانو ته په خپلو سترګو هغه حقیقتونه لیدلے وي چه په کومو

حَبَّةٍ اَنْۢبَتَتْ سَبْعَ سَنَابِلَ فِيْ كُلِّ سُنْۢبُلَةٍ مِّائَةُ حَبَّةٍ ۭ وَاللّٰهُ يُضٰعِفُ لِمَنْ يَّشَاۗءُ ۭ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ﴿٢٦١﴾ اَلَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَھُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ثُمَّ لَا يُتْبِعُوْنَ مَآ اَنْفَقُوْا مَنًّا وَّلَآ اَذًى ۙ لَّھُمْ اَجْرُھُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا ھُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿٢٦٢﴾ قَوْلٌ مَّعْرُوْفٌ وَّمَغْفِرَةٌ خَيْرٌ مِّنْ

يوه دانه وکرلے شي او د هغې نه اووه وږي زرغون شي او په هر وږي کښې سل دانې وي. دغه شان د الله چه چا له خوښه وي د هغه عمل زياتوي. د هغه لاس هم فراخه دی او هغه په هر څه پوهه هم دے.[٣٦٠] کوم خلق چه خپل مال د الله په لار کښې خرچ کوي، او بيا د خرچ نه روستو احسان نه ژباړي او تکليف ورته نه رسوي، د هغوی بدله د خپل رب سره ده، نه به پرېره وي او نه به پرغم.[٣٦١] يوه خوږه خبره کول او په نامناسبه خبرو باندې سترګې پټول د هغه خيرات نه

[٣٦٠] يعني څومره په اخلاص او څومره په ښه جذبے سره چه انسان د الله په لار کښې مال خرچ کړي هغومره به د الله د طرفه بدله زياته وي. خدائے په يوه دانه کښې دومره برکت اچولے شي چه هغې نه اووه سوه دانې راخيژه وي، نو هغه له دا څه ګران نه دي چه ستا خيرات هم دغه شان وبرکړي او يو روپۍ په نکولو له ئے او وه سوګو بدله درکړي. د دے حقيقت بيانولو نه روستو الله د وه صفتونه بيان شوي دي. يو دا چه د الله لاس فراخه دے، تنګ نه دے چه ګنې ستا عمل به د ومره بدلے مستحق وي او هغه به ئے درنه کړے شي. بل دا چه هغه په هر څه پوهه دے، ناخبره نه دے چه ګنې ته به څه خرچ کوې او په کومه اخلاص او په ښه جذبه به ئے خرچ کړے او هغه به ترے خبر نه شي او ستا حق به ورک شي.

[٣٦١] يعني نه د دے خبرے څه خطره شته چه ثواب به ئے خراب شي او نه به په يو وخت راشي چه هغه به په دے خرچ پښيمانه شي.

صَدَقَةٍ يَّتْبَعُهَآ اَذًى ؕ وَاللّٰهُ غَنِىٌّ حَلِيْمٌ ﴿۲۶۳﴾ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُبْطِلُوْا صَدَقٰتِكُمْ بِالْمَنِّ وَالْاَذٰى ۙ كَالَّذِىْ يُنْفِقُ مَالَهٗ رِئَآءَ النَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ فَمَثَلُهٗ كَمَثَلِ صَفْوَانٍ عَلَيْهِ تُرَابٌ فَاَصَابَهٗ وَابِلٌ فَتَرَكَهٗ صَلْدًا ؕ

غوره دی چې پسې[302] تکلیف وي. الله بې نیازه دی او بُردبار دی، دا د هغه صفت دی. اې ایمان والو! خپلې صدقې په احسان زباتلو باندې او په تکلیف ورکولو باندې د هغه سړي په شان مه بربادوئ، چې هغه خپل مال صرف خلقو ته د ښودنې دپاره خرچ کوي او نه په الله باندې ایمان لري او نه په آخرت.[303] د هغه د خرچ مثال داسې دی لکه چې یوه کټه وي، د پاسه پرې د خاورې یو څه پروت وي، کله چې تېز باران وشي نو ټوله خاوره به ترې یوسي او صفا کټه به پاتې شي.[304]

[302] په دې یو نتره کښې دوه خبرې شوې دي. یوه دا چې الله تعالیٰ ستاسو خیرات ته حاجت نشته دی. بله دا چې الله تعالیٰ پخپله بُردباره او صبرناک دی. نو څکه ئې خوښ هم هغه خلق دي، چې تنګ خیالي او رلنه خوبه نه وي، بلکه لوئې حوصلې والا او وړوند خویه او بُردباره وي. خدائے پاک چه په تول ژوند کښې تاله بې حسابه نعمتونه ورکړي دي او ستاسو د پرو غلطو سره تاته بیا بیا معافي کوي. هغه به داسې خلق څنګه خوښې کړي چې چرته یو غریب له د خوراک دپاره یوه دوه څه ورکړي نو تر هغه پرې خپل احسان زباتي چې هغه د شرم نه په زمکه ننباسي. د غه وجه ده چه په حدیث کښې راغلي دي چه الله تعالیٰ به د هغه سړي سره د قیامت په ورځ خبره ونکړي او د رحمت په نظر به ورته ونه ګوري، چه هغه چا له څه ورکړي او بیا پرې احسان زباتي.

[303] د هغه دا ریا پخپله د دې خبرې دلیل دی چه هغه په خدائے او په آخرت یقین نه لري. دا هغه چه د خلقو د ښودنې دپاره کار کوي، د دې صفا مطلب دی چه د اخلق د هغه خدائے دی چه خپله بدله ترې غواړي، د الله نه ئې د بدلې ورکولو اُمید نشته او نه ئې دا یقین شته چه یوه ورځ به د عملو حساب کتاب وي او خلقو ته به خپلې خپلې بدلې ورکړې کېږي.

[304] په دې مثال کښې د باران نه مراد خیرات دی. کټې نه مُراد هغه بد نیت او خرابه جذبه ده چه په کوم نیت او جذبې سره خیرات ورکړې شوې وي. د خاورې د ترې نه مراد د نیکۍ هغه ظاهري شکل دی چه را لاندې ترې نیت خراب وي. د دې تشریح سره سره په مثال ښه پوهیږي. د باران طرف خپل کار دا دی چه تخمونه را ټوکیږدي او پټي شنه ئې. خو کله چه زمکه هسې په نوم

لَا يَقْدِرُوْنَ عَلٰى شَيْءٍ مِّمَّا كَسَبُوْا ۗ وَاللّٰهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۲۶۴﴾ وَمَثَلُ الَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمُ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ اللّٰهِ وَتَثْبِيْتًا مِّنْ اَنْفُسِهِمْ كَمَثَلِ جَنَّةٍۭ بِرَبْوَةٍ اَصَابَهَا وَابِلٌ فَاٰتَتْ اُكُلَهَا ضِعْفَيْنِ ۚ فَاِنْ لَّمْ يُصِبْهَا وَابِلٌ فَطَلٌّ ۗ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ﴿۲۶۵﴾ اَيَوَدُّ اَحَدُكُمْ اَنْ تَكُوْنَ لَهٗ جَنَّةٌ

داسے خلق چه په خپل خیال کښې دخیرات په ذریعه کومه نیکي کړي، د هغې نه به ورله هیڅ په لاس ورنشي، او کافرانو ته نیغه لار ښودل د الله طریقه[۲۹] نه ده. ددے نه برخلاف کوم خلق چه خپل مال صرف د الله د رضا حاصلولو دپاره په کلک او په داده زړه خرچ کوي، د هغوئ د خرچ مثال داسے دے لکه چه په وچت ځائے باندې یو باغ وي که تیز باران پرې وشي نو دوچند میوه وکړي، او که چرے تیز باران پرې ونه شي نو نرے پشم ورله هم کافي وي[۳۰]. تاسو چه څه کوئ په هغې تولو د الله نظر دے.

آیا په تاسو کښې څوک داخوښوي چه د هغه یو تک شین باغ وي،

وچته وي، او دخاوره د نرئ هم نه لاندې دکانړي یو کټ وي نو بیا باران د فائدے د رکولو ځائے اُلټا نقصان وي. د هغه شان خیرات هم دے، په خیرات ورکولو کښې دیر ثوابونه ملاویږي، خو نیت پکښې شرط دے، که نیت نیک او ښه وي نو فائده به وشي دیر ثوابونه به ملاوشي، خو که نیت نیک نه وي نو بیا صرف مال ضایع کول دي نور هیڅ نه دي.

[۳۰] دلته د "کافر" لفظ د ناشکرئ او د نعمت نه د انکار په معنیٰ کښې استعمال شوے دے. څوک چه د الله ورکړے شوے نعمت د الله د رضا دپاره نه خرچ کوي بلکه د خلقو د رضا دپاره ئے خرچ کوي، او یا که څه مال د الله په لار کښې چاله ورکوي نو ورسره ورسره هغه ته تکلیف هم رسوي، هغه په اصل کښې ناشکره انسان دے او د خدائے احسان هیر کړے دے. او چه دے پخپله د خدائے د رضا طلبګار نه دے نو خدائے هم د ده نه بے نیازه دے، د ده دا پرواه نه لري چه خامخا دے د ده خپله رضا لار اوښائي.

[۳۱] د "تیز باران" نه مطلب هغه خیرات دے چه دیر په نیکه جذبه او په ښه نیت سره ورکړے شي. او د "نرئ پشم" نه مطلب داسے خیرات دے چه پکښې نیکه جذبه دیره نه وي.

مِّن نَّخِيلٍ وَأَعْنَابٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ لَهُ فِيهَا مِن كُلِّ الثَّمَرَاتِ وَأَصَابَهُ الْكِبَرُ وَلَهُ ذُرِّيَّةٌ ضُعَفَاءُ فَأَصَابَهَا إِعْصَارٌ فِيهِ نَارٌ فَاحْتَرَقَتْ ۗ كَذَٰلِكَ يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمُ الْآيَاتِ لَعَلَّكُمْ تَتَفَكَّرُونَ ﴿٢٦٦﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا أَنفِقُوا مِن طَيِّبَاتِ مَا كَسَبْتُمْ وَمِمَّا أَخْرَجْنَا لَكُم مِّنَ الْأَرْضِ ۖ وَلَا



چه په نهرونو اوبه کیږي، د کجورو او د انګورو او د هر قسم د میوو نه ډک وي، او هغه عین په داسې وخت کښې د هوا په یوه تیزه بربوتۍ وسوزي، چه هغه خپله بوډا وي او واړه واړه ماشومان ئې لا د کار نه وي؟ دغه شان الله تاسو ته خپلې خبرې بیانوي، د دې دپاره چه تاسو غور او فکر وکړئ۔ ع

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، کوم مال چه تاسو ګټلے دے او هغه چه موږ ستاسو دپاره د زمکے نه راایستلي دي، د هغے نه ښه ښه مال د خدائے په لار کښې خرچ کړئ۔ داسې نه کړئ

۳۰۶ یعني که ته دا نه خوښوې چه ستا د ټول عمر ګټه دې په یو داسې نازک وخت کښې تباه شي، چه ته ورته ډیر زیات محتاجه ئې او بیا د رابادولو هغې د دې وخت نه راځي چه نوره ګټه به وکړې او په هغه بوډا وخت تیر کړې، نو دا خبره به ستا څنګه خوښه شي چه په دنیا کښې د ټول عمر کارکولو نه روستو آخرت ته په داسې حالت کښې لاړشې چه هلته د د ژوند د ټولې عملنامې هیڅ قیمت نه وي، څه چه دې په دنیا کښې ګټلي دي هغه ټول په دنیا کښې پاتې شو، او د آخرت دپاره خو دې څه راوړي نه دي چه هلته دې د هغې فائده ملاؤ شي. هلته به درله داسې موقع بیا نه راځي چه د آخرت دپاره نوره ګټه وکړې۔ د آخرت دپاره د کارکولو څه موقع ده، هغه په دې دنیا کښې ده۔ په دنیا کښې دې که چرې د آخرت فکر ونه کړو او ټول عمر دې د دنیا ګټلو په خیال کښې تیر کړو او خپل ټول کوششونه او طاقتونه دې د دنیا فائدې دپاره استعمال کړل، نو د ژوند د ختمیدو نه روستو به ستا حالت بالکل د هغې بوډا په شان افسوسناک وي، چه د ټول عمر ګټه او د ژوند سهارا ئې یو باغ وو او هغه هم د بوډاوالي په حالت کښې په داسې وخت کښې وسوزید چه نه خپله بل نوے باغ لګولے شي او نه ئې بچي د دې قابل دي چه د ده سره امداد وکړي۔

تَيَمَّمُوا الْخَبِيثَ مِنْهُ تُنْفِقُونَ وَلَسْتُمْ بِآخِذِيهِ إِلَّا أَنْ تُغْمِضُوا فِيهِ ۚ وَاعْلَمُوا أَنَّ اللَّهَ غَنِيٌّ حَمِيدٌ ﴿٢٦٧﴾ الشَّيْطَانُ يَعِدُكُمُ الْفَقْرَ وَيَأْمُرُكُمْ بِالْفَحْشَاءِ ۖ وَاللَّهُ يَعِدُكُمْ مَغْفِرَةً مِنْهُ وَفَضْلًا ۗ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ ﴿٢٦٨﴾ يُؤْتِي الْحِكْمَةَ مَنْ يَشَاءُ ۚ وَمَنْ يُؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا ۗ وَمَا يَذَّكَّرُ إِلَّا أُولُو الْأَلْبَابِ ﴿٢٦٩﴾

چه د خدائے په لار کښې د ورکولو د پاره د خراب نه خراب څیز د لټولو کوشش شروع کړئ، ځکه که چرے هم دغه څیز تاسو له څوک درکوی نو تاسو به ئے هیچرے قبول نه کړئ، هغه دا بیله خبره ده چه سترګے پټے کړئ او قبول ئے کړئ. پکار دی چه تاسو پوهه شئ چه الله بے نیازه دے او په ښه صفتونو سره ستائیلے شوے دے.[308] شیطان تاسو د نیستئ نه یروی او د شرم د کار کولو لمسون درته کوی، خو الله تاسو ته د خپل طرف نه د بخښنے او د فضل امید درکوی. الله ډیر فراخ دسته سخی او دانا دے. چا له چه ئے غواړی، نو حکمت ورکوی او چه چا ته حکمت ملاؤ شو هغه ته په حقیقت کښې لوئے دولت ملاؤ شو.[309] د دے خبرو نه صرف هغه خلق سبق اخلی چه عقلمند دی.

---

[308] ښکاره خبره ده چه څوک د ښه اعلی صفتونو مالک وی، هغه د خرابو صفتونو والا نه خوښوی. الله تعالی پخپله سخی دے او د خپل مخلوق نه هر وخت د دریاب د ادبو پشان ورکړه کوی. دا څنګه کیدے شی چه هغه به د تنګ خیاله، د کم حوصلے او د خرابو اخلاقو والو خلقو سره مینه وکړی.

[309] د حکمت نه مراد صحیح سوچ او د خیال او د صحیح فیصلے کولو طاقت دے. دلته د دے خبرے مقصد دا دے چه چا له الله تعالی حکمت ورکړے وی هغه به هیچرے د شیطان په لاره لاړ نشی، بلکه هغه به د الله تعالی په ښودلې شوی فراخه لاره باندې ځی. د شیطان د تنګ خیاله مریدانو په نظر کښې دا ډیر د هوښیارتیا او د عقلمندئ کار دے چه سړے خپل دولت سنبال سنبال بدی او هر وخت د زیاتے ګټے په فکر کښې وی. لیکن کوم خلقو له چه الله صحیح سوچ او د فکر ورکړے دے، د هغوی په نظر کښې دا بالکل بے وقوفتیا ده. د هغوی په حکمت او هوښیارتیا په دے کښې ښکاری چه سړے څه ګټی، په هغې اول خپل درمیانه ضرورت پوره کړی او بیا ئے د زړه د اخلاصه په ښه کارونو کښې خرچ کړی. کیدے شی چه هغه اولنے سړے د دنیا په دے لږ ژوند کښې د دویم خلقو په نسبت زیات خوشحاله وی. خو انسان د پاره د دُنیا ژوند پوره ژوند نه دے، بلکه د اصلی ژوند یوه ډیره غوندے حصه ده. څوک چه د دُنیا د دے لږے خوشحالئ د پاره د همیشه ژوند بدحالی مفتو کښې اخلی، هغه په حقیقت کښې ډیر بے وقوف سړے دے. هوښیار او عقلمند سړے هغه دے چه د دُنیا

وَمَآ اَنۡفَقۡتُمۡ مِّنۡ نَّفَقَةٍ اَوۡ نَذَرۡتُمۡ مِّنۡ نَّذۡرٍ فَاِنَّ اللّٰهَ يَعۡلَمُهٗ ؕ وَمَا لِلظّٰلِمِيۡنَ مِنۡ اَنۡصَارٍ ﴿۲۷۰﴾ اِنۡ تُبۡدُوا الصَّدَقٰتِ فَنِعِمَّا هِىَ ۚ وَاِنۡ تُخۡفُوۡهَا وَتُؤۡتُوۡهَا الۡفُقَرَآءَ فَهُوَ خَيۡرٌ لَّكُمۡ ؕ وَيُكَفِّرُ عَنۡكُمۡ مِّنۡ سَيِّاٰتِكُمۡ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ خَبِيۡرٌ ﴿۲۷۱﴾

تاسو هر څه چه خرچ کړي وی او څه منتونه چه مو منلي وی، الله هغه نه خبر دے، او د ظالمانو هیڅوک مددګار نشته.[۳۱۰] که خپلې صدقې په ښکاره ورکړئ، نو دا هم ښه ده، لیکن که پټ په پرده کښې حاجتمندو له ورکړئ، نو دا تاسو له ډیره بهتره ده.[۳۱۱] ستاسو ډیرے بدئ په دے طریقه سره ختمیږی.[۳۱۲] او څه چه تاسو کوئ، الله تعالیٰ د هغه نه په هر حال کښ خبر دے.

دے له زړونه نه نایده واخستله او په دے لپاره سرمایه باندې په همیشه ژوند کښ د خپلې خوشحالۍ بندوبست وکړو.

[۳۱۰] خرچ که د خدائے په لار کښ شوے وی یا د شیطان په لار کښ، نذر که د خدائے د پاره منلے شوے وی او که د خدائے نه بغیر د بل چا د پاره، په هر حالت کښ الله تعالیٰ د سړي د نیت او د کار نه ښه خبر دے. چاچه د الله د پاره خرچ کړے وی او د الله د پاره ئے نذر منلے وی، هغه ته به د هغې ثواب ملاؤ شی. او کوم ظالمانو چه د شیطان په لار کښ خرچ کړے وی، او د الله نه بغیر ئے د بل چا نذر منلے وی، هغوئ ته به د خدائے د سزا نه د بچ کولو د پاره هیڅوک مددګار ملاؤ نشی.

نذر دے ته وائي چه سړے په خپل یو مقصد پوره کیدلو باندې په ځان داسے څه خرچ یا خدمت لازمي کړي چه هغه په ده فرض نه وی. که چرے دا مقصد یو حلال او جائز کار وی او د الله نه غوښتلے شوے وی، او د دے مقصد په پوره کیدلو باندې چه ده کوم کار په ځان باندې لازمی کړے وی، هغه هم خاص د الله د پاره وی، نو دا نذر د الله د حکم مطابق دے او د دے په پوره کولو کښ ثواب دے. او که چرے نذر د په دے شکل نه وی منلے شوے نو د هغه نذر پوره کول ګناه ده او په کښ عذاب دے.

[۳۱۱] فرض صدقه ښکاره کول بهتر دی، او کومه صدقه چه فرض نه وی هغه پټه ورکول ډیر بهتر دی. دا اصول د ټولو عملونو د پاره دے چه فرض په ښکاره ادا کول غوره دی او نفل پټ ادا کول بهتر دی.

لَيْسَ عَلَيْكَ هُدٰىهُمْ وَلٰكِنَّ اللّٰهَ يَهْدِيْ مَنْ يَّشَآءُ ط وَمَا
تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ فَلِاَنْفُسِكُمْ ط وَمَا تُنْفِقُوْنَ اِلَّا ابْتِغَآءَ
وَجْهِ اللّٰهِ ط وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ خَيْرٍ يُّوَفَّ اِلَيْكُمْ وَاَنْتُمْ لَا
تُظْلَمُوْنَ ﴿۲۷۲﴾ لِلْفُقَرَآءِ الَّذِيْنَ اُحْصِرُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ لَا
يَسْتَطِيْعُوْنَ ضَرْبًا فِي الْاَرْضِ يَحْسَبُهُمُ الْجَاهِلُ اَغْنِيَآءَ
مِنَ التَّعَفُّفِ ج تَعْرِفُهُمْ بِسِيْمٰهُمْ ج لَا يَسْــَٔلُوْنَ النَّاسَ

خلقو ته د هدایت درکولو ذمه واری په تا نه ده، هدایت خو چه الله چا ته غواړی هغه ته
ئے ورکوی. او په خیرات کښ چه څه مال تاسو خرچ کوئ په هغے کښ ستا سو ښیګړه ده. آخر تاسو
ئے هم ددے دپاره خرچ کوئ چه د الله رضا درته حاصله شی. نو څه مال چه تاسو خیرات
کړو د هغے بدله به درته پوره پوره ملاؤشی او ستاسو حق به هیڅ‌‌ره نه وهلے کیږی[313]
خاص طور د امداد لائق هغه غریبان خلق دی چه د الله په کار کښ داسے نختی دی چه
د خپلے روزئ ګټلو دپاره چرته منډه ترړه نشی وهلے. د هغوئ د څه نه غوښتلو په وجه ناخبره
سړے په هغوئ د ګمان کوی چه هغوئ ګنی خوشحاله دی. تاسو د هغوئ د مخونو نه د
هغوئ اصلی حالت معلوموئے شئ لیکن هغوئ داسے خلق نهٔ دی چه د غوښتلو

[312] یعنی پټ پټ نیکئ کولو سره د سړی نفس او اخلاق رُو رُو ښه کیږی، په هغه کښ ښه ښه
صفتونه راپیدا کیږی او ب صفتونه ئے رو رُو لرے کیږی، او ددے په نتیجه هغه د الله د ومره
خوښ شی چه کم غلطیو ه یره ګناه ئے په عملنامه کښ وی، نو هغه هم ددهٔ د خوبیو په وجه الله تعالیٰ معاف کوی.

[313] په اول کې به مسلمانانو د خپلو غیر مسلمه رشته دارانوا او د عامو غیر مسلمه حاجتمند و
سره امداد نهٔ کولو. هغوئ به دا خیال ؤ چه صرف د مسلمان حاجتمند سړی امداد کول په
سبیل الله خرچ کیږ ی. په دے آیت کښ د هغوئ دا غلط خیال لرے کړے شوے دے.
د آیت مطلب ادے چه ددے خلقو زړونو ته د هدایت کوزه دلو ذمه واری په تا نشته. تا چه حق خبره
ۆ رسولهٔ نو ستا ذ واری پوره شوه. اوس دا د الله اختیار دے چه هغوئ ته د صحیح خیال د رکولو توفیق
ورکوی او که نه ئے ورکوی. پاتے شو د دُنیائی مال سامان په ذریعه د هغوئ حاجتونه پوره کول. نو په
دے کښ تاسو دے ته مه ګورئ چه هغوئ هدایت نه دے قبول کړے. د الله د رضا دپاره چه

يَتَخَبَّطُهُ الشَّيْطٰنُ مِنَ الْمَسِّ ۭ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَالُوْٓا اِنَّمَا الْبَيْعُ
مِثْلُ الرِّبٰوا ۘ وَاَحَلَّ اللّٰهُ الْبَيْعَ وَحَرَّمَ الرِّبٰوا ۭ

چه شیطان پرلاس وَرو ړلولیونی کړے وي.[۳۱۶] او په هغوی باندې دا سې حال راتللو وجه دا ده چه هغوی وائي چه "تجارت خو هم د سود په شان څیز دے"[۳۱۷]، حالانکه الله تجارت حلال کړے دے او سود ئې حرام کړے دے[۳۱۸]

په بل سړي له قرض ورکړو او دا شرط به ئې ورسره کیښوو چه په دومره موده کښې به دومره پیسې د قرض د پیسو نه علاوه ماله راکوې. یا مثلاً د قرض اخستونکي او د قرض ورکونکي په مینځ کښې به د یو مے خاص موده دپاره په خاص زیاتې پیسو ورکولو باندې خبره ؤ شوه، نو که په دغه موده کښې به قرض پیسې سره د زیاتې پیسو ور نه کړے شوے، نو نور مهلت به ئې په دے شرط ورکوو چه د اول نه به زیاتے پیسې ورکوئ دے قسمه معاملاتو حکم دلته بیان شوے دے.

۳۱۶ عربو به دیوانه سړي ته "مجنون" یعني پیریانو وهلے وئیلو، او چه د چا په باره کښې به ئې وئیل چه هغه پاګل شوے دے نو دا سے به ئې وئیل چه په هغه پیریان دي. هم په دغه طرز قرآن د سود خور مثال د هغه سړي سره ورکړے دے چه عقل ئې کار نه کوي پاګل شوے وي. یعني لکه څنګه چه دغه پاګل د لیونو په شان کارونه کوي، دغه سود خور هم په پیسو پسې لیونے وي او د خپل غرض په لیونتوب کښې دا هیڅ پروا نه لري چه د دهٔ د سود اخستلو په وجه د انسان مینه، رورولي، او همدردي څنګه ختمیږي، او د شریکې فائدې کارونه څنګه تباه کیږي، او د ډیرو خلقو د غریبۍ نه دے خپله خوشحالي حاصلوي. دا د دهٔ د لیونتوب حال په دے دُنیا کښې دے. او په آخرت کښې هم دا شان په هغه حالت کښې پاسي چه په کوم حالت کښې ئې په دُنیا کښې روح ورکړے وي، نو سود خور سړے به د قیامت په ورځ د لیوني او د پاګل سړي په شان پاسي.

۳۱۷ یعني د هغوی د نظریې دا خرابي ده چه په تجارت کښې په اصلي قیمت باندې کومه منافع اخستلې کیږي، د هغه او د سود فرق نه کوي، او دواړه د یو قسم څیز ګڼي، او په دې دلیل کښې دا خبره کوي چه په تجارت کښې کومه روپۍ لګیدلې وي او په هغه منافع اخستل جائز وي نو د قرض په روپو منافع اخستل ولې جائز نه ګڼلې شي. دغه شان دلیلونه د نن زمانې سود خوارهٔ هم د سود په حق کښې پیش کوي. او دا وائي چه یو سړے د خپلو روپو نه په خپله فائده اخستلے شي، او هغه دغه روپۍ بل سړي له قرض ورکړي نو هغه بل سړے هم تر ټیم پورې په هغه حال فائده اخلي. بیا آخر څه وجه ده چه د قرض ورکونکي د روپو نه کومه فائده قرض دار په اخلي، نو د هغه ډیره حصه په قرض ورکونکي له نه ورکوي؟ خو دا خلق دے خبرې ته سوچ نه کوي چه په دُنیا کښې څومره کارونه دي، که تجارت دے، که کاریګري ده، که کرونده ده، او که په دے کار کښې سړے صرف خپل محنت کوي او که په کښې خپل محنت او سرمایه دواړه لګوي، په دے ټولو کښې داسے کاروبار نشته چه په هغه کښې سړي ته د نقصان خطره (RISK) نه وي او خامخا به ده ته یو مقرره منافع ملاویږي. نو بیا آخر د دُنیا په

ټول کاروبار نو کښې دِ یو قرض ورکونکے سرمایه دار دا سے ولے وی چه هغهٔ ته دِ د نقصان خطره نه وی او هغه دِ خامخا دِ یو مقررے منافعے حقدار وی؟ د دا سے قرض دا مسئله خولا پریږده چه د نفعے د کار د پاره قرض نه اخلی، او دا هم پریږده چه شرح زیاته ده او که کمه. خیر دے د دا سے قرض مسئله داخله چه د نفعے د کاروبار د پاره وی او شرح یے هم کمه وی. خبره دا ده چه کوم خلق په کاروبار کښې خپل وخت، خپل محنت او خپله سرمایه شپه او ورځ لګوی او چه صرف هم د هغوی په کوششونو باندې کاروبار روان وی، د هغوی د پاره خو دِ د نفعے یوه مقرره حصه لازمی نه وی، بلکه د نقصان ټوله خطره دِ د هغوی په سر باندې وی، خو چه چا ورله صرف خپلې پیسے په قرض ورکړې وی هغهٔ ته دِ د نقصان تپ نه رسی او د نفعے یو مقرره حصه دِ خامخا اخلی. آخر دے ته کوم عقلمند او کوم کاریګر په کوم اصولو باندې ټهیک وائی؟ او دا په کومه وجه باندې صحیح ده چه یو سړے یوے کارخانے ته د شلو کالو د پاره قرض ورکړی او هغه نن دا فیصله وکړی چه هغه به د راتلونکو شلو کالو پورے په کال کښې په سلو روپو پنځه ټهیک د پنځو روپو په حساب د منافعے اخستلو حقدار وی، حالانکه هغه کارخانه چه به کوم مال تیاروی د هغے په حقله هیچا ته دا معلومه نه ده چه په بازار کښې به د هغے په قیمتونو کښې په دے شلو کالو کښې څومره کمے زیاتے راځی؟ او دے ته څوک ټهیک وائی چه په یو جنګ کښې دِ د قوم هر سړے خطره او نقصان برداشت کوی خو په ټول قوم کښې دِ یو قرض ورکونکے سرمایه دار دا سے وی چه هغه دِ د خطرے او د نقصان نه بچائه سُود اخلی!

ثالثاً د تجارت او د سود هغه اُصولی فرق، چه د هغے په وجه د دواړو معاشی او اخلاقی حیثیت یو شان نشی کیدے، هغه دا دے:

(۱) په تجارت کښې خرڅونکی او اخستونکی ته یو شان فائده وی، اخستونکے چه کوم څیز اخلی نو هغه د هغے څیز نه فائده اخلی، او خرڅونکے د خپل کولو او د وخت مزدوری اخلی. د دے نه برخلاف د سود په لین دین کښې فائده یو شان نه وی. سود خور خو د مال یوه مقرره حصه اخلی چه فائده یے د هغه د پاره یقینی ده، خو بیل خوا سود ورکونکی ته صرف د وخت مهلت وی چه په هغے کښې د هغه د پاره فائده اخستل یقینی نه وی. که چرے هغه سرمایه د دے د پاره اخستلی وی چه خپل ضروریات دِ پرے پوره کړی نو ښکاره خبره ده چه مهلت د هغه د پاره بالکل فائده نه لری، او که چرے هغه د تجارت، د کاریګری یا د کروندے د پاره سرمایه اخستلی وی نو بیا هم په دے مهلت کښې څومره چه د نفعے امکان دے دومره د نقصان امکان هم شته. نو معلومه شوه چه د سود په معامله کښې خو یا یو طرفته فائده او بل طرفته نقصان وی، او یا یو طرفته یقینی او مقرره فائده ده او بل طرفته غیریقینی او د غیر مقررې فائده.

(۲) په تجارت کښې خرڅونکے د اخستونکی نه هر څومره زیاته فائده واخلی، خو یو ځل یے واخلی. لیکن د سود په معامله کښې سود خور په خپل مال باندې بیا بیا فائده اخلی او د وخت د تیریدو سره سره د هغهٔ فائده لوره هم زیاتیږی. قرضدار که د هغه د مال نه هر څومره فائده واخلی، خو د هغه د فائدے به یو خاص حد وی. لیکن سود خور چه د هغهٔ د فائدے په بدله کښې کومه نفع اخلی، د هغے هیڅ حد نه وی. کیدے شی چه هغه د قرضدار ټوله ګټه، د هغه د روزئ ټول وسایل، تردے پورے چه د هغهٔ د بدن کپړے او د کور لوښی ټول هضم کړی او بیا هم قرضدارے باقی دا روی.

فَمَنْ جَآءَهٗ مَوْعِظَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ فَانْتَهٰى فَلَهٗ مَا سَلَفَ ؕ وَاَمْرُهٗۤ اِلَى اللّٰهِ ؕ وَمَنْ عَادَ فَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا

نو چا ته چه دَ خپل رب دَ طرفنه دا نصیحت ورسی او دَ بیا دپاره دَ سُود خوراک نه منع شی، نو څه چه هغه مخکښ خوړلی. هغه به خوړلی دی، دَ هغے معامله دَ خدائے په حواله ده[۳۱۹]. او چا چه دَ دے حکم نه روستو بیا دا عمه کار وکړو، هغه دوزخی دے، هغه به هلته

(۳) په تجارت کښ دَ څیز په بدله کښ دَ قیمت په ورکولو سره معامله ختم شی، دَ هغے نه روستو اغستونکے خرڅونکی له څه نۀ ورکوی. دَ مکان، دَ زمکے یا دَ سامان په کرایه کښ اصلی څیز خرچ کیږی نۀ، صرف دَ استعمال مزدوری ورکیده شی، هغه څیز په خپل ځائے وی، او هم هغه څیز کرایه دار ته واپس ورکړے کیږی. لیکن دَ سود په معامله کښ قرض دار سرمایه خرچ کړی وی او هغه دغه خرچ شوے مال بیا پیدا کوی او سره د سود نیئے سرمایه دار ته واپس کوی.

(۴) په تجارت، په کاریګرئ او په کروندہ کښ سړے کړاؤ کړی او وخت ورکوی نو فائیده واخلی. خو دَ سود په معامله کښ هغه صرف چاله خپل دَ ضرورت نه زیاتی مال ورکړی او بیا بغیر دَ کړاؤ نه دَ بل په ګټه کښ شریک جوړ شی. دا هغه "شریک" نۀ وی چه په نفع او نقصان دواړو کښ شریک وی او په نفع کښ دَ نفعے په تناسب شریک وی، بلکه هغه داسے شریک وی چه دَ نفعے او دَ نقصان پروا دار نۀ وی او په خاص تناسب سره هم نفع نۀ اخلی. بلکه دَ خاص مقرره منافعے دعوه کوی.

دَ دے وجوهاتو په وجه دَ تجارت او دَ سود په فائیدو کښ دومره لوئے فرق دے چه تجارت دَ انسان دَ ترقئ او دَ آبادئ دپاره یو قوت جوړیږی، او سود دَ انسان دَ زوال او دَ ختمیدو سبب جوړیږی. او دَ اخلاقو دَ طرفنه هم وګوره - سود په خلقو کښ کنجوسی، خود غرضی، سخت دلی، بے رحمی او دَ زر پرستی صفتونه پیدا کوی، او دَ بل طرفته دَ همدردئ او دَ یو بل سره دَ نیکړے صفتونه ختموی - په دے وجه په سود کښ نۀ فائیده شته او نۀ ښۀ اخلاق پیدا کول نو ځکه سود د انسان دپاره دَ تباهئ سبب دے.

[۳۱۹] دا ئے نۀ دی فرمائیلی چه څه ئے خوړلی، هغه به الله معاف کوی، بلکه دا ئے فرمائیلی دی چه دَ هغه معامله دَ الله په حواله ده. دَ دے فقرے نه معلومیږی "چه مخکښ ئے څه خوړلی، هغه ئے خوړلی دی" دَ دے دا مطلب نۀ دے چه څه ئے خوړلی دی هغه معاف کړے شو بلکه د دے نه مراد صرف قانونی رعایت دے. یعنی کوم سود چه مخکښ خوړلے شوے دے، په قانون کښ به دَ هغے دَ واپس ورکولو مطالبه نشی کولے، ځکه که چرے دَ داسے قسمه سود نه مطالبے شروع شولے نو دَ مقدمو یو داسے سلسله به شروع شی چه هیچرے به ختمه نشی. خو دا ده چه کوم مال په سُود راجمع کړے شوے وی دَ هغے مال پلیتی به اخلاقی طور چنپل ځائے باقی وی. که چرے دغه سړے په حقیقت کښ دَ خدائے نه یرید رنکے وی، او دَ اسلام قبلولو نه روستو دَ هغۀ دَ ګټے وته خیال او دَ هغه اخلاق بدل شوی وی، نو هغه به دغه دَ سود په ذریعه راجمع شوے

خٰلِدُوْنَ ﴿۲۷۵﴾ يَمْحَقُ اللّٰهُ الرِّبٰوا وَيُرْبِي الصَّدَقٰتِ ۭ وَاللّٰهُ

همیشه وي. الله سود زیاتوي او صدقې زیاتوي[۳۲۰] او الله

حرام مال په خپل ځان نه خرچ کوي، او دا کوشش به کوي چه څوک ورته معلوم وي چه هغوئ ته خپله حصه مال واپس کړي، او د کومې حصې د مال چه څوک معلوم نه وي، چه هغه مال د شریکې فائدې په کارکښې خرچ کړي. په دې کار سره کیدې شي چه د خدائے د سزا نه بچ شي. او څوک چه د سُود په ذریعه دراجمع شوی مال نه هم د غه شان فائده اخلي نو کیدې شي چه سزا بیا موي.

۳۲۰ په دې آیت کښې یو داسې صداقت بیان شوې دے چه د اخلاقو په حیثیت سره هم حق دے او د خیر ښیګړې د کار په حیثیت سره هم حق دے. پظاهره خو داسې معلومیږي چه په سود سره مال زیاتیږي او په صدقے او خیرات ورکولو سره مال کمیږي خو په حقیقت کښې خبره اُلټا ده - دا د خدائے د فطرت قانون دے چه سود د اخلاقو او د خیر ښیګړې د کار د ترقۍ لاره بنده وي. او د دے نه برعکس د خیرات صدقے سره (چه پکښې قرض حسن هم شامل دے) اخلاق او د خیر ښیګړې هر کار وده موي.

په اخلاقي او روحاني حیثیت سره ورته ګورو نو داخبره واضحه ده چه سُود په انسان کښې خود غرضي، کنجوسي، تنګ خیالي او سخت دلي پیدا کوي. او د دے نه برعکس د خیرات صدقو سره په انسان کښې سخاوت، همدردي، فراخ دلي او د وچت شرافت صفتونه پیدا کیږي. او داسې څوک دے چه دے اول قسم صفتونو ته به بد او دویم قسم صفتونو ته به ښه ونه وائي.

د خیر ښیګړې په حیثیت سره ورته ګورو نو په آسانه پر سرے پوهیږي چه په کومو خلقو کښې هر سرے خود غرضه وي، هیڅوک هم د خپل غرض او د خپلې فائدې نه بغیر د چا په کار نه راځي، د یو حاجتمند سړي حاجت بل سړے ځان له د فائدې موقع ګڼړي او د هغه د حاجت نه ځان له پوره فائده اخلي، او د مالدارو خلقو فائدے د عامو خلقو په نقصانونو کښې وي، نو د غه خلق هیچرے هم مضبوطیدے نشي. په هغوئ کښې به د محبت په ځائے بغض او حسد ډیروي او د یو بل د غم درد نه به ناخبره یو بل سره بے تعلقه وي. او د هر سړي به همیشه انتشار او ځان ځانئ طرفته خیال وي. او که په داسې حالت کښې ورسره لږے ډیرے بیرونۍ خطرې نور هم ملګرے شي نو بیا دا هم ګرانه نه ده چه دغه په خپلو کښې یو بل سره وڅلي. د دے نه برعکس چه په کومو خلقو کښې د یو بل سره همدردي وي، او هر سړے د بل په حق کښې د سخاوت نه کار اخلي، او هر سړے د حاجتمند سړي د زړه د اخلاصه امداد کوي، او مالدار خلق د غریبو خلقو او د بے روزګارو خلقو سره امداد کوي او همدردي ورسره ساتي، په داسې خلقو کښې د یو بل سره مینه، خیرخواهي او د زړه محبت وي. د داسې خلقو په خپلو کښې اتفاق وي او د تول به پیو مرتبه وي. خپلو کښې یو بل سره به پکښې جنګ جګړے نه وي. او په دے وجه به په دوئ کښې د اول قسم خلقو په نسبت ترقي ډیره وي.

اوس ورته د فائدے په حیثیت سره ذکوره. په معاشیاتو کښې سودی قرض په دوه قسمه دے،
یو هغه قرض دے چه مجبوره او حاجتمند خلق ئے د خپلو ضرورتونو پوره کولو د پاره اخلی. بل هغه قرض دے
چه کاروباری خلق یئے د تجارت، د کاریګرۀ یا د کروندے د پاره اخلی. په دے کښې اول قسم قرض باندې
سود اخستل خو تول دُنیا پیژنی چه ډیره تباه کن طریقه ده. په دنیا کښې یو ملک داسے نشته چه په هغے
کښې سودا کر خلق یا د سودا کرئ ادارے په دے ذریعه د غریبو مزدورانو، کروندګرو او د لږے آمدنئ د
خلقو وینه نه څکی. د سود په وجه دا قسم قرض واپس ورکول دے خلقو ته ډیر مشکل شی بلکه اکثر خو
ناممکنه شی. بیا هغه د یو قرض ورکولو د پاره بل قرض او د بل د پاره بل قرض را اخلی. د قرض د اصلی
پیسو نه په څو څو چنده زیات سود ورکړی خو بیا هم اصلی قرض په ځائے پاتے وی. د مزدورکار سړی د
آمدن زیاته حصه سودا کر واخلی او د دے غریب سړی د خپل بال بچ د ساتلو د پاره هم څه پاتے نشی.
د دے په وجه د کارکوونکو خلقو د کار سره مینه او دلچسپی ختمه شی. ځکه چه د هغوئ د محنت ګټه
بل څوک راخلی نو بیا هغوئ د زړۀ په مینه کار نشی کولے. د څه شان د سود په قرضونو کښې ښکتی خلق
هر وخت دومره فکرمند او پریشانه وی، او د غریبئ په وجه ئے صحیح خوراک او علاج دومره مشکل
وی، چه هر وخت بیمار او رنځور وی. د سود د قرضونو نتیجه دا وی چه یو څو کسان خو د لکونو خلقو په
وینه باندې غټیږی، خو په مجموعی ډول د قوم دولت د خپل حد نه ډیر کمیږی او په آخر کښې دا
ظالمان پخپله هم د دے د نقصانانو نه بچ پاتے نشی. ځکه چه د دے ظالمانو د خود غرضئ د وجې نه
چه غریبو خلقو ته کوم تکلیفونه رسی، د هغے په وجه د عام خلقو په زړونو کښې د مالدارو خلقو
خلاف غصه او نفرت را پیدا شی، او کله چه د انقلاب په شکل کښې د غصے دا طوفان زور ډکړی نو
بیا د دے ظالمانو مالدارانو د خپل مال بچولو د خپل ځان او د عزت خیر نه وی.

پاتے شو دویم قسم قرض چه خلق ئے د کاروبار د پاره نو لو د پاره اخلی، نو په هغے کښې د مقرر
سود ورکولو په وجه ډیر نقصانات وی. او په هغے کښې یو څو غټ نقصانات دا دی:

(۱) په کوم کار کښې چه دومره ګټه نه وی چه هغه مقرر سود برابر کړی، هغه کار که د ملک او د
قوم د پاره هر څومره ضروری او فائده مند وی، خو خلق د هغے د پاره پیسے نه لګوی، خلق په هغه
کاروبار کښې پیسے لګوی چه هغه د مقرر سود برابر یا د هغے نه زیاته ګټه کوی. خواه که د ملک او د
قوم د پاره د هغے ضرورت او فائده ډیره کمه وی یا بالکل نه وی.

(۲) د کوم کاروبار د پاره چه په سود پیسے ملاویږی، که هغه تجارتی کار وی یا د کاریګرئ یا د کرکیلے،
په هغے کښې یو کار هم داسے نشته چه په کښې د دے خبرے ضمانت وی چه په هر حالت کښې به یو مقرر منافع
ضرور وی مثلاً په سلو کښې پنځه، شپږ یا اته روپئ، یا به د دے نه زیاته منافع وی. د دے خبرے ضمانت
خو لا پریږده په هیڅ یو کاروبار کښې د سړه دا خبره یقینی نه ده چه په هغے کښې به ضرور منافع وی او
نقصان به پکښې هیڅ کله نه وی. د څه وجه ده چه هر هغه کار چه په هغے کښې د سرمایه دار سرمایه
د یو مقرر سود په شرط لګیدلی وی، د نقصان او د خطرے نه هیڅ کله خالی کیدے نشی.

أَقَامُوا الصَّلَوٰةَ وَآتَوُا الزَّكَوٰةَ لَهُمْ أَجْرُهُمْ عِندَ رَبِّهِمْ ۚ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٢٧٧﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللَّهَ وَذَرُوا مَا بَقِيَ مِنَ الرِّبَا إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٢٧٨﴾ فَإِن لَّمْ تَفْعَلُوا فَأْذَنُوا بِحَرْبٍ مِّنَ اللَّهِ وَرَسُولِهِ ۖ وَإِن تُبْتُمْ

مونځ قائم کړي او زکوٰة ورکړي، د هغوی بدله بېشکه د خپل رب سره ده او د هغوی د پاره د بېرے او د غم هېڅ موقع نشته.[322]
اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، د خدائے نه وېرېږئ او کوم سود چه ستاسو په خلقو باندې باقي پاتے دے، هغه پرېږدئ، که چرې واقعي تاسو ایمان راوړے وي. خو که دا دے مو ونه کړل نو خبر شئ چه د الله او د هغه د رسول د طرف نه ستاسو خلاف د جنګ اعلان دے.[323] او س هم که تاسو توبه وکړه (او سود مو پرېښود) نو د خپلې

[322] په دے رکوع کښې الله تعالیٰ د دوه قسمه خلقو عملونه د یو بل په مقابله کښې بیا بیا پېش کوي. یو قسم عمل د هغه خلقو دے چه هغوی خودغرضه، په پیسو مین، او په زړه سخت وي، چه د خدائے د حق او د مخلوق د حق پروا نه لري، پیسے په شمار شمار سنبال ږدي او په دے فکر کښې وي چه په هفتو هفتو کښې او په میاشت میاشت کښې دا ذریعے زیاتے شولے. بل قسم عمل د هغه خلقو دے چه هغوی په خدائے مېین، سخي او همدردي چه د خدائے او د خلقو د حقونو خیال ساتي، په خپلو محنتونو کټي په خپله یے هم خوري او نورو له یے هم ورکوي او د زړه د اخلاصه یے د نیکۍ په کارونو کښې لګوي. اول قسم عمل د خدائے بالکل نه دے خوښ. په دُنیا کښې په دے قسم عمل باندې یوه نیکه صالحه معاشره نشي جوړېدے، او په آخرت کښې د دے قسم عمل د پاره د غمونو او د مصیبتونو نه بغیر بل هېڅ نشته. او دا دویم قسم عمل د الله خوښ دے. د دے نه یوه نیکه صالحه معاشره جوړېږي او هم دغه عمل د انسان د پاره په آخرت کښې د خلاصي سبب دے.

[323] دا آیت د مکے د فتحے نه روستو نازل شوے دے او د مضمون د مناسبت په وجه دلته درج کړے شوے دے. د دے نه مخکښې سود سره خو یو ناخوښه څیز ګڼړلے شو لیکن قانوناً بند کړے شوے نه وو. د دے نه پس په اسلامي حکومت کښې سود یو قانوني جرم شو. د عربو کوم قبیلو چه سود اخستلو، هغه ته رسول نبي صلی الله علیه وسلم د خپلو کارکنانو په ذریعه خبر کړل چه که چرے اوس هغوی د سودي کاروبار نه منع نه شول نو د هغوی سره به جنګ کیږي. د نجران عیسایانو ته چه کله د اسلامي حکومت لاندې په ملک کښې د ننه خپلواکي ورکړے شوه نو په معاهده کښې ورسره دا خبره صفا کړے شوه چه که چرے تاسو سودي کاروبار وکړو نو معاهده به ختمه شي، او زمونږ او ستاسو په مینځ کښې به د جنګ حالت شروع شي. د آیت د

فَلَكُمْ رُءُوسُ أَمْوَالِكُمْ ۚ لَا تَظْلِمُونَ وَلَا تُظْلَمُونَ ﴿۲۷۹﴾ وَإِن كَانَ ذُو عُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ إِلَىٰ مَيْسَرَةٍ ۚ وَأَن تَصَدَّقُوا خَيْرٌ لَّكُمْ ۖ إِن كُنتُمْ تَعْلَمُونَ ﴿۲۸۰﴾ وَاتَّقُوا يَوْمًا تُرْجَعُونَ فِيهِ إِلَى اللَّهِ ۖ ثُمَّ تُوَفَّىٰ كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿۲۸۱﴾ ع



اصلي سرمايه ستاسو حقدار يئ. نه تاسو ظلم کوئ او نه به پر تاسو ظلم اوشي. که ستاسو قرضدارې لاس تنګ وي، نو د لاس هرتيد و پورے ورته ډ کورئ، او که صدقه يئ کړئ، نو دا ستاسو د پاره زيات بهتره ده، که تاسو پوهه شوئ[۳۲۴] د هغه ورځے د رسوائۍ او د مصيبت نه ځان وساتئ چه په هغے کښ به تاسو الله طرفته واپس کيږئ، هلته به هر سړي ته د خپلے کټلے شوے نيکۍ يا بدئ بدله پوره پوره ملاويږي او هرګز به په چا ظلم زياتے نه کيږي. ع

آخري الفاظو په وجه د ابن عباس، حسن بصري، ابن سيرين او ربيع بن انس دا رائے ده چه کوم سړے په دارالاسلام کښ سودخوري نه ولے د هغه په توبه ايستلو مجبور کړے شي، خو که بيا هم منع نه شي نو قتل دې کړے شي. د نورو علماؤ په رائے کښ د داسے سړي د پاره قيد کول کافي دي، ترڅو پورے چه ئے توبه نه وي ايستلې او د سود پريښودو وعده ئے نه وي کړې نو تر هغے پورے دے نه پريږدي.

[۳۲۴] د دے آيت نه په شريعت کښ دا حکم رابيتلے شوے دے چه څوک قرض نشي ورکولے نو اسلامي عدالت به د هغه قرض غوښتونکے په دے مجبوره وي چه هغه له مهلت ورکړي، او په بعضے حالاتو کښ اسلامي عدالت ته دا اختيار هم وي چه پوره قرض يا د قرض يو حصه په اعستونکي باندې معاف کړي. حديث دے چه يو سړي په کاروبار کښ نقصان اوکړو او قرض پرے زيات شو. معامله نبي صلی الله عليه وسلم له راغله. هغه خلقو ته اپيل اوکړو چه د دے خپل ورور سره مدد اوکړئ نو ډيرو خلقو ورسره امداد اوکړو خو قرض بيا هم خلاص نه شو. بيا نبی د هغه قرض غوښتونکو ته اوفرمائيل چه دا څه حاضر دي دا واخلئ او دے پريږدئ. د دے نه زياتے پيسے دے تاسو له نشي ورکولے. فقهاؤ نوره هم ترڅرګنده کړې ده چه د يو سړي د اوسيدلو کور، د خوراک لوښي، د اغوستلو جامے او هغه اوزار چه د هغے په ذريعه روزي ګټي، په هيڅ حالت کښ په قرض کښ نشي ورکړے کيدے.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا تَدَايَنْتُمْ بِدَيْنٍ إِلَىٰ أَجَلٍ مُسَمًّى فَاكْتُبُوهُ ۚ وَلْيَكْتُبْ بَيْنَكُمْ كَاتِبٌ بِالْعَدْلِ ۚ وَلَا يَأْبَ كَاتِبٌ أَنْ يَكْتُبَ كَمَا عَلَّمَهُ اللَّهُ ۚ فَلْيَكْتُبْ وَلْيُمْلِلِ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ وَلْيَتَّقِ اللَّهَ رَبَّهُ وَلَا يَبْخَسْ مِنْهُ شَيْئًا ۚ فَإِنْ كَانَ الَّذِي عَلَيْهِ الْحَقُّ سَفِيهًا أَوْ ضَعِيفًا أَوْ لَا يَسْتَطِيعُ أَنْ يُمِلَّ هُوَ فَلْيُمْلِلْ وَلِيُّهُ بِالْعَدْلِ ۚ

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، کله چه تاسو خپلو کښ د یو مے خاص نیټے پورے د قرض لین دین کوئ[325] نو هغه لیکئ.[326] ستاسو ترمنځه دِ یو لیکوال په انصاف سره لیکل وکړي. چا له چه الله د لیکلو لوستلو قابلیت ورکړے وي، هغهٔ له پکار دي چه د لیکلو نه انکار نهٔ کوي. هغهٔ دِ لیکي او هغه سړے دِ ورته وائي چه په چا باندِ حق راځي (یعني قرضدار شے)، او هغه له پکار دي چه د خپل رب، الله نه وُیریږي چه څه معامله شوې وي په هغے کښ دِ هیڅ کمے زیاتے نهٔ راولي. لیکن که قرضدار ے پخپله ناپوهه یا ضعیف وي، یا املٰی نهٔ شي کولے، نو د هغهٔ ولي دِ ورته په انصاف سره وُ وائي.

[325] د دے نه دا حکم راوځي چه د قرض په معامله کښ موده مقرره ول پکار دي.

[326] عام طور د دوستانو او عزیزانو په مینځ کښ د قرض په معامله کښ رسید لیکل او ګواهان پیش کول بد کار ګڼلے شي بلکه د بے اعتبارئ یو دلیل ګڼلے شي. لیکن د الله حکم دا دے چه قرض او تجارتي رُقعے لیکل پکار دي او په هغے باندِ شهادت اخستل هم پکار دي چه د خلقو په مینځ کښ معاملے صفا وي. په حدیث کښ راځي چه درے قسمه سړي داسے دي چه الله ته فریاد کوي خو فریاد ئے نهٔ اورېدلے کېږي. یو هغه سړے دے چه د هغهٔ ښځه بد خویه وي او دے ورله طلاق نهٔ ورکوي. بل هغه سړے دے چه یتیم د ځوانیدو نه مخکښ خپل مال حواله کړي. دریم هغه سړے دے چه چا له خپل مال قرض ورکړي او ګواه پکښ کېنه نیسي.

وَاسْتَشْهِدُوا شَهِيدَيْنِ مِن رِّجَالِكُمْ ۖ فَإِن لَّمْ يَكُونَا رَجُلَيْنِ فَرَجُلٌ وَامْرَأَتَانِ مِمَّن تَرْضَوْنَ مِنَ الشُّهَدَاءِ أَن تَضِلَّ إِحْدَاهُمَا فَتُذَكِّرَ إِحْدَاهُمَا الْأُخْرَىٰ ۚ وَلَا يَأْبَ الشُّهَدَاءُ إِذَا مَا دُعُوا ۚ وَلَا تَسْأَمُوا أَن تَكْتُبُوهُ صَغِيرًا أَوْ كَبِيرًا إِلَىٰ أَجَلِهِ ۚ ذَٰلِكُمْ أَقْسَطُ عِندَ اللَّهِ وَأَقْوَمُ لِلشَّهَادَةِ وَأَدْنَىٰ أَلَّا تَرْتَابُوا ۖ إِلَّا أَن تَكُونَ تِجَارَةً حَاضِرَةً تُدِيرُونَهَا بَيْنَكُمْ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَلَّا

بیا د خپلو سړو نه[۳۲۷] دوه تنه سړي په دغې باندې ګواهان کړئ. او که دوه تنه سړي نه وي نو يو
سړے او دوه ښځې دې وي چه که د یوې ښځې نه هیر شي نو هغه بله ښځه به ئې ورته دریاد کړي. دا
ګواهان د داسې خلقو نه پکار دي چه د هغوئ ګواهي ستاسو په مینځ کښې مقبوله وي.[۳۲۸] ګواهانو ته
چه کله د ګواه جوړېدو دپاره اوویلے شي نو هغوئ له پکار دي چه د ګواهئ نه انکار ونه کړي.
که معامله وړه وي او که لويه خو د خاص نیټې سره د هغې په لیکلو کښې سستي مه کوئ. د الله په نز
دا طریقه ستاسو دپاره ډېره د انصاف طریقه ده، په دې کښې د ګواهئ کولو دپاره زیاته آسانتیا
وي او په شک شبهه کښې د پرېوتلو امکان ډیر کم وي. هغه کوم تجارتي لین دین
چه ستاسو لاس په لاس چلېږو کښې کوئ، که هغه د نه لیکلے شي، نو خیر دے

۳۲۷ یعنې د مسلمانانو سړونه. د دې نه دا معلومه شوه چه چرته ګواهان نیول د خپل اختیار کار دې نو هلته دې مسلمان صرف مسلمانان سړي خپل ګواهان نیسي - البته د ذمیانو ګواه ذمي هم کېدے شي.

۳۲۸ مطلب دا دے چه هر سړے د ګواهئ دپاره موزون نه دے - داسې خلق ګواهان کوئ چه د خپلو ښو اخلاقو او دیانتدارئ په وجه په عام خلقو کښې قابل اعتماد ګڼلے شي -

تَكْتُبُوْهَا ۭ وَاَشْهِدُوْٓا اِذَا تَبَايَعْتُمْ ۠ وَلَا يُضَاۗرَّ كَاتِبٌ وَّلَا شَهِيْدٌ ڛ وَاِنْ تَفْعَلُوْا فَاِنَّهٗ فُسُوْقٌۢ بِكُمْ ۭ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۭ وَيُعَلِّمُكُمُ اللّٰهُ ۭ وَاللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيْمٌ ﴿۲۸۲﴾ وَاِنْ كُنْتُمْ عَلٰي سَفَرٍ وَّلَمْ تَجِدُوْا كَاتِبًا فَرِھٰنٌ مَّقْبُوْضَةٌ ۭ

 څه ګناه پکښې نشته،[۳۲۹] خو د تجارتي معاملو کولو په وخت کښې ګواهان نيسئ. ليکونکي او ګواه له دې تکليف نشي ورکيدے[۳۳۰]. که داسې موږ کړل نو ګناه به کوئ. د الله د غضب نه ځان ساتئ. هغه تاسو له د عمل د صحيح طريقې تعليم درکوي، او هغه ته د هر څيز علم دے.

که چرې تاسو په سفر کښې يئ او د ليکلو د پاره درته ليکونکے ملاؤ نشي، نو (خپله) معامله د څه څيز په ګانړه ښيولو روا نه کړئ[۳۳۱]

[۳۲۹] مطلب دا دے چه د ورځې ورځې په سوداګرو خرڅولو کښې ليکل کول خو ډير ښه دي، لکه څنګه چه نن صباد کښې ميمو ليکلو طريقه ده، خو بيا هم که چا داسې و نه کړل نو خير دے لازمي نه ده. دغه شان کاونډي سوداګران چه ديو بل سره شپه ورځ کوم لين دين کوي، که په هغې کښې هم ليکل و نکړي نو خير دے ګناه پکښې نشته.

[۳۳۰] د دې مطلب دا هم دے چه څوک په دې مه مجبوره وئ چه خامخا تاسو د پاره ليکل وکړي يا ګواهي ورکړي، او دا مطلب ئې هم دے چه که ليکونکے يا ګواه ستاسو خلاف ګواهي ورکوي نو هغه مه تنګوئ.

[۳۳۱] دا مطلب نه دے چه ګانړه صرف په سفر کښې کيدے شي او په کورکلي کښې نشي کيدے. دلته دا ذکر په سفر کښې په دې وجه شوے دے چه اکثر داسې حالت په سفر کښې زيات راځي چه ليکونکے نه وي او ګواهي سره حاجت پيښ شي. دغه شان دا هم شرط نه دے چه ليکل ممکن نه وي نو هله د ګانړې کوئ، که ليکل ممکن دي او که نه وي ګانړه جائز ده. د دې نه علاوه داسې هم کيدے شي چه کله يو څوک په ليکلو څوک قرض ورکولو ته تيار نه وي نو قرض اخستونکے د څه څيز د هغه سره ګانړه کيدي او قرض ترې واخلي. ليکن قرآن خپلو مننکو ته د سخاوت تعليم ورکوي، او دا د بنده اخلاقو خبره نه ده چه ديو سړي سره مال وي او هغه يو ضرورتمند ته ترهغې قرض نه ورکوي ترڅو چه ئې د هغه نه څه څيز نه وي ګانړه کړے، او په دې وجه قرآن د دې دويم صورت ذکر قصداً نه دے کړے.

په دې سلسله کښې دا هم ښکاره دي چه سړي ته معلومه وي چه د څيز په ګانړه نيولو کښې مقصد صرف دا دے چه قرض ورکونکي ته د خپل قرض واپس اخستلو تسلي راشي. قرض ورکونکي ته دا حق حاصل نه دے چه د ګانړه شوي څيز نه فائده واخلي، که چا يو کور د چا نه په ګانړه کښې نيولے وي، نو په هغې کښې به خپله

فَاِنْ اَمِنَ بَعْضُكُمْ بَعْضًا فَلْيُؤَدِّ الَّذِى اؤْتُمِنَ اَمَانَتَهٗ وَلْيَتَّقِ اللّٰهَ رَبَّهٗ ؕ وَلَا تَكْتُمُوا الشَّهَادَةَ ؕ وَمَنْ يَّكْتُمْهَا فَاِنَّهٗۤ اٰثِمٌ قَلْبُهٗ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ عَلِيْمٌ ﴿۲۸۳﴾ ع لِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا فِى الْاَرْضِ ؕ وَاِنْ تُبْدُوْا مَا فِىْۤ اَنْفُسِكُمْ اَوْ تُخْفُوْهُ



که په تاسو کښې یو تن په بل باندې اعتبار وکړي او د هغه سره دَ لین دین څه معامله وکړي نو په چا چې اعتبار شوې وي، هغه له پکار دي چې امانت ادا کړي او د خپل رب نه ویرېږي. او ګواهي مه پټوئ.[۳۳۲] څوک چې ګواهي پټوي، دَ هغهٔ زړهٔ په ګناه ککړ دي. او خدائې ستاسو دَ عملونو نه ناخبره نهٔ دے ع

په آسمانونو او په زمکه کښې څه چې دي، هغه ټول دَ الله دي.[۳۳۳][۳۳۴] تاسو که د خپل زړهٔ خبرے ښکاره کړئ او یا ئې پټې وساتئ

وسیله یا هغه کرایه اخستل دوا په اصل کښې سود خوراک دے. په قرض پیسو باندې سود اخستل او د کانړو شوې څیز نه فایده اخستل یو شان دے د اصولو په لحاظ سره پکښې هیڅ فرق نشته. البته که بوځناور په کانړو کښې اخستلے شوے وي د هغه پیئ استعمالول په هغه سړي کول او په هغه بوج وړل روا دي، ځکه چې دا په اصل کښې د هغه خوراک بدله ده کوم چې مونږ هغه ځناور له ورکوو.

[۳۳۲] ګواهي نهٔ ځان نه پټ کول، یا مطلقه ګواهي کول، دواړه په "ګواهي پټولو" کښې راځي.

[۳۳۳] دا د خبرے خاتمه ده. څنګه چې د سورت شروع د دین دَ بنیادي تعلیماتو نه شوې وه، د هم هغه شان د سورت په آخر کښې هم هغه ټول اُصولي حکمونه بیان کړے شوي دي کوم چې دَ دین اسلام بنیاد دے. د دے سره د مقابلے کولو پاره د دے سورت اول رکوع بیا وکوری، نو ډیره زیاته فایده منده وي.

[۳۳۴] دا د دین اولنے بنیاد دے، چې د زمکے او د آسمانونو مالک الله تعالیٰ دے او دا څه چې په زمکه او په آسمانونو کښې دي دا ټول دَ الله ملکیت دے نو د دے بنیادي حقیقت په وجه دانسان دپاره د الله وړاندې اطاعت سرښکته کول پکار دي. د دے نه بغیر بله یوه طریقه هم صحیح او جائزه نهٔ ده.

يُحَاسِبْكُمْ بِهِ اللّٰهُ ۖ فَيَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَاۗءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَاۗءُ ۭ وَاللّٰهُ عَلٰي كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۲۸۴﴾ اٰمَنَ الرَّسُوْلُ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْهِ مِنْ رَّبِّهٖ وَالْمُؤْمِنُوْنَ ۭ كُلٌّ اٰمَنَ بِاللّٰهِ وَمَلٰۗىِٕكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ ۣ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْ رُّسُلِهٖ ۣ وَقَالُوْا سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا ڭ غُفْرَانَكَ رَبَّنَا وَاِلَيْكَ الْمَصِيْرُ ﴿۲۸۵﴾

الله به پهرحال کښ د هغې حساب تاسو سره کوی[۲۳۵]. بیا د هغه اختیار دے، چه څوک معاف کول غواړي معاف به یې کړي، او چه چاله سزا ورکول غواړي سزا به ورکړی. هغه په هرڅیز باندې طاقت لري[۲۳۶].

رسول په هغې حکمونو باندې ایمان راوړے دے کوم چه د خپل رب د طرفه په هغه باندې نازل شوی دی. او کوم خلق چه د رسول منلے دے هغوی هم دا حکمونه د زړهٔ نه منلی دی. دوئ ټول الله او د هغه فرښتے، او د هغه کتابونه او د هغه رسولان منی. او ټول داوائي چه "موږ د الله رسولان د یو بل نه نه جدا کوو، موږ حکم واوریدو او قبول مو کړو. اے زموږه ربه! موږه ستانه د خطا کانو بخښنه غواړو او هم تا ته به واپس درځو[۲۳۷]

[۲۳۵] په دے نقره کښ نو یه د ره خبره شوی دی. یوه دا چه هر انسان به ځان له الله له جواب ورکوی. بله دا چه انسان به د زړهٔ او د آسمانونو کوم بادشاه له جواب ورکوی هغه په پته او په ښکاره په دواړو باندې علم دے، تر دے پورے چه د زړهٔ نو پټه ارادے او خیالات د هغه نه پټ نه دی.

[۲۳۶] دا د الله تعالیٰ د مطلق اختیار او بیان دے. هغه د څهٔ قانون پابند نه دے چه خا مخا به مجبوراً د هغې مطابق عمل کوی، بلکه هغه کل اختیاره مالک دے. د سزا ورکولو او د معاف کولو پوره اختیارات هغه ته حاصل دی.

[۲۳۷] په دے آیت کښ مختصر طور د اسلامی عقیدو او د اسلامی ژوند خلاصه بیان کړے شوی ده. هغه خلاصه دا ده، الله پاک، د هغهٔ فرښتے، او د هغه کتابونه منل. بغیر د څه فرق نه د هغه ټول رسولان منل. (فرق دا چه څوک منی او څوک نه منی) او دا یقین ساتل چه آخر نه آخر موږ به الله ته حاضریږو. دا پنځه خبرے د اسلام بنیادی عقیدے دی. د دے عقیدو قبلولو نه روستو د یو مسلمان دپاره صحیح ژوند دا دے چه د الله د طرفه کوم حکم راشی هغه په سرسترګو قبول کړی، هغه ومنی او په خپل نیک عمل باندې غرّه نه وی بلکه هر وخت د الله نه معافی غواړی.

لَا یُکَلِّفُ اللّٰهُ نَفْسًا اِلَّا وُسْعَهَا ؕ لَهَا مَا کَسَبَتْ وَ عَلَیْهَا مَا اکْتَسَبَتْ ؕ رَبَّنَا لَا تُؤَاخِذْنَآ اِنْ نَّسِیْنَآ اَوْ اَخْطَاْنَا ۚ رَبَّنَا وَلَا تَحْمِلْ عَلَیْنَآ اِصْرًا کَمَا حَمَلْتَهٗ عَلَی الَّذِیْنَ

الله په هیچا باندې د هغه د وس نه زیات د ذمه وارۍ بوج نه اچوي.[338] هر چا چه څه نیکي کړې ده، د هغې ثواب هم د هغه دے، او چه چا بدي کړې ده د هغې سزا هم په هغه ده.[339]
(اے مومنانو تاسو په دے طریقه دعا غواړئ) اے زمونږه ربه که زمونږ نه په هیره یا په خطا څه ګناه وشي نو په هغې مونږ مه نیسه، اے ربه! په مونږه هغه بار مه اچوه کوم چه تا زمونږ نه

۳۳۸ یعنې د الله په نزد د انسان ذمه وارۍ د انسان د خپل وس مطابق ده. داسے به هیچرے نه وي چه بنده به د یو کار کولو طاقت نه لري او الله به ترې پوښتنه کوي چه تا فلانے کار ولے نه دے کړے. یا به د یو څیز نه بچ کیدل په حقیقت کښې د هغه په وس کښې نه وي او خدائے به ترې پرې نیسي چه تا د دے نه ځان ولے بچ نه کړو. لیکن دا یاد لرئ چه د خپل وس او د طاقت فیصله کولو والا انسان پخپله نه دے. دا فیصله به الله کولے شي چه په حقیقت کښې څوک د کوم څیز طاقت لري او د کوم څیز طاقت نه لري.

۳۳۹ دا د الله د بدله ورکولو دویمه قاعده ده. هر سړے به انعام په هغه خدمت اخلي کوم چه هغه پخپله کړے وي. داکیدے نشي چه د یو سړي په خدمت باندې بل سړے انعام واخلي. او د هغه شان هر سړے به په هغه ګناه نیولے کیږي کوم چه هغه پخپله کړې وي. دا نشي کیدے چه د یو په ګناه کښې بل را ونیولے شي. هو که یو سړي د یو نیک کار بنیاد کیښودو، او په دنیا کښې د هغې کار اثر د زرګونو کالو پورے چلیدو، نو دا ضرور ممکن ده چه هغه ټول ثوابونه د هغه په عملنامه کښې ولیکلے شي. او د هغه شان که یو بل سړي د یو بد کار بنیاد کیښودو او په سوونو کالو د هغې اثر په دنیا کښې چلیدو، نو دا ضرور ممکن ده چه د هغې ګناه د هغې اول ظالم په عملنامه کښې درج کړے شي. لیکن دا ټول به یاد، هر څه چه وي، دا به هم د هغه د خپل کار نتیجه وي. خو دا په هیڅ حال کیدے نشي چه په یوه نیکۍ یا بدۍ کښې د سړي د خپل نیت یا کوشش څه حصه نه وي او د هغې ثواب یا عذاب دې ده ته ملاؤ شي. د عملونو بدله یو بل ته د اوړیدلو څیز نه دے.

مِنْ قَبْلِنَا ۚ رَبَّنَا وَلَا تُحَمِّلْنَا مَا لَا طَاقَةَ لَنَا بِهٖ ۚ
وَاعْفُ عَنَّا ۗ وَاغْفِرْ لَنَا ۗ وَارْحَمْنَا ۗ اَنْتَ مَوْلٰىنَا
فَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكٰفِرِيْنَ ﴿٢٨٦﴾ ع



په مخکنو خلقو باندې اچولے وُو.[۳۴۰] پروردګاره! چه د کوم بار د ورلو طاقت په مونږه کښې نشته، هغه په مونږه مه بر ده.[۳۴۱] مونږ سره نرمي وُکه، مونږه معاف که، په مونږ رحم وکه، ته زمونږ مولیٰ يې، د کافرانو په مقابله کښې زمونږه مدد وُکړه.[۳۴۲] ع

۳۴۰ یعنی زمونږه مخکینو ملګرو ته چه ستا په لار کښې کوم آزمیښتونه پیښ شوی دی، او د کومو سختو آزمیښتونو نه چه هغوی تیر شوی دی او چه کوم مشکلات د هغوی مخې ته راغلی دی، د هغې نه مونږه بچ وُساتې. اګرچه د الله دا طریقه ده چه څوک هم په حق پسې تلی دی هغوئي په سخت آزمیښتونو او فتنو کښې ګیر شوی دی، او چه کله آزمیښتونه مخې ته راشي نو د مؤمن دا کار دے چه پوره په صبر سره د هغې مقابله وُکړي. لیکن په هر حال کښے مؤمن له دا پکار دی چه د الله نه دُعا غواړي چه الله تعالیٰ دې نه د حق لاره آسانه کړے.

۳۴۱ یعنی د مشکلاتو دومره بار په مونږه اچوه څومره چه مونږ وړلے شو. دومره آزمیښت راباندې کوه چه مونږه ئې پوره کولے شو. داسے نه چه زمونږ د طاقت نه زیاتے سختئ په مونږ باندې راشي او د حق د لارے نه زمونږه ته مونه څخو ښیږي.

۳۴۲ د دے دُعا په اصل رُوح باندې د پوهیدلو د پاره دا خبره په خیال کښې ساتل پکار دی چه دا آیتونه د هجرت نه تقریبًا یو کال مخکښې د معراج په موقع سنازل شوي وُو، په هغه وخت کښې په مکه کښې د کفر او د اسلام جنګ انتها ته رسیدلے وُو، په مسلمانانو باندې مصیبتونه او سختئ کیدلے، او یواځې مکه نه، بلکه د عرب په زمکه باندې داسے یو ځائے نه وُو چه هلته د مسلمانانو ژوند ګران شوی نهٔ وُو. په دے حالاتو کښې مسلمانانو ته دا نصیحت کیدو چه د خپل مالک نه دُعا په دے طریقه غواړئ. ښکاره خبره ده چه ورکوکے بچیله غوښتونکی ته د غوښتلو طریقه وُښایئ، نو ملا دید و یقین په خپله پیدا کیږي. دغه وجه ده چه دا دُعا په دغه وخت کښې د مسلمانانو د پاره د زړهٔ تکور شوه. د دے نه علاوه په دے دُعا کښې پټ مسلمانانو ته دا نصیحت هم شوے دے چه خپل جذبات دې په غلط طرف نهٔ استعمالوی بلکه خپل جذبات دې د دے دُعا مطابق استعمال کړي. یو طرف ته دے ظلمونو ته وُګوره چه صرف د حق پرستئ د جرم په وجه په خلقو باندې کیږي، او بل طرف ته دے دُعا ته وُګوره چه پکښې د دُشمن خلاف هیڅ تلخی

نشته - یو طرفته هغه بدنی تکلیفونو او هغه مالی نقصانونو ته ذکوره چه پکښې دا خلق مبتلا ؤو، او بل طرفته ده دُعا ته ذکوره چه پکښې ددُ نیایي نایدوغوښتلونوم نشان نشته - یو طرفته ده مسلمانانو انتهايي بد حالئ ته ذکوره، او بل طرفته هغه وُچتو اوپاکو جذباتو ته ذکوره چه دکوم نه داد ُعا ډکه ده دے نه دا صحیح اندازه لګیدے شي چه په هغه وخت کښې مؤمنانو ته څنګه اخلاقي او روحاني تربیت ورکید ے شو.

---

## بقیهٔ حاشیه ۵۵

دَ آدم علیه السلام دَ پیدائش پروخت کښې دَ الله او دَ فرښتو په مینځ کښې چه کومے خبرے اترے شوے وے، دهغے ذکر په تلمود کښې هم راغلے دے، خودَ هغے نرم هغه روحاني تسکین چاته نه ملاؤیږي کوم چه دَ قرآن دَ بیان کړے شوي قصے نه ملاؤیږي - بلکه په هغے کښې دا لطیفه هم ده چه کله فرښتو دَ الله نه تپوس وُکړو چه انسان ولے پیدا کوے" نو الله تعالیٰ ورله جواب ورکړو چه په هغوئ کښې نیکان خلق پیدا شي." دبد و خلقو ذکر الله وُ نه کړو. کنۍ نو فرښتو به دا انسان د پیدائش منظوري نه ورکړے.

(Talmudic Miscellany,Paul Isaac Hershon-LONDON 1880,P.294-95).

---

# اٰلِ عِمرَان

**نوم** په دے سورت کښ په یو ځائے کښ دَ "اٰلِ عمران" ذکر راغلے دے هم دغه د دے دپیژندګلو دَپاره په طور نوم ایښودلے شوے دے.

## دنازلیدو زمانه او مضمون حصے

په دے کښ څلور تقریرونه دی؛

اَولنی تقریر دَ سورت دَ شروع نه دَ څلورم رکوع دَ اولنو دوؤ آیتونو پورے دے او دا تقریر غالبًا دجنګ بدر نه روستو ډیر زر نازل شوے دے.

دَویم تقریر دا آیت اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰىٓ اٰدَمَ وَ نُوْحًا وَّاٰلَ اِبْرٰهِيْمَ وَاٰلَ عِمْرٰنَ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ (الله تعالیٰ آدمؑ او نوحؑ او آلِ ابراهیم او آل عمران دَ دُنیا په نورو خلقو باندې دَ خپل رسالت دکار دپاره غوره کړی ؤو) نه شروع کیږی او دَ شپږم رکوع دَ آخر پورے ختمیږی. دا تقریر په نهمه هجری کښ دَ نجران دَ وفد دَ راتلو په وخت نازل شوے دے.

دَریم تقریر دَ اووم رکوع نه ددولسم رکوع دَ آخر پورے دے او دا بے معلومیږی لکه چه دا تقریر داولنی تقریر سره متصل نازل شوے وی.

څلورم تقریر د دیارلسم رکوع نه د سورت دَ آخره پورے دے او د جنګ اُحُد نه روستو نازل شوے دے.

## خطاب او بحثونه

د دے مختلفو تقریرونو مقصد او مدعا او مرکزی مضمون یو شان دے او په دے وجه دا ټول تقریرونه یو روان مضمون دے. د سورت دا خاص طور د دوؤ ډلو ته دے؛ یو اهل کتاب (یهودیان او عیسایان) بل هغه خلق چه په محمد صلی الله علیه وسلم باندې ئے ایمان راوړے ؤو.

اولے ډلے ته په هغه طرز تبلیغ شوے دے په کوم طرز چه د سورتِ بقره نه شروع شوی وه. هغوئ ته په غلط عقیدو او د په خرابو اخلاقو باندې خبرداره ورکړے شوے دے او ورته وئیلے شوی دی چه دا رسول او دا قرآن هغه دین ته خلق رابلی کوم دین نه چه د اول نه ټولو پیغمبرانو خلق رابللے دے او کوم چه دَ الله د فطرت مطابق یو حق دین دے. د دے دین دَ سیخے لارے نه چه کومے بدلے لارے تاسو اختیار کړی دی، هغه په هغه کتابونو کښ هم صحیح نه دی کوم چه تاسو ئے آسمانی کتابونه منئ. لهٰذا د کوم څیز د صداقت نه چه تاسو انکار نشئ کولے هغه صداقت قبول کړئ.

دَ ویمے ډلے، چه اوس دَ یو بهترینے امت په حیثیت دَحق پورته کوونکی او دَ دُنیا د اصلاح ذمه دار ګرزولے شوی دی، هغوئ ته د کار نور هم خبرے شوی دی

کوم چه د سورت بقرې نه هغوئ ته شروع شوې وه. هغوئ ته د تیرو امتونو د مذهب
او د اخلاقو د زوال عبرتناکې خبرې شوې دي او دا ورته ویلې شوې دي چه د هغوئ پشان د
کار کولو نه ځان ساتي. هغوئ ته د خلقو د اصلاح د پاره د کار کولو طریقه ښودلې شوې ده،
او د اهل کتابو او د منافقانو سره د معاملې کولو طریقه ورته ښودلې شوې ده. په جنګ احد
کښې چه کومې کمزورئ د هغوئ نه شوې وې هغه ورته هم د اصلاح په غرض په ګوته کړې شوې
دي.

د غه شان دا سورت نه یواځې چه یو روان سورت دې بلکه د سورت بقرې سره ئې
دومره نږدې تعلق ښکاري لکه چه په دې سورت باندې هغه مکمل شوی، داسې معلومیږي لکه
چه د دې سورت څپل مقام د سورة بقرې سره متصل وي.

## شانِ نزول

د سورت په حقله وړاندې تیر شوې تاریخ داده:

(۱) په سورة بقره کښې چه مومنانو ته د وخت نه مخکښې د کومو آزمیښتونو او مصیبتونو او
مشکلاتو خبرداری ورکړې شوې وو، هغه ټول د پوره سختئ سره راغلي وو. په جنګ بدر کښې
مومنانو ته فتح حاصله شوې خو وه، لیکن دا جنګ د مچو ګبین له ګوتې وروړل وو. د کومو
طاقتونو چه د دې نوي تحریک (اسلام) سره دشمني وه، هغه ټول د دې وسله بند جنګ
سره رابیدار شوي وو. هر طرف نه د طوفان آثار ښکاره کېدل، مسلمانانو سره هر
وخت یره او پریشاني وه، داسې معلومېدل چه د مدینې دا ورکوټې کلې چه د کیر چاپېره
ټوله دنیا سره ئې جنګ ته غاړه ایښودلې وه، دا به د دنیا د مخ نه ختم کړې شي. د دې
حالاتو خراب اثر د مدینې په مالي حالت باندې پرېوتلې وو. اول خو د کمزو مهاجرینو په نلسا په
راتللو سره د مدینې مالي توازن خراب شوې وو. او بیا په دې نو مصیبت د دې جنګ په وجه راغې.

(۲) د هجرت نه روستو چه نبي صلی الله علیه وسلم د مدینې د خواو شا یهودي قبیلو سره کومې
وعدې کړې وې، هغوئ د چنلو وعدو هیڅ لحاظ ونه کړو. د جنګ بدر په موقع د اهل
کتابو همدردي د مسلمانانو په ځائې د بت پرستو مشرکانو سره وه. د بدر د جنګ نه روستو
دې خلقو په ښکاره قریش او د عربو نورې قبیلې مسلمانانو ته قهرولې او بدلې اخستلو
ته ئې تیاره ول. خاص طور د بني نضیر قبیلې سردار کعب بن اشرف په مخالفت کښې ډېر زر ډډ
لګولې وو. د دې یهودیانو د مدینې والو د ګاونډ کیرئ او د دوستئ هم هیڅ لحاظ ونه ساتلو.
په آخر کښې چه کله د هغوئ شرارتونه او وعده خلافئ د حد نه زیاتې شوې، نو نبي
صلی الله علیه وسلم د بدر د جنګ یو څو میاشتې روستو په بني قینقاع قبیله باندې، چه
په دې یهودي قبیلو کښې د ټولو نه زیات شریر خلق وو، حمله وکړه او د مدینې نه ئې
بهر وویستل. لیکن په دې سره د نورو یهودي قبیلو غصه نوره هم زیاته شوه. هغوئ
د مدینې د منافق مسلمانانو او د حجاز د مشرکو قبیلو سره سازباز وکړو او د اسلام
او د مسلمانانو ته ئې د هر طرف نه خطره راپیدا کړې، تردې پورې چه د نبي صلی الله علیه وسلم

په حقله هروخت دا فکر وُو چه کله به پرې د ژلو حمله کیږي. صحابهٔ کرام به په دے زمانه کښې دَ وسلې سره وُدهٔ کیدل. د وسلے دَ پیره به دَ شپے څوکیداري کیدله. چه نبي صلی الله علیه وسلم به لږ شان د سترګو نه پناه شو نو صحابهٔ کرام وسره به پېره پیدا شوه او دَ هغهٔ د تلاش د پاره به اخوا دیخوا اُووتل.

(۳) په جنګ بدر کښې د شکست خوړلو نه روستو دَ قریشو په زړونو کښې چنبله دبدلے اخستلو اور بلیدو او د پاسه پرې یهودیانو نور تیل واړول. نتیجه ئې دا شوه چه یو کال روستو د مکے نه درے زره لښکر په مدینه باندې حملے کولو په غرض را روان شو، او دَ اُحد غرونډئ په لمن کښې هغه جنګ وُشو، چه د جنګ اُحد په نوم باندې مشهور دے. د دے جنګ د پاره دَ نبي صلی الله علیه وسلم سره یو زر کسان د مدینے نه را وتلي وُو. خو په لاره کښې تر دریه سوو منافقان جُدا شو او مدینے ته واپس لاړل. او کوم اووه سوه کسان چه دَ نبي ﷺ سره پاتې شوي وُو په هغې کښې هم د منافقانو دله شامله وه چه د جنګ په دوران کښې ئې په مسلمانانو کښې فتنه اچولو کوشش کولو. دا دله مرقع وه چه پته ولګیده چه په مسلمانانو کښې د ننه دومره ډیر منافقان موجود دي او هغوي د بهرنو دښمنانو سره ملاګړي دي او خپلو رونړو ته نقصان رسوي.

(۴) په جنګ اُحد کښې چه مسلمانانو ته کوم شکست وُشو، اګرچه په هغې کښې دَ منافقانو ډیر لاس وُو لیکن ورسره دَ مسلمانانو خپلې کمزورۍ هم ډیره حصه وه او دا یوه قدرتي خبره وه چه د یو خاص طرز فکر کومه دله اوس تازه جوړه شوې وه، او چه دَ هغې اخلاق تربیت لا مکمل شوے نه وُو، او دَ هغوي د خپلو عقیدو په حق کښې دَ جنګ دا صرف دویمه موقع وه نو هغوي په کار کښې به څه کمزورۍ نه ضرور ښکاره کیدلے. په دے وجه دا یو ضرورت وُو چه د جنګ نه روستو په دے جنګ باندې به په تفصیل سره تبصره وُکړے شي، او په دے جنګ کښې چه کومې کمزورۍ په مسلمانانو کښې وے، هغه یوه یوه کمزوري به ګوته کړے شي او د هغې دا صلاح په حقله هدایات جاري شي. په دے باره کښې دا خبره په خیال کښې راوستل ضروري دي چه په دے جنګ باندې قرآن کومه تبصره کړې ده هغه د هغو تبصرو نه څومره مختلف ده، کومې چه دَ دُنیا جرنیلان دَ جنګونو نه روستو کوي.

آیاتها ٢٠٠ — سُورَةُ اٰلِ عِمْرٰنَ مَدَنِیَّةٌ — رکوعاتها ٢٠

## بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

الٓمّٓ ﴿١﴾ اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْحَیُّ الْقَیُّوْمُ ﴿٢﴾ نَزَّلَ عَلَیْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَیْنَ یَدَیْهِ وَاَنْزَلَ التَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِیْلَ ﴿٣﴾

۱- ل- م- الله هغه همیشه ژوندے ذات دے، چه ټول کائنات یې په تابو کښ دے، د هغه نه بغیر بل خدائے نشته دے.[1]

هغه په تا باندې داکتاب نازل کړو چه د حق سره راغلے دے او د هغې کتابونو تصدیق کوی چه د رومبی نه نازل کړے شوی وُو. د دے نه مخکښ هغه د انسانانو د هدایت دپاره تورات او انجیل نازل کړی دی،[2]

---

[1] د تشریح دپاره اُګوره سورۃ بقره، حاشیه ع۲۷۸.

[2] عام طور خلق دا ګڼی چه د تورات نه مُراد د بائیبل د عهدِ عتیق زمانے لیکلے شوی اولنی پنځه کتابونه دی او د انجیل نه مراد د نوے زمانے لیکلے شوی څلور مشهور انجیلونه دی. په دے وجه سړے پریشانه کیږی چه آیا واقعی داکتابونه کلام الٰهی دی؟ او آیا قرآن واقعی د هغے ټولو خبرو تصدیق کوی کوم چه په دے کتابونو کښ دی؟ لیکن اصلی حقیقت دا دے چه تورات د بائیبل د اولنو پنځو کتابونو نوم نه دے، بلکه تورات په دغے پنځو کتابونو کښ دننه درج دے، او انجیل د نوے زمانے د څلورو انجیلونو نوم نه دے بلکه په دغے څلورو کتابونو کښ دننه درج دے.

په اصل کښ د تورات نه مُراد هغه حکمونه دی کوم چه د حضرت موسیٰ علیه السلام د نبوت نه د هغه د وفات نه پورے تقریبًا د څلویښتو کالو په دوران کښ په هغه باندې نازل شوی وُو. په هغې کښ خولس حکمونه هغه وُو، کوم چه الله تعالیٰ د کانړی په تختو باندې لیکلی هغه له ورکړی وُو. باقی حکمونه حضرت موسیٰؑ په چالیکلی وُو او د هغې دولس دولس نقلونه ئے د بنی اسرائیلو دولسو قبیلو له ورکړی وُو. او یو نقل ئے بنی لاوی ته حواله کړے وُو چه هغه ئے په حفاظت کښ وساتی. د دغے کتاب نوم "تورات" وُو. دا کتاب د بیت المقدس د اولے تباهئ د وخته پورے محفوظ وُو. د دے کوم نقل چه بنی لاوی ته د حفاظت دپاره حواله کړے شوے وُو، هغه د کانړی د تختو سره د عهد په صندق کښ ایښودلے شوے وُو او بنی اسرائیلو به پیژندو چه دا "تورات" دے. لیکن د دے نه هغوئ دومره بے پرواشوی وُو چه کله د یهودیه بادشاه یوسیاه په زمانه کښ د هیکل سلیمانی مرمت کیدو نو سردار کاهن (یعنی د هیکل په ګدئ ناست او د قوم د ټولو نه لوئ مذهبی مشر) خِلقیاه ته چرته اتفاقی په یو ځائے کښ تورات ملاؤ شو او هغه د یاد شاه منشی له د یو نا آشنا څیز په حیثیت ورکړو او منشی بیا بادشاه له په دے طریقه د یو داسے چیز په شان د یو نا آشنا څیز ښکاره شوے وی (دکونږ ۲. سلاطین، باب ۲۲- آیت ۸ تا ۱۳)-

دغه وجه ده چه کله بخت نصّر یروشلم فتح کړو او د هیکل سره ئې ټول ښار لوټ لوټ کړو نو د بنی اسرائیلو سره چه د تورات کومه اصلي نسخه شته لړه وه بیره وه، خو هغه هم د بې علمۍ په وجه لکه چه بالکل د هغوئ نه هیره وه، هغه هغوئ نه د هیشه د پاره ورکه شوله. بیا چه کله د عزرا کاهن (په کدئ ناست خلیفه مذهبي مشر عُزیرؒ) په زمانه کښې د بنی اسرائیلو څه لږ ډیر پاتې شوی خلق د بابل د قید نه واپس یروشلم ته راغلل او دوباره بیت المقدس آباد شو، نو عزرا د خپل قوم د نورو مشرانو په مدد سره د بنی اسرائیلو ټول تاریخ ولیکو چه اوس په کښې د بائیبل اولني اولس کتابونه شامل دي. د دې تاریخ په څلورو بابونو کښې، یعنې خروج، احبار، گنتي او استثنا کښې د حضرت موسیٰ علیه السلام سیرت دے، او په دې سیرت کښې دننه د تورات هغه آیتونه د موقع مطابق، د نزول په ترتیب سره، درج کړے شوی دي، کوم چه عزرا او د هغه نورو مشرانو مدد گارانو له پلاس ورغلي وُو. نو په اصل کښې اوس تورات د هغه خورو ورو حصونوم دے کوم چه د موسیٰ علیه السلام په سیرت کښې دننه خور ورپروت دے. موږ ئے صرف په دې نښه پیژندے شو چه د دے تاریخ د بیان په دوران کښې کوم ځائے کښې چه د موسیٰؑ سیرت لیکونکے وائي چه خدائے پاک موسیٰؑ ته دا وفرمائیل، یا موسیٰ ووئیل چه خدا وند ستاسو خدائے دا وائي، نو د هغه ځائے نه د تورات یوه حصه شروع شي، او کله چه بیا د سیرت تقریر شروع شي نو هلته هغه حصه ختمه شي. په مینځ کښې چه د بائیبل لیکونکي د تفسیر په طور څه زیات لیکلي دي، د عام سړي د پاره د هغې پیژندل ډیر سخت مشکل دي چه آیا دا د تورات حصه ده او که تفسیر دے. بیا هم چه کوم خلق په آسماني کتابونو کښې بصیرت لري، هغوئ دا معلومولے شي چه په کوم کوم ځائے کښې د تفسیر په طور زیاتے حصے شامل کړے شوي دي.

قرآن دے خورو ورو حصو ته "تورات" وائي. او د دغې حصو تصدیق کوي، او دا حقیقت دے چه که دغه حصے راجمع کړے شي او د قرآن سره ئے مقابله وکړے شي نو د یو څو جزوي حکمونو د اختلاف نه بغیر په اصولي تعلیماتو کښې په دواړو کتابونو کښې د ویخته هومره فرق نشته. اوس هم یو لوستونکے ښکاره په دے پوهیدلے شي چه دے دواړو کتابونو اصل بالکل یو دے.

دغه شان انجیل هم په اصل کښې د هغه الهامي خطبو او اقوالو نوم دے کوم چه مسیح علیه السلام د خپل ژوند په آخري دوه نیم درې کالو کښې د نبي په حیثیت فرمائیلي وُو. دغه پاکې کلمے د هغوئ په ژوند کښې لیکلے شوې وے او که نه وے نو د دے زمونږ سره هیڅ معلومات نشته. کیدے شي چه چا ځان سره لیکلي وي او چا په یاد یاد کړي وي. بهرحال چه کله ډیر موده پس د عیسیٰؑ په سیرت باندې مختلف کتابونه ولیکلے شو په هغې کښې د تاریخي بیان سره سره هغه خطبے او قولونه هم ځائے په ځائے د موقع مطابق ولیکلے شو کوم چه د دغې کتابونو لیکوالو ته په یادو یا دلیک په ذریعه را رسیدلي وُو. نن چه متي، مرقس، لوقا، او یوحنا کتابونو ته انجیلونه وئیلے کیږي، دا په اصل کښې انجیلونه نه دي، بلکه انجیل د حضرت مسیحؑ هغه وینا او قولونه دي کوم چه په دے کتابونو کښې دننه درج دي. موږ سره د دے کلام د پیژندلو صرف دا یوه ذریعه ده چه کوم ځائے کښې سیرت لیکونکي دا وئیلي دي چه مسیح دا وفرمائیل یا مسیح خلقو ته دا تعلیم ورکړو، نو د هغه ځائے نه اصلي انجیل شروع شو. قرآن دغې ځایونو ته انجیل وائي او د دغې تصدیق کوي. نن که څوک دغه خوارۀ وارۀ قولونه راجمع کړي او د قرآن سره ئے

مِنْ قَبْلُ هُدًى لِّلنَّاسِ وَاَنْزَلَ الْفُرْقَانَ ۗ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌ ۗ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ ذُو انْتِقَامٍ ﴿۴﴾ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَخْفٰى عَلَيْهِ شَيْءٌ فِي الْاَرْضِ وَلَا فِي السَّمَآءِ ؕ﴿۵﴾ هُوَ الَّذِيْ يُصَوِّرُكُمْ فِي الْاَرْحَامِ كَيْفَ يَشَآءُ ؕ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْعَزِيْزُ الْحَكِيْمُ ﴿۶﴾ هُوَ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ

او هغهٔ هغه فرقان نازل کړے دے (چه د حق او د باطل فرق ښودونکے دے). اوس چه کوم خلق د الله د حکمونو تسلیمولو نه انکار وکړي، هغوئ ته به یقیناً سخته سزا ملاویږي. الله د لوئ طاقت مالک دے او د بدئ بدله ورکونکے دے.

د زمکے او د آسمان هیڅ څیز د الله نه پټ نه دے.[۳] داخو هم هغه دے چه ستاسو شکلونه ستاسو د میندو په خیټو کښې هغسے جوړه وي چه څنګه ئے خوښه شي.[۴] د دغے زبردست حکمت والا نه بغیر بل هیڅ خدائے نشته. هم دغه خدائے دے چه په تا ئے دا کتاب نازل کړے دے.

---

مقابله وکړي نو د یو کم فرق به ورته پکښې ښکاره شي، او که د تعصب نه پاک غور او فکر وکړے شي نو بیا دغه لیږ دیر فرق ختمیدے شي.

۳ یعني هغهٔ د کائیناتو په ټولو حقیقتونو باندې عالم دے، نو کوم کتاب چه هغه نازل کړے وي پکار دي چه هغه سراسر حق وي. بلکه خالص حق خو انسان ته صرف په هغه کتاب کښې ملاویدے شي، چه هغه د پوهاو دانا د طرفنه نازل شوے وي.

۴ په دے کښې دوو لویو حقیقتونو ته اشاره ده، یو دا چه ستاسو فطرت (یعني طبیعت) څنګه هغه به پیژني د غسے ئے نه تاسو په شان پیژندے شئ او نه ئے پېل شوک. نو ستاسو د پاره په هغه باندې د اعتبار او د بروسه کولو نه بغیر بله لار نشته. بل دا چه هغه ستاسو د مور د خیټو نه را واخله د پیدائیش پورے او د پیدائیش نه روستو په هره مرحله کښې د درو وړه ضرورتونو پوره کولو انتظام کړے دے، نو دا څنګه کیدے شي چه هغه د دُنیا په ژوند کښې تاسو د لارے ښودنو انتظام و نه کړي، حالانکه تاسو ته چه د کوم څیزو د ټولو نه زیات ضرورت دے او تاسو ورته د ټولو نه زیات محتاجه یئ، هغه هم دغه د ژوند صحیح لاره ده.

مِنْهُ اٰيٰتٌ مُّحْكَمٰتٌ هُنَّ اُمُّ الْكِتٰبِ وَاُخَرُ مُتَشٰبِهٰتٌ ؕ

په دې کتاب کښې دوه قسمه آیتونه دي: یو محکمات، چې د کتاب اصل بنیادي آیاتونه دي[٥] او بل متشابهات آیاتونه دي.[٦]

٥ محکم کلک او پوخ شیزته وائي. د "محکمات آیاتونو" نه مراد هغه آیاتونه دي چې وینا ئې صفا ده، چې مطلب ئې واضح دې، چې د هغې د الفاظو معنی د څپلې مدعا سره یو شان ده، او چې د هغې د ډیرو معنو کولو موقع په مشکله هم چاته نه ملاویږي. دا آیاتونه "د کتاب اصلي بنیادي آیاتونه دي" یعنې قرآن چې د کوم غرض د پاره نازل شوې دې هغه غرض دا آیتونه پوره کوي. هم په دغه آیتونو کښې ټولې دُنیا ته د اسلام داورنو غبرګ شوې دې، هم په هغه کښې د عبرت او نصیحت خبرې شوي دي، په هغې کښې د ټولو غلطو لاره تردید او د نیغې لارې تشریح شوې ده. په هغې کښې د دین بنیادي اصول بیان شوي دي، په هغې کښې عقیده، عبادت، اخلاق، فرض او د کولو او د نه کولو حکمونه بیان شوي دي. نو کوم سړې چې په حق پسې ګرځي او قرآن د دې د پاره کوري چې په کومه لار روان شي او په کومه لار نه ځي، نو د هغه د پاره محکمات آیتونه اصل بنیادي آیتونه دي، او د خپل میلان مطابق به د هغه توجه او خیال هم د دغه آیتونو ته راګرځي او هم د دغه نه به زیاته فائده اخلي.

٦ متشابهات یعنې هغه آیتونه چې په مطلب کښې ئې اشتباه راتلې شي.

دا ښکاره خبره ده چې د انسان د پاره تر هغې پورې د ژوند هیڅ یوه لاره مقرر کیدې نشي ترڅو پورې چې د کائنات تر حقیقت، د کائنات تر شروع او خاتمه او په هغې کښې د انسان حیثیت او د نورو داسې بنیادي او ضروري خبرو معلومات انسان ته نه وي شوي. او دا هم ظاهره ده چې کوم شیزونه انسان په لاسو څپو، سرسترګو او غوږونو نشي معلوم ولې یعنې د انسان د حواسو نه پورته وي، اګرچه د انسان په علم کښې نه چرته راغلي وي او نه راتلې شي، او نه هغه چرته لیدلي وي نه ئې شکل او نه ئې لاس وهلي وي، نو د دا قسم شیزونو د پاره د انسان په ژبه کښې داسې موزون او مناسب الفاظ نشي ملاویدې چې د هغې په اورېدلو سره د هر سړي په ذهن کښې د هغې صحیح شکل جوړ شي. نو دا ضروري ده چې د دا قسم شیزونو د پاره هغه الفاظ استعمال کړې شي چې د انسان په ژبه کښې اصل حقیقت ته دیر نږدې محسوس شیزونو د پاره استعمالیږي. چنانچه د انسان د علم نه پورته شیزونو د پاره په قرآن کښې داسې ژبه استعمال شوې ده او د متشابهات نه مراد هغه آیتونه دي چې په هغې کښې دا قسم ژبه استعمال شوې ده.

لیکن د دې ژبې د استعمال ګټه د نیاتونه زیاته فائده بس دومره کیدې شي چې سړې حقیقت ته نږدې کړی یا د سړي په خیال کښې د حقیقت نږدې شکل پیدا شي. د دې قسم آیتونو په مطلب لټولو کښې چې څومره زیات کوشش کیږي، هغومره به شک شبهه زیاته پیدا کیږي، ترڅو چې انسان حقیقت

فَاَمَّا الَّذِيْنَ فِيْ قُلُوْبِهِمْ زَيْغٌ فَيَتَّبِعُوْنَ مَا تَشَابَهَ مِنْهُ ابْتِغَآءَ الْفِتْنَةِ وَابْتِغَآءَ تَاْوِيْلِهٖ ۚ وَمَا يَعْلَمُ تَاْوِيْلَهٗٓ اِلَّا اللّٰهُ ۘ وَالرّٰسِخُوْنَ فِي الْعِلْمِ يَقُوْلُوْنَ اٰمَنَّا بِهٖ ۙ كُلٌّ مِّنْ عِنْدِ رَبِّنَا ۚ وَمَا يَذَّكَّرُ اِلَّآ اُولُوا الْاَلْبَابِ ۝۷ رَبَّنَا لَا تُزِغْ قُلُوْبَنَا بَعْدَ اِذْ هَدَيْتَنَا وَهَبْ لَنَا مِنْ لَّدُنْكَ رَحْمَةً ۚ اِنَّكَ اَنْتَ الْوَهَّابُ ۝۸ رَبَّنَآ اِنَّكَ جَامِعُ النَّاسِ لِيَوْمٍ

دکومو خلقو په زړونو کښ چه کوږوالے دے، هغوئ د فتنے جوړولو په لټون کښ همیشه په متشابها تو آیتونو پسے ورپسے وی او د هغے د بدلو بدلو معنو کولو کوشش کوی، حالانکه د هغے په حقیقی مطلب د الله نه بغیر بل څوک نه پوهیږی. او کوم خلق چه پاخه عالمان دی، هغوئ وائی چه "زمونږ په دغه باندې ایمان دے، د اټول زمونږ د رب د طرفه نه دی"، او رښتیا داده چه صرف هوښیاران خلق د یو څیز نه صحیح سبق اخلی. هغوئ د الله نه دُعا غواړی چه "اے زمونږ پروردګاره! چه یو ځل د مونږ په سیده لاره کړی یو، نو بیا زمونږ زړونه مه کږه وه. مونږ ته د خپلے خزانے رحمتونه راوبخښه، ځکه چه ته حقیقی بخښونکے یې. اے ربه! ته بیشکه ټولو خلقو په یوه داسے ورځ را جمع کونکے یې، چه د هغې په راتلو کښ

ته د نږه کیدلو په ځائے زړه لرے کیږی. نو کوم خلق چه د حق تلاش کونکی دی، او د فضولو او چه فائیدې د خبرو شوقی نه لری، د هغوئ په خیال کښ چه د متشابها آیتونو نه د حقیقت کوم غرض شکل پیدا کیږی په هغې باندې صبر کوی، او خپله ټوله توجه محکم آیتونو ته راولی، لیکن څوک چه فضول او شرپسند او فتنه باز خلق دی، د هغوئ ټوله مشغله په متشابه آیتونو کښ بحث او لټون کول وی.

ته دلته دچا اشک راتشی چه کوم خلق د متشابها تو په مطلب نه پو هیږی، نو په هغے به ایمان څنګه راوړی. حقیقت دا دے چه یو هوښیار سړے د محکم آیتونو د مطالعې نه دا یقین حاصلوی چه قرآن د الله کلام دے او د متشابه آیتونو مطالعے نه شه نه حاصلوی. ولکه چه ورته په محکم آیتونو کښ د غور و فکر کولو نه دا اطمینان حاصل شی چه دا کتاب واقعی د الله کتاب دے نو بیا متشابهات د هغه په زړه کښ شک نه پیدا کوی. تر کومه پورے چه د هغې سیده ساده مطلب د هغه په خیال کښ راځی په هغے عمل کوی، او کوم ځائے کښ چه ورته کړکیچ او مشکلات پېدا شی هلته د زور تللو په ځائے د الله په کلام سرسری ایمان راوړی او خپله توجه د کار خبرو ته راګرځوی.



لَا رَيْبَ فِيْهِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُخْلِفُ الْمِيْعَادَ ۝ۧ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَنْ تُغْنِىَ عَنْھُمْ اَمْوَالُھُمْ وَلَآ اَوْلَادُھُمْ مِّنَ اللّٰهِ شَـيْــــًٔا ۭ وَاُولٰۗىِٕكَ ھُمْ وَقُوْدُ النَّارِ ۝ۙ كَدَاْبِ اٰلِ فِرْعَوْنَ ۙ وَالَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ۭ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا ۚ فَاَخَذَھُمُ اللّٰهُ بِذُنُوْبِهِمْ ۭ وَاللّٰهُ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۝ قُلْ لِّلَّذِيْنَ كَفَرُوْا سَتُغْلَبُوْنَ وَتُحْشَرُوْنَ اِلٰى جَهَنَّمَ ۭ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ۝ قَدْ كَانَ لَكُمْ اٰيَةٌ فِيْ فِئَتَيْنِ الْتَقَتَا ۭ فِئَةٌ تُقَاتِلُ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَاُخْرٰى كَافِرَةٌ يَّرَوْنَھُمْ

هیڅ شک نشته. ته هیڅکله د خپلې وعدې نه اړوونکې نه یې."ع

کومو خلقو چه د کفر لار اختیار کړی شه، د الله په مقابله کښ به نه هغوئ خپل مال په کار راشي او نه اولاد. دهغوئ نه به د دوزخ خشاک جوړیږي. د هغوئ به هغسې انجام وي لکه څنګه چه د فرعون د ملګرو او د هغوئ نه مخکښ د نا فرمانو خلقو شوے دے چه هغوئ الله آیتونه دروغ وګڼل، نتیجه ئے دا شوه چه الله هغوئ د خپلو ګناهونو په وجه راونیول او حق دا دے چه الله سخت سزا ورکونکے دے. پس اے محمد! کومو خلقو چه ستا د دعوت نه انکار کړے دے هغوئ ته ووایه چه هغه وخت نزدے دے چه په تاسو باندې به غلبه وکړے شي او جهنم ته به وشړلے شئ او جهنم ډیر خراب ځائے دے. ستاسو دپاره په هغه دوو ډلوکښ د عبرت یوه نښه وه، چه (په بدر کښ) د یو بل سره وجنګیدلے. یوه ډله د الله په لار کښ جنګیده او بله ډله د کافرانو وه. کتونکو د سر په سترګو لیدله چه د کافرانو ډله

شه د تشریح دپاره اوګورئ سورة البقرة، حاشیه ۱۶۱

مِّثْلَيْهِمْ رَأْيَ الْعَيْنِ ۚ وَاللَّهُ يُؤَيِّدُ بِنَصْرِهِ مَنْ يَشَاءُ ۗ إِنَّ
فِي ذَٰلِكَ لَعِبْرَةً لِأُولِي الْأَبْصَارِ ﴿١٣﴾ زُيِّنَ لِلنَّاسِ حُبُّ
الشَّهَوَاتِ مِنَ النِّسَاءِ وَالْبَنِينَ وَالْقَنَاطِيرِ
الْمُقَنْطَرَةِ مِنَ الذَّهَبِ وَالْفِضَّةِ وَالْخَيْلِ الْمُسَوَّمَةِ

دَ مومنانو د ډلې دوه دومره ده[9]. خو (دَ نتیجې نه ثابته شوه چه) الله چاله وُغواړي هغه له خپله نصر او امداد ورکوي. دَ سترګو خاوندانو دپاره په دې کښ ډیر عبرت پټ پروت دے[10]
دخلقو دپاره زړه غوښتونکي څیزونه ــ لکه ښځے، اولاد، دَ سرو سپینو ډیرې، بنه اسونه،

[9] اګرچه حقیقي فرق درے چند ؤ وُو، لیکن کوم چه په سرسري نظر ورته چاکتل نوهم ورته داسے ښکاریدل چه دکفارو لښکر د مسلمانانو نه دوچند دے۔

[10] د جنګ بدر واقعه په دغه وخت کښ په نژدے زمانه کښ تیره شوې وه، ځکه خو هغې نتیجو ته د عبرت اخستلو دپاره د خلقو پام راګرزولے شوے دے. په دے جنګ کښ دیره خبره د ډیرے دَ عبرت دی۔
یوه دا چه مسلمانان او کافران په کوم شان سره دیو بل مقابلے له راغلي وو، د هغے نه دَ دواړو اخلاق فرق ښکاره معلومیږي. یو طرفته دکافرانو په لښکر کښ دشرابو ورچیدو، دګډا او دسندرو دپاره ورسره ښځے راغلے وے بنه عیش وعشرت وُو. بل طرفته دَ مسلمانانو په لښکر کښ پرهیزګاري، دَ خدائے نه ویره، ښکلي اخلاق، مرغونه او روژه وے، او په خبره خبره باندې دَ خدائے نوم اخستل وُو. او دَ خدائے نه به دعاګانے غوښتلے کیدے۔ په دواړو لښکرو کښ هرسړي په آسانه معلومَولے شوه چه دالله په لاره کښ پکښ څوک جنګ کوي۔

بله دا چه د مسلمانانو تعداد کم وُو، وسله او سامان ورسره لږ وُو خو سره ددے هغوئ دَ کافرانو دَ ګنړ تعداد او دوسله بند فوج په مقابله کښ کامیاب شو۔ ددے نه دا صفا معلومه شوه چه دَ هغوئ سره دالله تائید او امداد وُو۔

دریمه دا چه کوم خلق دالله دَ لوئي طاقت نه غافله وُو او په خپله وسله سامان او د ملګرو په ګنړ تعداد باندې غره وُو، دا واقعه د هغوئ دپاره ددے خبرے یو سخت خبردارے وُو چه الله دَ یو څو خوارانو او غریبو او بے وطنه مهاجرو او دَ مدینے دَ کروندګرو په ذریعه د عربو د سرتیپیو تمبیپیو څرنګه شکست ورکولے شي۔

وَالْاَنْعَامِ وَالْحَرْثِ ؕ ذٰلِكَ مَتَاعُ الْحَیٰوةِ الدُّنْیَا ۚ وَاللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الْمَاٰبِ ﴿۱۴﴾ قُلْ اَؤُنَبِّئُكُمْ بِخَیْرٍ مِّنْ ذٰلِكُمْ ؕ لِلَّذِیْنَ اتَّقَوْا عِنْدَ رَبِّهِمْ جَنّٰتٌ تَجْرِیْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِیْنَ فِیْهَا وَاَزْوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ وَّرِضْوَانٌ مِّنَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ بَصِیْرٌۢ بِالْعِبَادِ ﴿۱۵﴾ اَلَّذِیْنَ یَقُوْلُوْنَ رَبَّنَاۤ اِنَّنَاۤ اٰمَنَّا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿۱۶﴾ اَلصّٰبِرِیْنَ

ښاروی او د فصل زمکے ـــ ډیر ښائسته جوړکړے شوی دی، خو دا ټول د دنیا د یو څو ورځو د ژوند سامان دے. په حقیقت کښ چه کوم ښه مقام دے، هغه د الله سره دے. ورته ووایه چه آیا زه درته ووښایم چه دد ے نه زیات ښه څیز څه دے؟ کوم خلق چه د تقوٰی لار اختیار کړه، د هغوئ د پاره د خپل رب سره باغونه دی، چه لاندے ئے ویالے بهیږی، هلته به هغوئ تر همیشه ژوند حاصل وی، پاکیزه ښځے به د هغوئ ملګرے[۱۱] وی او د الله رضا به ورته حاصله وی. الله د خپل بندګانو په هر حرکت باندے ژور نظر لری.[۱۲] دا هغه خلق دی چه وائی چه "اے زمونږه ربه! مونږه ایمان راوړو، زمونږه خطاګانے معاف کړه او مونږه د دوزخ د اور نه بچ کړه." دا خلق صبرکونکی دی،[۱۳]

[۱۱] د تشریح د پاره اوګوره سورة بقره حاشیه ۲۷

[۱۲] یعنی الله غلط بخشش نه کوی او نه سرسری فیصلے کوی. هغه د بندګانو عملونه، نیتونه او ارادے ښه پیژنی. هغه ته ښه معلومه ده چه په بندګانو کښ څوک د هغه د انعام حقدار دی او څوک نه دی.

[۱۳] یعنی په حق لار کښ پوره کلک دی، په څه نقصان مونده لو یا په څه مصیبت رسید لو همت نه بائیلی، د څه ناکامیابئ سره ئے زړه نه ماتیږی، په لالچ کښ نه راځی، او په داسے حالت کښ ئے هم د حق لمن مضبوطه نیولے وی کله چه په ظاهره د حق د کامیابئ امکان نه وی. (اوګوره سورة بقرة، حاشیه ۶۰)

وَالصّٰبِرِیْنَ وَالصّٰدِقِیْنَ وَالْقٰنِتِیْنَ وَالْمُنْفِقِیْنَ وَالْمُسْتَغْفِرِیْنَ بِالْاَسْحَارِ ﴿۱۷﴾ شَهِدَ اللّٰهُ اَنَّهٗ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۙ وَالْمَلٰٓئِكَةُ وَاُولُوا الْعِلْمِ قَآئِمًۢا بِالْقِسْطِ ؕ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ الْعَزِیْزُ الْحَكِیْمُ ﴿۱۸﴾ اِنَّ الدِّیْنَ عِنْدَ اللّٰهِ الْاِسْلَامُ ۟ وَمَا اخْتَلَفَ الَّذِیْنَ

ربښتني دي، فرمانبردار او سخیان دي او د شپې په آخري وختونو کښې د الله نه د بښنې دعا کانې غواړي.

خدائے پخپله ګواهي کوي چه د هغه نه بغیر بل خدائے نشته[14] او (دا ګواهي) فرښتو او ټولو عالمانو هم کړي ده.[15] هغه په انصاف قائم دے. واقعي د هغه زبردست حکیم نه سوا بل خدائے نشته. د الله په نز دین صرف اسلام[16] دے. د دے دین نه علاوه چه کومے مختلفے طریقے هغه خلقو اختیار کړے چاله چه کتاب

[14] یعني الله پاک چه د کائناتو د ټولو حقیقتونو علم لري، چه ټول څیزونه ورته ښکاره دي، چه د هغه نه په زمکه او په آسمان کښې هیڅ څیز پټ نشته، دا د هغه ګواهي ده ـــــ او د هغه نه زیاته معتبره ستر ګو لیدلي ګواهي د بل چا وي ـــــ چه په ټول جهان کښې هغه د خپل ذات نه بغیر بله داسے هستي نشته چه په هغه کښې د خدائي صفت موجود وي، چه هغه د خدائي اختیار مالک وي او چه هغه د خدائي د حقونو حقدار وي۔

[15] د الله نه روستو د ټولو نه زیاته معتبره ګواهي د فرښتو ده، ځکه چه هغوي د ټول جهان د بادشاهي انتظام چلونکي اهلکاران، او هغوي د خپل ذاتي علم په وجه دا ګواهي ورکوي چه په دے بادشاهي کښې د الله نه بغیره بل چا حکم نه چلیږي، او د هغه نه بغیر بله داسے هستي نشته چه هغه ته د فرښتو په انتظامي کارونو کښې ورځي۔ د فرښتو نه روستو چه کوم خلقو ته د حقیقت په باره کښې څه لږ ډیر علم حاصل شوے دے، هغوي ټول د اول شروع نه د ن پورے په اتفاق سره دا ګواهي ورکوي چه صرف الله دے د ټول جهان مالک او چلونکے دے۔

[16] یعني د الله په نز د انسان د پاره د ژوند صرف یو نظام او یوه طریقه صحیح او درسته ده، او هغه دا ده چه انسان الله پاک خپل مالک او د عبادت لائق ومني او د هغه بندګي او غلامي ته خپل ځان ټول حواله کړي، او د هغه د بندګي کولو طریقه ځان له پخپله نه جوړه وي، بلکه هغه چه خپلو پیغمبرانو په ذریعه کوم هدایت رالیږلے دے صرف هغه بغیر د څه کمي زیاتي قبول کړي۔ د دے قسم فکر و عمل نوم "اسلام" دے او دا خبره سراسر حقه ده چه د کائناتو خالق او مالک د خپل مخلوق او رعیت د پاره د دے اسلام نه بغیر د ژوند بله یوه طریقه هم قبوله نه کړي۔ سړے په خپله بے وقوفیا سره ځان له دهریت، شرک یا بت پرستي خوښوله شي، خو د کائناتو د بادشاه په نظر کښې بالکل سرکشي او بغاوت دے۔

أُوتُوا الْكِتٰبَ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْعِلْمُ بَغْيًاۢ بَيْنَهُمْ ۗ وَمَنْ يَّكْفُرْ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ فَاِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴿۱۹﴾ فَاِنْ حَآجُّوْكَ فَقُلْ اَسْلَمْتُ وَجْهِيَ لِلّٰهِ وَمَنِ اتَّبَعَنِ ۗ وَقُلْ لِّلَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ وَالْاُمِّيّٖنَ ءَاَسْلَمْتُمْ ۚ فَاِنْ اَسْلَمُوْا

ورکړے شوے وُو، د هغوئ دے مختلفو طریقو اختیار ولو وجه دا وه نه بغیر له هیڅ نه ده چه هغوئ د علم راتلو نه روستو په خپلو کښ په یو بل باندې زیاتے کول غوښتل[17] او څوک چه د الله د حکمونو او هدایاتو منلو نه انکار وکړی، نو د هغه نه په حساب اخستلو کښ د الله څه وخت نه لږی. اوس که چرے تاسره دا خلق جګړه کوی نو ته ورته ووایه چه " ما او زما پیروکارانو خو د الله حکم ته غاړه کیښودلے ده؛ او بیا د اهل کتابو او د غیر اهل کتابو میانو نه تپوس وکړه چه "آیا تاسو هم د هغهٔ حکمونو ته غاړه ایښودلے ده؟[18]" نو که غاړه ئے کیښوده له

[17] مطلب دا دے چه د دنیا په هر ملک کښ او په هره زمانه کښ چه کوم پیغمبر د الله د طرفه راغلے دے، د هغهٔ دین اسلام وُو، او د دُنیا په هره ژبه کښ هر قوم ته چه کوم کتاب نازل شوے دے هغهٔ د اسلام تعلیم ورکړے دے. په دے اصل دین کښ چه د کمی زیاتی راوستلو په وجه کوم مختلف مذهبونه په انسانانو کښ شروع شول، د دے وجه دا نه بغیر له هیڅ نه ده چه خلقو د خپل جائز حد نه زیات حقونه او ناپیسه ژغونتله او د خپل خواهشاتو مطابق ئے د اصل دین عقیدے، اُصول او حکمونه بدل کړل.

[18] یا داسے وُګڼه چه " ما او زما ملګرو خو هغه خالص اسلام قبول کړے دے کوم چه د خدا اصل دین دے. اوس تاسو ووایئ چه آیا تاسو هغه زیاتے خبرے پرېږدئ کومے چه ستاسو مشرانو د دین سره شاملے کړے دی، او دے اصل او حقیقی دین طرف ته راځئ او که نه؟

فَقَدِ اهْتَدَوْا ۚ وَاِنْ تَوَلَّوْا فَاِنَّمَا عَلَيْكَ الْبَلٰغُ ؕ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِالْعِبَادِ ﴿۲۰﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ يَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَيَقْتُلُوْنَ النَّبِيّٖنَ بِغَيْرِ حَقٍّ ۙ وَّيَقْتُلُوْنَ الَّذِيْنَ يَاْمُرُوْنَ بِالْقِسْطِ مِنَ النَّاسِ ۙ فَبَشِّرْهُمْ بِعَذَابٍ اَلِيْمٍ ﴿۲۱﴾ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ فِى الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۫ وَمَا لَهُمْ مِّنْ نّٰصِرِيْنَ ﴿۲۲﴾ اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ اُوْتُوْا نَصِيْبًا مِّنَ الْكِتٰبِ

نو سمه لاره ئې بیا موندله، او که ددې نه ئې مخ واړه وو نو په تا باندې خو صرف د پیغام د رسولو ذمه واری ده. وړاندې الله پخپله د خپلو بندګانو معاملات وینې کوری. ع

کوم خلق چه د الله د حکمونو منلو نه انکار کوی، او د هغه پیغمبران بر ناحقه وژنی، او هغه خلق وژنی کوم چه د خدائے په مخلوق کښې د عدل وانصاف د حکم کولو د پاره راپاسی، نو د ښې خلقو ته د درد ناکې سزا زیرے واوره وه. [19] دا هغه خلق دی چه په دنیا او په آخرت دواړو کښې ئې عملونه عبث لاړل [20] او د هغوی مدد کار هیڅوک نشته [21]

تا نه دے لیدلے چه کومو خلقو ته د کتاب د علم نه څه حصه ملاؤ ده، د هغوی حال څه دے؟

[19] دا هسے د تېرقو په طور یوه خبره ده. مطلب دا دے چه هغوی نن په کومو کارونو باندې خوشحالیږی او وائی چه مرېږه دېر ښه کار کوو، هغوی ته ووایه چه ستا د دے کارونو انجام دا دے.

[20] یعنی هغوی خپل ټول طاقتونه او کوششونه په داسے لار کښې لګولی دی چه نتیجه ئې په دنیا کښې هم خرابه ده او په آخرت کښې هم.

[21] یعنی هیڅ یو طاقت داسے نشته چه د هغوی دا غلط عملونه د فائدے قابل کړی یا کم از کم دومره شی چه دوئی د بد انجام نه خلاص کړی. په کومو کومو طاقتونو چه دوئی دا اعتبار لری چه هغه به په دنیا یا په آخرت یا په دواړو ځایونو کښې د دوئی په کار راشی، په حقیقت کښې به د هغو نه هیڅ یو طاقت هم د دوئی په امداد را نشی.

يُدْعَوْنَ إِلَىٰ كِتَابِ اللَّهِ لِيَحْكُمَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ يَتَوَلَّىٰ فَرِيقٌ مِّنْهُمْ وَهُم مُّعْرِضُونَ ﴿٢٣﴾ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا لَن تَمَسَّنَا النَّارُ إِلَّا أَيَّامًا مَّعْدُودَاتٍ ۖ وَغَرَّهُمْ فِي دِينِهِم مَّا كَانُوا يَفْتَرُونَ ﴿٢٤﴾ فَكَيْفَ إِذَا جَمَعْنَاهُمْ لِيَوْمٍ لَّا رَيْبَ فِيهِ وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَهُمْ لَا يُظْلَمُونَ ﴿٢٥﴾

هغوئ خو چه کله د الله کتاب ته ددے د پاره راوبللے شي چه هغه د دوئ په مینځ کښې فیصله[22] وکړي، نو په هغوئ کښې یوه ډله د هغې نه ځنګ کوي او فیصلے ته د راتلو نه مخ اړه وي. دوئ دا سے کار ځکه کوي چه دوئ وائي "د دوزخ اور خو به په مونږ پورے لګي هم نه او که چرے د دوزخ سزا مونږ ته ملاؤ هم شي نو بس یو څو ورځے به وي"[23] هغوئ چه کومے غلطے عقیدے ځان له جوړے کړي دي د غے عقیدو هغوئ د خپل دین په معامله کښې په لویه دوکه کښې اچولی دی. خو څه حال به وي په هغوئ باندے کله چه هغوئ مونږ په هغه ورځ راجمع کړو چه د هغے راتلل یقیني دي؟ په هغه ورځ به هر سړي ته د هغه د ګټے بدله پوره پوره ورکړے شي او په هیچا به ظلم نه کیږي.

[22] یعنی هغوئ ته وائي چه د خدائے کتاب آخري سند ومنئ، د هغه فیصلے قبول کړئ، په هغه کښې چه څه حق دي هغه حق ومنئ، او چه څه باطل دي هغه باطل ومنئ. یاد لرئ چه په دے ځائے کښې د الله د کتاب نه مراد تورات او انجیل دے، او د "کتاب د علم نه څه حصه موندونکو" نه مطلب د یهود او د عیسایانو عالمان دي.

[23] یعنی دا خلق خپل ځان د خدائے نیازبین ګڼړي. دوئ په دے دوکه کښې پراته دي چه کم مونږه هر څه کوو خو جنت زمونږه دے. مونږه ایمان والا یو، مونږه د فلاني اولاد، او د فلاني امتیان، او د فلاني مریدان یو، د دوزخ څه مجال دے چه مونږه وسېزي. او فرض کړه که دوزخ ته واچولے هم شو نو بس هلته به یو څو ورځے یو د پاره د دے چه د ګناهونو نه صفا شو نو بیا به سیده جنت ته ځو. د دے قسم خیالاتو هغوئ دومره زړه ور کړي دي، چه سخت سخت جرمونه کوي، د بدو نه بد ګناهونه کوي، ښه په ښکاره د حق نه خلاف کوي او په زړه کښې د خدائے نه لږ ډیره هم نه راځي.

قُلِ اللّٰهُمَّ مٰلِكَ الْمُلْكِ تُؤْتِي الْمُلْكَ مَنْ تَشَآءُ وَتَنْزِعُ الْمُلْكَ مِمَّنْ تَشَآءُ ۡ وَتُعِزُّ مَنْ تَشَآءُ وَتُذِلُّ مَنْ تَشَآءُ ۭ بِيَدِكَ الْخَيْرُ ۭ اِنَّكَ عَلٰي كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۲۶﴾ تُوْلِجُ الَّيْلَ فِي النَّهَارِ وَتُوْلِجُ النَّهَارَ فِي الَّيْلِ ۡ وَتُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَتُخْرِجُ الْمَيِّتَ مِنَ الْحَيِّ ۡ وَتَرْزُقُ مَنْ تَشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿۲۷﴾ لَا يَتَّخِذِ الْمُؤْمِنُوْنَ الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ

وُوایه چه اے خدایه! دَ بادشاهئ ملکه، ته چه چاله وُغواړے نو حکومت ورکوے، او دَ چا نه چه وُغواړے حکومت اخلے۔ چاله چه وُ غواړے نو عزت ورکوے او چه څوک ذلیله کول غواړے نو ذلیله ئے کړے۔ ټول خیر ستا په اختیار کښ دے۔ بیشکه ته په هر څیز باندې قادر ئے۔ شپه په ورځ کښ ننباسے او ورځ په شپه کښ۔ د ساه والا څیز نه د بے ساه څیز را وُباسے او دَ بے ساه څیز نه ساه والا څیز۔ او چاله چه وُ غواړے نو بے حسابه رزق ورکوے۔[۲۴]

مؤمنان دِ هرګز د ایمان والو نه بغیر کافران څان له ملګری او دوستان نهٔ جوړه وی۔

[۲۴] انسان چه کله یو طرفته د کافرانو او د نافرمانو خلقو عملونو ته ګوری او بیا په دُنیا کښ د هغوی خوشحالئ ته ګوری، او بل طرفته د ایمان والو فرمانبردارئ او طاعت ته ګوری او بیا د هغوی فقیرئ لوږے تندے او دردونو مصیبتونو ته ګوری، لکه چه نبی صلی الله علیه وسلم او د هغه ملګری صحابهٔ کرام په دغه څیری کښ او د دے نه پس خواؤشا زمانه کښ په دے تکلیفونو کښ مبتلا وُو، نو تدرتی خبره ده چه د هغه په زړهٔ کښ یو عجیبه او افسوسناک فکر را پورته کیږی۔ الله تعالیٰ د لته د دے فکر جواب ورکړے دے او په داسے ښکلی انداز کښ ئے ورکړے دے چه د هغے نه زیات ښکلی انداز تصوّر نشی کیدے۔

وَمَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ فَلَيْسَ مِنَ اللّٰهِ فِيْ شَيْءٍ اِلَّآ اَنْ تَتَّقُوْا مِنْهُمْ تُقٰىةً ۭ وَيُحَذِّرُكُمُ اللّٰهُ نَفْسَهٗ ۭ وَاِلَى اللّٰهِ الْمَصِيْرُ ﴿٢٨﴾ قُلْ اِنْ تُخْفُوْا مَا فِيْ صُدُوْرِكُمْ اَوْ تُبْدُوْهُ يَعْلَمْهُ اللّٰهُ ۭ وَيَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۭ وَاللّٰهُ عَلٰي كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿٢٩﴾ يَوْمَ تَجِدُ كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ مِنْ خَيْرٍ

څوک چې داسې کوي نو د هغه د الله سره هیڅ تعلق نشته. هو که تاسو د هغوئ د ظلم نه د بچ کیدلو د پاره په ظاهره داسې کار وکړئ نو بیا خیر دے[25]. خو الله تاسو د خپل ځان نه یروي او تاسو هم هغه نه واپس تلل دي.[26] اے نبی! دا خلق خبردار کړه چې ستاسو په زړونو کښې څه دي، هغه که تاسو پټ وئ او که ظاهر وئ، بهرحال هغه الله ته معلوم دي، د زمکې او د آسمان هیڅ شیز د هغه د علم نه بهر نه دے او د هغه اقتدار په هر شیز باندې خور دے. هغه ورځ راتلونکې ده چې هر نفس به د خپلو عملونو میوه

---

[25] یعنی که چرې یو مؤمن د اسلام د دشمنانو په ولقه کښې ګیر شوے وي او هغه د هغوئ د ظلم نه یریږي، نو هغه ته اجازت دے چې خپل ایمان پټ ساتي او د کافرانو سره په ظاهره داسې ګوزاره کوي لکه چې دے د هغوئ خپل سړے وي. یا که چرې د هغه اسلام ظاهر شوے وي نو هغه د خپل ځان د بچ کولو د پاره د کافرانو سره دوستانه تعلقات قائمولے شي، تر دې پورې که ډیر سخت حالت وي او په سړي کښې د برداشت طاقت نه وي، نو د کفر د کلمې ویلو اجازت ورته هم شته.

[26] یعنی د انسانانو د طرفه د دومره یرې په تا نه راځي چې د خدائے یره د زړه نه ووځي. انسان که ډیر څه وکړي خو دنیا به د خرابه کړي، خو خدائے تا له همیشه عذاب درکولے شي. په دغه وجه که چرې د یو په مجبورۍ سره د کافرانو نه د ځان بچ کولو د پاره ضرورت راشي، نو بس دومره پکار ده چې ته صرف د خپل ځان او د مال حفاظت وکړې خو چې د اسلام په کار کښې او د اسلامي جماعت په فائده کښې څه نقصان رانشي او د بل ګورمسلمان جان و مال ته نقصان ونه رسي. خو خبردار شه چې د کفر یا د کافرانو د پاره د داسې خدمت د لاسونو نه ونشي، چې د هغه په وجه د اسلام په مقابله کښې کفر ته فائده وي یا په مسلمانانو د کافرانو غالب کیدو خطره وي. ښه پوهه شه چې که چرې د خپل ځان د بچ کولو د پاره تا د الله دین ته، یا د مؤمنانو جماعت ته یا یو رور مؤمن ته نقصان ورسولو، یا د خدائے د باغیانو د حقیقي خدمت وکړو نو د خدائے د حساب نه به هیچرې بچ نشې. بهرحال کښې هم هغه ته ورتلل دي.

مُّحْضَرًا ۚۛ وَمَا عَمِلَتْ مِن سُوٓءٍ ۚۛ تَوَدُّ لَوْ أَنَّ بَيْنَهَا وَبَيْنَهُۥٓ أَمَدًۢا بَعِيدًا ۗ وَيُحَذِّرُكُمُ ٱللَّهُ نَفْسَهُۥ ۗ وَٱللَّهُ رَءُوفٌۢ بِٱلْعِبَادِ ﴿۳۰﴾



قُلْ إِن كُنتُمْ تُحِبُّونَ ٱللَّهَ فَٱتَّبِعُونِى يُحْبِبْكُمُ ٱللَّهُ وَيَغْفِرْ لَكُمْ ذُنُوبَكُمْ ۗ وَٱللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿۳۱﴾ قُلْ أَطِيعُوا۟ ٱللَّهَ وَٱلرَّسُولَ ۖ فَإِن تَوَلَّوْا۟ فَإِنَّ ٱللَّهَ لَا يُحِبُّ ٱلْكَٰفِرِينَ ﴿۳۲﴾

حاضره بیا موی که ښه یې کړې وی او که بد. په هغه ورځ به سړے دا آرزو وکړی چه افسوس دا
ورځ زمانه ډیره لرې وے، الله تاسو د خپل ځان نه یره وی او هغه د خپلو بندګانو ډیر خیرخواه دے[۲۷] ع
اے نبی، خلقو ته ووایه چه "که چرے تاسو په حقیقت کښې د الله سره مینه لرئ" نو په ما پسے
راروان شئ، الله به ستاسو سره مینه وکړی او ستاسو ګناهونه به وبخښی. هغه ډیر معافی کونکے
او رحم والا دے". هغوی ته ووایه چه "د الله او د رسول حکم ومنئ" نو که هغوی
ستا دا بیا قبوله نه کړه، نو یقیناً دا ممکنه نه ده چه الله دا سے خلقو سره مینه وکړی
چه هغوی د الله او د رسول د اطاعت نه انکار کوی[۲۸]

[۲۷] یعنی دا هغه ډیره خیرخواهی ده چه تاسو ته د وخت نه مخکښې د هغه عملونو نه ښائی چه هغه ستاسو انجام د
خرابیدو سبب جوړیدے شی.

[۲۸] دلته اول تقریر ختمیږی. د دے په مضمون کښې چه جنګ بدر ته کومه اشاره شوے ده د دے په
وجه، او د ټول مضمون په طرز انداز بیان د غور کولو نه دا غالب قیاس دے چه دا تقریر د جنګ بدر نه روستو او د
جنګ اُحد نه مخکښې نازل شوے دے. یعنی په دریمه هجری کښې. د محمد بن اسحاق د روایت په وجه
عام طور خلق په دے دوکه شوی دی چه د دے سورت اولنی اتیا[۸۰] آیتونه د نجران د وفد د راتلو په
موقع په نهمه هجری کښې نازل شوی وو. لیکن اول خو د اولنی تقریر نه دا معلومیږی چه دا تقریر
بدر ته نه ډیر مخکښې نازل شوے دے، او بل د مقاتل بن سلیمان د روایت نه دا صفا معلومیږی چه
د نجران د وفد د راتلو په موقع صرف هغه آیتونه نازل شوی دی په کوم کښې چه د حضرت یحیی او د حضرت
عیسی علیهما السلام بیان دے، او په شمیر دیرش یا لږ زیات آیتونه دی.

إِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰۤى اٰدَمَ وَ نُوْحًا وَّ اٰلَ اِبْرٰهِيْمَ وَ اٰلَ عِمْرٰنَ عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿۳۳﴾ ذُرِّيَّةًۢ بَعْضُهَا مِنْۢ بَعْضٍ ۗ وَ اللّٰهُ سَمِيْعٌ عَلِيْمٌ ﴿۳۴﴾ اِذْ قَالَتِ امْرَاَتُ عِمْرٰنَ رَبِّ اِنِّىْ نَذَرْتُ لَكَ مَا

الله[29] آدم او نوح او آل ابراهیم او آل عمران[30] د دنیا په نورو خلقو باندې (د خپل رسالت د پاره) خوښ کړي وو. دا د یو بل سلسلې خلق وو، چې د یو بل د نسل نه پیدا شوي وو. الله هر څه اوري او په هر څه عالم دے.[31] (هغه په هغه وخت کښې اوریدل) کله چې د عمران[32] ښځې دا وینا کوله چې "اے زما ربه! کوم بچے چې زما په خېټه کښې دے زه هغه تا ته نذر کوم

[29] دلته د دویم تقریر شروع کیږي. دا په نهمه هجرۍ کښې نازل شوے دے کله چې د نجران عیسائي وفد نبي صلی الله علیه وسلم له راغلے وو. د نجران علاقه د حجاز او د یمن په مینځ کښې ده. په هغه وخت کښې په دغه علاقه کښې درے اویا کلي وو او ویلے کیږي چې یو لاکه شل زره د جنګ ځوانان د دغو کلونه د جنګ د پاره تلے شو. ټول خلق پکښې عیسایان وو او د دریو سردارانو د حکم لاندې وو. یو ته به ئے عاقب ویلو، چې د قوم امیر به وو. بل ته به ئے سید ویلو چې د هغوئ د کور نو او ولسي کارونو نګراني به ئے کوله او دریم اُسْقُف (بشپ) وو چې مذهبي مشر به وو. کله چې نبي صلی الله علیه وسلم مکه فتح کړه او د ټول عرب دا یقین راغے چې اوس د ټول وطن د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم په لاس کښې دے، نو د عربو مختلف طرفونو نه هغوئ له د ولے ولے وفدونه راتلل شروع شو. په دے سلسله کښې د نجران درے سرداران هم د شپیتو کسانو د یو وفد سره مدینے ته راورسیدل. جنګ ته خو په هیڅ حال کښې هغوئ تیار نه وو. خو د دے خبره دا وه چې هغوئ اسلام قبلوي او که د ذمي په حیثیت ژوند تیرول غواړي. په دے موقع الله تعالیٰ په نبي صلی الله علیه وسلم باندې دا خطبه نازله کړه چې د نجران دغه وفد ته د اسلام دعوت ورکړي.

[30] عمران د حضرت موسیٰ او د هارون د پلار نوم وو، چې په بائیبل کښې ئے "عمرام" لیکلے دے.

[31] د عیسایانو د ګمراهئ لوئ سبب دا دے چې هغوئ مسیح د الله بنده او رسول نه مني، بلکه هغه ته د الله ځویه وائي او د الله سره ئے په خدائئ کښې شریکوي. که چرے د هغوئ دا بنیادي غلطي ختمه شي نو صحیح او خالص اسلام ته به د هغوئ واپسے راتلل ډیر آسان شي. په دغه وجه د دے خطبے شروع داسے شوې ده چې آدم او نوح او د آل ابراهیم او د آل عمران ټول پیغمبران انسانان وو، د یو د نسل نه بل پیدا شوے وو، په هغوئ کښې یو هم خدائے نه وو، دومره ده چې خدائے پاک د خپل دین د تبلیغ او د دنیا د اصلاح د پاره غوره کړي وو.

فِيْ بَطْنِيْ مُحَرَّرًا فَتَقَبَّلْ مِنِّيْ ۚ اِنَّكَ اَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۳۵﴾ فَلَمَّا وَضَعَتْهَا قَالَتْ رَبِّ اِنِّيْ وَضَعْتُهَآ اُنْثٰى ؕ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا وَضَعَتْ ؕ وَلَيْسَ الذَّكَرُ كَالْاُنْثٰى ۚ وَاِنِّيْ سَمَّيْتُهَا مَرْيَمَ وَاِنِّيْٓ اُعِيْذُهَا بِكَ وَذُرِّيَّتَهَا مِنَ الشَّيْطٰنِ الرَّجِيْمِ ﴿۳۶﴾ فَتَقَبَّلَهَا رَبُّهَا بِقَبُوْلٍ حَسَنٍ وَّاَنْۢبَتَهَا نَبَاتًا حَسَنًا ۙ وَّكَفَّلَهَا زَكَرِيَّا ۚ

هغه به ستا د کار د پاره وقف وي. زما دا نذرانه قبوله کړه. ته اوریدونکے او په هر شه پوهه یې.[۳۳] بیا چه کله د هغې جینۍ پیدا شوه نو دے وویل چه" زما ربه! دا خو ما جینۍ وشوه ــــ حالانکه چه د هغې څه شوي وو هغه الله ته ښه معلوم وو ــــ او هلک د جینۍ پشان نه وي.[۳۴] خیر، ما دے نوم مریم کیښودو او زه دا جینۍ او دده اولاد د رټلی شوي شیطان د فتنے نه ستا په پناه کښې ورکوم." آخر دا چه د هغې رب دغه جینۍ په خوشحالۍ قبوله کړه او ډیره ښه یې لویه کړه. او زکریا یې د هغې سرپرست کړو.

[۳۲] که د عمران د ښځے نه مراد" د عمران د نکاح ښځه " واخستلے شي نو معنیٰ به ئے دا شي چه دده نه مراد هغه عمران نه دے د کوم چه دا ئبره ذکر شوے دے، بلکه دا د حضرت مریم پلار وو چه شاید نوم ئے عمران وُو. (په مسیحي روایاتو کښې د حضرت مریم د پلار نوم یو آخیم (Ioachim). لیکلے دے) او که د عمران د ښځے نه مراد دا ال عمران ښځه واخستلے شي نو معنیٰ به ئے دا شي چه د حضرت مریم مور د دغه قبیلے سره تعلق لرلو. لیکن زمونږ سره د معلوماتو داسے ذریعه نشته چه په دواړو معنو کښې یوے معنیٰ له قطعي ترجیح ورکړو ځکه چه په تاریخ کښې دے څه ذکر نشته چه د حضرت مریم پلار څوک وُو او مور ئے د کومے قبیلے وه. البته که چرے دا روایت صحیح ومنلے شي چه د حضرت یحیيٰ مور او د حضرت مریم مور په خپلو کښې خویندے وے نو بیا د" عمران د ښځے "معنیٰ به د عمران د قبیلے ښځه نیک وي، ځکه چه په انجیل لوقا کښې ئے دا صفا لیکلي دي چه د حضرت یحیيٰ مور د حضرت هارون دا ولاد نه وه. (لوقا ۱: ۵).

[۳۳] یعني ته د خپلو بندګانو دعا ګانے اورے او د هغوئ د نیتونو په حال خبر یې.

[۳۴] یعني هلک د داسے ډیرو قدرتي کمزورو او اُولسي پابندو نه آزاد وي کومے کمزورئ او پابندئ چه په جینۍ باندے وي. نو که هلک وے نو هغه مقصد به ښه پوره شوے وُو د کوم مقصد د پاره چه ما خپل بچے ستا په لار کښې نذر کول غوښتل.

كُلَّمَا دَخَلَ عَلَيْهَا زَكَرِيَّا الْمِحْرَابَ ۙ وَجَدَ عِنْدَهَا رِزْقًا ۚ قَالَ يٰمَرْيَمُ اَنّٰى لَكِ هٰذَا ۖ قَالَتْ هُوَ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ۖ اِنَّ اللّٰهَ يَرْزُقُ مَنْ يَّشَآءُ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿۳۷﴾ هُنَالِكَ دَعَا زَكَرِيَّا رَبَّهٗ ۚ قَالَ رَبِّ هَبْ لِيْ مِنْ لَّدُنْكَ ذُرِّيَّةً طَيِّبَةً ۚ اِنَّكَ سَمِيْعُ الدُّعَآءِ ﴿۳۸﴾

زکریّا[۳۵] چه به هر کله هغې له محراب[۳۶] ته ورننوتو نو د هغې سره به ئې څه نه څه د خوراک څکاک سامان موندو. پوښتنه به ئې ترې وکړو چه مریم دا تاله د کوم ځائے نه راغی؟ هغې به جواب ورکړو چه دَ الله دَ طرفنه راغلی دے، الله چه چاله وُغواړي نو بے حسابه رزق ورکوی. چه دا حال ئې وُلیدو نو زکریا خپل رب ته آواز وُکړو چه "اے ربه! په خپل قدرت ماله نیک اولاد را کړه. هم ته دُعا اوریدونکے یئې."[۳۷]

[۳۵] اوس دَ هغې وخت ذکر شروع شو چه حضرت مریم پیغله شوه او دَ بیت المقدس عبادتګاه (هیکل) ته داخله کړے شوه او دَ الله په ذکر کښې شپه او ورځ مشغوله شوه. حضرت زکریا، چه دَ حضرت مریم پرورش ئې کولو، غالبًا په رشته کښې دَ حضرت مریم دَ مورۍ خور (تروړ) خاوند وُو او دهیکل منجورو وُو. دا هغه زکریا نبی نه دے دَ کوم دَ قتل ذکر چه دَ بائیبل په پخوانئ عهدنامه کښې راغلے دے.

[۳۶] د لفظ محراب نه دَ خلقو په ذهن کښې عام طور هغه محراب راځی کومې ته چه زمونږ په جماتونو کښې دَ امام دَ ودریدو دپاره وی. لیکن دلته دَ محراب مطلب دغه نه دے. په صوامعو او کنیسو کښې دَ اصل عبادتګاه سره نزدے جوخت د زمکے نه وُچت یو کمره جوړه شوی وی، چه په هغے کښې منجوران، خادمان او اعتکاف کونکی خلق وُسیږی، دغے کمرے ته محراب وائی. دَ دے قسمه کمرو نه به په یو کمره کښې حضرت مریم په اعتکاف کښې وُسیدله.

[۳۷] دَ دغے وخته پورے دَ حضرت زکریا اولاد نهٔ وُو. دغے ځوانے او نیکے جینئ ته چه ئې وُکتل نو قدرتی طور ئې په زړهٔ کښې دا خواهش پیدا شو چه که الله ماله هم داسے نیک اولاد راکړو نو څنګ به ښه وی، او چه دا ئې وُلیدل چه الله ورته په خپل قدرت سره څنګه رزق ورسوی، نو اُمید ئې پیدا شو چه که الله وُغواړی نو په دے بوډاوالی کښې هم اولاد راکولے شی.

فَنَادَتْهُ الْمَلٰٓئِكَةُ وَهُوَ قَآئِمٌ يُّصَلِّيْ فِي الْمِحْرَابِ ۙ اَنَّ اللّٰهَ يُبَشِّرُكَ بِيَحْيٰى مُصَدِّقًۢا بِكَلِمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَسَيِّدًا وَّحَصُوْرًا وَّ نَبِيًّا مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿٣٩﴾ قَالَ رَبِّ اَنّٰى يَكُوْنُ لِيْ غُلٰمٌ وَّ قَدْ بَلَغَنِيَ الْكِبَرُ وَامْرَاَتِيْ عَاقِرٌ ؕ قَالَ كَذٰلِكَ اللّٰهُ يَفْعَلُ مَا يَشَآءُ ﴿٤٠﴾ قَالَ رَبِّ اجْعَلْ لِّيْ اٰيَةً ؕ قَالَ اٰيَتُكَ اَلَّا تُكَلِّمَ النَّاسَ

په جواب کښې ورته فرښتو آواز وکړو، کله وخت چه هغه په محراب کښې ولاړ دُوا وو، موځ ئې کوو چه" الله تاله د يحيٰی[٣٨] خوشخبري درکوي. هغه به د الله د طرفنه د يو فرمان[٣٩] د تصديق کونکي په حيثيت سره راځي. په هغه کښې به د سرداري او د بزرگۍ شان وي، ځپل ځان به په قابو کښې ساتونکے وي. نبي به وي او په نيکانو صالحانو کښې به شمار دي" زکريا ووئيل چه" ربه زما کره به هلک د کوم ځائے نه وشي زه خو ډير بوډا شوے يم او ښځه م شنډه ده" جواب ورته ملاؤ شو" هم دغسې به کيږي، خدائے چه څه غواړي هغه کوي"[٤٠] هغه عرض وکړو چه ربه" بيا زما د پاره څه نښه مقرر کړه"[٤١] ورته يې ووئيل چه" نښه دا ده چه ته به د دريو ورځو پورے خلقو سره د اشارے نه بغير

[٣٨] په بائيبل کښې ددهٔ نوم" يوحنا غسل ورکونکے" (John the Baptist). ليکلے دے. ددهٔ د حالاتو د پاره وګورئ متي باب ٣، ١١، ١٤. مرقس باب ١، ٦. لوقا باب ١، ٣.

[٣٩] د الله د فرمان نه مراد حضرت عيسٰی عليه السلام دے. چونکه ددهٔ پيدائيش د الله په فرمان بانيه د عادت نه خلاف شوے وو نو په دے وجه ورته په قرآن مجيد کښې" كَلِمَةٌ مِّنَ اللّٰهِ " ووئيلے شوي دي.

[٤٠] يعني ستا د بوډا والي او ستا د ښځے د شنډ والي با وجود به الله تاله ځوے درکړي.

[٤١] يعني دا چه نښه را ته وښايه چه کله د ژوند بوډا او د شنډے يو ځاي په کور کښې د هلک د پيدا کيدو خوشحالي راځي نو چه د هغے اطلاع ماته مخکښې وشي.

ثَلٰثَةَ اَيَّامٍ اِلَّا رَمْزًا ؕ وَاذْكُرْ رَّبَّكَ كَثِيْرًا وَّسَبِّحْ بِالْعَشِيِّ وَالْاِبْكَارِ ﴿۴۱﴾ وَاِذْ قَالَتِ الْمَلٰٓئِكَةُ يٰمَرْيَمُ اِنَّ اللّٰهَ اصْطَفٰىكِ وَطَهَّرَكِ وَاصْطَفٰىكِ عَلٰى نِسَآءِ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۴۲﴾ يٰمَرْيَمُ اقْنُتِيْ لِرَبِّكِ وَاسْجُدِيْ وَارْكَعِيْ مَعَ الرّٰكِعِيْنَ ﴿۴۳﴾ ذٰلِكَ مِنْ اَنْۢبَآءِ الْغَيْبِ نُوْحِيْهِ اِلَيْكَ ؕ وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ اِذْ يُلْقُوْنَ اَقْلَامَهُمْ اَيُّهُمْ يَكْفُلُ مَرْيَمَ ۪ وَمَا كُنْتَ لَدَيْهِمْ



نورے خبرے اترے نۂ کوے (یا نۂ شے کولے). په دے دوران کښې خپل رب ډیر یاد وه او سحر او ماښام د هغه تسبیح کوه"[۴۲]

بیا هغه وخت راغے چه مریم له فرښتے راغلے او ورته یې وویل چه "اے مریمے! تۂ خدائے غوره کړے او پاکه یې وساتلے، او د ټولے دنیا په ښځو باندے یې ترجیح درکړه او د خپل خدمت دپاره یې خوښه کړے. اے مریمے، د خپل رب تابع فرمانه اوسه، هغه ته سجدے کوه، او څوک چه خدائے ته ټیټیږي ورسره ته هم ټیټیږه."

اے محمد ﷺ! دا د غیبو خبرونه دي چه موږ یې تا ته د وحي په ذریعه ښایو، کنې نو ته خو په هغه وخت حاضر نۂ وے کله چه د هیکل خادمانو د دے غرض دپاره خپل خپل قلمونه غورزول چه د مریم سرپرست به څوک شي. او نۂ ته په هغه وخت حاضر وے

[۴۲] د دے تقریر اصلي مقصد دا دے چه عیسایانو ته د هغوي د دے خپلے عقیدے غلطي ښکاره کړي چه هغوي مسیح علیه السلام د خدائے ځوئے او د عبادت لائق گڼړلو. په اول کښې یې د حضرت یحیٰی علیه السلام ذکر په دے وجه وکړو چه لکه څنګه د مسیح علیه السلام پیدا ئیښت د معجزے په طور شوے وو دغه شان د دۀ نۀ شپږ میاشتے مخکښې هم په دغه خاندان کښې د حضرت یحیٰی علیه السلام پیدائیښت هم د یوے بلے معجزے په طور شوے وو. د دے مثال نه الله تعالیٰ عیسایانو پوهه کوي چه یحیٰی علیه السلام د معجزے په پیدائیښت سره د عبادت لائق اله نۀ شو نو مسیح علیه السلام صرف د معجزے په پیدائیښت څنګه د عبادت لائق جوړیدے شي.

إِذْ يَخْتَصِمُونَ ﴿٤٤﴾ إِذْ قَالَتِ الْمَلَٰٓئِكَةُ يَٰمَرْيَمُ إِنَّ اللَّهَ يُبَشِّرُكِ بِكَلِمَةٍ مِّنْهُ اسْمُهُ الْمَسِيحُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ وَجِيهًا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَمِنَ الْمُقَرَّبِينَ ﴿٤٥﴾ وَيُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ وَكَهْلًا وَمِنَ الصَّٰلِحِينَ ﴿٤٦﴾ قَالَتْ رَبِّ أَنَّىٰ يَكُونُ لِي وَلَدٌ وَلَمْ يَمْسَسْنِي بَشَرٌ قَالَ كَذَٰلِكِ اللَّهُ يَخْلُقُ

کله چه د هغوی په مینځ کښې جګړه وه.

او کله چه فرښتو ووئیل "الله تاله د خپل فرمان زیرے درکوی. د هغه نوم به مسیح عیسیٰ ابن مریم وی، په دنیا او په آخرت کښې به معزز وی، خدائے ته به په نزدے خلقو کښې شمیر وی، د خلقو سره به په زانګو کښې هم خبرے کوی او په زوروالی کښې هم، او هغه به یو صالح انسان وی." د دے په اوریدو سره حضرت مریم ووئیل "اے پروردګاره! زما به بچے څنګه وشی، ما له خو چا لاس قدلمنه دے راوړے." جواب ورته وشه "چه هم داسے به کیږی[۴۴]، الله چه څه غواړی هغه

۴۳ یعنی غشی یے اچول. د دے غشی ضرورت ځکه پیښ شو چه حضرت مریم مور خپله لوڼ هیکل ته د خدائے د کار د پاره نذر کړی وه. او هغه چونکه جینۍ وه نو مسئله نازکه شوه چه د هیکل په مجاورانو کښې به د دې سرپرستي څوک کوی.

۴۴ یعنی سره د دے چه یو سړی هم تا سره نه دے ملاو شوے خو ستا ځوئے به پیدا کیږی. هم دا لفظ كَذٰلِكَ (داسے به کیږی) حضرت زکریا ته هم وئیلے شوے وو. هلته چه د دے څه مطلب وه دلته ئے هم هغه مطلب پکار دے. هم دغه رنګے دا روستنۍ فقره بلکه دا مخکښې روستو ټول بیان د دے معنی تائید کوی چه حضرت مریم ته د سړی سره د ملاویدو نه بغیر د بچی پیدا کیدو زیرے ورکړے شوے وو او په حقیقت کښې هم په دغه شکل حضرت عیسیٰؑ پیدا شو. او که نه خبره داسے وه چه د حضرت مریم به که د نړۍ د نورو ښځو په شان بچے پیدا کیدو. او یا حضرت عیسیٰ د عامو خلقو په شان پیدا شوے وه، نو بیا خو دا ټول بیان هسے بے فائدے دے کوم چه د څلورم رکوع نه د شپږم رکوع پورے دا روان دے کیږی، او هغه ټول بیانات بے مطلبه کیږی کوم چه د مسیح د پیدائش په باره کښې د قرآن په نورو ځایونو کښې دی. عیسایانو خو حضرت مسیح خپل خدائے او د الله ځوئے په دے وجه ګڼړلو چه د هغه پیدائش د عادت نه خلاف بغیر د پلار د شوے وو. او یهودیانو په حضرت مریم باندې الزام ځکه لګولو چه دا واقعه د ټولو په مخکښې شوے وه چه یوه ناواده کړے جینۍ وه او د هغې ځوئے پیدا شو. که چرے د سړی دا حقیقت

مَا يَشَآءُ ۚ اِذَا قَضٰۤى اَمْرًا فَاِنَّمَا يَقُوْلُ لَهٗ كُنْ فَيَكُوْنُ ﴿۴۷﴾ وَيُعَلِّمُهُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرٰىةَ وَالْاِنْجِيْلَ ﴿۴۸﴾ وَرَسُوْلًا اِلٰى بَنِىْۤ اِسْرَآءِيْلَ ۙ اَنِّىْ قَدْ جِئْتُكُمْ بِاٰيَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ ۙ اَنِّىْۤ اَخْلُقُ لَكُمْ مِّنَ الطِّيْنِ كَهَيْـَٔةِ الطَّيْرِ فَاَنْفُخُ فِيْهِ فَيَكُوْنُ طَيْرًا ۢ بِاِذْنِ اللّٰهِ ۚ وَاُبْرِئُ الْاَكْمَهَ وَالْاَبْرَصَ

پیدا کوی. هغه چه کله د یو کار کولو فیصله وکړي نو بس دومره ورته وائي چه شه او هغه وشي" (فرښتو ورته بیا خپله خبره شروع کړه) "او الله به هغه ته د کتاب او د حکمت تعلیم ورکړي، د تورات او د انجیل علم به ورته وښائي او د بني اسرائیلو پاره به ئې خپل رسول مقرر کړي."

(او کله چه هغه د رسول په حیثیت بني اسرائیلو ته راغې نو وې وئیل) "ما ستاسو د رب د طرف نه تاسو له یوه نښه راوړې ده. زه ستاسو په مخکښې د خټه نه د مرغئ په شان یو شکل جوړوم او پو کې پکښې کوم، نو د هغې نه د خدائې په حکم سره مرغئ جوړیږي. زه د خدائې په حکم مور زادي ړوند او جذامي مریض (چه د لاس ښپو کوټې ئې ریږي) رغوم

نه وو نو بیا د دا ارودلو د پاره بس دومره وینا کافي وه چه تاسو غلط وایئ، هغه جنیئ د ادهٔ شوی وه، فلانی د هغه خاوند وو او د هغه د نطفې نه عیسیٰ پیدا شوې وو. د دې مختصرې او صفا خبرې په ځائې د دې دومره اوږدو اوږدو تاؤ راتاؤ خبرو، او د مسیح بن فلان په ځائې د مسیح بن مریم وئیلو آخر څه ضرورت وو چه خبره پرې حل کیدو په ځائې نوره هم ګرانیږي. بس دې معلومه شوه چه کوم خلق قرآن د الله کلام مني او بیا مسیح علیه السلام په باره کښې د دې ثابتولو کوشش کوي چه د هغه پیدائښت د عامو خلقو په شان د مور او پلار د ملاویدو نه شوې وو، نو حقیقت په اصل کښې د دې خبرې د ثابتولو کوشش کوي چه الله تعالیٰ خپل مراد او مدعا دومره ښه نشي ظاهره ولې شرمره چه دا حضرات د هغه په مطلب پوهیږي. (توبه خدایه توبه معاذ الله)

وَاُحْيِ الْمَوْتٰى بِاِذْنِ اللّٰهِ ۚ وَاُنَبِّئُكُمْ بِمَا تَاْكُلُوْنَ وَمَا تَدَّخِرُوْنَ ۙ فِيْ بُيُوْتِكُمْ ؕ اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيَةً لَّكُمْ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۴۹﴾ وَمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيَّ مِنَ التَّوْرٰىةِ

او مړي ژوندي کوم. زۀ تاسو ته بنايم هغه څۀ چه تاسو يې خورئ او هغه څۀ چه په کورونو کښې ئې ذخيره کوئ په دې کښې ستاسو د پاره ښه کافي نښه ده که تاسو مؤمنان يئ.[۴۵] کومه تعليم او هدايت چه زما په زمانه کښې په تورات کښې موجود دے[۴۶] زۀ د هغې تصديق کونکے يم-

[۴۵] يعني دا ښئے تاسو له دے خبرے د پاره کافي دي چه زۀ د هغه خدائے د طرف نه راليږلے شوے يم چه د کائناتو خالق او کل اختياره حاکم دے. خو په دې شرط چه تاسو حق منلو ته تيار يئ او ضديان نۀ يئ-

[۴۶] يعني دا زما د نبوت د طرف نه د رالو يو بل ثبوت دے. که چرے زۀ د خدائے د طرفه نۀ يم راغلے او دروغ دعوه مې کړے وے نو ما به ځان له خپل يو مستقل مذهب جوړ کړے وے او د دے خپلو کمالاتو په زور به مې تاسو د خپل دين نه اړولے او خپل نوی مذهب ته به مې راوړولے. ليکن زۀ خو هغه اصلي دين منم او هغه تعليم ته صحيح وايم کوم چه د خدائے د طرف نه د هغه پيغمبرانو زمانه کښې راوړے وُو.

او دا خو په موجوده انجيلونو کښې صفا صفا ليکلي شوي دي چه مسيح عليه السلام هغه دين راوړے وُو کوم چه موسٰی عليه السلام او نورو پيغمبرانو پيش کړے وُو. مثلاً د متي د روايت مطابق د غونډۍ په وعظ کښې مسيح عليه السلام فرمائي:

"دا مۀ وايئ چه زۀ د توريت يا د پيغمبرانو د کتابونو منسوخ کولو د پاره راغلے يم. منسوخ کولو د پاره نۀ بلکه د پوره کولو د پاره راغلے يم" ( ۵ : ۱۷ )

يو يهودي عالم د حضرت مسيح نه تپوس وُکړو چه د دين په حکمونو کښې اولنے حکم کوم يو دے؟ په جواب کښې ورته هغه وُفرمايل:

" د خدا وند خپل خدائے سره د خپل ټول زړۀ نه او د خپل ټول روح نه او د خپل ټول عقل نه محبت کوه. لومړے او لوئے حکم دا دے. او دويم پشان يې حکم دا دے چه د خپل ګاونډي سره د خپل ځان برابر محبت کوه. په دے دوو حکمونو باندې د توريت او د انبياؤ د صحيفو مدار دے. (متي ۲۲: ۳۷-۴۰)

بيا حضرت مسيح خپلو شاګردانو ته فرمائي:

" فقيهان او فريسيان د موسٰی په ګدۍ باندې ناست دي. څۀ چه هغوی تاسو ته وائي هغه ټول کوئ او منئ خو د هغوی پشان کارمۀ کوئ ځکه چه هغوی وائي او کوي نۀ. (متي ۲۳: ۲-۳ )

وَلِاُحِلَّ لَكُمْ بَعْضَ الَّذِیْ حُرِّمَ عَلَیْكُمْ وَجِئْتُكُمْ بِاٰیَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ ۫ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَطِیْعُوْنِ ﴿۵۰﴾ اِنَّ اللّٰهَ رَبِّیْ وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوْهُ ؕ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِیْمٌ ﴿۵۱﴾

او د دې دپاره راغلې یم چه ستاسو دپاره ځنې هغه څیزونه حلال کړم کوم چه په تاسو باندې حرام کړې شوي دي.[۴۷] ګورئ ما ستاسو د رب د طرفه تاسو له نښه راوړې ده، نو د الله نه وېرېږئ او چه زهٔ درته وایم هغه کوئ. الله زما رب هم دے او ستاسو رب هم دے نو صرف د هغه بندګي اختیار کړئ، دا نېغه لار ده.[۴۸]

[۴۷] یعني د الله تعالیٰ په اصلي شریعت باندې چه ستاسو د جاهلانو د لاسه کوم وهمونه زیات شوي دي، ستاسو د علمانو د لاسه چه په کومه قانوني تخرېبه پېښه دي، ستاسو د دُنیا پرېښو خلقو د لاسه چه په کومې سختۍ او د غیر قومونو د غلبې په وجه چه په کومې پابندۍ راغلې دي، زهٔ به هغه منسوخ کوم او ستاسو دپاره به هغه څیزونه حلالوم کوم چه الله حلال کړي دي او هغه څیزونه به حراموم کوم چه الله حرام کړي دي.

[۴۸] د دې نه معلومه شوه چه د ټولو پیغمبرانو په شان د حضرت عیسیٰ علیه السلام د دعوت بنیادي نکتې هم دغه درې وې:

یو دا چه اقتدار اعلیٰ به صرف او صرف د الله تعالیٰ منلې شي. او د دې په بنیاد باندې به انسان د بندګۍ ټول اختیاره وي او د خپل اخلاق او د ولسي ټول نظام به په دې باندې قایمېږي.

دویم دا چه د الله تعالیٰ د نایبده په حیثیت به د نبي حکم منلې شي.

درېیم دا چه د انسان دپاره د حلالو او د حرامو، د جایزو او د ناجایزو قانون به صرف د الله قانون وي. په دې باره کښې به د بل چا جاري شوي قانونونه منسوخ کېدې شي.

په حقیقت کښې د حضرت عیسیٰ او د حضرت موسیٰ او د حضرت محمد صلی الله علیهما او د نورو پیغمبرانو په مقصد کښې د یو وېښته هومره فرق نشته. کوم خلق چه د مختلفو پیغمبرانو بېل بېل مقصد منلې دے او د هغوئ په مقصدونو کښې ئې فرق کړے دے نو هغوئ سخته غلطي کړې ده. د حقیقي بادشاه د طرفه چه مخلوق ته څوک د نبي په حیثیت راځي نو هغه د دې نه بغیر بل څه مقصد کېدے نشي چه هغه مخلوق د بادشاه د نافرمانۍ نه او د خود سرۍ نه منع کړي، او د شرک نه ئې منع کړي (یعني چه د هغه سره په بادشاهۍ کښې څوک شریک نهٔ کړي او د بل چا عبادت ونهٔ کړي)، او ټول مخلوق صرف د حقیقي بادشاه بندګۍ ته راوبلي.

افسوس دے چه په موجوده انجیلونو کښې د مسیح علیه السلام مشن او مقصد دومره په وضاحت سره نهٔ دے بیان شوے په څومره وضاحت سره چه په قرآن کښې بیان شوے دے. خو بیا هم په خور ور شکل کښې په هغې کښې هغه درې بنیادي نکتې شته دے کومې چه پورته بیان شوې دي. مثلاً دا خبره چه

مسیح صرف د الله د بندګئ قایل وُو، د هغهٔ دغه ارشاد نه معلومیږی:

"ته خپل خداوند خدائے ته سجده کوه او صرف د هغهٔ عبادت کوه." (متی ۴: ۱۰)

او یواځې د بندګئ قایل نهٔ وُو بلکه د هغهٔ ټول کوشش دغه د پاره وُو چه په زمکه د خدائے د شریعت حکومت جوړ شی لکه څنګه چه په آسمان باندې د هغه امر تکوینی جاری کیږی:

"ستا بادشاهی دې راشی، ستا مرضی چه څنګه په آسمان باندې پوره کیږی دغه شان دې په زمکه هم وی." (متی ۶: ۱۰)

بیا دا خبره د هغه د یو ډیر ټولو نه معلومیږی چه مسیح علیه السلام خپل ځان ته نبی او د آسمانی بادشاهت نمائینده ویلو، او خلقو ته ئے وئیل چه زما اطاعت کوئ. هغه چه کله د خپل وطن ناصره نه خپل کار شروع کړو نو اول ئے خپل خپلوان او د ښار خلق مخالف شو. په دے باره کښ متی، مرقس او لوقا د دریے واړو متفقه روایت دے چه هغه ورته فرمائیل "نبی په خپل وطن کښ مقبول نه وی" او کله چه په یروشلم کښ د هغهٔ د قتل خبرے شروع شوے او خلقو ورله مشوره ورکړه چه چرته بل ځائے لاړشه نو هغهٔ جواب ورکړو "ممکن نه ده چه نبی د یروشلم نه بهر هلاک شی." (لوقا ۱۳: ۳۳) په آخری ځل چه کله هغه یروشلم ته راتلو نو د هغه شاګردانو په زوره آوازه شروع کړه چه "مبارک دے هغه بادشاه چه د خدائے په نوم راځی." په دے باندې یهودی عالمان خفه شو او حضرت مسیح ته ئے ووئیل چه ته دا خپل شاګردان چپ کړه. مسیح ورته وفرمائیل "که دا چپ شو نو کانړی به آواز شروع کړی." (لوقا ۱۹: ۳۸-۴۰) په یوه بله موقع کښ هغه وفرمائیل:

"اے محنت کونکو او د بوج وړونکو خلقو، ټول زما خوا له راشئ، زهٔ به تاسو ته آرام درکړم. زما جغ په خپل ځان کیږدئ .... زما جغ نرم دے او زما بوج سپک دے." (متی ۱۱: ۲۸-۳۰)

بیا دا خبره چه مسیح علیه السلام د انسان د جوړ کړے شوی قانون ځائے باندې د خدائے قانون غوښتلو، د متی او د مرقس د هغے روایت نه صفا معلومیږی چه خلاصه ئے دا ده، چه یهودی عالمانو دا اعتراض وکړو چه ستا شاګردان د مشرانو د رواج نه خلاف په دې چه لاسونه ولے خوری؟ نو حضرت مسیح وفرمائیل چه ستاسو د ریاکار خلقو حالت خو هغه دے چه یسعیاه نبی پرے طعن وئیلے دے چه "دا اُمت خو په ژبه زما عزت کوی خو زړونه ئے زما نه لرے دی ځکه چه وئ د انسانی حکمونو تعلیم ورکوی." تاسو خلق د خدائے حکم خو باطله وئ او د ځان نه جوړ کړے شوے خپل قانون برقرار ساتئ. خدائے په تورات کښ دا حکم کړے وُو چه د مور او پلار عزت کوئ او څوک چه مور او پلار ته بد وائی هغه دې مرکړے شی. خو تاسو وائی چه څوک خپل مور او پلار ته دا ووائی چه زما کوم خدمت ستاسو په کار راتلل هغه ما د خدائے نذر کړی دی، نو د هغه د پاره دا بالکل جائز ده چه بیا د مور یا د پلار خدمت ونه کړی.

(متی ۱۵: ۳-۹. مرقس ۷: ۵-۱۳)

فَلَمَّآ اَحَسَّ عِيْسٰى مِنْهُمُ الْكُفْرَ قَالَ مَنْ اَنْصَارِیْٓ اِلَى اللّٰهِ ؕ قَالَ الْحَوَارِيُّوْنَ نَحْنُ اَنْصَارُ اللّٰهِ ۚ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ ۚ وَاشْهَدْ بِاَنَّا مُسْلِمُوْنَ ﴿۵۲﴾ رَبَّنَآ اٰمَنَّا بِمَآ اَنْزَلْتَ وَاتَّبَعْنَا الرَّسُوْلَ

کله چه عیسیٰ ته معلومه شوه چه بنی اسرائیل کفر او انکار ته مائله دی نو وې ویل چه "څوک د الله په لار کښې زما مددګار کیږي؟" حواریانو[49] جواب ورکړو چه "موږ د الله مددګاریو[50]، موږ په الله ایمان راوړے دے، ته په دې خبره ګواه وسه چه موږ مسلمانان (یعنی د الله حکمونو ته غاړه ایښودونکی) یو. اے ربه کوم فرمان چه تا نازل کړے دے هغه موږ ومنلو او د رسول پیروی مو قبول کړه،

[49] د "حواري" لفظ معنیٰ تقریباً هغه ده کومه چه د "انصار" ده. په بائیبل کښې خو عام طور د حواریانو په ځلئے د "شاګردانو" لفظ استعمال شوے دے. او په ځینو ځایونو کښې ورته رسول هم ویلې شوی دی. خو رسول په دې معنیٰ کښې چه مسیح علیه السّلام به هغوی د تبلیغ د پاره لیږل، په دې معنیٰ کښې نه چه خدائے هغوی رسولان مقرر کړی وُو.

[50] د دینِ اسلام په قائمولو کښې حصے اخستلو ته په قرآن مجید کښې اکثر "د الله مدد کول" ویلے شوی دی. دا یوه تشریح غواړي. په ژوند کښې چه الله تعالیٰ انسان ته د خپلې ارادې او د اختیار استعمالولو کومه آزادي ورکړې ده، په هغه کښې الله تعالیٰ څوک د خپل خدائي په طاقت نه مجبوره کوي چه انسان د کفر یا د ایمان، د منلو یا د نه منلو یوه لاره اختیار کړي. د دې په ځائے الله تعالیٰ انسان په دلیلونو او په نصیحتونو باندې په دې خبره پوهه کوي چه د دې آزادۍ باوجود د انسان د کامیابۍ او د خلاصي لاره دا ده چه هغه د خپل خالق بندګي او اطاعت اختیار کړي. دغه شان د پوهه کولو او د نصیحت منو او د دلیلونو په ذریعه خلق نیغ لارې ته راګرځول په اصل کښې د الله کار دے. او څوک چه په دې کار کښې د الله سره مکرتیا کوي هغه ته الله خپل دوست او مددګار وائي. او دا هغه لوړ مقام دے چه دې ته انسان رسیدے شي. په مونځ، روژه او په هر قسمه عبادت کښې خو انسان صرف بنده او غلام وي. خو د دین په تبلیغ کولو او د دین د قائمولو په کوشش کښې انسان ته د خدائے د مکرتیا او د مددګارۍ شرف حاصلیږي، چه په دُنیا کښې د روحاني ترقۍ د ټولو نه اوچته مرتبه ده.

فَاكْتُبْنَا مَعَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿٥٣﴾ وَمَكَرُوْا وَمَكَرَ اللّٰهُ ۭ وَاللّٰهُ خَيْرُ الْمٰكِرِيْنَ ﴿٥٤﴾ اِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيْسٰٓى اِنِّىْ مُتَوَفِّيْكَ وَ

زمونږ نوم په ګواهۍ ورکوونکو کښې ولیکه."

بیا بنی اسرائیلو (دَ مسیح خلاف) پټ تدبیرونه شروع کړل، په جواب کښې الله هم خپل پټ تدبیر وکړو او په داسې تدبیرونو کښې الله دَ ټولو نه زیات دے.ع (دغه خو دَ الله پټ تدبیر وو کنه) چې کله ئې اُووئیل چې "اے عیسیٰ، اُوس به زهٔ تا واپس[53] اخلم او

[53] په اصل کښې لفظ "مُتَوَفِّيْكَ" استعمال شوے دے. دَ توفّی اصلی معنیٰ اخستل او واپس وصولول دی "روح قبض کول" ددے لفظ مجازی استعمال دے، اصلی لغوی معنیٰ ئې نهٔ ده. دلته دا لفظ دَ انګریزی دَ لفظ (To Recall) په معنیٰ کښې استعمال شوے دے، یعنی یو عهدے والا دَ خپل منصب نه واپس راغوښتل.

چونکه بنی اسرائیلو دَ کلونو راسې نافرمانی کوله، دَ بار بار خبردارئ او نصیحتونو کولو باوجود دَ هغوئ ټول قوم بنه خرابیدو، پرله پسے ئې ډیر پیغمبران قتل کړی وو، او هر هغه نیک بنده به ئې ژوندے نهٔ وو خوښ چې دوئ ته به ئې دَ نیکئ لار ښودله، دغه وجه وه چې الله تعالیٰ په هغوئ باندې دَ حجت تمامولو او دَ یو آخری موقعے ورکولو دپاره دوه پیغمبران حضرت عیسیٰ او حضرت یحییٰ علیهما السلام په یو وخت کښې را ولیږل، او دَ هغوئ سره دَ الله تعالیٰ دَ طرفنه داسې ښکاره نخښے وې چې انکار ترې صرف هغه خلقو کولے شو چې دَ حق سره په ضد وی او دَ حق په مقابله کښې دَ بے باکئ حد ته رسیدلی وی. خو بنی اسرائیلو دَ دے آخری موقعے نه فائده وانهٔ خستله. یوازے دا نه چې دَ دے دواړو پیغمبرانو دعوت ئې قبول نهٔ کړو، بلکه دَ بنی اسرائیلو یو سردار دَ حضرت یحییٰ علیه السلام سر دَ یوے ډمے په اشاره باندې دَ تنے نه جُدا کړو، او دَ بنی اسرائیلو علماؤ او فقهاؤ دَ یو سازش په ذریعه دا کوشش وکړو چې دَ روم سلطنت حضرت عیسیٰ له دَ مرګ سزا ورکړی. ددے نه روستو بنی اسرائیلو ته نصیحت کول هسے وخت ضایع کول وو. ځکه نو الله پاک خپل پیغمبر واپس واخستلو او په بنی اسرائیلو باندې ئې دَ قیامته پورے دَ ذلت دَ ژوند فیصله وکړه.

دلته په دے خبره باندې ځان پوهه کول پکار دی چې دَ قرآن دا ټول تقریر په اصل کښې دَ عیسایانو دَ دے عقیدے "چې مسیح الله دے" غلطولو او دا اصلاح کولو دپاره دے. او په عیسایانو کښې دا عقیده دَ دریو خبرو په وجه پیدا شوې وه.

(۱) دَ حضرت مسیح دَ معجزے په طور پیدا کیدل.

(۲) دَ هغهٔ ښکاره ښکاره معجزے.

(۳) او دَ هغهٔ آسمان طرفته وچتول چې صفا صفا ذکر ئې دَ هغوئ په کتابونو کښې دے.

رَافِعُكَ إِلَيَّ وَمُطَهِّرُكَ مِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا وَجَاعِلُ الَّذِينَ اتَّبَعُوكَ فَوْقَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ ۚ

تا به خپل ځان طرفته را وچتوم او چا چه ستا انکار کړے دے د هغوی نه (یعنی د هغوی د ملګرتیا نه او د هغوی په ګنده ماحول کښ د هغوی سره د وسېدلو نه) به تا پاک کوم او په تا پسے د تللو کی خلق به د قیامته پورے په هغے خلقو باندې پورته لرم چا چه ستا انکار کړے دے[52]

قرآن دا ولے خبره تصدیق وکړه او دے فرمائیل چه د مسیح بے پلاره پیدا کیدل د الله د قدرت کرشمه وه. الله چه څوک په کومه طریقه پیدا کول وغواړی په هغه طریقه ئے پیدا کوی. دا دے خبرے دلیل هیچرے نه دے چه مسیح خدائے وو یا په خدائی کښ شریک وو.

د دویمے خبرے هم قرآن تصدیق وکړو او په خپله ئے د مسیح یو یو معجزه بیان کړه خو دائے وویل چه دا ټول کارونه هغه د الله په حکم سره کړی وو، په خپل اختیار ئے هیڅ هم نه وو کړی لهذا په دے کښ هم څه داسے خبره نشته چه سړے اووائی چه مسیح په خدائی کښ حصه دار وو.

اوس د دریمے خبرے په حقله که چرے د عیسایانو خبرے تو لے غلطے دے نو بیا خو معنا معنوی تر دا خبره کول پکار وو چه تا سو مسیح نه د الله ځوئے او الله وائی هغه خو مردے خاورے شوے دے، که د زړه تسلی غواړئ نو فلانی ځائے ته لاړشئ قبرئے اووینئ. لیکن دے خبرو په ځائے قرآن یوازے دا ئے نه وائی چه مړ شوے نه دے، بلکه عیسایانو ته اُلټا دا وائی چه مسیح د سرے په صلیب رسولئ اخېژولے شوے نه دے، یعنی چاچه په آخری وخت کښ "ایلی ایلی لما شبقتانی" ویلی وو، او د چا چه تاسو په سولئ ختلے تصویرا خستلے دے، هغه مسیح نه وو، مسیح خو دے نه وړاندې خدائے وچت کړے وو.

دے نه روستوم چه څوک د قرآن د آیاتونو نه د مسیح د وفات د ثابتولو کوشش کوی هغوی په اصل کښ دے خبرے د ثابتولو کوشش کوی چه الله تعالیٰ له په صفا تکو کښ د خبرو کول چل نه ورځی. اَعاذنا الله مِن ذٰلِك.

[52] د انکار کونکو نه مراد یهودیان دی چه حضرت عیسیٰ علیه السلام ورته د ایمان راوړلو دعوت ورکړو او هغوی ترې انکار وکړو. د دے نه برخلاف که په هغه پسے د تلونکو خلقو نه مراد صحیح تلونکی وی نو په هغے کښ عیسایان او مسلمانان دواړه شامل دی.

ثُمَّ إِلَيَّ مَرْجِعُكُمْ فَأَحْكُمُ بَيْنَكُمْ فِيمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴿٥٥﴾ فَأَمَّا الَّذِينَ كَفَرُوا فَأُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا شَدِيدًا فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَمَا لَهُم مِّن نَّاصِرِينَ ﴿٥٦﴾ وَأَمَّا الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ فَيُوَفِّيهِمْ أُجُورَهُمْ ۗ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الظَّالِمِينَ ﴿٥٧﴾ ذَٰلِكَ نَتْلُوهُ عَلَيْكَ مِنَ الْآيَاتِ وَالذِّكْرِ الْحَكِيمِ ﴿٥٨﴾ إِنَّ مَثَلَ عِيسَىٰ عِندَ اللَّهِ كَمَثَلِ آدَمَ ۖ خَلَقَهُ مِن تُرَابٍ ثُمَّ قَالَ لَهُ كُن فَيَكُونُ ﴿٥٩﴾

بیا به تاسو ټول آخر ماله راځئ، په هغه وخت کښ به زهٔ د هغې خبرو فیصله کوم چه تاسو په منځ کښ پکښې اختلاف دے. کوم خلق چه د کفر او د انکار لار اختیار کړی ده هغوی له به په دنیا او آخرت دواړو کښ سخته سزا ورکوم او هیڅوک به یې مددګار نهٔ وی، او کوم خلق چه د ایمان او د نیک عمل لار اختیار کړی ده هغوی له به خپلې بدلې پورې پورې ورکړے شی. او ښهٔ پوهه شئ چه د ظالمانو سره الله هرګز محبت نهٔ کوی."

دا آیتونه دی او د حکمت نه ډکه تذکره دی چه مونږه یې تا ته اوروو. د الله په نزد د عیسیٰ مثال د آدم په شان دے چه الله هغه د خاورے نه پیدا کړو او حکم یې ورته وکړو چه شه او بس هغه شو.[۵۳]

[۵۳] یعنی که صرف د معجزه کی پیدائیښ په وجه څوک خدائے یا د خدائے څوئ جوړیدے شوے نو بیا خو پکار وه چه د آدم په حقله هم دا عقیده وے، ځکه چه مسیح خو صرف بے پلاره پیدا شوے وو او آدم د مور او پلار دواړو نه بغیر پیدا شوے وے.

اَلْحَقُّ مِنْ رَّبِّكَ فَلَا تَكُنْ مِّنَ الْمُمْتَرِيْنَ ﴿۶۰﴾ فَمَنْ حَآجَّكَ فِيْهِ مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَكَ مِنَ الْعِلْمِ فَقُلْ تَعَالَوْا نَدْعُ اَبْنَآءَنَا وَاَبْنَآءَكُمْ وَنِسَآءَنَا وَنِسَآءَكُمْ وَاَنْفُسَنَا وَاَنْفُسَكُمْ قف ثُمَّ نَبْتَهِلْ فَنَجْعَلْ لَّعْنَتَ اللّٰهِ عَلَى الْكٰذِبِيْنَ ﴿۶۱﴾

دا اصل حقیقت ده چه ستا د رب د طرفه بنودلے کیږی او ته په هغے خلقو کښ مه شامليږه چه په دے کښ شک کوی ۵۴

او س دے د دے علم د راتلو نه روستو چه څوک ستا سره په دے باره کښ جګړه کوی نو اے محمدؐ، هغوی ته ووایه چه "راشئ چه موږه او تاسو پخپله هم راشو او خپل خپل بال بچ هم راولو او خدائے ته سوال وکړو چه څوک چه دروغ وی نو په هغه دې د خدائے لعنت ۵۵ وی۔"

۵۴ د دے ځائے پورے چه په تقریر کښ کومه بنیادی نکتے عیسایانو ته وراندِ شوے د هغے خلاصه دا ده:

کومه اوله خبره چه د عیسایانو په ذهن کښ د هغے د راوستلو کوشش شوے دے، هغه دا ده چه د مسیحؑ د خدائی کومه عقیده چه تاسو کښ په کوم رجحان تو سره پیدا شوی ده په هغے کښ یوه ذره هم صحیح نه ده۔ یو انسان وو چه الله د خپل علم مطابق مناسب وګڼلو چه په نا اشنا طریقه ئے پیدا کړی او هغه له داسے معجزے ورکړی چه بنکاره د نبوت نخے دی، او منکرین حق ته ئے په نه نږدی چه په سولئ ئے اوخیژوی بلکه ځان له ئے را وچت کړی۔ مالک ته اختیار دے چه په خپل بنده څه کول غواړی هغه پرے وکړی۔ صرف د دے نا آشنا سلوک په وجه دا نتیجه را ایستل څنګ صحیح کیدے شی چه هغه په خپله مالک وو، یا د مالک ځوئے وو یا په ملکیت کښ د هغه سره شریک وو۔

په دویمه دے غټه خبره باندِ ئے هغوی پوه کړی دی چه مسیح کوم څیز ته خلق را بللو هغه هم هغه څیز دے کوم ته چه محمد صلی الله علیه وسلم خلق رابلی۔ د دواړو په مقصد کښ د وینته هومره فرق نشته۔

دریمه تقریر دریمه بنیادی خبره دا ده چه د مسیح نه روستو د هغه د حواریانو مذهب هم دا اسلام وو کوم چه قرآن پیش کوی۔ روستو بیا عیسائیت نه د مسیح علیه السلام په تعلیم باندِ ټینګ پاتے شو او نه په هغه مذهب پیه لاړه په کوم پسے چه د مسیح حواریان تلی وو۔

۵۵ دا فیصله چه ئے په دے شکل کوله نو په دے کښ اصلی مقصد دا ثابتول وو چه د نجران وفد قصداً ضد کوی۔ برابره په تقریر کښ چه کومے خبرے بیان شوی دی په هغے کښ د یوے خبرے جواب هم د دوی سره نه وو د مسیحیت ویره ختیپه دی، ود دوی سره په خپلو کتابونو کښ د یوے عقیدے په حق کښ هم څه داسے سند نه وو چه د هغے په وجه دا په یقین سره اوو بیلے شی چه د هغوی عقیده درسته ده او د حقیقت مطابق ده۔

إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ الْقَصَصُ الْحَقُّ ۚ وَمَا مِنْ إِلَٰهٍ إِلَّا اللَّهُ ۚ وَإِنَّ اللَّهَ لَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٦٢﴾ فَإِن تَوَلَّوْا فَإِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِالْمُفْسِدِينَ ﴿٦٣﴾ ع قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ تَعَالَوْا إِلَىٰ كَلِمَةٍ سَوَاءٍ

دا بالکل صحیح واقعات دي، او حقیقت دا دے چه د الله نه بغیر بل هیڅوک د عبادت لائق نشته، او دا هم الله دے چه طاقت ئے د ټولو نه لوئ دے او چه حکمت ئے د ټول جهان په نظام کښ چلیږي. بیا که چرې دا خلق (په دے شرط باندې مقابلے ته راتلو نه) مخ واړوي نو (د هغوئ د فسادنیت به صفا ښکاره شي) او الله خو د فسادیانو په حال باندې ښه خبر دے. ع

ورته اُووایه چه "اے اهلِ کتابو! یوے داسے خبرے له راشئ چه هغه زمونږ او ستاسو په[ل۵]

بیا د نبي صلی الله علیه وسلم خوي خصلت، د هغه تعلیم او د هغه کارونو ته چه ئې وکتل نو دوئ د ډیرو خلقو زړونه د هغه د نبوت قائل شوي وو او د ځینو انکار په حقله ئې شک پیدا شوے وو. نو دغه وجه وه چه کله ورته اُووئیلے شو چه ډیره ښه ده که تاسو په خپله عقیده کښ صحیح یئ نو راشئ زمونږ خلاف دُعا وکړئ چه څوک په دروغ وي په هغه دې د خدائے لعنت وي، نو په هغوئ کښ هیڅوک هم ته تیار نشو. د دې شان دا خبره ټول عرب ته ښکاره شوه چه د نجران د عیسائي پیشوا ګانو او پادریانو داسے عقیدے دي چه په خپله ئے په هم کامل اعتبار نشته.

ل۵ د دے ځائے نه یو دریم تقریر شروع کیږي. د دے تقریر په مضمون چه سړے غور وکړي نو داسے معلومیږي چه دا تقریر د جنګ بدر او د جنګ اُحد په مینځ کښ نازل شوے دے. خو د دے دریو وارو تقریرونو مطلبونه یو بل سره دومره نزدے دي چه د سورت د شروع نه را واخله تر دے ځائے پورے ټوله یوه خبره ښکاري. په دے وجه د بعضے مفسرینو ا خیال دے چه دا روستني آیتونه هم د وفدِ نجران د تقریر سلسله ده. خو د دے ځائے نه چه کوم تقریر شروع کیږي د هغه د انداز نه معلومیږي چه هغه یهودیانو ته دے.

بَيْنَنَا وَبَيْنَكُمْ اَلَّا نَعْبُدَ اِلَّا اللّٰهَ وَلَا نُشْرِكَ بِهٖ شَيْـًٔا وَّلَا يَتَّخِذَ بَعْضُنَا بَعْضًا اَرْبَابًا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ فَاِنْ تَوَلَّوْا فَقُوْلُوا اشْهَدُوْا بِاَنَّا مُسْلِمُوْنَ ﴿۶۴﴾ يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تُحَآجُّوْنَ فِيْۤ اِبْرٰهِيْمَ وَمَاۤ اُنْزِلَتِ التَّوْرٰىةُ وَالْاِنْجِيْلُ اِلَّا مِنْۢ بَعْدِهٖ ؕ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿۶۵﴾ هٰۤاَنْتُمْ هٰۤؤُلَآءِ حَاجَجْتُمْ فِيْمَا لَكُمْ بِهٖ عِلْمٌ فَلِمَ تُحَآجُّوْنَ فِيْمَا لَيْسَ لَكُمْ بِهٖ عِلْمٌ ؕ وَاللّٰهُ يَعْلَمُ

منځ کښې یوشان ده۔[۵۷] هغه دا چه مونږ به د الله نه بغیر د بل چا بندګي نه کوو، د هغه سره به شوک نه شریکوو، په مونږ کښې به یو کس بل کس خپل خدائے نه جوړه وي سوا د الله نه"—— د دے دعوت قبلولو نه که هغوی مخ واړه وو نو صفا ورته اُووایئ چه په دے خبره ګواهان اُوسېږئ چه مونږ خو مسلمانان (یعني صرف د خدائے بندګي کونکي او حکم منونکي) یو۔

اے اهل کتابو، تاسو د ابراهیم په باره کښې مونږ سره جګړه ولے کوئ؟ تورات او انجیل خو د ابراهیم نه روستو نازل شوي دي. نو په دومره صفا خبره هم نه پوهېږئ؟[۵۸] —— تاسو ته چه د کوم څیزونو علم وو په هغې کښې خو موبنه بحثونه اُوکړل اوس په هغې خبرو کښې ځله بحثونه کوئ چه تاسو سره د هغې هډو علم نشته۔ الله پوهېږي

[۵۷] یعني په یوه داسے عقیده مونږ سره اتفاق اُوکړئ چه مونږه هم په هغې ایمان راوړے دے او چه د هغې د صحیح والي نه تاسو هم انکار نشئ کولے۔ ستاسو خپلو پیغمبرانو دا عقیده بیان کړې ده۔ ستاسو په خپلو مقدسو کتابونو کښې د دے عقیدے تعلیم موجود دے۔

[۵۸] یعني ستاسو دا یهودیت او دا نصرانیت د تورات او د انجیل د نازلیدو نه روستو پیدا شوي دي او ابراهیم علیه السلام د دے دواړو د نازلیدو نه ډیر مخکښې تیر شوے وو۔ اوس یو معمولي عقل والا انسان هم په دے خبره په آسانه پوهېږي چه ابراهیم علیه السلام په کوم مذهب وو هغه خو یهودیت یا نصرانیت نه وو۔ نو چه ابراهیم په نیغه لاره وو او یو کامیاب انسان وو او که یهودیت او نصرانیت نه ډیر مخکښې تیر شوے وو، نو دا صفا معلومه شوه چه د نیغې لارے او د نجات د پاره یهودیت یا نصرانیت هیڅ شرط نه دے۔ (اُوګورۂ سورة بقرة حاشیه نمبر ۱۳۵ او ۱۴۱)۔

وَاَنْتُمْ لَا تَعْلَمُوْنَ ﴿۶۶﴾ مَا كَانَ اِبْرٰهِيْمُ يَهُوْدِيًّا وَّلَا نَصْرَانِيًّا وَّلٰكِنْ كَانَ حَنِيْفًا مُّسْلِمًا ؕ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۶۷﴾ اِنَّ اَوْلَى النَّاسِ بِاِبْرٰهِيْمَ لَلَّذِيْنَ اتَّبَعُوْهُ وَهٰذَا النَّبِيُّ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ؕ وَاللّٰهُ وَلِيُّ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۶۸﴾ وَدَّتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ لَوْ يُضِلُّوْنَكُمْ ؕ وَمَا يُضِلُّوْنَ اِلَّآ اَنْفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُوْنَ ﴿۶۹﴾ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَاَنْتُمْ تَشْهَدُوْنَ ﴿۷۰﴾

تاسو نۀ پوهیږئ. ابراهیم نۀ یهودی وُو نۀ عیسائی، بلکه هغه خو یو مخیزے مسلمان وُو[۵۸] او هغه هرګز د مشرکانو نه نۀ وُو." د ابراهیم سره د تعلق ساتلو زیات حقدار که څوک دی نو هغه هغه خلق دی چه د هغه پیروی ئې کړی ده او داوس دا نبی او د دۀ منونکی دے تعلق ساتلو زیات حقدار دی. الله صرف د هغه خلقو ملګرے او مددګار دے چه ایمان لری.

(اے ایمان والو) په اهل کتابو کښ یوه ډله دا غواړی چه په څۀ طریقه تاسو د نیغے لارے نه واړه وی، خو په حقیقت کښ هغوئ د خپل ځان نه بغیر بل څوک د نیغے لارے نه نۀ اړه وی خو هغوئ په دے پوهیږی نۀ. اے اهل کتابو تاسو د الله د آیتونو نه انکار ولے کوئ حالانکه تاسو ئې په خپلو سترګو وینئ[۵۹] ګورئ؟

[۵۸] په اصل کښ لفظ حنیف استعمال شوے دے. دے مطلب دا دے چه یو سړے د هر طرف نه مخ واړه وی او په یوه خاصه لار باندې روان شی. دا مطلب مونږ په "یو مخیزی مسلمان" سره ادا کړے دے.

[۵۹] د دے فقرے د دویمۀ ترجمه دا هم کیدے شی چه "تاسو پرې خپله ګواهی کوئ." په دواړو ترجمو سره په مطلب کښ څۀ فرق نۀ راځی. په خپله د نبی صلی الله علیه وسلم پاک ژوند، د صحابه کرامو په ژوند باندې د نبی د تعلیم زبردست اثر، او د قرآن لوړ معقدی بیانونه، دا ټول څیزونه د الله تعالیٰ دا سے صفا او روښانه نښے وے، چه کوم سړے د پیغمبرانو د احوال نه او د آسمانی کتابونو د طرزنه واقف وی نو د هغه د پاره د محمدؐ په نبوت کښ شک کول ډیر ګران وُو. او دا حقیقت دے چه ډیرو اهل کتابو ته (خاص طور د اهل کتابو عالمانو ته) دا معلومه شوے وه چه محمدؐ هغه نبیؐ دے چه مخکښے پیغمبرانو ئې د را تللو وعدے کړے وے،

يَاَهۡلَ الۡكِتٰبِ لِمَ تَلۡبِسُوۡنَ الۡحَقَّ بِالۡبَاطِلِ وَتَكۡتُمُوۡنَ الۡحَقَّ وَاَنۡتُمۡ تَعۡلَمُوۡنَ ﴿۷۱﴾ وَقَالَتۡ طَّآئِفَةٌ مِّنۡ اَهۡلِ الۡكِتٰبِ اٰمِنُوۡا بِالَّذِىۡۤ اُنۡزِلَ عَلَى الَّذِيۡنَ اٰمَنُوۡا وَجۡهَ النَّهَارِ وَاكۡفُرُوۡۤا اٰخِرَهٗ لَعَلَّهُمۡ يَرۡجِعُوۡنَ ﴿۷۲﴾ وَلَا تُؤۡمِنُوۡۤا اِلَّا لِمَنۡ تَبِعَ دِيۡنَكُمۡؕ قُلۡ اِنَّ الۡهُدٰى هُدَى اللّٰهِۙ اَنۡ يُّؤۡتٰۤى اَحَدٌ مِّثۡلَ مَاۤ اُوۡتِيۡتُمۡ اَوۡ يُحَآجُّوۡكُمۡ عِنۡدَ رَبِّكُمۡؕ قُلۡ اِنَّ

اے اهلِ کتابو، حق له د باطل رنګ ولے ورکوئ چه بو شکمن شے تر جور کرئ؟ او سره د پوهے قصداً حق ولے پټوَئ؟ع

د اهل کتابو کښ یوه ډله وائي چه ددے نبی په منونکو باندې څه نازل شوی دی په هغے باندِ سحر ایمان راوړئ او ماښام ترِ بیا انکار وُکړئ، کیدے شی چه په دے چل داخلق دخپل ایمان نه واوړی۔ دغه شان دا خلق په خپلو کښ وائي چه دَ خپل مذهب دخلقو نه بغیر دَ بل چا خبره مه منئ۔ اے نبیؐ، دوئ ته وُوايه چه "اصل هدایت خو دَ الله هدایت دے او دا د الله ورکړه ده چه تاسو ته څه درکړے شوی ؤو هغه اوس بل چا ته ورکړے شی، یا دا چه نورو خلقو ته دَ الله په دربار کښ ستاسو خلاف یو قوی او مضبوط دلیل ملاؤ شی۔" اے نبیؐ، دوئ ته وُوایه چه

نو دے پوره په کِلِه کله به دَ حق د زور نه مجبور شول او په خوله به یئے اُووئیل چه محمدؐ رښتینی دے او هغه چه کوم تعلیم پیش کوی هغه حق دے۔ په دے وجه په هغوئ باندِ قرآن بار بار دا الزام لګوی چه دَ الله کوم نښے علامے تاسو په خپلو سترګو وینئ، او تاسو دا ګواهی کوئ چه هغه حق دی، هغے نه تاسو په قصد باندِ شرارت په وجه دروغ وایئ۔

[۶۱] دا یوه دوکه وه چه کوم یهودی مشران به د مدینے په خواؤ شاکښ وسیدل هغوئ به دا دوکه دَ اسلام دکمزوری کولو دپاره کوله۔ هغوئ خاص دے غرض دپاره چه دَ مسلمانانو زړونه ؤنکیږی او دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه عام خلق بدګمانه شی، پټ پټ سری تیاره ول شروع کړل۔ هغوئ ته به یئے ویل چه اول به په اعلان سره اسلام قبول کړئ، او بیا د اسلام نه بیا واوړئ، او ځلے په خائے په خلقو کښ دا مشهوره کړئ چه مونږ د په اسلام کښ په مسلمانانو کښ او دَ هغوئ په پیغمبر کښ

الْفَضْلَ بِيَدِ اللَّهِ ۚ يُؤْتِيهِ مَنْ يَشَاءُ ۗ وَاللَّهُ وَاسِعٌ عَلِيمٌ ﴿٧٣﴾ ج لا
يَخْتَصُّ بِرَحْمَتِهِ مَنْ يَشَاءُ ۗ وَاللَّهُ ذُو الْفَضْلِ الْعَظِيمِ ﴿٧٤﴾ وَ
مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ مَنْ إِنْ تَأْمَنْهُ بِقِنْطَارٍ يُؤَدِّهِ إِلَيْكَ ۚ وَ
مِنْهُمْ مَنْ إِنْ تَأْمَنْهُ بِدِينَارٍ لَا يُؤَدِّهِ إِلَيْكَ إِلَّا مَا
دُمْتَ عَلَيْهِ قَائِمًا ۗ ذَٰلِكَ بِأَنَّهُمْ قَالُوا لَيْسَ عَلَيْنَا فِي

" فضل او شرف خو د الله په اختيار کښې دے، چه چاله يې ورکول غواړي هغه له يې ورکوي-
هغه فراخه نظروالا دے[62] او په هر څه باندې پوه دے[63]. هغه د خپل رحمت دپاره چه څوک وغواړي
هغه خاص کوي او د الله فضل ډير لوئ دے."

په اهل کتابو کښې څوک داسے دی که ته پرې بروسه وکړې او د مالونو يو ډيرے
ورسره امانت کيږدے هغه به هغه مال تاته واپس ادا کوي، او څوک پکښې داسے دی
که د يو اشرفۍ اعتبار پرې وکړے نو تر هغې به يې نه درکوي ترڅو چه هر وخت ورته
د سر دپاسه ولاړ نه يې. د دوئ د دے بد اخلاقۍ وجه دا ده چه دوئ وائي
"د اميانو (د يهوديانو نه علاوه د نورو خلقو) په باره کښې په موږ باندې

دا اورد آخرائيئ د ليدلے څکه خو موږ نه اسلام پريښودو او د هغوئ له څه اشو.

[62] په اصل کښې لفظ "واسع" استعمال شوے دے چه په قرآن کښې عام طور په درے
موقعو کښې استعماليږي. يو هغه موقع چه کله د انسانانو د يو ډلے د تنګ خيالئ او د تنګ نظرۍ
ذکر راشي او دغه ډلے ته دا حقيقت ښکاره کول ضروري وي چه الله ستاسو په شان تنګ نظره
نه دے. دويم هغه موقع چه کله الله تعالىٰ انسان په خپل بخل او په خپله تنګ دلئ باندې ملامته
کوي او هغه ته دا ښائي چه د الله لاس فراخه دی، هغه ستاسو په شان بخيل نه دے. دريم هغه
موقع چه کله انسان د جهل خيال د کبې په وجه الله تعالىٰ هم محدود ګڼړي نو هغه ته دا ثابتوي
چه الله غير محدود دے. (او ګورئ سورة بقرة، حاشيه نمبر ۱۱۶)

[63] يعنې الله ته معلوم ده چه څوک د فضل او شرف مستحق دے.

الْاُمِّيّٖنَ سَبِيْلٌ ۚ وَيَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿۷۵﴾ بَلٰى مَنْ اَوْفٰى بِعَهْدِهٖ وَاتَّقٰى فَاِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُتَّقِيْنَ ﴿۷۶﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ يَشْتَرُوْنَ بِعَهْدِ اللّٰهِ وَاَيْمَانِهِمْ ثَمَنًا قَلِيْلًا اُولٰٓئِكَ لَا خَلَاقَ لَهُمْ فِى الْاٰخِرَةِ وَلَا يُكَلِّمُهُمُ اللّٰهُ وَلَا يَنْظُرُ اِلَيْهِمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ وَلَا يُزَكِّيْهِمْ ۪

هیڅ گرفت نشته[۶۴]"، او دا خبره هغوی په الله پورې خالص دروغ تړي، حالانکه دا هغوی ته معلومه ده (چه الله دا سې هیڅ خبره نه ده کړې) آخر ولې به دَ هغوی نه پوښتنه نه کیږي؛ هر چا چه خپله وعده پوره کړله، او دَ بدئ نه ئې ځان بچ کړلو، هغه به دَ الله محبوب بنده وي ځکه چه پرهیزګار خلق دَ الله خوښ وي. پاتې شو هغه خلق چه دَ الله وعدې او خپل قسمونه په لږ قیمت خرڅوي، نو دَ هغوی دپاره په آخرت کښ هیڅ حصه نشته، دَ قیامت په ورځ به الله نه دَ هغوی سره خبره وکړي نه به ورته وګوري او نه به ئې پاک کړي[۶۵]،

[۶۴] دا یوائې دیهودیانو دعامو خلقو جاهلانه خیال نه وُ بلکه دَ هغوی تول مذهبي تعلیم هم په دې رنګ وُو او دَ هغوی د لویو لویو عالمانو دیني حکمونه هم د غسې وُو. بائیبل دَ قرض او دَ سُود په حکمونو کښ دَ اسرائیلي سړي او دَ غیر اسرائیلي سړي په مینځ کښ بنکاره فرق کړې دے (استثناء ۱۵ : ۱-۳، ۲۳ : ۲۰) په تلمود کتاب کښ وئیلي شوي دي که چرې دَ اسرائیلي غوئي دَ غیر اسرائیلي غوئې زخمي کړو نو په هغه باندې تاوان نشته خو که دَ غیر اسرائیلي غوئي دَ اسرائیلي غوئې زخمي کړو نو په هغه باندې تاوان شته. که چا ته په یو ځائې کښ څوک پریوتې شوې څیز ملاؤ شو نو هغه دِ وګوري چه دَ کوم خلقو آبادي ده. که دَ اسرائیلیانو آبادي وه نو هغه له پکار دي چه اعلان وکړي او که دَ غیر اسرائیلیانو آبادي وه نو اعلان ته ضرورت نشته هغه څیز دِ ځان سره کیږدي. ربي اشماعیل وائي که چرې دَ یو اُمي او اسرائیلي مقدمه "قاضي له راشي نو قاضي که خپل مذهبي زور په اسرائیلي" قانون خلاصه وړې شو نو خلاص دې ئې کړي او وُ وائي چه دا زمونږ قانون دے. او که چرې دَ امیانو په قانون کښ ئې خلاصه وړې شو نو دَ هغوی دَ قانون مطابق دِ ئې خلاص کړي او وُ دِ وائي چه دا ستاسو قانون دے. او که چرې په دواړو قانونو کښ نشو خلاصیدې نو بیا چه په کومه بهانه هغه اسرائیلي رور خلاصیدے شو خلاص دِ ئې کړي. ربي شموایل وائي چه دَ غیر اسرائیلي سړي دَ هر غلطئ نه فائده اخستل پکار دي (تالمودک سیلیکشن، پال آئزک هرشون، لندن ۱۸۸۰ء صفحات ۳۷، ۲۱۰، ۲۲۱)

[۶۵] رحبه دا ده چه دا خلق ډیر سخت سخت اخلاقي جرمونه وکړي او دَ هغې نه روستو بیا

وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٧٧﴾ وَإِنَّ مِنْهُمْ لَفَرِيقًا يَلْوُونَ أَلْسِنَتَهُم بِالْكِتَابِ لِتَحْسَبُوهُ مِنَ الْكِتَابِ وَمَا هُوَ مِنَ الْكِتَابِ وَيَقُولُونَ هُوَ مِنْ عِندِ اللَّهِ وَمَا هُوَ مِنْ عِندِ اللَّهِ وَيَقُولُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ وَهُمْ يَعْلَمُونَ ﴿٧٨﴾ مَا كَانَ لِبَشَرٍ أَن يُؤْتِيَهُ اللَّهُ الْكِتَابَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ ثُمَّ يَقُولَ لِلنَّاسِ كُونُوا عِبَادًا لِّي مِن دُونِ اللَّهِ وَلَٰكِن كُونُوا

بلکه دَ هغوئ د پاره خو سخته دردناکه سزا ده۔

په دوئ کښې څه خلق داسې دی چه د کتاب لوستلو په وخت کښې ژبه داسې تاؤ راتاؤ کړی چه ته به وایئې چه دا دوئ څه وائی دا کښې د کتاب خپل عبارت دے، حالانکه هغه دَ کتاب عبارت نه وی، دوئ وائی،[٦٦] دا مونږه چه څه وایو، دا دَ الله دَ طرفه دی حالانکه هغه دَ الله دَ طرفه نه وی، دوئ په قصد باندې دروغ خبره په الله پورې تړی۔

د یو انسان دا کار نه دے چه الله ورله کتاب، حکم او پیغمبری ورکړی او هغه وخلقو ته دا وائی چه تاسو دَ الله په ځائې زما بندګان شئ۔ هغه خو به دا وائی چه تاسو ربّانیّین

هم دا خیال وی چه دَ قیامت په ورځ به بې مونږه دَ الله نږدې بندګان یو، الله به مونږ ته دَ مهربانئ په نظر ګوری، او که څه لږ ډیر ګناه مو په دُنیا کښې کړې دی هغه به هم دَ بزرګانو دَ سفارش په وجه لرې شی. لیکن دَ قیامت په ورځ به د دوئ سره معامله بالکل بَدَله وی۔

[٦٦] اګرچه دَ دې دا مطلب هم کیدے شی چه دوئ دَ کتاب په معنو کښې بدلون راولی، او یا الفاظ بدل راپلی کړی او څه بل څه مطلب تر راؤ باسی، خو اصلی مطلب یئې دا دے چه دوئ کله کتاب وائی او یو داسې لفظ ته ور ژ ر سیبر ی، چه که اصلی لفظ وائی نو که دوئ پکښې نقصان وی یا دَ دوئ دَ خپله عقیدې خلاف راځی، نو په هغه لفظ باندې ژبه داسې راواړوی او څه بل څه ترې جوړ کړی۔ ددې مثالونه په قرآن منونکو اهلِ کتابو کښې هم شته دے۔ مثلاً کوم خلق چه دا وائی چه نبی بشر نه دے هغوئ په دې آیت قُلْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ کښې إِنَّمَا کښې ځان له ځان له یعنی إِنَّ مَا وائی او ترجمه داسې کوی چه "اے نبی، اُووایه چه په تحقیق سره نه یم زه یو بشر ستاسو په شان۔"

رَبّٰنِيّٖنَ بِمَا كُنْتُمْ تُعَلِّمُوْنَ الْكِتٰبَ وَبِمَا كُنْتُمْ تَدْرُسُوْنَ ﴿٧٩﴾ وَلَا يَاْمُرَكُمْ اَنْ تَتَّخِذُوا الْمَلٰٓئِكَةَ وَالنَّبِيّٖنَ اَرْبَابًا ؕ اَيَاْمُرُكُمْ بِالْكُفْرِ بَعْدَ اِذْ اَنْتُمْ مُّسْلِمُوْنَ ﴿٨٠﴾ ع وَاِذْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ النَّبِيّٖنَ لَمَآ اٰتَيْتُكُمْ مِّنْ كِتٰبٍ وَّحِكْمَةٍ ثُمَّ جَآءَكُمْ رَسُوْلٌ مُّصَدِّقٌ لِّمَا

ربّاني[٦٧] خلق شئ لکه څنګه چه د هغه کتاب د تعليم تقاضا ده چه تاسو يې ځنيله هم وايئ او نورو خلقو ته يې هم وايئ. هغه به تاسو ته هيچرې دا ونه وائي چه د فرښتو يا د پيغمبرانو نه خلق له خپل رب جوړ کړئ. آيا دا کيدې شي چه تاسو د مسلمانان يئ او يو نبي دې تاسو ته د کفر حکم وکړي؟[٦٨] ع

ياد کړه چه الله د پيغمبرانو نه وعده اخستې وه چه "نن ما تاسوله کتاب او حکمت درکړے دے، صبا له که چرې يو بل رسول تاسوله راشي، او کوم تعليم چه ستاسو سره د مخکښ نه موجود دے د هغې تصديق کوي،

[٦٧] په يهوديانو کښ به چه کوم عالمان په مذهبي عهده پاندې وو، او خلقو ته به يې مذهبي کارونه ښودل، د عبادت او د دين حکمونو بند و بست به يې کولو، د هغوی د پاره به لفظ رباني استعماليدلو، لکه څنګه چه ځنيله په قرآن کښ راغلي دي، لَوْ لَا يَنْهٰهُمُ الرَّبّٰنِيُّوْنَ وَالْاَحْبَارُ عَنْ قَوْلِهِمُ الْاِثْمَ وَاَكْلِهِمُ السُّحْتَ (د دوی ربّانيانو او د دوی عالمانو ولے دوی د ګناه د خبرو کولو نه او د حرامو د خوړلو نه نه منع کول). د غه شان په عيسايانو کښ د لفظ (Divine) معنیٰ د لفظ ربّاني د معنے پشان ده.

[٦٨] دا د هغې ټولو غلطو خبرو ترديد دے چه د دُنيا مختلفو قومونو خدا ئے په پيغمبرانو پورې تړلې دي او بيا ئے په خپلو کتابونو کښ شامل کړې دي او د دغې په وجه يو پيغمبر يا يوه فرښته د خدايئ درجې ته رسوي. په دے آيت کښ دا يوه قاعده کليه ښودلے شوې ده چه يو داسے تعليم چه هغه د الله نه بغير د بل چا بندګئ او عبادت ته خلق تيارا دي او يا يو بنده د خدايئ مقام ته رسوي، هغه هيچرې د پيغمبر تعليم نشي کيدے. چرته که په يو مذهبي کتاب کښ د داسے خبرې په نظر راشي نو پوهه شه چه دا د بے لارے کونکو خلقو غلط خبرې دي.

مَعَكُمْ لَتُؤْمِنُنَّ بِهٖ وَلَتَنْصُرُنَّهٗ ؕ قَالَ ءَاَقْرَرْتُمْ وَ اَخَذْتُمْ عَلٰى ذٰلِكُمْ اِصْرِىْ ؕ قَالُوْۤا اَقْرَرْنَا ؕ قَالَ فَاشْهَدُوْا وَاَنَا مَعَكُمْ مِّنَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿۸۱﴾ فَمَنْ تَوَلّٰى بَعْدَ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿۸۲﴾ اَفَغَيْرَ دِيْنِ اللّٰهِ يَبْغُوْنَ

نو تاسو به ضرور په هغه ایمان راوړئ او د هغه امداد به کوئ.<sup>۶۹</sup> دغه وعده يې نه روستو نو الله تپوس وکړو "آیا تاسو د دې اقرار کوئ او په دې باندې زما د وعدې د ټینګه ذمه واري اخلئ؟" هغوئ اُووئیل چه اَوْ مونږه اقرار کوُو. الله وُفرمائيل "ډيره ښه ده تاسو ګواهان شئ او زه هم ستاسو سره ګواه یم، د دې نه روستو چه څوک د خپل لوظ نه واپس شي نو هم هغه فاسق دي.<sup>۷۰</sup>"

اوس ولې دا خلق د الله د اطاعت طریقه (دین الله) پرېږدي او څه بله طریقه غواړي؟

۶۹ مطلب دا دې چه د هر پیغمبر نه د دې خبرې وعده اخستلې شوې ده ـــــ او کومه وعده چه د پیغمبر نه اخستلې شوې دي په هغې کښې د هغه اُمتیان هم شامل وي ـــــ وعده دا ده چه هر کله زمونږ د طرفنه یو نبیٔ درولیږلے شي او هغه هم د هغې دین د قایمولو او د هغې د تبلیغ کوشش کوُو د کوم دین د قایمولو او د هغې د تبلیغ کار چه تاته حواله شوې وُو، نو ته به د هغهٔ سره مدګارې کیږې. د هغه سره به تعصّب او بد نیتي نهٔ کوې، ځان به د دین ټیکه دار نهٔ ګڼړې، د حق مخالفت به نهٔ کوې، بلکه چرته چه څوک زمونږ د طرفنه د حق د جهنډې پورته کولو د پاره را اُوچت کړے شي، ته به د هغهٔ د جهنډې لاندې کیږې.

دلته په دې خبره ځان پوهه کول پکار دي چه تحضرت محمد صلی الله علیه وسلم نه وړاندې د هر نبي نه دا وعدا اخستلے شوې ده، او د دې وعدې مطابق هر نبي خپل اُمت ته د روستو راتلونکي نبي خبر ورکړے دے او دا یې ورته وئیلي دي چه د هغه ملګرتیا به کوئ. لیکن نهٔ په قرآن کښې او نهٔ په حدیثو کښې چرته د دې خبرې پته لګي چه د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم نه دا سې وعدا اخستلے شوې ده یا نبي چرته خپل اُمت ته دا وئیلي دي چه روستو بل نبي به راځي او په هغه به ایمان راوړئ.

۷۰ اهلِ کتابو ته وائي چه تاسو د الله وعده ماتوئ، تاسو چه د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم نه انکار کوئ او د هغه مخالفت کوئ نو تاسو د هغې وعدې خلاف ورزي کوئ کومه چه ستاسو د پیغمبرانو نه اخستلې شوې وه، نو په دې وجه، اوس تاسو فاسقان یئ یعني د الله د اطاعت نه وتلي یئ او د خدائ حکم نهٔ منئ.

وَلَهٗۤ اَسْلَمَ مَنْ فِی السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ طَوْعًا وَّكَرْهًا وَّاِلَيْهِ يُرْجَعُوْنَ ﴿۸۳﴾ قُلْ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَاۤ اُنْزِلَ عَلَيْنَا وَمَاۤ اُنْزِلَ عَلٰۤى اِبْرٰهِيْمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ وَالْاَسْبَاطِ وَمَاۤ اُوْتِیَ مُوْسٰى وَعِيْسٰى وَالنَّبِيُّوْنَ مِنْ رَّبِّهِمْ ۪ لَا نُفَرِّقُ بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْهُمْ ۫ وَنَحْنُ لَهٗ مُسْلِمُوْنَ ﴿۸۴﴾ وَمَنْ يَّبْتَغِ غَيْرَ الْاِسْلَامِ دِيْنًا فَلَنْ يُّقْبَلَ مِنْهُ ۚ وَهُوَ فِی الْاٰخِرَةِ مِنَ الْخٰسِرِيْنَ ﴿۸۵﴾

حالانکه دَ آسمانونو او دَ زمکے ټول څیزونه چارو ناچار دَ الله حکم منونکی (مسلمانان) دی[۱] او دَ هغه طرفته به واپس ټول ځی؟ اے نبی، ؤوایه چه "مونږه الله منو، هغه تعلیم منو چه په مونږ باندِ نازل کړے شوے دے، هغه ټولے خبرے منو چه په ابراهیمؑ، اسمٰعیلؑ، اسحٰقؑ، یعقوبؑ او دَ یعقوبؑ په اولاد باندِ نازلے شوے دے، او په هغے هدایاتو باندِ هم ایمان لرو چه موسٰیؑ او عیسٰیؑ او نورو پیغمبرانو ته دَ خپل رب دَ طرفنه ورکړے شوی وُو. مونږ په هغوئ کښ فرق[۲] نه کوؤ. او مونږه د الله حکم منونکی (مسلمانان) یُو." دَ الله دَدے حکم منلو (اسلام) نه بغیر چه څوک څه بله طریقه اختیاره ول غواړی، هغه طریقه به هیچرے قبول نه کړے شی، او هغه به په آخرت کښ ناکامیابه او تاوانی وی.

---

[۱] یعنی د ټولو کائناتو او د کائناتو د هر څیز دین خو اسلام، یعنی د الله حکم منل او بندګی ده، او تاسو چه ته په دے کائناتو کښ د ننه ؤسیږے او اسلام پریږدے نو بله کومه طریقه کوے؟

[۲] یعنی زمونږ دا طریقه نه ده چه په نبیانو کښ څه منو او څه نه منو، څوک دروغژن کړو او څوک رښتینے. مونږ دَ بد نیتئ نه پاک یُو دَ جاهلیت سره مینه نه لرو. په دُنیا کښ چه چرته دَ الله بنده د الله د طرفنه حق راوړے دے مونږه د هغه په حقانیت باندِ ګواهی ورکوؤ.

كَيْفَ يَهْدِي اللَّهُ قَوْمًا كَفَرُوا بَعْدَ إِيمَانِهِمْ وَشَهِدُوا أَنَّ الرَّسُولَ حَقٌّ وَجَاءَهُمُ الْبَيِّنَاتُ ۚ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ﴿٨٦﴾ أُولَٰئِكَ جَزَاؤُهُمْ أَنَّ عَلَيْهِمْ لَعْنَةَ اللَّهِ وَالْمَلَائِكَةِ وَالنَّاسِ أَجْمَعِينَ ﴿٨٧﴾ خَالِدِينَ فِيهَا لَا يُخَفَّفُ عَنْهُمُ الْعَذَابُ وَلَا هُمْ يُنْظَرُونَ ﴿٨٨﴾ إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا مِنْ بَعْدِ ذَٰلِكَ وَأَصْلَحُوا فَإِنَّ اللَّهَ غَفُورٌ رَحِيمٌ ﴿٨٩﴾ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا بَعْدَ إِيمَانِهِمْ ثُمَّ ازْدَادُوا كُفْرًا لَنْ تُقْبَلَ

دا څنګه کېدے شي چه الله هغے خلقو ته هدايت وُکړي کومو خلقو چه د ايمان راوړلو نه روستو بيا کفر اختيار کړو حالانکه هغوئ پخپله د دے خبرے ګواهي کړي ده چه دا رسول په حقه دے او هغوئ ته صفا او روښانه نښے هم راغلي دي[٧٣]. الله خو ظالمانو ته هدايت نۀ کوي. د دوئ د ظلم صحيح بدله هم داده چه په دوئ باندِ دَ الله او دَ فرښتو او دَ ټولو انسانانو لعنت دے، په دے حالت کښ به هغوئ هميشه وُ سيزي، نۀ به ئے سزا سپکه کړے شي او نۀ به ورله مهلت ورکړے شي. البته هغه خلق به بچ شي چه د دے نه پس توبه وُباسي او دَ خپل عمل اصلاح وُکړي، الله بخښونکے او مهربانه دے. خو کومو خلقو چه د ايمان راوړلو نه پس کفر اختيار کړو، او بيا په کفر کښ زيات مخکښ لاړل[٧٤] د هغوئ توبه به هرګز نۀ

[٧٣] دلته بيا هغه خبره ده کومه چه مخکښے بار بار بيان شوې ده چه د نبي صلى الله عليه وسلم په زمانه کښ د عربو يهودي عالمان په دے پوه شوي وُو او په خوله ئے د دے خبرے ګواهي کړي وه چه محمد ﷺ حق نبي دے دَ هغه په تعليم کښے او دَ مخکښنو پيغمبرانو په تعليم کښ هيڅ فرق نشته. د دے ګواهئ نه روستو چه هغوئ کړې دي هغه صرف دَ بد نيتئ دَ ضد او دَ حق د دشمنئ په وجه کړي دي. او د دا حق سره دشمني کول دَ هغوئ هغه پخوانے عادت وُو کوم چه دَ سوؤنو کالو راسے په هغوئ کښ را روان وُو.

[٧٤] يعني نۀ يوازے دا چه انکار ئے وُکړو بلکه د انکار سره ئے مخالفت هم شروع کړو، او دَ خدائے د لارے نه د خلقو د راارولو په کوشش کښ ئے ډير زور وُ لګوؤ، شکونه ئے پيدا کړل، بدګمانئ ئے خورے کړے، په زړونو کښ ئے دسوسے واچولے، خطرناک سازشونه او شرارتونه ئے وُکړل د ټول ئے د دے د پاره وُکړل چه نبي ﷺ په خپل مقصد کښ کامياب نۀ شي.

تَوْبَتُهُمْ ۚ وَأُولَٰٓئِكَ هُمُ الضَّآلُّونَ ﴿٩٠﴾ إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَمَاتُوا وَهُمْ كُفَّارٌ فَلَن يُقْبَلَ مِنْ أَحَدِهِم مِّلْءُ الْأَرْضِ ذَهَبًا وَلَوِ افْتَدَىٰ بِهِۦٓ ۗ أُولَٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ وَمَا لَهُم مِّن نَّٰصِرِينَ ﴿٩١﴾

لَن تَنَالُوا الْبِرَّ حَتَّىٰ تُنفِقُوا مِمَّا تُحِبُّونَ ۚ

تيليږي، دا سے خلق خو پاخه ګمراهان دي. يقين لرئ چه کومو خلقو کفر اختيار کړو او هم د کفر په حالت کښ مړه شو په هغوئ کښ کوم يو که دا ټوله زمکه د سرو زرو ډکه کړي او د سزا نه د بچ کيدلو د پاره ئے په فديه کښ پيش کړي خو قبول به نه کړے شي. د دا سے خلقو د پاره دردناکه سزا تياره ده او هغوئ به خپل يو مددګار هم نه ويني. ع

تاسو نيکئ ته نشئ رسيدلے ترڅو چه خپل هغه څيزونه (د خدائے په لار کښ) خرچ نه کړئ د کومو سره چه تاسو مينه لرئ،[۵]

[۵] د نيکئ په باره کښ چه د هغوئ کوم غلط خيال وو، د لته هغه غلط خيال لرے کول مقصد دے. د هغوئ په دماغو کښ د وچتونه وچته نيکي دا وه چه د سوونو کالو راسے د "شرع د پابندئ" کوم خاص ظاهري شکل په هغوئ کښ جوړ شوے وو چه هغه ظاهري شکل سړے په خپل ژوند کښ راولي، او د هغوئ علماؤ چه د قانون د نرو نرو خبرو نه کوم اوږد فقهي نظام جوړ کړے وو چه سړے هغه مطابق بر صرف د خپل ژوند د ورو ورو معاملو فيصلے کوي. د دے ظاهري شرعي شکل د لاندې د يهوديانو لويو لويو "دينداړو" خلقو خپل حرص، بُخل، د حق پټولو او د حق خرڅولو خپل ټول عيبونه پټ کړي وو او د عامو خلقو په نظر کښ هغوئ نيکان خلق ښکاريدل. د هغوئ د دے غلط خيال لرے کولو د پاره هغوئ ته ويلے کيږي چه د "نيک انسان" جوړيدلو مقام د هغه څيزونو نه ډير پورته دے کوم څيزونه چه تاسو د نيکئ د پاره يو معيار ګنړلے دے. د نيکئ اصل روح د خدائے سره مينه ده، دا سے مينه چه د الله د رضا په مقابله کښ د دُنيا يو څيز هم ډير نه غوره نه وي. کوم څيز مينه چه د سړي په زړه باندې د ومره غالبه شي چه هغه څيز بيا د خدائے په مينه قربانولے نشي نو بس هم د غه بُت دے، او ترڅو چه دغه بُت سړي مات کړے نه وي، نو تر هغے پورے هغه باندې د نيکئ دروازه بنده وي. ظاهري شرعي شکل چه د دے روح نه خالي وي نو د هغے مثال د هغے چمکدار رنګ پشان دے چه هغه په چيچن اوروت لرګي د پاسه لګيدلے وي. انسان په دا سے رنګ دوکه کيدے شي خو خدائے پرنشي دوکه کيدے.

وَمَا تُنْفِقُوْا مِنْ شَيْءٍ فَاِنَّ اللّٰهَ بِهٖ عَلِيْمٌ ﴿۹۲﴾ كُلُّ الطَّعَامِ كَانَ حِلًّا لِّبَنِيْۤ اِسْرَآءِيْلَ اِلَّا مَا حَرَّمَ اِسْرَآءِيْلُ عَلٰى نَفْسِهٖ مِنْ قَبْلِ اَنْ تُنَزَّلَ التَّوْرٰىةُ ؕ قُلْ فَاْتُوْا بِالتَّوْرٰىةِ فَاتْلُوْهَاۤ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۹۳﴾ فَمَنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ مِنْۢ بَعْدِ ذٰلِكَ فَاُولٰٓئِكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۹۴﴾ قُلْ صَدَقَ اللّٰهُ ۫

او هغه چه تاسو خرچ کړئ الله پدهغې نه ناخبره نه دی .

دَ خوراک داټول شيزونه (چه دَ محمدٌ په شريعت کښې حلال دی) دَ بنی اسرائيلو دپاره هم حلال وُو[۲۶] البته بعضې شيزونه داسې وُو چه هغه دَ توراة دنازليدو نه مخکښې اسرائيل[۲۷] پخپله پخپل ځان حرام کړی وُو . ورته ووايه که تاسو (په خپل اعتراض کښې) رښتينې يئ نو راوړئ توراة او د هغې عبارت پيش کړئ ـــ ددې نه روستو هم چه څوک خپلې دروغ خبرې په خدائے پورې تړي هغه په حقيقت کښې ظالمان دی . ورته ووايه چه خدائے څه ويلې دی رښتيا ئے ويلې دی ،

[۲۶] په قرآن باندې او دَ محمد صلی الله عليه وسلم په تعليماتو باندې چه دَ يهودو عالمانو څه اُصولی اعتراض ونه کړے شو ځکه چه دَ دين بُنياد په کومو خبرو باندې په هغې کښې او دَ مخکنو پيغمبرانو په تعليم کښې او دَ نبی عربی[ؐ] په تعليم کښې دَ ديخته هومره فرق نه وُو) نو بيائے نقهی اعتراضونه شروع کړل . په دې سلسله کښې دَ هغوی او لنه اعتراض دا وُو چه محمدؐ د خوړک څکاک بعضې داسې شيزونه حلال کړی دی چه هغه دَ مخکنو پيغمبرانو د زمانې نه حرام راروان دی . ددې اعتراض دلته جواب ورکړے شوے دے .

[۲۷] دَ "اسرائيل" نه که مُراد بنی اسرائيل واخستې شی نو مطلب به ئے دا وی چه هغوی دَ توراة دنازليدو نه وړاندې بعضې شيزونه هسې درسم ورواج په طور حرام کړلی وُو . او که دَ "اسرائيل" نه مراد حضرت يعقوبؑ واخستې شی نو مطلب به ئے دا وی چه بعضې شيزونه دَ هغهٔ طبيعت ته نه ښکيدل او په دې وجه ئے خوښ نه وُو او يا خوئے دَ بعضې شيزونو دَ خپل څه مرض په وجه ځان ساتلو او بيا روستو دَ هغهٔ اولاد هغه شيزونه حرام وګڼړل . دا روستنئ روايت زيات مشهور دے . او دريمه دا دے روستو آيت نه دا خبره صفا ښکاري بيږی چه دَ اُوښ او دَ سُوئے وغيره دَ حراموالی کوم حکم چه په بائبل کښې ليکلے شوے دے هغه دَ اصل توراة حُکم نه دے بلکه يهودی عالمانو پکښې روستو دَ ځان نه داخل کړے دے .

(دَ تفصيلی بحث دپاره اوګوره سورة انعام حاشيه نمبر ۱۲۲)

وقف جبرئيل عليه السلام

فَاتَّبِعُوا مِلَّةَ إِبْرٰهِيمَ حَنِيفًا ۖ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِينَ ﴿٩٥﴾ إِنَّ أَوَّلَ بَيْتٍ وُضِعَ لِلنَّاسِ لَلَّذِي بِبَكَّةَ مُبٰرَكًا وَّهُدًى لِّلْعٰلَمِينَ ﴿٩٦﴾ فِيهِ اٰيٰتٌ بَيِّنٰتٌ مَّقَامُ إِبْرٰهِيمَ ۚ وَمَنْ

تاسو له پکار دي چه یو مخیزه شئ او د ابراهیمؑ په طریقه پسې روان شئ او ابراهیمؑ د مشرکانو نه نه وو ۸۸.

بېشکه د ټولو نه اولنی عبادتګاه چه انسانانو دپاره جوړ شوې ده هغه هم دغه ده چه دا په مکه کښې ده. دې له برکت ورکړې شوې وو او د ټول جهان والو دپاره د هدایت مرکز جوړ شوې وو ۸۹. په دې کښې ښکاره نښې دي ۹۰، د ابراهیمؑ د عبادت ځائې دې، او د دې حال دا چه څوک

۸۸ مطلب دا دې چه په دې فقهي وړو وړو خبرو کښې ولې نښتي يئ. د دين جرړه خو د یو خدای بندګي ده چه هغه تاسو پرېښودله او د شرک په ګندګۍ کښې اخته شوئ. او بیا هیله بیله په فقهي مسئلو کښې بحث کوئ، حالانکه دا خو هغه مسئلې دي چه کله تاسو د اصلي ابراهيمي طريقې نه واوړيدئ او د تنزل او ږدې صدئ در باندې تېرې شوې نو تاسو عالمانو نوې نوې خبرې ولټول شروع کړې او دا مسئلې پیدا شوې.

۸۹ د یهودیانو دویم اعتراض دا وو چه تاسو بيت المقدس ولې پرېښو او د کعبې مو قبله ولې جوړه کړه، حالانکه د پخوانو پيغمبرانو قبله بيت المقدس وه. د دې جواب په سورة بقره کښې ورکړې شوې دې. ليکن يهوديان د دې نه روستو هم په خپل اعتراض ټینګ وو. د دې وجه نه دلته بیا د دې جواب ورکړې شوې دې. د بيت المقدس په حقله خو چېرته په بائبل کښې دا شهادت موجود دې چه د حضرت موسیٰؑ نه څلور نیم سوه کاله روستو حضرت سليمانؑ دا آباد کړو (۱. سلاطين، باب ۶ - آيت ۱). او هم د حضرت سليمانؑ په زمانه کښې د اهل توحيد د قبلې جوړه کړې شوه (د هغه کتاب، باب ۸، آيت ۲۹ - ۳۰). د دې نه برعکس د ټولو عربو په دې اتفاق دې چه کعبه حضرت ابراهيمؑ جوړه کړې ده او هغه د حضرت موسیٰؑ نه اته نهه سوه کاله مخکښې تېر شوې دې. لهذا کعبه اولنی عبادت خانه ده او د دې اوليت د چه په دې کښې خبرو کولو ته حاجت نشته.

۹۰ يعني په دې کور کښې داسې ښکاره علامې دي چه د هغې نه دا ثابتيږي چه دا د الله په دربار کښې قبول شوې دې او منتخب د خپل کور په حيثيت سره خوښ کړې دې. دا کور په سوړ بيابانونو کښې جوړ کړې شو او بیا د هغې په خوا کښې د وسیدو د خلقو دپاره الله تعالیٰ د رزق رسولو ښه تېکلی انتظام وکړو. د دوه نیم زره کالو پورې په ټول عرب کښې د جاهلیت د وجې سخته بې امنۍ وه، خو د بې امنۍ او د فساد په دې زمانه کښې يو کعبه او د کعبې خوا او شا علاقه داسې وه چه په هغې کښې امن وو. بلکه د دې کعبې د برکت د وجې په ټول کال کښې پوره څلور میاشتې ټول وطن ته د دې په وجه امن

دَخَلَهُ كَانَ اٰمِنًا ؕ وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ اِلَيْهِ سَبِيْلًا ؕ وَمَنْ كَفَرَ فَاِنَّ اللّٰهَ غَنِيٌّ عَنِ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۹۷﴾ قُلْ يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تَكْفُرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ۖۗ وَاللّٰهُ شَهِيْدٌ عَلٰى مَا تَعْمَلُوْنَ ﴿۹۸﴾ قُلْ يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ لِمَ تَصُدُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ مَنْ اٰمَنَ تَبْغُوْنَهَا عِوَجًا وَّاَنْتُمْ شُهَدَآءُ ؕ وَمَا اللّٰهُ بِغَافِلٍ عَمَّا تَعْمَلُوْنَ ﴿۹۹﴾

ورد اخل شو نو په امن شو[۸۱]. په خلقو باندې د الله دا حق دے چه څوک دے کور ته د رسید لو طاقت لري هغه دِ د دے حج وکړي، او چه څوک د دے حکم د منلو نه انکار وکړي نو پکار دي چه دا ورته معلومه شي چه الله د ټولے دنیا د مخلوق نه بے نیازه دے.

ورته ووایه، اے اهل کتابو، تاسو ولے د خدائے د خبرو منلو نه انکار کوئ؟ تاسو چه څه حرکتونه کوئ هغه ټول الله وینې. ورته ووایه، اے اهلِ کتابو، دا ستاسو څه طریقه ده چه څوک د الله خبره مني هغه هم د الله د لارے نه منع کوئ او غواړئ چه هغه په کږه لاره لاړ شي، حالانکه تاسو پخپله ګواهان یئ (چه هغه په نیغه لاره دے) ستاسو د حرکتونو نه الله ناخبره نه دے.

حاصل وُو. او بیا اوس پنځوس کاله وړاندې دا واقعه تیره شوې وه چه کله اَبرَهه د کعبے د ورانولو د پاره په مکه باندې حمله وکړه نو د هغه فوج څنګه د الله په قهر اخته شوا و ختم شو. د دے واقعے نه په هغه وخت کښې د عربو بچے بچے خبر وُو، او د دے آیتونو د نازلید و په وخت کښې هغه خلق موجود وُو چا چه دا واقعه په خپلو سترګو لیدلې وه.

[۸۱] د جاهلیت په دور کښې هم د دے کور دا عزت او احترام وُو چه کوم دُشمنان به یو بل وینو څکلو ته تیار وُو هغوئ به هلته یو بل ښه لیدلو خو په یو بل به ئې د لاس وچتولو زړه نه ورتیا نشوه کولے.

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِن تُطِيعُواْ فَرِيقٗا مِّنَ ٱلَّذِينَ أُوتُواْ ٱلۡكِتَٰبَ يَرُدُّوكُم بَعۡدَ إِيمَٰنِكُمۡ كَٰفِرِينَ ﴿١٠٠﴾ وَكَيۡفَ تَكۡفُرُونَ وَأَنتُمۡ تُتۡلَىٰ عَلَيۡكُمۡ ءَايَٰتُ ٱللَّهِ وَفِيكُمۡ رَسُولُهُۥۗ وَمَن يَعۡتَصِم بِٱللَّهِ فَقَدۡ هُدِيَ إِلَىٰ صِرَٰطٖ مُّسۡتَقِيمٖ ﴿١٠١﴾ ع يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ ٱتَّقُواْ ٱللَّهَ حَقَّ تُقَاتِهِۦ وَلَا تَمُوتُنَّ إِلَّا وَأَنتُم مُّسۡلِمُونَ ﴿١٠٢﴾ وَٱعۡتَصِمُواْ بِحَبۡلِ ٱللَّهِ جَمِيعٗا وَلَا تَفَرَّقُواْۚ

ع ١٠

---

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، که تاسو په اهل کتابو کښې د یو ډلے خبره ومنله نو دوئ به تاسو د ایمان نه بیا کفر ته واړوی. او ستاسو د پاره کفر ته د واپس تللو څه بهانه پاتے ده اوس چه تاسو ته د الله آیتونه اوروله کیږی او کښې د خدائے رسول په تاسو کښې موجود دے؟ چا چه د الله لمن بنه په مضبوطیا سره ونیوله هغه ضرور سیغه لاره بیا موندله.ع

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، د الله نه ویریږئ لکه څنګه چه د هغه نه د ویریدلو حق دے. تاسو له د مرګ نه راځی، خو که راځی نو په دے حال کښې د راشی چه تاسو مسلمانان یئ.[٨٢] ټول راجمع شئ او د الله رسئ[٨٣] مضبوطه ونیسئ او د ډله بازی مه کوئ.

---

[٨٢] یعنی د مرګه پورے د الله فرمانبردار او وفادار بنده ګان جوړ شئ.

[٨٣] د الله د رسئ نه مراد د هغه دین دے، او دا رسئ ورته ځکه ویلے شوے ده چه دا یو طرفته د ایمان والو تعلق د الله سره قائموی او بل طرفته ټول ایمان والا اخپلو کښې دا یو ځائے کوی او یو جماعت ترے جوړوی. د دے رسئ د "مضبوطے نیولو" نه مراد دا دے چه د مسلمان په نظر کښې د اصلی اهمیت د "دین" وی، د دین سره د هغوئ د زړه مینه وی، د دین قائمولو د پاره د کوشش کوی او د دین د خدمت د پاره د دیو بل سره امداد کوی - چرته چه د دین د بنیادی تعلیماتو او د هغے د قائمولو د مقصد نه مسلمان په وده شوے دے او هغوئ دین ورو ورو خبرو ته راګرزیدلی ده نو په هغوئ کښې بیا خامخا هغه ډله بازی او اختلافات راځی دے چه هغے د مخکنو پیغمبرانو امتیان په دُنیا او په آخرت دواړو کښې رسوا کړی دی.

وَاذْكُرُوا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ إِذْ كُنْتُمْ أَعْدَآءً فَأَلَّفَ بَيْنَ قُلُوبِكُمْ فَأَصْبَحْتُمْ بِنِعْمَتِهِ إِخْوَانًا ۚ وَكُنْتُمْ عَلٰى شَفَا حُفْرَةٍ مِّنَ النَّارِ فَأَنْقَذَكُمْ مِّنْهَا ۗ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهِ لَعَلَّكُمْ تَهْتَدُونَ ﴿۱۰۳﴾ وَلْتَكُنْ مِّنْكُمْ أُمَّةٌ يَّدْعُونَ إِلَى الْخَيْرِ وَيَأْمُرُونَ

دَ الله هغه احسان را یاد کړئ کوم چه هغه پر تاسو باندِ کړے دے. تاسو دَ یو بل دُشمنان وئ، هغه ستاسو په زړونو کښ محبت واچوۀ او دَ هغه په فضل سره تاسو رونړه رونړه شوئ. تاسو دَ وُور دَ یوے کندے په غاړه ولاړ وئ، الله تاسو دَ هغے نه بچ کړئ.[۸۴] دغه شان الله تاسو ته خپلے نښے واضحه ښکاره کوی کیدے شی چه ددے نښو په ذریعه تاسو ته دَ خپل خلاصی نیغه لار په نظر راشی.[۸۵]

په تاسو کښ څه خلق ضرور داسے پکار دی چه نیکئ ته رابلل کوی، دَ ښه کار

[۸۴] دا دَ عربو هغے حالت ته اشاره ده چه دَ اسلام نه مخکښ پکښ هغوئ اخته وُو. دَ قبائیلو خپلو کښ دشمنی وه، په هره خبره دَ هغوئ جنګ جګړے وے، او شپه او ورځ قتلونه وُو، ددے په وجه قریبه وه چه ټول عرب قوم ختم شوے وے. په دے وُور کښ دَ سوزیدو نه چه څه څیز هغوئ بچ کړل هغه فقط دا اسلام نعمت وُو. دا آیتونه چه په کوم وخت کښ نازل شوی دی دَ هغے نه درے څلور کاله مخکښ دَ مدینے خلق مسلمانان شوی وُو، او دَ اسلام دا ښکاره نعمت هر چا لید و چه دا اوس او دَ خزرج کومے قبیلے دَ کلونو راسے دَ یو بل دینوته تګی ناستے وُ، هغوئ په خپلو کښے خواږۀ شوی وُو، او ددے دواړو قبیلو دَ مکے دَ مهاجرینو سره داسے بے مثاله محبت کولو چه دَ یو خاندان خلق هم هغسے محبت په خپلو کښ نشی کولے.

[۸۵] یعنی که چرے تاسو ستر کے لرئ نو ددے نښو په لیدلو سره چنیله اندازه لګولے شئ چه آیا ستاسو خلاصے ددے دین په مضبوط نیولو کښ دے او که نه چه دا پریږدئ او واپس هغے خپل زوړ حالت ته لاړشئ؟ آیا ستاسو اصلی خیرخواه الله او دَ هغهٔ رسول دے او که نه هغه یهودیان او مشرکان او منافقان خلق دی چه پخوانی حالت ته مو دِ واپس بوتللو کوشش کوی؟

بِالْمَعْرُوْفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ ۚ وَاُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُفْلِحُوْنَ ﴿۱۰۴﴾ وَلَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ تَفَرَّقُوْا وَاخْتَلَفُوْا مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَهُمُ الْبَيِّنٰتُ ۚ وَاُولٰٓئِكَ لَهُمْ عَذَابٌ عَظِيْمٌ ﴿۱۰۵﴾ يَّوْمَ تَبْيَضُّ وُجُوْهٌ وَّتَسْوَدُّ وُجُوْهٌ ۚ فَاَمَّا الَّذِيْنَ اسْوَدَّتْ وُجُوْهُهُمْ ۣ اَكَفَرْتُمْ بَعْدَ اِيْمَانِكُمْ فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ ﴿۱۰۶﴾ وَاَمَّا الَّذِيْنَ ابْيَضَّتْ وُجُوْهُهُمْ فَفِيْ رَحْمَةِ اللّٰهِ ۭ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿۱۰۷﴾ تِلْكَ اٰيٰتُ اللّٰهِ نَتْلُوْهَا عَلَيْكَ بِالْحَقِّ ۭ

---

حکم کوی او دَ بدو نه منع کول کوی. کوم خلق چه دا کار کوی هغوئ به خلاصے بیا موهی. چرته تاسو دَ هغے خلقو پشان نشئ چه په ډلو کښ تقسیم شو، او دَ صفا واضح هدایا تو موندلو نه روستو بیا په اختلافاتو کښ اخته شو[۸۶] کوم خلقو چه دا طریقه اختیار کړه هغوئ به په هغه ورځ سخته سزا بیا موهی په کومه ورځ چه څه خلق به خوشحاله سپین مخی وی او څه خلق به خفه تور مخی وی، دَ چا مخو نه چه تور وی، (هغوئ ته به وویلے شی چه) آیا تاسو دَ ایمان غوندے لوئ نعمت موندلو نه روستو هم دَ کفر لاره اختیار کړه؟ ښه ده نو اوس دَ دے نعمت دَ ناشکرئ په بدله کښ دَ عذاب مزه وڅکئ. پاتے شو هغه خلق چه مخونه به ئے روښانه وی نو هغوئ ته به دَ الله په رحمت کښ ځائے ملاؤ شی او همیشه به په دغه حالت کښ وسیږی. دا دالله حکمونه دی چه مونږ دے تیک تیک تا ته اورَ وُو

---

[۸۶] دا هغه اُمتو نو طرفته اشاره ده چه دَ خدائے د طرفنه ورته دَ پیغمبرانو په ذریعه دَ حق دین خبره صفا صفا رسیدلے وه خو چه څه موده پرتیره شوه نو هغوئ دَ دین بنیادی خبرے پریښودلے او دَ وړو وړو مسئلو په بنیاد بانديځ ځان له جُدا جُدا دلے جوړے کړلے، او بیا په بے مطلبه خبرو باندے په جګړو کښ داسے مشغوله شو چه نه ئے هغه کار په خیال کښ راتلو کوم چه ورته الله حواله کړے وُو او نه ئے دَ عقیدے او دَ اخلاقو هغه بُنیادی اُصولو سره څه مینه پاتے شوه کوم چه دَ انسان دَ کامیابئ او دَ نیک بختئ دپاره په حقیقت کښ ضروری دی.

وَمَا اللّٰهُ يُرِيدُ ظُلْمًا لِّلْعٰلَمِينَ ﴿١٠٨﴾ وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ۭ وَاِلَى اللّٰهِ تُرْجَعُ الْاُمُوْرُ ﴿١٠٩﴾ كُنْتُمْ خَيْرَ اُمَّةٍ اُخْرِجَتْ لِلنَّاسِ تَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَتَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَتُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ ۭ وَلَوْ اٰمَنَ اَھْلُ الْكِتٰبِ لَكَانَ خَيْرًا لَّھُمْ ۭ مِنْهُمُ

ځکه چه الله په دُنیا والو بانـدِ دَ ظلم کولو هیڅ اراده نه لري[۸۹] دَ زمکے او دَ آسمانونو دَ ټولو څیزونو مالک الله دے او ټول معاملے به الله ته پیش کیږی۔ ع

اوس په دُنیا کښ دَ ټولونه بهتره ولهٔ تاسو یئ چه انسانانو ته دَ لار ښودنے او دَ هغوئ دَ حالت درست کولو دپاره میدان ته راایستلی شوی یئ[۸۷]. تاسو دَ نیکئ حکم کوئ، دَ بدئ نه منع کول کوئ او په الله بانـدِ ایمان لرئ۔ که دے اهلِ کتابو[۸۸] ایمان راوړے وے نو دا بهٔ دَ هغوئ په حق کښ بهتره وه. اګرچه په هغوئ کښ څه خلق

[۸۹] یعنی الله په دُنیا والو بانـدِ ظلم کول نهٔ غواړي ځکه خو ورته سیده لار ښائي او دَ وخت نه مخکښ یئ دے خبرے نه خبره وی چه په آخرت کښ به الله تعالیٰ دَ کوم څیز د تپوس کوی. دے نه روستو هم چه خلق په کږه لاره لاړ شی او د خپلو غلطو کارونو نه منع نهٔ شی نو هغوئ به څپله څپل ځان ظلم کوی۔

[۸۷] داهغه خبره ده چه د سورۃ بقرے په اولسمه رکوع کښ بیان شوی ده. دَ نبی عربی صلی الله علیه وسلم اُمتیانو ته وائي چه دَ دُنیا دَ مشرئ او دَ رهنمایئ کوم منصب دَ بنی اسرائیلو نه دَ هغوئ دَ نااهلئ په وجه واخستلے شو اوس هغه تاسو ته حواله شوے دے. ځکه چه دَ ښهٔ اخلاقو او دَ ښهٔ عملونو په وجه اوسے په دُنیا کښ دَ ټولو نه بهتره ولهٔ تاسو یئ، او په تاسو کښ هغه صفتونه پیدا شوی دی کوم چه دَ انصاف دار پاد شاهئ او مشرئ دپاره ضروری دی. یعنی دَ نیکئ دَ قایمولو کار او دَ بدئ دَ ختمولو کار او یو الله خپل رب او دَ عبادت لائق منل، په دے هم عقیده لرل او ددے مطابق هم کار کول. نو په دے وجه اوس دا کار تاسو ته حواله شوے دے او ستاسو دپاره ضروری ده چه خپلے ذمه واری و پیژنئ او دَ هغے غلطونه ځان بچ کرئ کومے چه ستاسو نه مخکښ تومونو کړی دی. (اوګورۀ سورۃ بقره حاشیه ۱۲۳ و ۱۴۴)

[۸۸] دلته دَ اهل کتابو نه مُراد بنی اسرائیل دی۔

الْمُؤْمِنُونَ وَأَكْثَرُهُمُ الْفٰسِقُونَ ﴿١١٠﴾ لَن يَضُرُّوكُمْ إِلَّا أَذًى ۖ وَ
إِن يُقَاتِلُوكُمْ يُوَلُّوكُمُ الْأَدْبَارَ قف ثُمَّ لَا يُنصَرُونَ ﴿١١١﴾
ضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ الذِّلَّةُ أَيْنَ مَا ثُقِفُوا إِلَّا بِحَبْلٍ مِّنَ اللَّهِ وَ
حَبْلٍ مِّنَ النَّاسِ وَبَاءُو بِغَضَبٍ مِّنَ اللَّهِ وَضُرِبَتْ عَلَيْهِمُ
الْمَسْكَنَةُ ۚ ذٰلِكَ بِأَنَّهُمْ كَانُوا يَكْفُرُونَ بِاٰيٰتِ اللَّهِ وَ
يَقْتُلُونَ الْأَنْبِيَاءَ بِغَيْرِ حَقٍّ ۚ ذٰلِكَ بِمَا عَصَوا وَّكَانُوا
يَعْتَدُونَ ﴿١١٢﴾ لَيْسُوا سَوَاءً ۗ مِّنْ أَهْلِ الْكِتٰبِ أُمَّةٌ قَائِمَةٌ

ايمان دار هم دي خو اکثر خلق ئې نافرمانه دي. دوئ تاسو ته هيڅ ضرر نشي دررسولے، زيات نه زيات
بس تکول کولے شي. او که دوئ تاسو سره جنګ شروع کړو نو په مقابله کښ به شا کوي تختي به،
بيا به داسې بې وسه وي چه د هيڅ ځائے نه به ورته امداد نه ملاويږي. دوئ چه په کوم ځائے
کښ موندلے شوي دي هلته پرې د ذلت شرق را پريوتے دے، او چرته چه د الله يا د انسانانو
پناه ورته ملاؤ شوې ده نو هغه بيله خبره ده[نفے]. دوئ د الله په غضب کښ ګير شوي دي،
په دوئ باندې محتاجي او غلامي راوستلے شوې ده، او دا ټول هر څه په دے وجه
شوي دي چه دوئ د الله د آيا تو نو سره کفر کولو، او پيغمبران ئې ناحقه قتل کړل.
دا د هغوئ د نافرمانئ کولو او د حد نه د وتلو انجام دے.

خو دا ټول اهل کتاب يو شان نه دي، په دوئ کښ څه خلق داسې هم دي چه په نيغه لار روان دي،

نفے يعني په دُنيا کښ کچرته څرلږ ډيرامن ورته نصيب شوے هم دے نو هغه ورته د خپل زور
او طاقت په وجه نه دے نصيب شوے بلکه د بل په زور او د بل د مهربانئ په وجه ورته نصيب شوے دے
يا خو ورله چرته يو مسلمان حکومت د خدائے په نوم امان ورکړے دے او يا چرته يو غير مسلم حکومت په
خپل حمايت کښ اخستلي دي. د غه شان د يرځلے ورته په دُنيا کښ بنده د زور مرتبه هم ملاؤ شوې
ده، خو د خپلو مټو په طاقت نه بلکه صرف د بل په مرسته.

يَتْلُوْنَ اٰيٰتِ اللّٰهِ اٰنَآءَ الَّيْلِ وَهُمْ يَسْجُدُوْنَ ﴿١١٣﴾ يُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَيَاْمُرُوْنَ بِالْمَعْرُوْفِ وَيَنْهَوْنَ عَنِ الْمُنْكَرِ وَيُسَارِعُوْنَ فِي الْخَيْرٰتِ ؕ وَاُولٰٓئِكَ مِنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿١١٤﴾ وَمَا يَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ فَلَنْ يُّكْفَرُوْهُ ؕ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِالْمُتَّقِيْنَ ﴿١١٥﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَنْ تُغْنِيَ عَنْهُمْ اَمْوَالُهُمْ وَلَآ اَوْلَادُهُمْ مِّنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا ؕ وَاُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ النَّارِ ۚ هُمْ فِيْهَا خٰلِدُوْنَ ﴿١١٦﴾ مَثَلُ مَا يُنْفِقُوْنَ فِيْ هٰذِهِ الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا كَمَثَلِ رِيْحٍ فِيْهَا صِرٌّ اَصَابَتْ حَرْثَ قَوْمٍ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَاَهْلَكَتْهُ ؕ وَمَا ظَلَمَهُمُ اللّٰهُ

په شپو کښ د الله آيا تو نه لولی او هغه ته سجده لګوی، په الله او په ورځ د آخرت باندِ ايمان لری، د نيکۍ حکم کوی او د بدۍ نه منع کول کوی او د نيکۍ په کارونو کښ مسلږے وهی. دا صالحان خلق دی او دوی چه څه نيکی وکړی د هغے به ناقدری نه کيږی، الله پرهيزګار خلق ښه پيژنی. باقی شو هغه خلق چه د کفر لار ئے اختيار کړی ده نو د الله په مقابله کښ به نهٔ خپل مال د هغوی څه په کار راشی او نهٔ اولاد، هغوی دُورته تلونکی خلق دی او په دُوږ کښ به هميشه وی. څه چه هغوی د دے دُنيا په دے ژوند کښ خرچ کوی د هغے مثال د هغے هوا پشان دے چه په هغے کښ سخت يخ والے وی (يعنی چنګي وی)[١] او د هغے خلقو په فصل باندِ راشی چه په ځان ئے ظلم کړے وی او هغه ورله تباه او برباد کړی. الله په هغوی باندِ ظلم نهٔ دے کړے

[١] په دے مثال کښ د پټي نه مُراد د ژوند پټے دے چه سړے ئې تر فصل په آخرت کښ ريبي. د هوا نه مُراد د نيکۍ هغه سرسری جذبه ده چه د هغے په وجه دا کافران د خير ښيګړے په کارونو کښ دولت لګوی. او د سخت يخوالی نه مُراد صحيح ايمان نهٔ لرل او د خدائے نافرمانی کول دی. په دے مثال بيا نو لو کښ د الله تعالیٰ دا مطلب دے چه لکه څنګه هوا د پټو د پاره فائده منده ده خو که په دے هوا کښ سخت يخوالے وی نو بيا پټي له د فائدے په ځائے نقصان ورکوی، د غه شان خيرات هم د آخرت پټي ته وده ورکونکے څيز دے. خو چه کله په کښ د کفر زهر ملاؤ وی نو دغه خيرات بيا د فائدے په ځائے د تباهۍ

وَلٰكِنْ اَنْفُسَهُمْ يَظْلِمُوْنَ ﴿۱۱۷﴾ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوْا بِطَانَةً مِّنْ دُوْنِكُمْ لَا يَاْلُوْنَكُمْ خَبَالًا ؕ وَدُّوْا

په حقيقت کښې دوئ پخپله په خپل ځان ظلم کوي.

اے هغه خلقو چه ايمان مو راوړے دے، د خپل جماعت د خلقو نه علاوه نور څوک خپل رازدار مه جوړوئ. هغوئ ستاسو د خرابولو د پاره يوه موقع نه خطا کوي.[۹۲] تاسو ته چه په څه تکليف

سبب جوړيږي. ښکاره خبره ده چه د انسان مالک الله دے او کوم مال چه د انسان په لاس کښې دے د هغے مالک هم الله دے او د ا ټوله بادشاهي د الله ده چه د انسان پکښې ژوند تيروي او کار ونه کوي. اوس که چرے د الله دا غلام خپل مالک د اعلی اختيار اتو والا هستي نه مني، يا په بندګئ کښې ورسره بل څوک شريک کړي، او د الله د مال نه فايده اخلي او د هغه په بادشاهئ کښې ګرزي او د هغه قانون نه مني، نو بيا دده دا ټوله منډه ترړه د يو مجرم په حيثيت ده. انعام به ورته څنګه ملاؤ شي هغه خو د دے مستحق مه چه د دے غلطو کارونو په وجه پرِ مقدمه وچلولے شي. د هغه د خيرات مثال د اسے دے لکه چه يو نوکر د خپل مالک د اجازت نه بغير د مالک خزانه پرانزي او په خپله طبعه ئے لګوي

[۹۲] د مدينے په اطرافو کښې چه کوم يهوديان و سيدل د هغوئ سره د اوس او د خزرج د خلقو د پخوانئ زمانے نه دوستي را روانه وه - چه خپلو کښې ئے د يو بل سره دوستانے هم وے او د يو بل سره ئے کاونډ کيري او معاهدے هم وے. کله چه د اوس او د خزرج قبيلے مسلمانے شوے نو بيا روستو ئے هم د يهوديانو سره هغه زاړه تعلقات وُو او د يو بل سره به په مينه محبت ملاويدل. ليکن د يهوديانو چه د نبي عربي صلی الله عليه وسلم او د هغه د کار سره کومه دشمني وه د هغے په وجه هغوئ د هغے چا سره خالصے دوستئ کولو ته تيار نه وُو څوک چه په دے نوي تحريک کښې شامل شوي وُو. هغوئ خو په ظاهره د انصارو سره هغه پخواني تعلقات ساتل، خو په زړه کښې ئے اوس سخت دشمنان شوي وُو، او د دے ظاهره دوستانے نه به ئے ناجائزه فايده اخستله او هر وخت به په دے کوشش کښې وُو چه په څه طريقه په مسلمانانو کښې د ننه فتنه او فساد راپورته کړي، د هغوئ جماعتي راز معلوم کړي او د هغوئ دشمنانو ته ئے ورسوي. الله تعالی دلته مسلمانانو ته دا هدايات کوي چه د دوئ د دے منافقت نه ځان هوښيار ساتئ.

---

مَا عَنِتُّمْ ۚ قَدْ بَدَتِ الْبَغْضَآءُ مِنْ اَفْوَاهِهِمْ ۖۚ وَمَا تُخْفِيْ
صُدُوْرُهُمْ اَكْبَرُ ؕ قَدْ بَيَّنَّا لَكُمُ الْاٰيٰتِ اِنْ كُنْتُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿۱۱۸﴾
هٰۤاَنْتُمْ اُولَآءِ تُحِبُّوْنَهُمْ وَلَا يُحِبُّوْنَكُمْ وَتُؤْمِنُوْنَ بِالْكِتٰبِ كُلِّهٖ ۚ
وَاِذَا لَقُوْكُمْ قَالُوْۤا اٰمَنَّا ۖۚ وَاِذَا خَلَوْا عَضُّوْا عَلَيْكُمُ الْاَنَامِلَ
مِنَ الْغَيْظِ ؕ قُلْ مُوْتُوْا بِغَيْظِكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ﴿۱۱۹﴾
اِنْ تَمْسَسْكُمْ حَسَنَةٌ تَسُؤْهُمْ ۫ وَاِنْ تُصِبْكُمْ سَيِّئَةٌ يَّفْرَحُوْا
بِهَا ؕ وَاِنْ تَصْبِرُوْا وَتَتَّقُوْا لَا يَضُرُّكُمْ كَيْدُهُمْ شَيْـًٔا ؕ

نقصان دررسی هغه دَ هغوئ خوښ وی. دَ هغوئ دَ زړونو بُغض دَ هغوئ دَ خولو نه راوُځی او څه چه ئے په سینوکښ پټ پراته دی هغه دد ے نه زیات سخت دی. مونږ تاسو ته صفا صفا هدایات درکړی دی که تاسو عقل لرئ ( نو دَ دوئ سره به په تعلقاتو ساتلوکښ احتیاط کوئ). تاسو خو دَ دوئ سره مینه کوئ خو دَ هغوئ ستاسو سره مینه نشته سره دَ دے چه تاسو ټول آسمانی کتابونه منئ.[93] کله چه هغوئ ستاسو سره ملاویږی نو وائی چه مونږه هم ( ستاسو رسول او ستاسو کتاب) منلے دے، خو چه کله ستاسو نه جُدا شی نو ستاسو خلاف دَ ډیر قهر او دَ ډیرے غُصے نه خپلے گوتے چیچی —— ورته ووایه چه په خپله غصه کښ وَ سوزئ مره شئ، الله دَ زړونو په پټو رازونو پوهیږی —— که ستاسو ښیگړه کیږی نو په هغے خفه کیږی او که په تاسو مصیبت راځی نو په هغے خوشحالیږی. او دَ هغوئ دَ فریب تدبیرونه تاسو ته هیڅ ضرر نشی دررسولے خو که تاسو دَ صبر نه کار واغستو او دَ خدائے نه مو په یَره یَره کار کَولو.

[93] یعنی دا یو عجیبه کار دے، پکار داوه چه تاسو دَ هغوئ نه گِله شکایت کولے، نو اُلٹا هغوئ ستاسو نه شکایت کوی. تاسو خو دَ قرآن سره توراة هم منئ نو په دے وجه دَ هغوئ گِله بے ځایه ده. البته که گِله کوئ نو تاسو به ترے کوئ ځکه چه هغوئ قرآن نه منی.

إِنَّ اللّٰهَ بِمَا يَعْمَلُونَ مُحِيطٌ ﴿١٢٠﴾ وَإِذْ غَدَوْتَ مِنْ أَهْلِكَ تُبَوِّئُ الْمُؤْمِنِينَ مَقَاعِدَ لِلْقِتَالِ ۗ

څه چه دوئ کوی هغه دَ الله په قابو کښ دی.[۹۳]

(اے پیغمبره، مسلمانانو ته دَ هغې موقعې ذکر وُکړه) کله چه ته سحر وختی دَ خپل کور نه وتلے وے او (دَ اُحُد په میدان کښ دَ) مسلمانان دَ جنګ دپاره ځائے په ځائے مقرروَل.

[۹۳] دَ دے ځائے نه څلورم خطبه شروع کیږی. دا خطبه دَ جنګِ اُحد نه روستو نازله شوی ده او په دے کښ په جنګ اُحد باندے تبصره شوی ده. دا دریمه خطبه چه ختمیږی له نو په آخر کښ دا وئیلی شوی وُو چه دُ هغوی دَ دوکو ته بیرونه تا سوله هیڅ ضرر نشی در کولے خو که تاسو دَ صبر نه کار واخستلو او دَ خدائے نه مو پیره یره کار کولو، اوس چونکه دَ اُحد په میدان کښ دَ مسلمانانو دَ شکست وجه دا وه چه په هغوی کښے د صبر کمے وُو او په هغوئ کښ دَ څو خلقو ته دا سے غلطیانے شوی وے چه دَ خدائے نه یره پکښ نه وه، نو په دے وجه دا خطبه څلورم دغه کمزورئ پکښ په ګوته شوی دی، دَ پاسنئ نقرے نه روستو جوخته درج کړے شوه.

دا خطبه په داسے انداز بیان شوی ده چه دَ جنګ اُحد په سلسله کښ څو مره اهم واقعے راغلے وے په هغے کښ په هره واقعه باندے په بوځو مکملو فقرو کښ عبرتناکه تبصره شوی ده. په دے باندے دَ ځان پوهه کولو دپاره دَ دے پیه ورانده تاریخ باندے نظر اچول ضروری دی.

دَ هجرت په دریم کال دَ شوال دَ میاشتے په اول کښ دَ قریشو کافرانو دَ دریو زرو لښکر سره په مدینه حمله وُکړه. تعداد ئے هم زیات وُو او دَ دے نه علاوه سازو سامان ورسره هم دَ مسلمانانو په نسبت ډیر زیات وُو او دَ جنګِ بدر دَ بدلے اخستلو سخت غصه ئے هم وه. دَ نبی صلی الله علیه وسلم او دَ تجربه کارو صحابو دا رائے وه چه هم په مدینه کښ به پټ او دَ ځان حفاظت به کوو. لیکن بیو څو ځوانانو چه دَ شهادت مرګ ته لیوالهٔ وُو، او په جنګ بدر کښ ورته دَ شریکیدو موقع نهٔ وه ملاؤ شوی، هغوئ دَ مدینے نه په بهر وتلو زور وُ لګوو. دَ هغوئ دَ بار بار دَ وینا دَ وجے نه نبی صلی الله علیه وسلم دَ بهر وتلو فیصله وُکړه. زر کسان دَ هغهٔ سره وُ لاړل، خو چه شوط نومے ځائے ته وُرسیدل نو حلته تر عبدالله بن اُبی سره دَ خپلو درے سوو ملګرو جُدا شو. دَ هغهٔ په حبد اکیدلو باندے دَ مسلمانانو په لښکر کښ ډیره پریشانی خوره شوه، تر دے پورے چه دَ بنو سلمه او دَ بنو حارثه قبیلو خلق دومره زړهٔ ماتے شول چه هغوئ هم دَ واپس کیدو اراده کړی وه خو بیا دَ حوصله مند و صحابو په کوششو لو دغه پریشانی ختمه شوله. دَ دغه باقی پاتے اووه سوو کسانو سره نبی صلی الله علیه وسلم مخکښ روان شو او دَ اُحد دَ غونډئ په لمن کښ ئے (چه دَ مدینے نه تقریباً څلور میله لرے ده) خپل فوج په داسے ځائے کښ مقرر کړو چه شا ته ئے غرو وُو او مخے ته ئے دَ قریشو لښکر وُو. یوا ړخ

وَاللّٰهُ سَمِيعٌ عَلِيمٌ ﴿١٢١﴾ إِذْ هَمَّتْ طَّآئِفَتَانِ مِنكُمْ أَن تَفْشَلَا

الله تولے خبرے اَوری او په هرڅه خبردار دے۔

دا خبره یاده کړئ چه کله په تاسو کښې دوه ډلے بُزدِلئ کولو ته تیارے شوے وے[95]، او حال دا

نه صرف یوه دره دا سے وه چه دَ هغے طرف نه دَ حملے یره وه۔ نبیؐ هلته پنځوس غشي ویشتونکي د عبد الله بن جُبیرؓ په مشرئ کښې کینول او په بار بار ئے ورته دا اُووے چه "څوک مونږ ته نزده مه راپریږدئ، په هیڅ حال کښې دَ دے ځائے نه مه خوزیږئ، که تاسو دا اُوینئ چه مرغئ زمونږه غوښے تښتوی خو بیا هم دے ځائے نه مه اخوا کیږئ"۔ دَ دے نه روستو بیا جنګ شروع شو۔ اول پړه دَ مسلمانانو رُعب زیات وُو، دَ دُشمن په فوج کښې کړ بړ راغے او پریشانه شو۔ لیکن پکار دا وه چه مسلمانانو دا خپله کامیابي کامله فتح ته رسیلے وے خو هغوئ دَ دے په ځائے دَ مال غنیمت طمع وُکړه او دَ دُشمن لښکرئے لوټ کول شروع کړل۔ او کوم ځائے کښې چه نبی صلی الله علیه وسلم غشي ویشتونکي دَ حفاظت دپاره کینولی وُو، هغوئ چه وُلیدل چه دشمن تښتیدلے دے او غنیمت لوټلے کیږی، نو هغوئ هم خپل ځائے پریښودو او غنیمت طرفته ئے رامنډے کړے۔ حضرت عبدُ الله بن جُبیرؓ ورته دَ نبی صلی الله علیه وسلم بار بار وینا یاده کړه او دَ هغوئ دَ رامنع کولو ډیر کوشش ئے وُکړو خو دَ یو څو کسانو نه علاوه هلته هیڅوک پاتے نۂ شو۔ دَ دے موقعے نه خالد بن ولید، چه دَ کافرانو دَ لښکر کماندار وُو فایده واغستله او غونډئ نه راچاپیره شو او هم دَ هغے دره نه ئے دَ شا طرف نه حمله وُکړه۔ عبدُ الله ابن جُبیرؓ او ورسره پاتے شوی یو څو کسانو دَ هغوئ مقابله وُکړه خو هغوئ ئے منع نۂ کړے شو او په مسلمانانو ورغلل۔ او کوم دُشمن چه مخکښې تښتیدلی وُو هغه هم را واپس شو او دَ هغوئ سره په حمله کښې شریک شو۔ دَ جنګ رُخ یکدم بدل شو۔ دَ ناساپه حملے دَ وجه نه اکثر مسلمانان خوارۀ وارۀ شو او دَ میدان نه وُتښتیدل۔ خو بیا هم یو څو بهادران سپاهیان لا په میدان کښې مضبوط ولاړ وُو چه دا افواه خوره شوه چه نبی صلی الله علیه وسلم شهید شو۔ دَ دے افواه په اوریدو سره دَ صحابو حوصلے نوره هم خرابے شوے همت ئے بائیلو او په ځائے کښې ناست۔ په دغه وخت کښې نبی صلی الله علیه وسلم چنیه زخمی شوے وُو او صرف دولس کسان صحابه ترې راچاپیره وُو۔ شکست یقینی شوے وُو۔ خو لیکن عین په دغه وخت کښې صحابوؓ ته پته وُلګیده چه نبی صلی الله علیه وسلم ژوندے دے، زر زر دَ هر طرف نه بیا راجمع شو او نبیؐ ئے ښه په امن سره غونډئ طرفته بوتلو۔ په دے موقع باندِ دا معمه په حل نۂ پاتے شوه چه دَ مکے کفار بیرته خپله ولے واپس شو، مسلمانان خو دومره خوارۀ وارۀ شوی وُو چه دَ هغوئ بیا راجمع کیدل او بیا قاعده جنګ کول ډیر مشکل وُو۔ که کفارو خپله فتح سرته رسولے نو په آسانه ئے رسولے شوه۔ خو معلومه

وَاللّٰهُ وَلِيُّهُمَا ۗ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۲۲﴾ وَلَقَدْ نَصَرَكُمُ اللّٰهُ بِبَدْرٍ وَّاَنْتُمْ اَذِلَّةٌ ۚ فَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۱۲۳﴾ اِذْ تَقُوْلُ لِلْمُؤْمِنِيْنَ اَلَنْ يَّكْفِيَكُمْ اَنْ يُّمِدَّكُمْ رَبُّكُمْ بِثَلٰثَةِ اٰلٰفٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُنْزَلِيْنَ ﴿۱۲۴﴾ بَلٰٓى ۙ اِنْ تَصْبِرُوْا وَتَتَّقُوْا وَيَاْتُوْكُمْ مِّنْ فَوْرِهِمْ هٰذَا يُمْدِدْكُمْ رَبُّكُمْ بِخَمْسَةِ اٰلٰفٍ مِّنَ الْمَلٰٓئِكَةِ مُسَوِّمِيْنَ ﴿۱۲۵﴾ وَمَا جَعَلَهُ اللّٰهُ اِلَّا بُشْرٰى لَكُمْ وَلِتَطْمَئِنَّ قُلُوْبُكُمْ بِهٖ ۗ وَمَا النَّصْرُ اِلَّا مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ

چه الله د دوا رو مدد د پاره موجود وُو او مومنانو له خو په الله باندې بروسه ساتل پکار دی۔ آخر دے نه مخکښې په جنګ بدر کښې الله ستاسو امداد کړے وُو وحال دا چه په هغه وخت کښې تاسو ډیر کمزوری وئ. نو په دے وجه تاسو له پکار دی چه د الله د ناشکرئ نه ځان ساتئ، امید دے چه اوس به تاسو شکر ګذاره شئ۔

یاده کړه دا خبره چه کله تا مومنانو ته وئیل چه "آیا ستاسو پاره دا خبره کافی نه ده چه الله ستاسو امداد د پاره درے زره فرښتے راولیږی؟[۹۶]" بیشکه که تاسو صبر وکړو او د خدائے نه ویریدئ نو څه وخت چه دشمن په تاسو حمله وکړی نو په هغے وخت به ستاسو رب (په درے زره نه) په پنځو زرو نښه دارو فرښتو سره ستاسو امداد وکړی۔ دا خبره الله تاسو ته ځکه وښودله چه تاسو خوشحاله شئ او زړونه مو په اطمینان شی۔ فتح او امداد هر څه د الله د طرفه دی

نۀ دَه چه په څه وجه هغوئ میدان پخپله پریښودو او واپس لاړل۔

[۹۵] دا اشاره ده بنو سلمه او بنو حارثه طرفته، چه د عبد الله بن اُبَی او د هغه د ملګرو د واپس کید نه روستو ئے هم حوصلے خرابے شوے وے.

[۹۶] کله چه مسلمانانو وُکتل چه یو طرفته د دشمنان درے زره دی او بل طرفته زمونږ د زروکسانو نه هم درے سوه کسان جُدا شول نو زړونه ئے مات شول. په دغه وخت کښے ورته نبی صلی الله علیه وسلم دا الفاظ وئیلی وُو۔

الْعَزِيزِ الْحَكِيمِ ﴿۱۲۶﴾ لِيَقْطَعَ طَرَفًا مِّنَ الَّذِينَ كَفَرُوا أَوْ يَكْبِتَهُمْ فَيَنقَلِبُوا خَائِبِينَ ﴿۱۲۷﴾ لَيْسَ لَكَ مِنَ الْأَمْرِ شَيْءٌ أَوْ يَتُوبَ عَلَيْهِمْ أَوْ يُعَذِّبَهُمْ فَإِنَّهُمْ ظَالِمُونَ ﴿۱۲۸﴾ وَلِلَّهِ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۚ يَغْفِرُ لِمَن يَشَاءُ وَيُعَذِّبُ مَن يَشَاءُ ۚ وَاللَّهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿۱۲۹﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَأْكُلُوا الرِّبَا أَضْعَافًا مُّضَاعَفَةً ۖ وَاتَّقُوا اللَّهَ

چه لوئے طاقت والا او دانا او بینا دے. (او هغه به دا مدد ځکه تا سو له درکوي) چه څوک د کفر په لاره ئې چه هغوئ یو بازو پریکړي، یا ورله داسے ذلیله شکست ورکړي چه نامُراده واپس لاړ شي (اے پیغمبره) په فیصلے کولو کښ ستاسو هیڅ اختیار نشته، اختیار د الله دے، د هغه خوښه ده که معاف کوي یئے او که سزا ورکوي ځکه چه هغوئ ظالمان دي. په زمکه او آسمانونو کښ چه څه دي د هغه مالک الله دے، د هغه خوښه ده چه څوک بخښي او چاله عذاب ورکوي، هغه معاف کونکے او رحم کونکے دے[97] ع

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، دا په څو څو چنده زیاتیدونکے سود خوراک پریږدئ[98] او د الله نه ویریږئ

[97] نبي صلی الله علیه وسلم چه کله زخمي شو نو د هغه د خُولے نه د کافرانو په حق کښ بد دُعائی اُووتله او وے فرمائیل چه "هغه قوم به څنګه کامیاب شي چه هغه خپل نبي زخمي کوي". دا آیتونه د دے په جواب کښ راغلي دي.

[98] د جنګ اُحد د شکست غټ سبب دا وُو چه مسلمانانو د کلک کامیابئ موقع په لاس ورغله نو په هغوئ کښ د مال طمع پیدا شوه او په ځائے د دے چه خپل کار ئے سرته رسولے وے هغوئ د غنیمت مال لوټل شروع کړل. ځکه خو د هغوئ د دے حالت ټیک کولو د پاره الله تعالیٰ په هغوئ باندے د مال و دولت سره په مینه کولو پابندي ولګوله او حکم ئے وکړو چه سود مه خورئ ځکه چه په دیکښ سړے شپه او ورځ د خپلے فائدے زیاتولو حساب لګوي او د سړي سره د پیسو حرص بے حده زیاتیږي.

لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُونَ ﴿۱۳۰﴾ وَاتَّقُوا النَّارَ الَّتِي أُعِدَّتْ لِلْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۳۱﴾
وَأَطِيعُوا اللّٰهَ وَالرَّسُولَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴿۱۳۲﴾ وَسَارِعُوا
إِلَى مَغْفِرَةٍ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَجَنَّةٍ عَرْضُهَا السَّمٰوٰتُ وَالْأَرْضُ
أُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِينَ ﴿۱۳۳﴾ الَّذِينَ يُنْفِقُونَ فِي
السَّرَّآءِ وَالضَّرَّآءِ وَالْكٰظِمِينَ الْغَيْظَ وَالْعَافِينَ عَنِ
النَّاسِ ۗ وَاللّٰهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ ﴿۱۳۴﴾ وَالَّذِينَ إِذَا فَعَلُوا

اُمید دے چه کامیابی بیا مومئ. د هغے وُور نه ځان اُوساتئ کوم چه د کافرانو دپاره تیار کړے شوے دے او د الله او د رسول حکم اُومنئ، اُمید دے چه په تاسو به رحم وُکړے شی. په هغه لار په منډه ځئ کومه چه ستاسو د رب بخشش ته او هغے جنت ته ځی چه فراخوالے ئے د زمکے او د آسمانونو هومره دے او چه د هغے پرهیزګارو خداترسو خلقو دپاره تیار کړے شوے دے چه هغوئ په هرحال کښے خپل مال خرچ کوی خواه که بد حالۍ وی او که خوشحالۍ او چه هغوئ پخپله غصه قابو لری او د نورو خلقو قصور معاف کوی ——— داسے نیکان خلق د الله ډیر خوښ دی[99] ——— او چه د هغوئ دا حال دے چه چرته د بے حیائۍ کار

[99] په کومو خلقو کښ چه د سود اخستلو رواج وی په هغوئ کښ دوه قسمه اخلاقی مرضونه پیدا کیږی. په سود اخستونکو خلقو کښ حرص، لالچ، شومتیا او خود غرضی را پیدا کیږی او په سود ورکونکو خلقو کښ نفرت، غصه او بُغض او کینه پیدا کیږی. د اُحد په شکست کښ د دے دواړو قسمو مرضونو څه نه څه حصه شامله وه. الله تعالیٰ مسلمانانو ته وائی چه د سود د وجه نه کوم اخلاقی صفتونه په دواړو طرفونو کښ پیدا کیږی بالکل د هغے نه برخلاف صفتونه د الله په لاره کښ د خرچ کولو نه پیدا کیږی. او د الله بخښنه او د هغه جنت د دے دویم قسم صفتونو په ذریعه حاصلیږی نه چه د اول قسم صفتونو په ذریعه.
(د زیاتے تشریح دپاره اوګوره سورة بقره حاشیه ۳۲۰)

فَاحِشَةً اَوْ ظَلَمُوْٓا اَنْفُسَهُمْ ذَكَرُوا اللّٰهَ فَاسْتَغْفَرُوْا لِذُنُوْبِهِمْ
وَمَنْ يَّغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اللّٰهُ ۠ وَلَمْ يُصِرُّوْا عَلٰى مَا فَعَلُوْا
وَهُمْ يَعْلَمُوْنَ ﴿۱۳۵﴾ اُولٰٓئِكَ جَزَآؤُهُمْ مَّغْفِرَةٌ مِّنْ رَّبِّهِمْ
وَجَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ وَنِعْمَ اَجْرُ
الْعٰمِلِيْنَ ﴿۱۳۶﴾ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِكُمْ سُنَنٌ ۙ فَسِيْرُوْا
فِي الْاَرْضِ فَانْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِيْنَ ﴿۱۳۷﴾
هٰذَا بَيَانٌ لِّلنَّاسِ وَهُدًى وَّمَوْعِظَةٌ لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿۱۳۸﴾ وَلَا
تَهِنُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا وَاَنْتُمُ الْاَعْلَوْنَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۱۳۹﴾ اِنْ

---

ترې شي یا د څه ګناه کولو په وجه په خپل ځان ظلم وکړي نو زر ورته الله ور یاد شي او د هغه
نه د خپلو ګناهونو معافي غواړي ـــ ځکه چه د خدائے نه بغیر بل څوک شته چه ګناهونه معاف
کولے شي ـــ او هغوی سره د پوهے په خپل (غلط) کار باندې ټینګیا نه کوي. د داسے خلقو بدله
د خپل رب سره دا ده چه هغوی به معاف کړي او په داسے باغونو کښې به یې ور داخل کړي چه
لاندې به ترې نهرونه بهیږي او هلته به هغوی همیشه وسیږي. څنګه ښه بدله ده د نیک
کار کونکو د پاره. ستاسو نه وړاندې ډیر دورونه تیر شوي دي، د زمکے په مخ وګرځئ او وګورئ
چه د هغه خلقو انجام شو چا چه (د الله حکمونو ته) دروغ ویلي وو. دا د خلقو د پاره یو
صفا او ښکاره خبرداری دے او کوم خلق چه د الله نه یریږي د هغوی د پاره هدایت او
نصیحت دے.

زړه نه مه بائیلئ، غم مه کوئ، هم تاسو به غالب راځئ که چرے تاسو مؤمنان یئ. په دے

يَمْسَسْكُمْ قَرْحٌ فَقَدْ مَسَّ الْقَوْمَ قَرْحٌ مِّثْلُهٗ ؕ وَتِلْكَ الْاَيَّامُ
نُدَاوِلُهَا بَيْنَ النَّاسِ ۚ وَلِيَعْلَمَ اللّٰهُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَيَتَّخِذَ
مِنْكُمْ شُهَدَآءَ ؕ وَاللّٰهُ لَا يُحِبُّ الظّٰلِمِيْنَ ﴿۱۴۰﴾ وَلِيُمَحِّصَ اللّٰهُ
الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَيَمْحَقَ الْكٰفِرِيْنَ ﴿۱۴۱﴾ اَمْ حَسِبْتُمْ اَنْ تَدْخُلُوا
الْجَنَّةَ وَلَمَّا يَعْلَمِ اللّٰهُ الَّذِيْنَ جٰهَدُوْا مِنْكُمْ وَيَعْلَمَ
الصّٰبِرِيْنَ ﴿۱۴۲﴾ وَلَقَدْ كُنْتُمْ تَمَنَّوْنَ الْمَوْتَ مِنْ قَبْلِ

وخت کښې که تاسو ته زخم دررسیدلے دے نو ستاسو نه وړاندې هم دغسې زخم ستاسو مخالفے ډلے ته رسیدلے دے.[100] داخو د زمانے واړے دی چه مونږ ئے د خلقو ترمنځه اړوو راړوو. په تاسو باندې دا وخت ځکه راوستلے شو چه الله معلوم کول غوښتل چه په تاسو کښې رښتینی مؤمنان څوک دی، او هغه خلق ئے بیلول غوښتل چه واقعی (حق) ګواهان دی[101] ـــ ځکه چه ظالمان خلق د الله خوښ نه دی ـــ او هغه د دے آزمینښت په ذریعه مؤمنان ځان له جدا کول غوښتل او کافران ئے تباه کول غوښتل. ولے ستاسو اخیال دے چه تاسو به دغسے جنت ته لاړ شئ حالانکه ا وس خو الله دا نه دی لیدلی چه په تاسو کښې هغه خلق څوک دی چه د هغه په لار کښې جنګ کوونکی او د هغه د پاره صبر کوونکی دی. ستاسو خو به د مرګ آرزوګانے کولے! خو دا د هغے وخت خبره وه چه لا مرګ

[100] اشاره د جنګ بدر طرفته. مطلب دا دے چه د جنګ بدر د زخمونو د وجے نه د کافرو همت او حوصلے خرابے نه شوے نو تاسو ولے د دے زخمونو په وجه همت بائیلئ.

[101] اصل الفاظ دی وَيَتَّخِذَ مِنْكُمْ شُهَدَآءَ. د دے یو مطلب خو دا دے چه الله په تاسو کښې څه خلق شهیدان کول غوښتل یعنی څه خلقو ته ئے د شهادت عزت ورکول غوښتل. او بل مطلب ئے دا دے چه د مؤمنانو او د منافقانو د شریکے ولے نه الله تعالیٰ هغه خلق بیلول غوښتل چه په حقیقت کښې شُهَدَآءَ عَلَى النَّاسِ دی، یعنی د هغه لوئ منصب مناسب دی کوم چه مونږ د مسلمان امت له ورکړے دے.

اَنْ تَلْقَوْهُ ۪ فَقَدْ رَاَیْتُمُوْهُ وَ اَنْتُمْ تَنْظُرُوْنَ ﴿۱۴۳﴾ وَ مَا مُحَمَّدٌ اِلَّا رَسُوْلٌ ۚ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ؕ اَفَا۟ئِنْ مَّاتَ اَوْ قُتِلَ انْقَلَبْتُمْ عَلٰۤی اَعْقَابِكُمْ ؕ وَ مَنْ یَّنْقَلِبْ عَلٰی عَقِبَیْهِ فَلَنْ یَّضُرَّ اللّٰهَ شَیْـًٔا ؕ وَ سَیَجْزِی اللّٰهُ الشّٰكِرِیْنَ ﴿۱۴۴﴾ وَ مَا كَانَ لِنَفْسٍ اَنْ تَمُوْتَ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ كِتٰبًا مُّؤَجَّلًا ؕ

مخے ته نه وُ راغلے، ئه اوس هغه دے ستاسو مخے ته راغے او تاسو په خپلو سترګو وُلید وُ.[۱۰۲]

محمّد نور څه نه دے بس یو رسول دے، دَ ده نه وړاندې نور رسولان هم تیر شوی دی، نو که دے مړ شی یا قتل کړے شی نو آیا تاسو به په شا بیرته واپس ځئ؟[۱۰۳] یاد ساتئ څوک چه پښا واپس لاړ و هغه به دَ الله هیڅ نقصان ګونه کړی. البته څوک چه دَ الله شکر ګزار بندګان شو هغوئ ته به الله بدله ورکړی.

یو روح والا هم دَ الله دَ اجازت نه بغیر نشی مړکیدے. دَ مرګ وخت خو لیکلے شوے دے.[۱۰۴]

[۱۰۲] دا د شهادت هغه آرزو کانو ته اشاره ده چه دَ هغه دَ بار بار وینا په وجه نبی صلی الله علیه وسلم دَ مدینے نه بهر دَ جنګ کولو فیصله کړی وه.

[۱۰۳] کله چه دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ شهادت خبر خور شو نو ډیر صحابو حوصلے خرابے شوے. په دغه وخت کښ منافقانو (چه لا دَ مسلمانانو سره یوځائے وُو) اُوویل ځئ چه عبدالله بن اُبیّ له لاړ شو چه هغه مونږ له دَ ابو سفیان نه امان راکړی. او څینو خو پکښ دا ووئیل چه که محمّد دَ خدائے رسول وے نو څنګ به قتل کړے شوے وے ځئ چه دَ خپل پلار دین ته واپس ځو. دَ دے خبرو په جواب کښ وائی که چرے ستاسو "حق پرستی" صرف دَ محمد دَ ذات سره تړلې وی او دَ اسلام بنیاد مو دومره نازک وی چه دَ محمّد دَ مرګ سره تاسو خپل کفر ته واپس ځئ نو بیا دَ الله دَ دین تاسو ته هیڅ ضرورت نشته.

[۱۰۴] دَ مسلمانانو په ذهن کښ دا خبره کینول مقصد دی چه دَ مرګ دَ ویرے نه ستاسو تیښته فضول ده. خدائے چه کوم وخت مقرر کړے دے هیڅوک نه دَ هغه نه مخکښ مړکیدے شی او نه ترِ هیڅوک روستو ژوندے پاتے کیدے شی. نو په دے وجه تاسو له دَ مرګ نه دَ بچ کیدو فکر نه دے پکار بلکه دا فکر پکار دے چه دَ دُنیا په ژوند کښ ستاسو دَ منډے ترړے مقصد څه دے، دُنیا او که آخرت؟

وَمَنْ يُّرِدْ ثَوَابَ الدُّنْيَا نُؤْتِهٖ مِنْهَا ۚ وَمَنْ يُّرِدْ ثَوَابَ الْاٰخِرَةِ نُؤْتِهٖ مِنْهَا ؕ وَسَنَجْزِى الشّٰكِرِيْنَ ﴿۱۴۵﴾ وَكَاَيِّنْ مِّنْ نَّبِىٍّ قٰتَلَ ۙ مَعَهٗ رِبِّيُّوْنَ كَثِيْرٌ ۚ فَمَا وَهَنُوْا لِمَآ اَصَابَهُمْ فِىْ

څوک چه په دے اراده کار کوی چه په دُنیا کښ ورته ثواب ملاؤ شی هغه له به موږ د دُنیا نه څه حصه ورکړو، او څوک چه په دے اراده کار کوی چه په آخرت[۱۰۵] کښ ورته ثواب ملاؤ شی هغه ته به د آخرت ثواب ورکړو او شکر ویستونکوله[۱۰۶] به موږه خپله بدله ضرور ورکوو. د دے نه وړاندِ ډیر پیغمبران داسے تیر شوی دی چه د هغوی سره یو ځائے ډیرو خدا پرستوخلقو شریک جنګونه کړی دی. په هغوی باندِ چه کوم مصیبتونه د الله په لار کښ راغلی دی په هغے

[۱۰۵] د ثواب معنیٰ ده د عمل نتیجه. په دُنیا کښ د ثواب نه مُراد هغه فائده او ګټه ده چه انسان ته د خپل عمل په نتیجه کښ هم د دے دُنیا په ژوند کښ ملاؤشی. او په آخرت کښ د ثواب نه مراد هغه فائده او ګټه ده چه د خپل عمل په نتیجه کښ به د آخرت په همیشه ژوند کښ ملاو یږی. د اسلام په نظر کښ لویه اهمه خبره داده چه انسان په دُنیاوی ژوند کښ کومے منډے ترړے وهی نو چه آیا د دهٔ په نظر کښ د دُنیا نتیجه دی او که د آخرت.

[۱۰۶] د شکر ویستونکو نه مراد هغه خلق دی چه د الله تعالیٰ د دے نعمت قدر کوی چه هغه ورله د دین صحیح تعلیم ورکړو، او د دے دُنیا نه روستو د همیشه ژوند د بل جهان خبریٔ ورکړو، او د دے حقیقت نه ئے خبر کړل چه د انسان د خپلو عملونو نتیجے به یواځے د دُنیا په دے ژوند کښ نه وی بلکه د دے نه روستو به هغه بل جهان کښے د انسان د عملونو اثرات ښکاره کیږی. دا دومره فراخه نظر او لرے لیدل او د آخرت فکر چه چاته حاصل شی نو هغه که په دے دنیا کښ او ل او ل خپل کوششونه او محنتونه فائده مند و نه وینی او یا د خپلو کوششونو لټا اثر و وینی، او د دے باوجود د هغهٔ په الله باندِ اعتماد وی او خپل کار جاری ساتی، او دا یئے پوخ یقین وی چه په آخرت کښ به زما د کار فائده ضروروی، نو دے شکر ګذار بنده دے. او د دے نه برعکس څوک چه د دنیا د فائدے دپاره لنډ نظر کوی، او په دُنیا کښ چه ورته په کومو غلطو کارونو کښ بظاهره فائده ښکاری د هغے دپاره د آخرت د بد انجام هیڅ پروا نه لری، او یا چه کله په صحیح کارونو کښ ورته بظاهره څه فائده نه ښکاری یا ورته څه نقصان رسیږی نو که په آخرت کښ ورته د ډیره ښهٔ فائده ملاو یږی خو د هغے دپاره، خپل مال، وخت او طاقت لګولو ته تیار نهٔ وی، دا ناشکره خلق دی او کوم علم چه خدائے ورکړے دے د هغے قدر نهٔ پیژنی.

سَبِيلِ اللَّهِ وَمَا ضَعُفُوا وَمَا اسْتَكَانُوا ۗ وَاللَّهُ يُحِبُّ الصَّابِرِينَ ﴿١٤٦﴾ وَمَا كَانَ قَوْلَهُمْ إِلَّا أَنْ قَالُوا رَبَّنَا اغْفِرْ لَنَا ذُنُوبَنَا وَإِسْرَافَنَا فِي أَمْرِنَا وَثَبِّتْ أَقْدَامَنَا وَانْصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ ﴿١٤٧﴾ فَآتَاهُمُ اللَّهُ ثَوَابَ الدُّنْيَا وَحُسْنَ ثَوَابِ الْآخِرَةِ ۗ وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ ﴿١٤٨﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِنْ تُطِيعُوا الَّذِينَ كَفَرُوا يَرُدُّوكُمْ عَلَىٰ أَعْقَابِكُمْ فَتَنْقَلِبُوا خَاسِرِينَ ﴿١٤٩﴾



زړونه نې ډې مات شوی، کمزوری ئې نه ده ښکاره کړې، او (دَ باطل په وړاندې ئې) سرونه ئې ټیټ کړې.[۱۰۱] دا سې صبرناک بندګان دَ الله خوښ وی. دَ هغوی بس دا دُعا وه چه "اے زمونږه ربه، زمونږه غلطیانے او کناهونه معاف کړې، او زمونږ په کارکښ چه مونږ ستا دَ حد و نه څه زیاتے کړے وی هغه مونږ ته معاف کړه، زمونږ قدمونه مضبوط کړے او دَ کافرانو په مقابله کښ زمونږ امداد وُکړه" نو آخر دا چه الله ورله دَ دنیا ثواب هم ورکړو او دَ هغه نه ښه دَ آخرت ثواب ئې هم ورکړو. او دَ الله دا سې نیکان خلق خوښ وی.ع

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، که چرے تاسو دَ هغے خلقو په اشارو باندې عمل وُکړو چا چه دَ کفر لار اختیار کړې ده نو هغوی به تاسو واپس په شا بوځی[۱۰۲] و تاسو به نامراده شئ.

[۱۰۱] یعنی هغوی دَ خپل کمی او دَ خپل کم سامان په وجه او دَ کافرانو په زیاتی او دَ هغوی دَ زیاتې طاقت په وجه هیڅ هم کافرانو، باطل پرستو ته سرونه ئې ټیټ کړے او نه دې سلامی شوی.

[۱۰۲] یعنی دَ کفر دَ کوم حالت نه چه تاسو را وتلی یئ، دوئ به بیا تاسو هغه حالت ته بوځی. مسلمانانو چه دَ اُحد په جنګ کښ شکست وُخوړو نو منافقانو او یهودیانو به مسلمانانو ته وئیل چه که محمدؐ واقعی نبی وے نو شکست به ئې ولے خوړلے. دا خو یو معمولی سړے دے دَ نورو عامو خلقو په شان که نن ئے فتح وُکړه نو صباله به شکست هم وخوری او دا تاسو له چه ئے دا یقین درکړے دے چه زمونږ سره دَ خدائے امداد دے او خدائے زمونږ مکرے دے دا هسے دوکه ده.

بَلِ اللّٰهُ مَوْلٰىكُمْ ۚ وَهُوَ خَيْرُ النّٰصِرِيْنَ ﴿١٥٠﴾ سَنُلْقِيْ فِيْ قُلُوْبِ
الَّذِيْنَ كَفَرُوا الرُّعْبَ بِمَآ اَشْرَكُوْا بِاللّٰهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهٖ سُلْطٰنًا ۚ
وَمَاْوٰىهُمُ النَّارُ ۭ وَبِئْسَ مَثْوَى الظّٰلِمِيْنَ ﴿١٥١﴾ وَلَقَدْ صَدَقَكُمُ
اللّٰهُ وَعْدَهٗٓ اِذْ تَحُسُّوْنَهُمْ بِاِذْنِهٖ ۚ حَتّٰٓى اِذَا فَشِلْتُمْ
وَتَنَازَعْتُمْ فِي الْاَمْرِ وَعَصَيْتُمْ مِّنْۢ بَعْدِ مَآ اَرٰىكُمْ
مَّا تُحِبُّوْنَ ۭ مِنْكُمْ مَّنْ يُّرِيْدُ الدُّنْيَا وَمِنْكُمْ مَّنْ
يُّرِيْدُ الْاٰخِرَةَ ۚ ثُمَّ صَرَفَكُمْ عَنْهُمْ لِيَبْتَلِيَكُمْ ۚ وَلَقَدْ عَفَا

---

(د دوئ خبرې غلطې دي) حقیقت دا دے چه الله ستاسو ملګرے او مدد ګار دے او
هغه د ټولو نه ښه مدد کونکے دے. ډیر زر هغه وخت راتلونکے دے چه مونږ به د حق نه د انکار
کونکو خلقو په زړونو کښې رعب ګوزار وو ځکه چه هغوئ د الله سره داسے څیزونه شریک کړی دي
چه د هغې د شریک کیدلو په حقله خدائے هیڅ سند نه دے نازل کړے. د دوئ آخری د ستیدو
ځائے جهنم دے. او ډیر خراب دے هغه ځائے د ستیدو چه د ظالمانو ته به نصیب کیږی.

الله چه (د امداد) کومه وعده تاسو سره کړي وه هغه وعده هغه پوره کړه. په
اول کښې د هغه په حکم تاسو هغوئ قتلول. خو چه کله په تاسو کښې کمزوری ښکاره
شوه او په خپل کار کښې مو اختلاف وکړو، او څه وخت چه الله تاسو ته هغه څیز
ښکاره کړو د کوم څیز سره چه ستاسو محبت وو (یعني مال غنیمت) نو په هغې وخت مو د
خپل سردار د حکم خلاف ورزی وکړه ـــ ځکه چه په تاسو کښې څه خلق د دنیا طلبګار وو
او څه خلق د آخرت خواهش لرلو ـــ نو بیا هغې نه الله تاسو د کافرانو په مقابله
کښې پرشا کړئ خاص د دے دپاره چه په تاسو ازمینت وکړي. او حق دا دے چه الله تعالیٰ بیا هم

عَنۡكُمۡ ؕ وَاللّٰهُ ذُوۡ فَضۡلٍ عَلَى الۡمُؤۡمِنِيۡنَ ﴿۱۵۲﴾ اِذۡ تُصۡعِدُوۡنَ وَلَا تَلۡوٗنَ عَلٰٓى اَحَدٍ وَّالرَّسُوۡلُ يَدۡعُوۡكُمۡ فِىۡۤ اُخۡرٰٮكُمۡ فَاَثَابَكُمۡ غَمًّۢا بِغَمٍّ لِّكَيۡلَا تَحۡزَنُوۡا عَلٰى مَا فَاتَكُمۡ وَلَا مَاۤ اَصَابَكُمۡ ؕ وَاللّٰهُ خَبِيۡرٌۢ بِمَا تَعۡمَلُوۡنَ ﴿۱۵۳﴾ ثُمَّ اَنۡزَلَ عَلَيۡكُمۡ مِّنۡۢ بَعۡدِ الۡغَمِّ اَمَنَةً

تاسو معاف کړئ[۱۱۸] ځکه چه په مؤمنانو باندِ الله ډیرۀ رحمت نظر لری۔

یاد کړئ هغه وخت کله چه تاسو منډ ے وهلے، چا ته مو په شا هم نۀ کتل، او رسولؐ د ستا سو شانه نعرے[۱۱۹] وهلے۔ په دغه وخت کښ الله تاسوله ستاسو دے کار دا بدله درکړه چه د غم د پاسه غم ئے درکړو[۱۲۰] چه د بیا د پاره تاسو ته دا سبق ملاؤ شی چه څه څیز ستاسو د لاس نه لاړ شی یا څه مصیبت در باندِ نازل شی نو چه په هغے باندِ خفګان و نۀ کړئ۔ الله ستاسو ټولو کارونو نه خبر دے۔

د دے غم نه روستو بیا الله په تاسو کښ په څه خلقو باندِ دا طمینان داسے حالت راوستلو

[۱۱۸] یعنی تاسو داسے غلطی کړی وه چه که چرے خدائے نۀ معاف کولئ نو په هغه وخت به ختم شوی وئ۔ دا د الله فضل ؤ او د الله ملګرتیا وه چه د هغے په وجه ستاسو د دشمن وار خطا شو او بغیر د څه وجے نه بیرته واپس شو۔

[۱۱۹] کله چه په مسلمانانو باندِ ناسا په د دوا ړو طرفو نه حمله ؤ شوه او هغوئ کډ و ډ شو نو څه خلق مدینے طرفته ؤ تښتیدل او څه د اُحد غره ته ؤ ختل، خو نبی صلی الله علیه وسلم یو انچ قدر هم د خپل ځائے نه ؤ نۀ خوزید و، دُشمنان چارچاپیره وُو، صرف د لسو دولسو کسانو له ورسره وُو، خو د الله رسول په دے نازک وخت کښ هم د غر پشان مضبوط و لاړ وُو او د چه څوک تښتیدلی وُو هغوئ ته ئے آوازونه کول چه اِلَیَّ عِبَادَ اللّٰهِ اِلَیَّ عِبَادَ اللّٰهِ، اے د الله بندګانو زما طرفته راشئ، اے د الله بندګانو زما طرفته راشئ۔

[۱۲۰] د شکست خفګان، د دے خبرے خفګان چه نبی صلی الله علیه وسلم شهید شوے دے، په خپلو ډیرو مړو او زخمیانو باندِ خفګان، او د دے خبرے خفګان چه او س د کورونو پته هم نۀ لری، د دے زرونو دُشمنان، چه د مدینے ټولے آبادئ نه هم زیات دی که په دے ستړی ستومانه فوج باندِ راتو ئیل نو ټول به تباه کړی۔

نُّعَاسًا يَّغْشٰى طَآئِفَةً مِّنْكُمْ ۙ وَطَآئِفَةٌ قَدْ اَهَمَّتْهُمْ اَنْفُسُهُمْ يَظُنُّوْنَ بِاللّٰهِ غَيْرَ الْحَقِّ ظَنَّ الْجَاهِلِيَّةِ ؕ يَقُوْلُوْنَ هَلْ لَّنَا مِنَ الْاَمْرِ مِنْ شَيْءٍ ؕ قُلْ اِنَّ الْاَمْرَ كُلَّهٗ لِلّٰهِ ؕ يُخْفُوْنَ فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ مَّا لَا يُبْدُوْنَ لَكَ ؕ يَقُوْلُوْنَ لَوْ كَانَ لَنَا مِنَ الْاَمْرِ شَيْءٌ مَّا قُتِلْنَا هٰهُنَا ؕ قُلْ لَّوْ كُنْتُمْ فِيْ بُيُوْتِكُمْ لَبَرَزَ الَّذِيْنَ كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقَتْلُ اِلٰى مَضَاجِعِهِمْ ۚ وَلِيَبْتَلِيَ اللّٰهُ مَا فِيْ

چه هغوی له خوب جوته ورکوله[112]. خو بیوه بله ډله، چه ټول فکر ئې بس په خپلو فایدو ولاړ وو، هغوی د الله په حقله قسما قسم داسې جاهلانه ګمانونه وکړل چه هغه د حق نه سراسر خلاف وو. دا خلق اوس وائي چه "آیا د دې کار په چلولو کښې زمونږه هم څه حصه شته دے؟" ورته ووایه "(چه د چا پکښې هیڅ حصه نشته) د دې کار ټول اختیارات د الله په لاس کښې دي." په اصل کښې د دې خلقو په زړونو کښې چه کومه خبره پټه پرته ده هغه تاسو ته نه ظاهروي. د دوی اصلی مطلب دا دے چه "که چرې (د مشرئ) په اختیاراتو کښې زمونږه څه لږ ډیر اختیار وے نو مونږه به دلته نه وو وژلے شوی." ورته ووایه چه "که چرې تاسو په خپلو کورونو کښې هم وے نو چه د کومو خلقو د پاره مرګ لیکلے شوے وو هغوی به پخپله د خپل مرګ ځایونو ته راوتلی وے." او دا کوم کار چه وشو، دا ځکه وشو چه څه ستاسو په سینو کښې پټ دي چه هغه الله

[112] دا یو عجیبه شان کار و چه په هغه وخت کښې د اسلامي لښکر ځینې خلقو [illegible] وشو. حضرت ابوطلحه رض چه په دے جنګ کښې شریک ؤ پخپله بیان کوی چه په دغه وخت کښې په مونږ باندې د خوب داسې غلبه راتلله چه توره به مونږ د لاسونو نه پریوتله.

صُدُوْرِكُمْ وَلِيُمَحِّصَ مَا فِيْ قُلُوْبِكُمْ ۭ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌۢ بِذَاتِ الصُّدُوْرِ ﴿۱۵۴﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ تَوَلَّوْا مِنْكُمْ يَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعٰنِ ۙ اِنَّمَا اسْتَزَلَّھُمُ الشَّيْطٰنُ بِبَعْضِ مَا كَسَبُوْا ۚ وَلَقَدْ عَفَا اللّٰهُ عَنْھُمْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ ﴿۱۵۵﴾ يٰٓاَيُّھَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَكُوْنُوْا كَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَقَالُوْا لِاِخْوَانِهِمْ اِذَا ضَرَبُوْا فِي الْاَرْضِ اَوْ كَانُوْا غُزًّى لَّوْ كَانُوْا عِنْدَنَا مَا مَاتُوْا وَمَا قُتِلُوْا ۚ لِيَجْعَلَ اللّٰهُ ذٰلِكَ حَسْرَةً فِيْ قُلُوْبِهِمْ ۭ وَاللّٰهُ يُحْيٖ وَ



وآزمائي اوخه خيرے چه ستاسو په زړونوکښ دے چه هغه الله چانړ کړي، الله د زړونو په حال ښه پوه دے.

په تاسو کښ چه کوم خلق د جنګ په ورځ تښتيدلي وو د هغوی د دے غلطۍ وجه دا وه چه د هغوی د څينو کمزورو په وجه شيطان د هغوی ښپه خويولے وه. الله هغوی معاف کړل، الله ډير معاف کوونکے او برد بار دے.

اے هغه خلقو چه ايمان مو راوړے دے، د کافرو په شان خبرے مه کوئ چه خپل خپلوان ئے چرته په سفر لاړشی يا په جنګ کښ شريک شی (او هلته ورته څه تکليف پيښ شی) نو وائي چه که چرے هغوی زمونږ سره پاتے شوی وے لو نه به مړه شوی وے او نه به قتل شوی وے. الله دا قسم خبرے د هغوی په زړونو کښ د افسوس سبب کرزولی[113]، کنئی نو په اصل کښ خو مړکوونکے او ژوندے کوونکے

[113] يعنی په دے خبرو کښ هيڅ حقيقت نشته دے. حقيقت خو دا دے چه د الله حکم د چا په زور نه شی منع کيدے. خو چه شوک په الله ايمان نه لري او وائي چه هر څه زمونږ په تدبيرو کيږي د هغوی د پاره داسے خبرے د افسوس سبب جوړشی او هر وخت منګولے مروړي او وائي چه هئي افسوس که داسے شوے وے نو داسے به شوے وے.

يُحْيِۦ وَيُمِيتُ ۗ وَٱللَّهُ بِمَا تَعْمَلُونَ بَصِيرٌ ﴿۱۵۶﴾ وَلَئِن قُتِلْتُمْ فِى سَبِيلِ ٱللَّهِ أَوْ مُتُّمْ لَمَغْفِرَةٌ مِّنَ ٱللَّهِ وَرَحْمَةٌ خَيْرٌ مِّمَّا يَجْمَعُونَ ﴿۱۵۷﴾ وَلَئِن مُّتُّمْ أَوْ قُتِلْتُمْ لَإِلَى ٱللَّهِ تُحْشَرُونَ ﴿۱۵۸﴾ فَبِمَا رَحْمَةٍ مِّنَ ٱللَّهِ لِنتَ لَهُمْ ۖ وَلَوْ كُنتَ فَظًّا غَلِيظَ ٱلْقَلْبِ لَٱنفَضُّوا۟ مِنْ حَوْلِكَ ۖ فَٱعْفُ عَنْهُمْ وَٱسْتَغْفِرْ لَهُمْ وَشَاوِرْهُمْ فِى ٱلْأَمْرِ ۖ فَإِذَا عَزَمْتَ فَتَوَكَّلْ عَلَى ٱللَّهِ ۚ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلْمُتَوَكِّلِينَ ﴿۱۵۹﴾ إِن يَنصُرْكُمُ ٱللَّهُ فَلَا غَالِبَ لَكُمْ ۖ وَإِن يَخْذُلْكُمْ

---

بوالله دے او ستاسو په ټولو حرکتونو هغه نګران دے. که چرے تاسو د الله په لار کښې ووژلے شئ یا مړه شئ نو د الله څه رحمت او بخښش چه ستاسو په حصه کښې راځي هغه د هغے ټولو څیزونو نه زیات بهتر دے کوم چه دا خلق ځان له راجمع کوی. او که تاسو بخپله مړه شئ یا ووژلے شئ خو په هر حال کښے به الله ته ورغونډ یږئ.

(اے پیغمبره،) دا د الله ډیر لوی رحمت دے چه ته د دے خلقو پاره ډیر نرم یې. او که نه چرے ته تند خویه او په زړه سخت وے نو دا ټول به ستا د خوانه خواره شوی وو. د دوی خطاګانے معاف کړه، د دوی د پاره د بخښنے دعاګانے غواړه، او د دین په کارکښې دوی هم په مشوره کښې شریک کړه، بیا چه کله په یوه خبره باندې ستا اراده محکمه شی نو په الله بروسه کوه، د الله هغه خلق خوښ دی چه د هغه په بروسه باندې کار کوی. که الله ستاسو په مدد باندې وی نو هیڅ یو طاقت په تاسو باندې غالب کیدونکے نشته. او که هغه پریښودلئ، نو د هغه نه پس

فَمَنْ ذَا الَّذِيْ يَنْصُرُكُمْ مِّنْۢ بَعْدِهٖ ۭ وَعَلَي اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ﴿١٦٠﴾ وَمَا كَانَ لِنَبِيٍّ اَنْ يَّغُلَّ ۭ وَمَنْ يَّغْلُلْ يَاْتِ بِمَا غَلَّ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۚ ثُمَّ تُوَفّٰى كُلُّ نَفْسٍ مَّا كَسَبَتْ وَھُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿١٦١﴾ اَفَمَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَ اللّٰهِ كَمَنْۢ بَاۗءَ بِسَخَطٍ مِّنَ اللّٰهِ وَمَاْوٰىهُ جَهَنَّمُ ۭ وَبِئْسَ الْمَصِيْرُ ﴿١٦٢﴾ ھُمْ دَرَجٰتٌ

بیا څوک دی چه ستاسو مدد به وکړے شي؟ نو چه څوک ریښتیني مؤمنان دي هغوی له پکار دي چه په الله باندې بروسه لري.

د هیڅ یو نبي دا کار نشي کیدے چه هغه د خیانت وکړي[۱۱۳] ـــــ او څوک چه خیانت وکړي هغه به د قیامت په ورځ د خپل خیانت سره حاضریږي، بیا به هر سړي ته د خپلې کټې پوره پوره بدله ورکړے شي. او په چا به هیڅ ظلم نه کیږي ـــــ او دا کله کیدے شي چه یو سړے د هیشه الله په رضا چلیږي، او هغه د هغه سړي پشان کار وکړي چه هغه د الله په غضب کښې کیر شوے وي او چه آخري ځائے ئې جهنم وي چه د تولو نه بد ځائے دے؟ د الله په نزد باندې

[۱۱۳] کوم غشي ویشتونکي ښکر چه نبي صلی الله علیه وسلم شاته د حفاظت دپاره کینولے وو هغوي چه وکتل چه د دشمن ښکر لوټ کیږي نو د هغوي سره دا فکر شو چه چیرے نه د غنیمت ټول مال هغه خلق ته ملاؤ شي کوم چه په لوټ کښې شامل دي او د تقسیم په وخت کښې مونږ د هیسے محروم پاتې شو. په دے وجه هغوي خپل ځائے پرېښودلے وو. د جنګ د ختمیدو نه روستو کله چه نبي صلی الله علیه وسلم مدینے ته تشریف راوړو هغه ټول غشي ویشتونکي ښکریڅ را وغوښتو او تپوس ئې ترې وکړو چه تا سو نافرماني په څه وجه وکړه ښکر دا او ورته په جواب کښې څه کمزوري کمزوري عذرونه وړاندې کړل. نبي ورته وفرمائیل بل ظننتم انا نغل ولا نقسم لکم" اصل خبره دا ده چه ستاسو په موږ باور نه وو، ستاسو دا ګمان وو چه مونږ به ستاسو سره خیانت وکړو او تاسوله به حصه ورنه کړو." په دے آیت کښې دے طرف ته اشاره ده. د آیت مطلب دا دے چه کله ستاسو د فوج کماندر د خپله د الله نبي وو او هر کار د هغه په لاس کښې وو نو تاسو په زړه کښې دا خیال څنګه راپیدا شو چه د نبي په لاس به ستاسو حصه محفوظه نشي. آیا د خدائے د پیغمبر نه مو دا توقع ښته چه کوم مال د هغه په نګراني کښې وي هغه به بې د دیانت، امانت او انصاف نه بغیر په بد طریقه تقسیم کړے شي؟

عِنْدَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ بَصِيْرٌۢ بِمَا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۶۳﴾ لَقَدْ مَنَّ اللّٰهُ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ اِذْ بَعَثَ فِيْهِمْ رَسُوْلًا مِّنْ اَنْفُسِهِمْ يَتْلُوْا عَلَيْهِمْ اٰيٰتِهٖ وَيُزَكِّيْهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ ۚ وَاِنْ كَانُوْا مِنْ قَبْلُ لَفِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۱۶۴﴾ اَوَلَمَّاۤ اَصَابَتْكُمْ مُّصِيْبَةٌ قَدْ اَصَبْتُمْ مِّثْلَيْهَا ۙ قُلْتُمْ اَنّٰى هٰذَا ؕ

د دواړو قسمو خلقو په مینځ کښې لوئ فرق دے او الله د ټول مخلوق په عملونو نظر ساتي. په حقیقت کښې الله تعالیٰ په مومنانو باندې دا ډیر لوئ احسان کړے دے چه په هغوی کښې ئې د هغوی د ځپل قوم نه یو داسے پیغمبر راپورته کړو چه د الله آیتونه هغوی ته اوروي، د هغوی ژوند پاک ستره کوي، او هغوی ته د کتاب او د پوهے تعلیم ورکوي، حالانکه دا خلق د دے نه وړاندې په ښکاره ګمراهئ کښې پراته وو.

او دا موځه حال دے چه کله درباندې مصیبت راغے نو تاسو وویل چه دا د کوم ځاے نه راغے؟[5] حالانکه (په جنګ بدر کښې) د دے نه دوه چنده مصیبت ستاسو د لاسه (مخالف ډلے ته) رسیدلے دے.[6]

[5] الله لوئ لوئ صحابو ته خو حقیقت معلوم وو هغوی د رکه کیدے نه شو، خو د عامو مسلمانانو دا خیال وو چه د الله رسول په مونږ کښې موجود دے او د الله امداد زمونږ سره دے نو بیا په هیڅ حال کښې کافران په مونږ فتح نشي حاصلولے. د هغه وجه ده چه کله په اُحد کښې شکست وشو نو هغوی ته سخته تکلیف ورسیدو هغوی حیران شو او دا تپوسونه یې شروع کړل چه دا څه وُشو؟ مونږ د الله د دین د پاره جنګیدو، د الله د امداد وعده زمونږ سره وه، د الله رسول پخپله په میدانِ جنګ کښې موجود وُو، او بیا هم مونږ شکست وخوړو؟ او شکست هم د هغه چا د لاسه چه د الله د دین د ختمولو د پاره راغلي وُو؟ دا آیتونه د دے د پاره نازل شوي دي چه د دوی دا حیرانتیا لرے کړي.

[6] په جنګ اُحد کښې د مسلمانانو اویا کسان شهیدان شوي وُو. او په جنګ بدر کښې د کافرانو اویا کسان د مسلمانانو د لاسه مړه شوي وُو او اویا کسان نیولی شوي وُو.

قُلْ هُوَ مِنْ عِنْدِ اَنْفُسِكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ عَلٰى كُلِّ شَیْءٍ قَدِیْرٌ ﴿۱۶۵﴾ وَمَاۤ اَصَابَكُمْ یَوْمَ الْتَقَى الْجَمْعٰنِ فَبِاِذْنِ اللّٰهِ وَلِیَعْلَمَ الْمُؤْمِنِیْنَ ﴿۱۶۶﴾ وَلِیَعْلَمَ الَّذِیْنَ نَافَقُوْا ۚۖ وَقِیْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا قَاتِلُوْا فِیْ سَبِیْلِ اللّٰهِ اَوِ ادْفَعُوْا ؕ قَالُوْا لَوْ نَعْلَمُ قِتَالًا لَّا اتَّبَعْنٰكُمْ ؕ هُمْ لِلْكُفْرِ یَوْمَىِٕذٍ اَقْرَبُ مِنْهُمْ لِلْاِیْمَانِ ۚ یَقُوْلُوْنَ بِاَفْوَاهِهِمْ مَّا لَیْسَ فِیْ قُلُوْبِهِمْ ؕ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ

اے نبی، دوی ته اُووایه، دا مُصیبت تاسو پخپله په ځان راوستلے دے[۱۱۷]، الله په هر شیز قادر دے[۱۱۸]. کوم نقصان چه تاسو ته د جنګ په ورځ د رُو رسید و هغه د الله په حکم سره د ررسیدلے وُو او ددے د پاره وُو چه الله دا معلومه کړی چه په تاسو کښې مؤمنان څوک دی او منافقان څوک دی. هغه منافقان چه کله ورته اُوویلے شو چه راشئ د الله په لار کښې جنګ وُکړئ یا کم نه کم (د خپل ښار) حفاظت وُکړئ، نو وے ویل چه که موږ ته معلومه وے چه نن به جنګ وی نو موږ به ضرور ستاسو سره تلی وُو[۱۱۹]. دا خبره چه دے کله کوله په هغه وخت کښې هغوئ د ایمان په نسبت کفر ته زیات نزدے وُو. هغوئ په خولے هغه خبرے کوی چه په زړونو کښې ئے نه وی، او څه چه هغوئ په زړونو کښې پټ ساتی الله هغه

[۱۱۷] یعنی دا ستاسو د خپلو کمزورو او غلطو وجه ده. تاسو صبر وُ نه کړو، څه کارونه مو تقویٰ نه خلاف وُکړو، حکم مو ونه منلو، د مال طمع مو وُ لرله، په خپلو کښے مو اختلاف وُکړو، بیا دا پتوس ولے کوئ چه دا مصیبت د کومے غاړے راغے؟

[۱۱۸] یعنی الله که تاسو له فتح درکولے شی نو شکست هم درکولے شی.

[۱۱۹] عبد الله بن اُبی چه کله د درے سوو منافقانو سره د لارے نه واپس شو نو څه مسلمانانو د پوهولو د پاره ورغلل چه د مسلمانانو سره د تللو د پاره راضی شی. خو هغه ورله جواب ورکړو چه زمونږه دا یقین دے چه نن به جنګ نه وی، په دے وجه موږ واپس ځو، او که زمونږ ه دا اُمید وے چه نن به جنګ وی نو ضرور به موږ تاسو سره تلی وے.

بِمَا يَكْتُمُوْنَ ﴿١٦٧﴾ اَلَّذِيْنَ قَالُوْا لِاِخْوَانِهِمْ وَقَعَدُوْا لَوْ اَطَاعُوْنَا مَا قُتِلُوْا ؕ قُلْ فَادْرَءُوْا عَنْ اَنْفُسِكُمُ الْمَوْتَ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿١٦٨﴾ وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ قُتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ اَمْوَاتًا ؕ بَلْ اَحْيَآءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُوْنَ ﴿١٦٩﴾ فَرِحِيْنَ بِمَآ اٰتٰىهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ ۙ وَيَسْتَبْشِرُوْنَ بِالَّذِيْنَ لَمْ يَلْحَقُوْا بِهِمْ مِّنْ خَلْفِهِمْ ۙ اَلَّا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿١٧٠﴾ يَسْتَبْشِرُوْنَ بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَفَضْلٍ ۙ وَّاَنَّ اللّٰهَ لَا يُضِيْعُ اَجْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿١٧١﴾



بنه پیژنی. دا هغه خلق دي چه پخپله خیانت پاتے شو او دَ هغوی کوم رونړه چه جنګ ته لاړل او هلته وُوژلے شو نو دَ هغوی په حقله ئے ویل چه که چرے دوی زمونږ خبره منلے وے نو نن به وُو وژلے شوی. ورته اُووایه که تاسو په دے خپله وینا کښ رښتینی یئ نو کله چه تاسو له خپل مرګ راشی هغه دَ خپل ځان نه منع کړئ.

کوم خلق چه دَ الله په لار کښ قتل شوی دی هغوی مړهٔ مهٔ ګڼړئ، هغوی خو په حقیقت کښ ژوندی دی،[۱۲۰] دَ خپل رب سره ورته رزق ملاویږی، څه چه ورله الله په خپل فضل ورکړی دی په هغے بنه خوشحاله دی،[۱۲۱] او په دے خبره مطمئن دی چه کوم مؤمنان دَ هغوی نه روستو په دنیا کښ پاتے شوی دی او هلته نه دی رسیدلی دَ هغوی دپاره هم دَ څه ویرے او دَ خفګان موقع نشته دے. هغوی دَ الله په انعام او دَ هغهٔ په فضل باندے ډیر خوشحاله دی او هغوی ته معلومه شوی ده چه الله دَ مؤمنانو اجر نه ضائع کوی.

---

[۱۲۰] دَ تشریح دپاره اُوګوره سورة بقره حاشیه نمبر ۱۵۵.

[۱۲۱] په مسند احمد کښے دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه یو حدیث روایت شوے دے دَ هغے مضمون دا دے چه کوم سړے دَ نیک عمل سره دَ دے دُنیا نه لاړ شی هغه ته دَ الله سره دا سے بیکلے دَ خوشحالئ ژوند ملاؤ شی چه هغه بیا هیچرے دُنیا ته دَ واپس راتلو آرزو نهٔ کوی. خو شهید دا سے نهٔ دے. شهید دا آرزو کوی چه بیا دُنیا ته لاړ شے او بیا بیا هم هغه خوند، هغه خوشحالی پرنصیب شوے کوم خوشحالی چه دَ الله په لاره کښے دَ شهادت په وخت کښے حاصلیږی.

اَلَّذِيْنَ اسْتَجَابُوْا لِلّٰهِ وَالرَّسُوْلِ مِنْۢ بَعْدِ مَآ اَصَابَهُمُ الْقَرْحُ ۛؕ لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا مِنْهُمْ وَاتَّقَوْا اَجْرٌ عَظِيْمٌ ﴿۱۷۲﴾ اَلَّذِيْنَ قَالَ لَهُمُ النَّاسُ اِنَّ النَّاسَ قَدْ جَمَعُوْا لَكُمْ فَاخْشَوْهُمْ فَزَادَهُمْ اِيْمَانًا ۖۗ وَّقَالُوْا حَسْبُنَا اللّٰهُ وَنِعْمَ الْوَكِيْلُ ﴿۱۷۳﴾ فَانْقَلَبُوْا بِنِعْمَةٍ مِّنَ اللّٰهِ وَفَضْلٍ

ع ۲

کوم خلق چه د زخم خوړلو نه پس هم د الله او د رسول په آواز باندې حاضر کړو[۱۲۲] په هغوی کښې چه کوم خلق نیکان او پرهیزګار دی د هغوی د پاره لوئ اجر دے۔[۱۲۳] او هغه کسان چه خلقو ورته اُووئیل چه "ستاسو خلاف ډیر فوجونه راجمع شوی دی، د هغوی نه وُیریږئ"، نو دے خبرے په اوریدو سره د هغوی ایمان نور هم زیات شو او هغوی لهٔ جواب ورکړو چه زمونږ د پاره الله کافی دے او هغه ډیر ښه کار سمونکے دے۔ آخر دا چه هغوی د الله تعالیٰ د نعمت او د فضل سره واپس راغلل، هغوی ته هیڅ قسمه

۱۲۲ مشرکان چه د جنګ اُحد نه واپس شو او یو څو منزله لرې لاړل نو هغوی ته عقل سر له راغه او یو بل ته یې اُووئیل چه دا مونږ څه وُکړل چه د محمدؐ د طاقت د ختمولو قیمتی موقع مو لاس راغلی وه او هغه زمونږ د لاس نه لاړه. نو په یو ځائے کښې وُدریدل او په خپلو کښې ئې مشوره وُکړه چه په مدینه باندې فوراً بله حمله پکار ده۔ لیکن همت یې وُ نه کړو او مکے ته واپس لاړل۔ دلته نبی صلی الله علیه وسلم سره هم دا فکر وُو چه چرته دا خلق بیا واپس رانشی. په دے وجه نبیؐ د جنګِ اُحد په دویمه ورځ مسلمانان راجمع کړل او ورته ئې وفرمائیل چه په کافرانو پسے تلل پکار دی۔ دا یوه ډیره نازکه موقع وه، خو بیا هم چه څوک رښتینی مؤمنان وُو هغوی د ځان قربانولو د پاره تیار شو او د نبی صلی الله علیه وسلم سره حمراء الاسد نومے ځائے پورے لاړل چه د مدینے نه آته میله لرے دے۔ په دے آیت کښې دے بهادرانو مسلمانانو ته اشاره ده۔

۱۲۳ دا یو څو آیتونه د جنګ اُحد نه یو کال روستو نازل شوی وُو خو تعلق ئې د اُحد د واقعاتو سره وُو د دے وجې نه دا هم په دے خطبه کښې شامل کړے شو۔

لَمْ يَمْسَسْهُمْ سُوْٓءٌ ۙ وَّ اتَّبَعُوْا رِضْوَانَ اللّٰهِ ؕ وَ اللّٰهُ ذُوْ فَضْلٍ عَظِيْمٍ ﴿۱۷۴﴾ اِنَّمَا ذٰلِكُمُ الشَّيْطٰنُ يُخَوِّفُ اَوْلِيَآءَهٗ ۪ فَلَا تَخَافُوْهُمْ وَ خَافُوْنِ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۱۷۵﴾ وَ لَا يَحْزُنْكَ الَّذِيْنَ يُسَارِعُوْنَ فِي الْكُفْرِ ۚ اِنَّهُمْ لَنْ يَّضُرُّوا اللّٰهَ شَيْئًا ؕ يُرِيْدُ اللّٰهُ

ضرر ونهٔ رسیدو، او دَ الله په رضا باندِ دَ تللو شرف ورته هم حاصل شو، الله ډیر فضل کونکے دے. اوس درته معلوم شو چه په اصل کښ هغه شیطان وو چه دَ خپلو دوستانو نه ئے خاهخا خلق ېرول. بیا دپاره تاسو دَ انسانانو نه مه یرېږئ، خمانه یرېږئ، که په حقیقت کښ دَ ایمان خاوندان یئ.[۱۲۴]

اے پیغمبره، کوم خلق چه دَ کفر په لار کښ ډیرے منډے وهی دَ هغوئ دغه منډے دِ تا خفه نهٔ کړی، دوئ الله ته هیڅ نقصان نشی رسولے. دَ الله دا اراده

[۱۲۴] کله چه دَ اُحد نه واپس کیدل نو ابوسفیان مسلمانانو ته ویلی وُو چه بل کال له به بیا زمونږه او ستاسو په بدر کښ مقابله وی. خو کله چه دَ وعدے وخت نزدے راغے نو همت ئے بائیلو ځکه چه په هغه کال په مکه کښے قحط وُو. دَ جنګ نه دَ ځان بچ کولو دپاره ئے داسے چل وُکړو چه پټ ئے یو سړے مدینے ته وُلیږو، هغه چه مدینے ته وُرسید و نو په مسلمانانو کښے ئے داخبرے مشهورے کړلے چه سکالِ قریشو زیږدست تیاری کړی ده او دومره لوئ بنکر ئے جمع کړے دے چه په ټول عرب کښے ئے څوک مقابله نشی کولے. دَ دے خبرو مقصد دا وُو چه مسلمانان ډیریږی او په ځلئے پاتے شی مقابلے له رانشی او بیا میدان ته دَ نهٔ تللو ذمه واری په هغوئ راشی. دَ ابوسفیان دَ دے چل دومره اثر وُ شو چه کله نبی صلی الله علیه وسلم مسلمانانو ته دَ بدر طرف ته دَ تللو اپیل وُکړو نو دَ مسلمانانو دَ طرفنه ورته څه دَ حوصلے جواب ملاؤ نشو. آخر دا چه دَ الله رسول په ډک مجلس کښے اعلان وُکړو که یو تن هم نهٔ ځی خو زهٔ به یوائے ځم. په دے خبره څلورسوه مجاهدان دَ هغه سره تللو ته تیار شوا و نبی هم دَ هغوئ سره بدر ته لاړو. دَ بل طرفنه ابوسفیان دَ دوه زرو لښکریانو سره دا روان شو خو چه دوه ورځے منزل ئے وُکړو نو ملګرو ته ئے وُ وئیل چه سکال جنګ کول مناسب نهٔ ښکاری بیا بل کال به تیار شو. ملګرو ئے خبره وُمنله، هغه او ملګری ئے واپس شو. نبی صلی الله علیه وسلم په بدر کښے دَ اته ورځو پورے انتظار وُکړو او په دے دوران کښے دَ هغه ملګرو دَ یوے تجارتی قافلے سره کاروبار وُکړو او ډیره فائده ورته وُ شوه. بیا چه کله ورته دا خبره پته وُلګیده چه کافران واپس لاړل نو هغوئ هم واپس مدینے ته راغلل.

أَلَّا يَجْعَلَ لَهُمْ حَظًّا فِي الْآخِرَةِ ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿١٧٦﴾ إِنَّ الَّذِينَ اشْتَرَوُا الْكُفْرَ بِالْإِيمَانِ لَن يَضُرُّوا اللَّهَ شَيْئًا ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿١٧٧﴾ وَلَا يَحْسَبَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّمَا نُمْلِي لَهُمْ خَيْرٌ لِّأَنفُسِهِمْ ۚ إِنَّمَا نُمْلِي لَهُمْ لِيَزْدَادُوا إِثْمًا ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّهِينٌ ﴿١٧٨﴾ مَّا كَانَ اللَّهُ لِيَذَرَ الْمُؤْمِنِينَ عَلَىٰ مَا أَنتُمْ عَلَيْهِ حَتَّىٰ يَمِيزَ الْخَبِيثَ مِنَ الطَّيِّبِ ۗ وَمَا كَانَ اللَّهُ لِيُطْلِعَكُمْ عَلَى الْغَيْبِ وَلَٰكِنَّ اللَّهَ يَجْتَبِي مِن

ده چه دَ هغوئ دپاره په آخرت کښې هیڅ برخه مقرر نهٔ کړي، او آخر هغوئ ته سخته سزا ملاویدونکې ده. کومو خلقو چه ایمان پریښودلے دے او دَ کفر خریدار جوړ شویدي هغوئ یقیناً دَ الله هیڅ نقصان نشي کولے، دَ هغوئ دپاره دردناک عذاب تیار دے. دا مهلت چه مونږ هغوئ له ورکوو دا دِ دا کافران دَ ځان په حق کښې ښهٔ نهٔ ګڼړي، مونږ خو ورله دا مهلت ځکه ورکوو چه دوئ دَ ګناهونو پیټې ښه ځان له درون کړي، بیا دَ دوئ دپاره سخته ذلیله کونکې سزا ده.

الله تعالیٰ به مؤمنان په دې حالت کښې هیچرې پرې نږدي په کوم حالت کښې چه اوس وخت کښې تاسو یئ[125]. هغه به پاک خلق دَ ناپاکو خلقو نه جدا کوي. خو دَ الله دا طریقه نهٔ ده چه تاسو دَ غیبو نه خبر کړي[126]. دَ غیبي خبرونو دپاره خو هغه دَ خپلو رسولانو نه چه څوک غواړي

[125] یعنی الله تعالیٰ دَ مسلمانانو دپاره دے حال کښې لیدل نهٔ خوښوي چه په هغوئ کښې مؤمنان او منافقان ټول ګډ وډ ګډیږي.

[126] یعنی دَ مؤمن او دَ منافق په مینځ کښې دَ تمیز کولو دپاره الله تعالیٰ دا طریقه نهٔ اختیاروي چه غیبي طور مسلمانانو ته دَ خلقو دَ زړونو حال وښایئ چه فلانے مومن دے او فلانے منافق دے، بلکه دَ الله په حکم به دَ امتحان داسې مرتبې راځي چه په هغه کښې به په تجربه سره دَ مؤمنانو او دَ منافقانو حال ښکاره کیږي.

رُسُلِهٖ مَنْ یَّشَآءُ ۪ فَاٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ ۚ وَاِنْ تُؤْمِنُوْا
وَتَتَّقُوْا فَلَكُمْ اَجْرٌ عَظِیْمٌ ﴿۱۷۹﴾ وَلَا یَحْسَبَنَّ الَّذِیْنَ
یَبْخَلُوْنَ بِمَآ اٰتٰىهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ هُوَ خَیْرًا لَّهُمْ ؕ بَلْ هُوَ
شَرٌّ لَّهُمْ ؕ سَیُطَوَّقُوْنَ مَا بَخِلُوْا بِهٖ یَوْمَ الْقِیٰمَةِ ؕ وَلِلّٰهِ مِیْرَاثُ
السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَاللّٰهُ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِیْرٌ ﴿۱۸۰﴾ لَقَدْ
سَمِعَ اللّٰهُ قَوْلَ الَّذِیْنَ قَالُوْۤا اِنَّ اللّٰهَ فَقِیْرٌ وَّنَحْنُ اَغْنِیَآءُ ۘ

هغه غوره کوی. نو (د غیبی کارونو په حقله) په الله او د هغهٔ په رسول باندې ایمان ساتئ. که تاسو د ایمان او د خدائ د ویرې په لاره لاړئ نو تاسو ته به دیر اجر ملاوُشی.

په کومو خلقو چه الله خپل فضل کړے دے او بیا هم هغوئ شومتیا کوی نو هغوئ دِ دا خیال نهٔ کوی چه دا شومتیا د هغوئ د پاره ښهٔ ده. نا، دا د هغوئ په حق کښ ډیره بده ده. څهٔ چه هغوئ په خپله شومتیا راجمع کوی هغه به د قیامت په ورځ د هغوئ د غاړې زنځیر جوړه شی. د زمکے او د آسمانونو میراث د الله دے[127] او تاسو چه څهٔ کوئ الله د هغې نه خبر دے.ع

الله د هغې خلقو وینا واوریده چه وائی چه الله فقیر دے او مونږ غنیان یو.[128]

[127] یعنی د زمکے او د آسمان هر شیز چه مخلوق استعمالوی هغه په اصل کښ د الله ملکیت دے او په هغې باندې د مخلوق قبضه او تصرف عارضی دے. د هر چا په قبضه کښ چه څهٔ دی هغه به د هغې نه بے دخله کیږی او دا ټول هر څه به په آخر کښې الله ته پاتے کیږی. هغلمند او هوښیار هغه سړے دے چه د دے عارضی قبضے په دوران کښے د الله مال د الله په لار کښے د زړهٔ د اخلاصه د لګوی. او هغه سړے سخت بیوقوف دے چه د دے مال د جمع کولو او د ایښودو کوشش کوی.

[128] دا د یهودیانو وینا ده. په قرآن مجید کښے چه کله دا آیت نازل شو چه مَنْ ذَا الَّذِیْ یُقْرِضُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا، "څوک دے چه الله له قرضِ حسن ورکړی"، نو په دے پورې د توقو په طور یهودیانو دا وینا شروع کړه چه او کنه، الله غریب شوے دے او سے د بندګانو نه قرض غواړی.

---

سَنَكْتُبُ مَا قَالُوْا وَقَتْلَهُمُ الْاَنْبِيَآءَ بِغَيْرِ حَقٍّ ۙ وَّنَقُوْلُ ذُوْقُوْا عَذَابَ الْحَرِيْقِ ﴿۱۸۱﴾ ذٰلِكَ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْكُمْ وَاَنَّ اللّٰهَ لَيْسَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيْدِ ﴿۱۸۲﴾ اَلَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ عَهِدَ اِلَيْنَآ اَلَّا نُؤْمِنَ لِرَسُوْلٍ حَتّٰى يَاْتِيَنَا بِقُرْبَانٍ تَاْكُلُهُ النَّارُ ۭ قُلْ قَدْ جَآءَكُمْ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِيْ بِالْبَيِّنٰتِ وَبِالَّذِيْ قُلْتُمْ فَلِمَ قَتَلْتُمُوْهُمْ اِنْ كُنْتُمْ صٰدِقِيْنَ ﴿۱۸۳﴾

دَ هغوئ دا خبره به هم مونږ ليکو، او دا دے نه علاوه چه هغوئ کوم پيغمبران په ناحقه قتلول هغه هم دَ هغوئ په اعمال نامه کښ ليکلی شوی دی. (کله چه دَ فيصلے وخت راشی په هغه وخت کښ به) مونږ هغوئ ته وايو چه ځئ، اوس دَ جهنم دَ عذاب مزه وڅکئ، دا ستاسو دَ خپلو لاسو ګټه ده، الله دَ خپلو بندګانو دپاره ظالمن نه دے.

کوم خلق چه وائی "چه مونږ ته الله دا هدايت کړے دے چه تر هغه به هيڅوک رسول نه منو تر څو چه هغه زمونږ په مخکښ داسے قربانی ونکړی چه (دَ غيبو) اور راشی او هغه وخوری" هغوئ ته ووايه، "تاسو ته زما نه مخکښ ډير رسولان راغلی دی چه ډيرے څرګندے نښے ئے راوړے، او هغه نښه ئے هم راوړے وه چه دا تاسو ئے ذکر کوئ، نو که (دَ ايمان راوړو دپاره په دے شرط تکلو لوګئ) تاسو رښتينی يئ نو بيا هغه رسولان تاسو ولے قتل کړل؟[۱۲۹]

[۱۲۹] په بائيبل کښے په ډيرو ځايو نو کښے دا ذکر راغلے دے چه خدائے ته هر کومه قربانی قبوله شوه نو هغے پيژندګلو به دا وه چه دَ غيبو نه به اور راتلے او هغه به ئے خوړه کړله (قضاة ۶: ۲۰-۲۱ او ۱۳: ۱۹-۲۰) په بائيبل کښے دا هم راغلی دی چه په څو موقعو کښے به پرونی دَ سوزيدو دپاره قربانی ذکره او بيو غيبی اور به راتلے او هغه به ئے وخوړله (احبار ۹: ۲۴ - ۲ - تواريخ ۷: ۱-۲) . ليکن دا په کښے په يو ځائے کښے نه دی ليکلے شوی چه دا قسمه قربانی دَ نبوت دپاره يوه ضروري نښه ده، يا دا چه چا ته دا معجزه نه وی ورکړے شوی هغه به په رښتيا نبی نشی جوړيدلے . دا صرف يوه دَ دروغو بهانه وه چه يهوديانو دَ محمد صلی الله عليه وسلم دَ نبوت نه دَ انکار کولو دپاره جوړه کړی وه . ليکن دَ هغوئ دَ حق سره دَ دشمنئ دَ دے نه زيات ثبوت دا وو چه مخکښله دَ بنی اسرائيلو په پيغمبرانو کښے

فَاِنْ كَذَّبُوْكَ فَقَدْ كُذِّبَ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ جَآءُوْ بِالْبَيِّنٰتِ وَالزُّبُرِ وَالْكِتٰبِ الْمُنِيْرِ ﴿١٨٤﴾ كُلُّ نَفْسٍ ذَآئِقَةُ الْمَوْتِ ؕ وَاِنَّمَا تُوَفَّوْنَ اُجُوْرَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ فَمَنْ زُحْزِحَ عَنِ النَّارِ وَاُدْخِلَ الْجَنَّةَ فَقَدْ فَازَ ؕ وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ اِلَّا مَتَاعُ الْغُرُوْرِ ﴿١٨٥﴾ لَتُبْلَوُنَّ فِيْٓ اَمْوَالِكُمْ وَاَنْفُسِكُمْ قف وَلَتَسْمَعُنَّ مِنَ الَّذِيْنَ

اوس اے محمدؐ! که دا خلق تاته دروغژن وائي نو ستانه وړاندې ډېر رسولانو ته دروغژن ویلی شوی دی چه هغوئ ښکاره نښے او صحیفے او ترا ودکونکی کتابونه راوړی وُو. آخر به هر سړے مری او تاسو ټول به د قیامت په ورځ خپله خپله پوره بدله بیا مومئ. کامیاب په اصل کښ هغه دے چه هلته د دوزخ د وُور نه بچ شی او جنت ته داخل کړے شی. پاتے شوه دا دُنیا، نو دا صرف یو ظاهری دوکه ورکونکے شیز دے[130]

اے مُسلمانانو ستاسو په مالونو او بدنونو دوا ړو کښ به خامخا آزمیښتونه کیږی، او تاسو به د اهل کتابو او د مشرکانو نه

خنځ پیغمبران دا سے تیر شوی دی چه هغوئ د وُور د قربانئ دا معجزه پیش کړی وه او بیا هم دے بدکارو خلقو هغوئ قتل کړل. مثلاً په بائیبل کښ د حضرت الیاس (ایلیاه تشبی) په حقله دا لیکلی دی چه هغه د بَعل بُت عبادت کونکو خلقو ته اُوویل چه د عامو خلقو په مخکښے د یو غوئي قربانی تاسو وکړئ او د یو غوئ قربانی زه کوم. د چا قربانی چه غیبی وُور د خوړله هغه به په حقه وی. بیا دا مقابله د ګڼړو خلقو په مخکښے وشوه او غیبی وُور د حضرت الیاس هغه قربانی وخوړله. لیکن د دے دا نتیجه راووتله چه د اسرائیل د بادشاه ښځه چه د بَعل عبادت بڼه کوله د حضرت الیاس دُشمنه شوه، او هغه د ښځے تابعدار بادشاه د ښځے د پاره د هغه په قتل پسے ورپسے شو او حضرت الیاس په مجبوری سره د وطن نه ووتلو او د بیناپه غرونو کښے ئے پناه واخستله (۱- سلاطین. باب ۱۸، ۱۹). په دے وجه ورته دا ووئیلے شو چه اے د حق دُشمنانو! تاسو په کومه خوله د دُور د قربانئ معجزه غواړئ؟ کومو پیغمبرانو چه دا معجزه ښکاره کړی وه هغوئ تاسو څه دروغ پرېښودل.

[130] یعنی د دے دُنیا په ژوند کښے چه کومے فائدے او نقصانات حاصلیږی که سړے هم دغه ته اصلی او آخری فائدے یا نقصانات اُووائی او هم دغه د حق او د باطل د پاره د کامیابئ او د ناکامئ

أُوتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَمِنَ الَّذِيْنَ أَشْرَكُوْآ أَذًى كَثِيْرًا ۚ وَإِنْ تَصْبِرُوْا وَتَتَّقُوْا فَإِنَّ ذٰلِكَ مِنْ عَزْمِ الْأُمُوْرِ ﴿۱۸۶﴾ وَإِذْ أَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ الَّذِيْنَ أُوتُوا الْكِتٰبَ لَتُبَيِّنُنَّهٗ لِلنَّاسِ وَلَا تَكْتُمُوْنَهٗ ۫ فَنَبَذُوْهُ وَرَآءَ ظُهُوْرِهِمْ وَاشْتَرَوْا بِهٖ

ډیرے د تکلیف خبرے واورئ. که په دے ټولو حالاتو کښ تاسو صبر وکړو او د تقوی په لار ټینګ پاتے شوئ نو دا ډیره د حوصلے کار دے.[131] دے اهلِ کتاب ته هغه وعده هم وریاده کړه چه الله ترے اخستلی وه چه تاسو به د کتاب تعلیمات په خلقو کښ خوره وئ هغه به پټ نه ږدئ.[132] خو هغوئ کتاب شاته وغورزوو او په لږ قیمت باندې

معیار جوړ کړی نو په حقیقت کښے دغه سړے سخت په دوکه کښے پریوتلو. په دُنیا کښے چه په چا د نعمتونو باران راوریږی د دے دا مطلب نه دے چه دے په حقه هم دے او د الله خوښ بنده هم دے. او دغه شان که په دُنیا کښے په چا مصیبتونه او مشکلات راشی د هغے مطلب دا نه دے چه کښی دے په باطله دے او د الله خوښ نه دے. اکثر خو د دُنیا نتیجے د آخرت د نتیجو برخلاف وی. او اصلی اعتبار د آخرت د کامیابئ یا د ناکامئ دے.

۱۳۱ یعنی د هغوئ د پیغورونو، د الزامونو، د بے فائدے خبرو او د غلطے پروپیګنډے په مقابله کښے داسے نه چه تاسو بے صبره شئ او هغه خبری وکړئ چه د صداقت او د انصاف او د خو اخلاقو خلاف وی.

۱۳۲ یعنی هغوئ ته خو دا یاد دُو چه څینو پیغمبرانو ته د وُرد ته بانئ معجزه ورکړے شوی وه، خو دا ورته یاد نه دُو چه خدائے ورته کله خپل کتاب حواله کولو نو د هغوئ نه ئے څه وعده اخستلی وه او د کوم لوئ خدمت ذمه واری ئے په هغوئ باندې اچولی وه؟

دلته چه د کومے وعدے ذکر شوے دے د هغے ذکر ځائے ځائے په بائیبل کښے راځی. او خاص طور په استثناء کتاب کښے چه د حضرت موسیٰ کوم آخری تقریر نقل شوے دے په هغے کښے خو هغه بیا بیا د بنی اسرائیلو نه دا وعده اخلی چه کوم حکمونه ما تاسو ته دررسولی دی هغه زړه ته کوز کړئ، خپل نوی نسل ته ئے وُښایئ، که په کور کښے ناست یئ، که په لاره ځئ، که ملاست یئ او که ولاړ یئ هر وخت دا وایئ، د کور په درشلو او په پاټکو نو باندې دا ولیکئ. (۶: ۴-۹) بیا په خپل آخری وصیت کښے ئے دا تاکید کړے دے چه کله د فلسطین په سرحد درداخل شوئ نو د ټولونه اول دا کار وکړئ چه د عیبال په غر باندې لوئ لوئ کاڼی ودروئ او په هغے باندې

ثَمَنًا قَلِيْلًا ؕ فَبِئْسَ مَا يَشْتَرُوْنَ ﴿۱۸۷﴾ لَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ يَفْرَحُوْنَ بِمَآ اَتَوْا وَّيُحِبُّوْنَ اَنْ يُّحْمَدُوْا بِمَا لَمْ يَفْعَلُوْا فَلَا تَحْسَبَنَّهُمْ بِمَفَازَةٍ مِّنَ الْعَذَابِ ۚ وَلَهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۱۸۸﴾ وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۱۸۹﴾ ع اِنَّ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَاخْتِلَافِ الَّيْلِ وَالنَّهَارِ

ئې خرڅ کړو. څومره خراب کاروبار دے چه دا دوئ ئې کوي. تهٔ هغه خلق دَ عذاب نهٔ محفوظ مهٔ گڼړه چه هغوئ پخپلو کارونو باندې خوشحاله دي او دا غواړي چه په داسې کارونو د هغوئ صفتونه وشي چه په حقيقت کښ هغوئ کړي نهٔ وي[۱۳۳]. په حقيقت کښ دَ هغوئ دپاره دردناکه سزا تياره ده. دَ زمکے او دَ آسمانونو مالک الله دے او هغه په هر څه باندې قدرت لري.
دَ زمکے او دَ آسمانونو په پيدائش کښ او دَ شپے او دَ ورځے په يو بل پسے په بار بار راتللو کښ[۱۳۴]

دَ توراة حکونه ولیکئ (۲۷: ۲-۴) هم دغه رنګے ئې بنی لاوی قبيلے ته دَ توراة يوه نسخه ورکړه او ورته ئې وفرمائيل چه هر اُوم کال پسے دَ ځيامرد اختر په موقع دَ قسونو م تهول سري، ښځے او بچي ځلئے يو ځائے راجمع کوئ او دا پوره کتاب ورته لفظ په لفظ اوره وئ. ليکن دَدے باوجود بني اسرائيل دَ الله دَ کتاب نه دومره بے پرواؤ وو چه دَ حضرت موسیٰؑ نه اُوَه سوه کاله روستو دَ هيکلِ سليماني مجور انو ته او دَ يروشلم يهودي حاکم ته دا تدر له خبره هم معلومه نهٔ وه چه دَ هغوئ سره توراة نومے يو کتاب لا هم شته دے. (۲- سلاطين - ۲۲ : ۸ - ۱۳).

[۱۳۳] مثلاً هغوئ په خپله تعريف کښے دا صفتونه اوريدل غواړي چه خلق اُووائي چه دوئ ډير پرهيزګاره، ديندار او بزرګان دي، دَ دين خادمان دي، دَ شرعے پابند دي، اصلاح کونکي او پاکان دي، حالانکه هغوئ هيڅ هم نهٔ وي. يا دا غواړي چه دَ دوئ په حق کښے خلق دا مشهوره کړي چه فلانے صاحب ډير قربانئ والا، اخلاصمند او ديانتدار ليډر (مشر) دے او دَ قوم ډير خدمت ئې کړے دے، حالانکه فلانے هيڅ نهٔ وي بلکه معامله بالکل برعکس وي.

[۱۳۴] دا د کلام خاتمه ده. دَدے نزول دَ پاسني نزدے آيتونو سره لتهول نهٔ دي پکار بلکه په پوره سورة کښے لتهول پکار دي. په دے باندې دَ ځان پوهه کولو دپاره خصوصي طور دَ سورة په تمهيد نظر ساتل ضروري دي.

لَاٰيٰتٍ لِّاُولِي الْاَلْبَابِ ﴿۱۹۰﴾ الَّذِيْنَ يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ قِيٰمًا وَّ قُعُوْدًا وَّ عَلٰى جُنُوْبِهِمْ وَ يَتَفَكَّرُوْنَ فِيْ خَلْقِ السَّمٰوٰتِ وَ الْاَرْضِ ۚ رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا ۚ سُبْحٰنَكَ فَقِنَا عَذَابَ النَّارِ ﴿۱۹۱﴾ رَبَّنَاۤ اِنَّكَ مَنْ تُدْخِلِ النَّارَ فَقَدْ اَخْزَيْتَهٗ ؕ وَ مَا لِلظّٰلِمِيْنَ مِنْ اَنْصَارٍ ﴿۱۹۲﴾ رَبَّنَاۤ اِنَّنَا سَمِعْنَا مُنَادِيًا يُّنَادِيْ لِلْاِيْمَانِ اَنْ اٰمِنُوْا بِرَبِّكُمْ فَاٰمَنَّا ۖۗ رَبَّنَا فَاغْفِرْ لَنَا ذُنُوْبَنَا وَ كَفِّرْ

دَ هغه عقلمند و دپاره ډېرې نښې دي چه پر ولاړه، په ناسته او په ملاسته، په هر حال کښ خدائے یاده وي او دَ زمکے او دَ آسمانونو په جوړښت کښ غور او فکر کوي.[۱۳۵] (هغوی بے اختیاره وائي) چه "پروردګاره! دا ټول هر څه تا بے فائدے او بے مقصده نه دي جوړ کړي، ته پاک ئې دَ عبث کار کولو نه. پس اے ربه موږ دِ دوزخ دَ عذاب نه بچ کړے،[۱۳۶] تا چه څوک په دوزخ کښ واچوَ هغه دِ په حقیقت کښ په ډیر ذلت او شرمندګئ کښ واچوَ، او بیا بیا دَ داسے ظالمانو دپاره هیڅ مددګار نه وي. اے ربه، موږ یوا داز کوونکے واوریدو چه خلق ئے ایمان طرفته رابلل او وئیل ئې چه خپل رب ومنئ. نو موږ دَ هغه بلنه قبول کړه،[۱۳۷] پس اے زموږ ربه، کومے خطاګانے چه زموږ نه شوي دي هغه راته معاف کړې او کومے بدئ چه

[۱۳۵] یعنی دَ دے نښونو هر سړے په آسانه حقیقت ته رسید لے شي، خو شرط پکښے دا دے چه دَ خدائے نه غافله نه وي، او دَ جهان څیزونو ته دَ څناور په شان نه ګوري بلکه بنه په غور او فکر سره پرے سوچ کوي.

[۱۳۶] کله چه هغوی دَ کائناتو نظام ته په غور سره ګوري نو دا حقیقت ورته ښکاره کیږي چه دا ټول دَ حکمت نه ډک یو نظام دے. او دا خبره ټوله دَ حکمت نه خلاف ده چه په کوم مخلوق کښے الله تعالیٰ اخلاقي پیدا کړي وي، په خپله اراده دَ کار کولو اختیارات ئے ورکړي وي، عقل او دَ ښه او بد تمیز ئے ورله ورکړے وي، او بیا دِ دَ هغوی نه دَ دُنیا دَ ژوند دَ کارونو تپوس نه کیږي، هغوی ته دِ په نیکئ باندې جزا او په بدئ باندې سزا نه ورکړے کیږي. دغه شان دَ کائناتو په نظام باندې دَ غور فکر کولو سره هغوی ته دَ آخرت یقین حاصلیږي او دَ خدائے دَ سزا نه پناه غوښتل شروع کړي.

[۱۳۷] دغه شان دَ هغوی دا غور کول هغوی له دَ دے خبرے تسلی هم ورکوي چه پیغمبر دَ دے کائناتو دَ شروع کیدو او دَ ختمید و په حقله څه وائي او دَ ژوند تیرولو دپاره کومه لارښوونه ورکوي هغه بالکل سراسر حقه ده.

عَنَّا سَيِّاٰتِنَا وَتَوَفَّنَا مَعَ الْاَبْرَارِ ﴿۱۹۳﴾ رَبَّنَا وَاٰتِنَا مَا وَعَدْتَّنَا
عَلٰى رُسُلِكَ وَلَا تُخْزِنَا يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ؕ اِنَّكَ لَا تُخْلِفُ الْمِيْعَادَ ﴿۱۹۴﴾
فَاسْتَجَابَ لَهُمْ رَبُّهُمْ اَنِّیْ لَاۤ اُضِيْعُ عَمَلَ عَامِلٍ مِّنْكُمْ مِّنْ
ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى ۚ بَعْضُكُمْ مِّنْ بَعْضٍ ۚ فَالَّذِيْنَ هَاجَرُوْا وَاُخْرِجُوْا
مِنْ دِيَارِهِمْ وَاُوْذُوْا فِیْ سَبِيْلِیْ وَقٰتَلُوْا وَقُتِلُوْا لَاُكَفِّرَنَّ

په موږ کښې دي هغه راند لرې کړه او زموږ خاتمه د نيکو خلقو سره وکړه، اے خدايه!
کومې وعدے چه تا د خپلو رسولانو په ذريعه کړي دي هغه زموږ سره پوره کړه او د
قيامت په ورځ موږ مه شرمنده کوه، بيشکه ته د خپلې وعدے خلاف کونکے نه يې[138]."
په جواب کښې ورته خپل رب وفرمايل" زه به تاسو کښې د هيچا عمل ضايع کونکے نه
يم. که سړي يئ او که ښځې، تاسو ټول د يو بل هم جنس يئ[139]. نو کومو خلقو چه زما
د پاره خپل وطنونه پريښودلي دي او زما په لار کښې د خپلو کورونو نه ايستلے شوي دي
او تکليفونه وررسولے شوي دي او زما د پاره جنګيدلي او وژلے شوي دي، د هغوی

[138] يعنې د هغوی په دے خبره کښې شک نه دے چه الله به خپلے وعدے
پوره کړي او که نه. شک ئے په دے کښې دے چه آيا موږ به هم په هغے وعدو پورے
اوخيږو او که نه. د دے وجه نه هغوی د الله نه دُعاګانے غواړي چه اے ربه، په دغو
وعدو موږه پوره وخيژوه، زموږ سره دغه وعدے پوره کړه، په دُنيا کښې خو موږه
په پيغمبرانو ايمان راوړے دے او د هغے په وجه موږ د کافرانو د خندا شوي يو او سپوره
سختے راته وايي، هسے نه چه د قيامت په ورځ هم د کافرانو ته شرمنده شو
او هغه هم مونږ ته پيغورونه راکړي چه سره د ايمانه ورته څه خير
ملاؤ نه شو.

عَنْهُمْ سَيِّاٰتِهِمْ وَلَاُدْخِلَنَّهُمْ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ ۚ
ثَوَابًا مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ ۗ وَاللّٰهُ عِنْدَهٗ حُسْنُ الثَّوَابِ ﴿۱۹۵﴾ لَا يَغُرَّنَّكَ
تَقَلُّبُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا فِي الْبِلَادِ ﴿۱۹۶﴾ مَتَاعٌ قَلِيْلٌ ۟ قف ثُمَّ
مَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ۗ وَبِئْسَ الْمِهَادُ ﴿۱۹۷﴾ لٰكِنِ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا
رَبَّهُمْ لَهُمْ جَنّٰتٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا
نُزُلًا مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ ۗ وَمَا عِنْدَ اللّٰهِ خَيْرٌ لِّلْاَبْرَارِ ﴿۱۹۸﴾ وَاِنَّ
مِنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ لَمَنْ يُّؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكُمْ وَمَآ

---

ټول ګناهونه به زه معاف کړم او دا سې باغونو ته به ئې ور داخل کړم چه لاندې به ترې ویالې بهیږي.
دا د هغوئ بدله ده د الله سره او بهترینه بدله خود الله سره ده.[۱۳۹]"

اے نبیؐ، د دنیا په ملکونو کښې د دا نافرمانو خلقو منډې ترې دې تا دوکه نه کړي.
دا بس دوه یو څو ورځو د ژوند لږې مزې دي، بیا به دا ټول جهنم ته ځي چه د ټولونه
خراب ځائے د قرار دے. د دې نه برعکس چه کوم خلق د خدائے نه په یره یره ژوند
تیره وي د هغوئ د پاره دا سې باغونه دي چه لاندې ترې ویالې بهیږي، په دې باغونو
کښې به هغوئ همیشه و سیږي، دا د الله د طرفه د هغوئ د پاره د میلمستیا سامان دے،
او څه چه د الله سره دي هغه د نیکانو خلقو د پاره د ټولونه بهتر دي. په اهل کتابو کښې هم
څه خلق دا سې دي چه الله مني او په هغه کتاب باندې ایمان دے چه تاسو ته رالیږلے شوے دے،

---

۱۳۹ یعني تاسو ټول انسانان یئ او زما په نظر کښې یو شان یئ. زما دا طریقه نه ده چه د زنانه
او نارینه، د مالک او د غلام، د تور او د سپین، د مالدار او د غریب د پاره جدا جدا د انصاف اُصول وي.

۱۴۰ روایت دے چه څنګه کافران نبي صلی الله علیه وسلم ته راغلل او ورته ئې اُووئیل
چه موسیٰؑ سره همسا او سپین لاس معجزه وه. عیسیٰؑ به ړانده بینا کول د لاسوځو د کوټو

أُنْزِلَ إِلَيْهِمْ خٰشِعِيْنَ لِلّٰهِ ۙ لَا يَشْتَرُوْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ ثَمَنًا قَلِيْلًا ۗ أُولٰٓئِكَ لَهُمْ أَجْرُهُمْ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۗ إِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴿۱۹۹﴾ يٰٓأَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اصْبِرُوْا وَصَابِرُوْا وَرَابِطُوْا ۣ وَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۲۰۰﴾ ع

او په هغه کتاب باندې هم ایمان لري چه دوی ته نازل شوې دی، د خدائ په وړاندې عاجزي کوي او د الله آیاتونه په لږ قیمت نه خرڅوي. د هغوئ بدله د هغوئ رب سره ده او الله په حساب کولو کښې وخت نه تیروي.

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، د صبرنه کار واخلئ، د باطل پرستو په مقابله کښې مضبوط وُسئ، د حق د خدمت دپاره ملا تړلی تیار وُسئ، او د الله نه ویریږئ. اُمید دے چه کامیابي به بیا مومئ۔ ع

---

د ریړیلو مرضیه یے بند کولو. ته ؤوایه چه تاځه راوړي دي؛ د دے په جواب کښې نبیؐ دا رکوع د اول سرنه د دے ځائے پورے تلاوت کړه او ورتہ ؤئے فرمائیل چه ماخود ا راوړے دے.

۱۳۲؎ اصل عربي لفظ صَابِرُوْا دے. د دے دوه معنے دي. یوه دا چه کافران څومره په خپل کفر مضبوط و لاړ دي او د کفر د چتولو دپاره څومره مشکلات برداشت کوي، تاسو د هغے په مقابله کښې د هغوئ نه زیات مضبوط وُسئ. بله دا چه د کافرو په مقابله کښې یو بل نه زیات مضبوط ؤسیږئ.

---

# النسآء ۴

**دَ نازلیدو زمانه او دَ مضمون حصّې** په دې مضمون کښې یو څو خطبې دي چه غالباً دَ دریمې هجرۍ دَ آخر سره نه را واخله دَ څلورمې هجرۍ دَ آخر سره پورې یا دَ پنځمې هجرۍ دَ اول سره پورې په مختلفو وختونو کښې نازل شوي دي. اګر چه دا پته لګول ډېر مشکل دي چه یو تقریر په کښې دَ کوم ځائې نه دَ کوم ځائې پورې دې او ټیک په کوم وخت کښې نازل شوې دې، خو لیکن څینې حکمونه او څینې واقعات طرف ته په کښې څه داسې اشارې شوي دي چه دَ هغې دَ نازلیدو وخت مونږ ته دَ روایاتو نه معلومیدې شي او د دې روایاتو په وجه مونږ دَ هغې مختلفو تقریرونو یوه سرسري شان حد بندي لګولې شو چه کوم تقریرونو کښې چه دا حکمونه او اشارې راغلي دي.

مثلاً مونږ ته دا معلومه ده چه میراث دَ تقسیم او دَ یتیمانو دَ حقونو په باره کښې حکمونه دَ جنګِ اُحد نه روستو نازل شوي وُو. په جنګ اُحد کښې دَ مسلمانانو اویا کسان شهیدان شوي وُو او دَ دې شهادت په وجه دَ مدینې په ورکوټي شان کلي کښې په اکثرو کورونو کښې دا خبره پیښه ته راغلې وه چه دَ شهیدانو میراث څنګه تقسیم کړې شي او کوم یتیمان چه دَ هغوئ نه پاتې شوي دي دَ هغوئ دَ فائدې په لحاظ څنګه وساتلې شي. په دې وجه مونږ دا قیاس کولې شو چه اولني څلور رکوعګانې او دَ پنځمې رکوع اولني درې آیاتونه به هم په دغه زمانه کښې نازل شوي وي.

په روایاتو کښې دَ صلوٰةِ خوف (دَ جنګ په حالت کښې دَ مونځ کولو) ذکر په ذاتُ الرِّقاع نومې غزا کښې راغلې دې چه په څلورمه هجرۍ کښې شوې وُو. په دې وجه دا قیاس کیدې شي چه هم دَ دغې غزا په خوا وُشا زمانه کښې به هغه خطبه نازله شوې وي په کومه کښې چه دَ صلوٰةِ خوف دَ مونځ طریقه بیان شوې ده (رکوع ۱۵).

دَ مدینې نه قبیله بني نضیر دَ څلورمې هجرۍ په ربیع الاول میاشت کښې ایستلې شوې وه نو په دې وجه غالب ګمان دا دې چه د دې نه لږه زمانه مخکښې به هغه خطبه نازله شوې وي په کومه کښې چه یهودیانو ته آخري خبردارې ورکړې شوې دې چه ایمان راوړئ مخکښې دَ دې نه چه مونږ درله مخونه وران کړو او شاته ئې واړوو.

دَ اوبو دَ نشتوالي په وجه دَ تیمم اجازت دَ بني المصطلق په غزا کښې شوې وُو او دا غزا په پنځمه هجرۍ کښې شوې وه لهٰذا دَ تیمم ذکر چه په کومه خطبه کښې راغلې دې هغه به هم د دې سره په تړلې زمانه کښې نازله شوې وي (رکوع ۷)

**شانِ نزول او مجثونه** دغه شان دَ ټول سورة دَ نازلیدو زمانه معلومه شوه او س پکار دي چه دَ دې زمانې په تاریخ باندې نظر واچوو چه دَ هغې په مدد سره دَ سورة په مضمون پوهه شو.

په دغه وخت کښې چه د نبي صلی الله علیه وسلم په وړاندې څه کار وُو هغه په دریو لویو حصو کښې تقسیمیدې شي: یو د هغو نوؤ منظمو اسلامي خلقو پرورش کول وُو چه هغوی د مدینې په خوا وُ شا کښې آباد شوي وُو او د جاهلیت زړې طریقې ئې ختمې کړې وې، او د اخلاقو، د استوګنې، د یو بل سره د اوسیدلو، او په خپلو کښې د ژوند تیرولو او د وطن د انتظام چلولو په نوي اُصولو باندې ئې کار شروع کړې وُو. دوئیم د هغې دُشمنۍ مقابله کول وُو کومه چه د عربو د مشرکانو، د یهودیانو او د منافقانو خلقو سره شروع شوې وُه. دریم د اسلام د آواز د دې مشکلاتو باوجود هم خوا ئې ته رسول وُو او د نورو خلقو زړونه د اسلام تابع کول وُو. په دې موقع چپې د الله تعالیٰ د طرفه څومره خطبې نازلې شوې دي د هغوی تعلق د دې دریو واړو خبرو سره دے.

د مسلمانانو د تنظیم دپاره چه کوم حکمونه په سورة بقره کښې نازل شوي وُو، اوس د هغې نه د زیاتو حکمونو کولو ضرورت وُو، نو په دې وجه د سورة نسآء په دې خطبو کښې دا خبره نوره زیاته په تفصیل سره وُ ښودلې شوه چه مسلمانان خپل شریک ژوند په کومه طریقه د اسلام لاندې تیر کړي. په خپلو خاندانونو کښې د تنظیم ساتلو دپاره اُصول وُ ښودلې شو. په نکاح باندې پابندیانې وُ لګیدلې. په استوګنه کښې د زنانه او د نارینه د تعلقاتو حد بندي وُ شوه. د یتیمانو حقوق مقرر شول. د میراث د تقسیم دپاره طریقه مقرر شوه. په ژوند کښې چه کوم مشکلات پیښیږي د هغې په حقله هدایات وُ شو. د کورنۍ جګړو د اصلاح طریقه او ښودلې شوه. د سزا قانون جوړ کړې شو. د شرابو په څښلو پابندي وُ لګیدې. د پاکۍ حکمونه وُ شو. مسلمانانو ته وُ ویلې شو چه د یو نیک صالح انسان پشان د خدائے او د مخلوق سره څنګه تعلق ساتل پکار دي. د جماعتي تنظم قائمولو دپاره مسلمانانو ته هدایات ورکړې شو. د اهل کتابو په اخلاقي او مذهبي رویې باندې خبرې اترې وُ شوې او مسلمانانو ته دا خبرداری ورکړې شو چه د دغه مخکیني اُمتونو پشان د کار کولو نه ځان وُ ساتي. د منافقانو په کار خبرې وُ شوې او د رښتیني ایماندارۍ په ګوته کړې شوه. او د ایمان او د نفاق صفتونه د یو بل نه جُدا جُدا وُ ښودلے شو.

د کفر سره چه کوم جنګ شروع وُو هغه د جنګ اُحد نه روستو نور زیات شو. په جنګ اُحد کښې د شکست خوړلو په وجه د مشرکانو، د یهودیانو او د منافقانو حوصلے وُچتے شوې او مسلمانان د هر طرفه په خطرو کښې ګیر شو. په دې حالاتو کښې الله تعالیٰ د یو طرفه په ډېره جوش ناکو خطبو باندې مسلمانان مقابلے کولو ته تیاره ول او د بل طرفه ئې ورته دا هدایات ورکول چه د جنګ په حالاتو کښې په دې طریقه ژوند تیروئ. په مدینه کښې به منافقانو او د کمزوري ایمان والو خلقو هر قسم د ډېرې خبرونه خپرول چه مسلمانان بے حوصلې شي. حکم وُ شو چه دا قسم خبرونه ذمه وارو خلقو ته رسوئ او ترڅو چه هغوی د دې تحقیق نه روستو اجازت نه وي کړې تر هغې پورې هغه خبر مه خپروئ. مسلمانان به هر وخت جنګونو له تلل او په دا سې لاره به تلل چه هلته به اُوبه نه وې. اجازت وُ شو چه که اُوبه ملاؤ نه شي نو د غُسل او د اودس دواړو دپاره تیمم وهئ. په دا سې حالاتو

کښې د موقع مختصر کولو اجازت هم ورکړې شو. او چه کله خطره بالکل په سر باندې وي نو په هغه وخت کښې د صلوٰة خوف کولو طریقه وښودلې شوه. د عرب په مختلفو علاقو کښې څنې مسلمانان د کافرانو سره خوارۀ وارۀ وسیدل او اکثر به په جنګ کښې راګیر هم شو، د دغه مسلمانانو معامله د مدینې د مسلمانانو د پاره د سختې پریشانئ سبب وُو. په دے مسئله کښې یو طرفته اسلامي ډلې ته ډېر په تفصیل سره هدایات ورکړې شو او بل طرفته دغه خوارۀ وارۀ مسلمانان هجرت کولو ته تیار کړې شو چه کوم ځوانه یو دارالاسلام ته راغونډ شي.

په یهودیانو کښې د بنی نضیر قبیلې کارویه سخت د دُشمنئ وُو، هغوئ د معاهدو پروانه ساتله او په ښکاره یې د اسلام د دُشمنانو مکرتیا کوله. او په مدینه کښې دننه یې هم د محمد صلی الله علیه وسلم او د هغه د جماعت خلاف سازشونه کول. د هغوئ په دے کار باندې سختې سختې خبرې وشوې او هغوئ ته په صفا الفاظو کښې آخری خبرداریه ورکړې شو. د دے خبرداری نه روستو بیا هغوئ د مدینې نه وُو ویستلے شو.

د منافقانو درے ډلے وې او د هرې ډلې جُدا جُدا کار وُو، او د مسلمانانو د پاره دا ګرانه وه چه د ټولو منافقانو سره یو شان سلوک وکړي. دا ټول منافقان یې په جُدا جُدا ډلو کښې تقسیم کړل او د هرې ډلې چه د فلانئ ډلې سره دا قسم سلوک ساتل پکار دي.

دا خبره هم واضحه کړې شوه چه د کوم قبیلو سره وعدې شوې وې او هغه غیرجانبداره وسیدې د هغوئ سره د مسلمانانو څه سلوک ساتل پکار دي.

د ټولو نه زیاته اهمه او ضروري خبره دا وه چه د مسلمانانو ځان عمل دې بالکل صفا وي څکه چه مسلمانانو صرف د خپلو ښو اخلاقو په زور باندې کټه کولے شوه. د دے وجه نه مسلمانانو ته د ښو وچتو اخلاقو تعلیم ورکړې شو او د مسلمانانو په جماعت کښې چه څه کمزوري په ظاهره ښکاریدله په هغې باندې سختې سختې خبرې وشولې.

په دے سورة کښې د دعوت او د تبلیغ کار هم نه دے پاتې شوې. د جاهلیت په مقابله کښې چه اسلام کوم اخلاقو ته او د ژوند تیرولو کوم طریقې ته دُنیا رابللې د هغې نه تشریح شوې ده. د دے نه علاوه د یهودیانو، د عیسایانو او د مشرکانو چه کوم غلطې عقیدې او کوم غلط کارونه وُو په هغې ید وُویستلے شو او هغوی ټولو ته د حق دین دعوت ورکړے شو.

---

آیاتها ۱۷۶ — **سُوْرَةُ النِّسَآءِ مَدَنِيَّةٌ** — رکوعاتها ۲۴

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

يٰٓاَيُّهَا النَّاسُ اتَّقُوْا رَبَّكُمُ الَّذِيْ خَلَقَكُمْ مِّنْ نَّفْسٍ وَّاحِدَةٍ وَّخَلَقَ مِنْهَا زَوْجَهَا وَبَثَّ مِنْهُمَا رِجَالًا كَثِيْرًا وَّنِسَآءً ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْ تَسَآءَلُوْنَ بِهٖ وَالْاَرْحَامَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلَيْكُمْ رَقِيْبًا ①
وَاٰتُوا الْيَتٰمٰٓى اَمْوَالَهُمْ وَلَا تَتَبَدَّلُوا الْخَبِيْثَ بِالطَّيِّبِ

اے خلقو، د خپل رب نه ویریږئ چه تاسو ئے د یو نفس نه پیدا کړئ او هم د هغے نفس نه ئے د هغے نفس د پاره جوړه پیدا کړه او د دغه دواړو نه ئے ډیر نارینه او زنانه په دُنیا کښ خوارهٔ کړل.[1] د هغه خدائے نه ویریږئ چه د هغه په واسطه تاسو د یو بل نه خپل حقونه غواړئ او د خپلوئ د تعلقاتو وړانولو نه ځان ساتئ. یقین لرئ چه الله په تاسو باندې نظر ساتی۔
د یتیمانو مال هغوئ له واپس ورکړئ،[2] ښهٔ مال په خراب مال مهٔ بدلوئ،[3]

[1] وړاندې به د انسانانو په خپلو کښے حقونه بیانیږی او خاص طور د کورنۍ نظام د ښهٔ کولو د پاره به ضروری قانونونه ښودلے کیږی، نو د دے وجے نه اول شروع په دا سے طریقه سره وشوه چه یو طرفته ئے پر دے خبرے زور ورکړو چه د خدائے نه ویریږئ او د هغه د ناراضګئ نه ځان ساتئ او بل طرفته ئے دا خبره ذهن ته راوستله چه د ټولو انسانانو اصل یو دے ټول د یو بل وینه غوښه دی۔

"تاسو ئے د یو نفس نه پیدا کړئ" یعنی د انسانانو پیدا وښت ئے په اول کښے د یو تن نه وکړو. په بل ځائے کښے قرآن پخپله د دے تشریح کوی چه هغه اولنی انسان آدم وُو او د هغه نه د انسانانو نسل په دُنیا کښے خور شو۔

"د هغے نفس نه ئے د هغے نفس د پاره جوړه پیدا کړه" دا څنګه پیدا شوه د دے تفصیلی حالت زمونږ په علم کښے نشته. مفسرین چه کومه عامه خبره بیانوی او چه کومه په بائبل کښے هم بیان شوی ده، هغه دا ده چه د آدم د پښتئ نه حوا پیدا کړے شوه (په تلمود کښے زیات تفصیل دا لیکلے شوے دے چه حضرت حوا د حضرت آدم علیه السلام د ښیٔ طرف د دیار لسمے پښتئ نه پیدا شوی وه). لیکن د الله کتاب په دے باره کښ خاموش دے. او کوم حدیث چه د دے په دلیل کښے پیش کیږی د هغے مطلب هم هغه نه دے کوم مطلب چه تېر اخلق اخلی. نو د دے وجے نه زیاته ښه دا ده چه خبره هم دغه شان مجمله په ځائے پاتے شی څنګه چه الله مجمله پاتی کړی ده او وخت پرِ ضائع نه کړے شی۔

وَلَا تَأْكُلُوٓا أَمْوَٰلَهُمْ إِلَىٰٓ أَمْوَٰلِكُمْ ۚ إِنَّهُۥ كَانَ حُوبًا كَبِيرًا ﴿٢﴾
وَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تُقْسِطُوا۟ فِى ٱلْيَتَٰمَىٰ فَٱنكِحُوا۟ مَا طَابَ لَكُم
مِّنَ ٱلنِّسَآءِ مَثْنَىٰ وَثُلَٰثَ وَرُبَٰعَ ۖ فَإِنْ خِفْتُمْ أَلَّا تَعْدِلُوا۟

او د هغوئ مال د خپل مال سره يو ځائے مه خورئ، دا ډېره لويه ګناه ده.
که چرے تاسو د يتيمانو سره د بے انصافۍ کولو نه يرېږئ نو کومے ښځے چه ستاسو خوښې شي په هغوئ کښې د دوه دوه، درې درې او د څلورو څلورو سره نکاح وکړئ[3]. خو که دا فکر درسره وو چه د هغوئ ترمنځه به انصاف ونکړے شئ نو

[1] يعني ترڅو پورے چه هغوئ واړه وي، د هغوئ مالونه د هغوئ د ګټے د پاره خرچ کوئ او چه کله لوئ شي نو څه چه د هغوئ حق وي هغه ورته واپس کړئ.

[3] د دے يو مطلب دا دے چه د حلالو پځائے حرام مه خورئ او بل مطلب ئے دا دے چه د يتيمانو د ښه مال سره خپل خراب مال مه بدلوئ.

[4] مفسرينو د دے درے مطلبونه بيان کړي دي.

(۱) حضرت عائشه د دے په تفسير کښې فرمائي چه د جاهليت په زمانه کښې به يتيمے جينکئ چا ته پاتے شوے، نو يا د هغوئ د مالونو او د ښائيست په وجه او يا په دے وجه چه څه خو د تپوس نه څوک نشته چه څنګه مو خوښه وي هغه شان د پاڼ به پرے کوو، هغوئ به ورسره پخپله نکاح کوله او بيا به ئے پرے ظلم کولو. نو حکم وشو چه که تاسو سره دا فکر وي چه د يتيمانو جينکو سره به انصاف ونکړے شئ نو په دنيا کښې نورے ښځے هم شته په هغے کښې چه مو کومے ښځے خوښے شي د هغوئ سره نکاح وکړئ. په دے سورت کښې د نولسم رکوع اولنئ آيت د دے تفسير تائيد کوي.

(۲) ابن عباس او د هغه شاګرد عکرمه د دے دا تفسير بيانوي چه د جاهليت په زمانه کښې د نکاح څه حد نه وو. يو سړي به لس لس ښځے کولے او کله چه به د دے ډېرو ودونو د وجه نه خرچونه زيات شو نو د مجبورۍ نه به ئے د خپلو يتيمانو وريرونو، خوريانو او د نورو غريبانو خپلوانو حقونه وهل. نو الله تعالیٰ د نکاح د پاره د څلورو ښځو حد مقرر کړو او وے فرمائيل چه که ځان د ظلم او د بے انصافۍ نه ساتئ نو کيوه نه واخلئ د څلورو ښځو پورے چه د څومره ښځو سره انصاف کولے شئ هغه په نکاح واخلئ.

(۳) سعيد بن جبير او قتاده او څه نور مفسرين وائي چه د يتيمانو سره د بے انصافۍ کولو نه به د جاهليت خلقو هم په ښه نظر نه کتل. ليکن د ښځو په معامله کښې د هغوئ خيالات د عدل او د انصاف نه بالکل خالي وو. چه څومره به ئے خوښه وه هغومره ودونه به ئے کول او بيا به ئے د هغوئ سره ظلم کولو. د دے وجه نه حکم وشو چه د يتيمانو سره د بے انصافۍ کولو نه يرېږئ نو د ښځو سره د بے انصافۍ کولو نه هم وېرېږئ. اول خو

فَوَاحِدَةً اَوْ مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ ذٰلِكَ اَدْنٰٓى اَلَّا تَعُوْلُوْا ③

بيا يوه ښځه وکړئ[۵] يا هغه وينځې ځان له ونيسئ چه ستاسو په قبضه کښې راغلې دي[۶]، د بې انصافئ نه د بچ کيدلو دپاره دا کار زيات نيږدې دے۔

د څلورو نه زياتې نکاح کانې مه کوئ او د څلورو پورې هم دومره ښځې ساتئ چه د څومره سره انصاف کولے شئ۔

د دے آيت د الفاظو درې واړه تفسيرونه کيدے شي، او کيدے شي چه درې واړه مطلبونه ئې ټيک وي۔ او دا يو مطلب ئې هم کيدے شي چه که د يتيمانو سره هسې انصاف نشئ کولے نو د کومو ښځو سره چه يتيمان بچي دي د هغوئ سره نکاح وکړئ۔

۵ په دے خبره باندې د ټول اُمت د عالمانو اجماع ده چه په دے آيت کښې د ښځو حد مقرر شوے دے او په يو وخت د څلورو نه زياتې ښځې ساتل منع کړے شوي دي. د دے اجماع تصديق د روايا تونه هم کيدے شي. په حديث کښې راغلي دي چه د طائف سردار غيلان کله اسلام راوړو نو د هغه نهه ښځې وے. نبي صلى الله عليه وسلم ورته حکم وکړو چه څلور ښځې وساته باقي پريږده. د غه شان د يو بل سړي (نوفل بن معاويه) پنځه ښځې وے. نبيؐ ورته حکم وکړو چه په دوئ کښې يوه ښځه پريږده۔

د غه رنګې په دے آيت کښې د ډيرو ښځو ساتلو دپاره د انصاف شرط لګولے شوے دے. کوم سړے چه انصاف نشي کولے او د يوے نه زياتې ښځې ساتي هغه د الله سره دوکه کوي. د اسلامي حکومت عدالتونو ته دا حق حاصل دے چه د کومو ښځو سره انصاف نشي کولے د هغو ښځو فرياد دِ داوري.

کومو خلقو چه د مغرب د عيسائي رائے نه اثر قبول کړے دے هغوئ د دے خبرے د ثابتولو کوشش کوي چه قرآن په اصل کښې د ډيرو ښځو کولو طريقه (چه مغرب ورته خرابه طريقه وائي) ختمول غوښتل، خو د ډيرو ښځو کولو رواج ډير زيات وو نو د دے وجه نه ئې پر صرف پابندئ ولګولے او نوره خبره ئې په ځائے پريښودله. ليکن دا قسم خبرے کول د ذهني غلامئ اثر دے. د ډيرو ښځو کولو نه پذات ځان ترمنلو خبره ده، ځکه چه په ځينې حالاتو کښې ډيرے ښځې کول يو اخلاقي ضرورت جوړ شي. که چرے د يوے نه د زياتو ښځو کولو اجازت نه وي، نو بيا هغه خلق چه په يوه ښځه صبر نشي کولے، هغوئ به د بے نکاح ښځو سره د خپل خواهش پوره کولو دپاره بدامني خوره وي، او د دے نقصانات د هغې نقصانانو نه ډير زيات دي کوم چه د ډيرو ښځو سره د نکاح کولو په وجه رسيدے شي. د دے وجې نه قرآن د ضرورتمندو خلقو دپاره د يوے نه د زياتو ښځو کولو اجازت ورکړے دے. بيا هم چه د کومو خلقو په خيال کښې ډيرے ښځې کول يو خراب کار ښکاري هغوئ ته دا اختيار حاصل دے چه د قرآن نه خلاف دے ته بد وائي، و خلقو ته د دے نه د منع کولو مشورے ورکړي. ليکن دا حق ورته هيچرے حاصل نه دے چه خپل خيال خامخا د قرآن سره وتړي. ځکه چه قرآن په صفا الفاظو کښې د يوے نه زياتو ښځو کولو ته جائز ويلي دي او چرته په اشارو کنايو کښې هم د منع په باب ويلو کښې داسې الفاظ نه دي استعمال کړي چه د هغې نه دا معلومه شي چه قرآن په حقيقت کښې د زياتو ښځو کولو رواج ختمول غوښتل. (د زياتې تشريح دپاره وګوره زما کتاب "سُنت کى آئينى حيثيت" ص ۳۰۳ تا ۳۱۲)

وَاٰتُوا النِّسَآءَ صَدُقٰتِهِنَّ نِحۡلَةً ؕ فَاِنۡ طِبۡنَ لَكُمۡ عَنۡ شَىۡءٍ مِّنۡهُ نَفۡسًا فَكُلُوۡهُ هَنِيۡٓــًٔا مَّرِيۡٓــــًٔا ﴿۴﴾ وَلَا تُؤۡتُوا السُّفَهَآءَ اَمۡوَالَكُمُ الَّتِىۡ جَعَلَ اللّٰهُ لَكُمۡ قِيٰمًا وَّارۡزُقُوۡهُمۡ فِيۡهَا وَاكۡسُوۡهُمۡ وَقُوۡلُوۡا لَهُمۡ قَوۡلًا مَّعۡرُوۡفًا ﴿۵﴾

او ښځو له خپل مهرونه د زړه په خوشحالئ سره (په دې خیال چه دا فرض دے) ورکوئ، البته که هغوئ په خپله خوښه د مهر څه حصه تاسو ته معاف کړي نو هغه به د مزے سره خورلے شئ. ⁽ᵇ⁾

او خپل هغه مالونه چه الله ستاسو دپاره د ګذران یوه ذریعه جوړه کړې ده، ناپوهه خلقو ته مه حواله کوئ، البته هغوئ له د خوراک او د پوشاک دپاره ورکوئ او ښکے خبرے ورته کوئ. ⁽ᶜ⁾

---

ك د دے نه مُراد وینځۍ دی، یعنی هغه ښځے چه په جنګ کښے ونیولے شي او د حکومت د طرفه په خلقو کښے تقسیم کړے شي. مطلب دا دے که د یوے آزادے خاندانی ښځے کولو بوج نه شے برداشت کولے نو بیا د وینځے سره نکاح ؤکړه، لکه څنګه چه په څلورم رکوع کښے ورانديز راځي. یا دا مطلب دے چه که د یوے نه د زیاتو ښځو ضرورت درته وی او د آزادو خاندانی ښځو په منځ کښے درته انصاف کول ګران وی نو د ښځو طرفته رجوع ؤکړه، ځکه چه د د ښځو په وجه به دربانديز ذمه واری کمه راشي. (مخکښے په حاشیه ۴ کښے به درته د وینځو په حقله حکمونه بیۀ په تفصیل سره ملاؤ شي).

ب د حضرت عمر او د قاضی شریح دا فیصله ده چه که یوے ښځے خپل خاوند ته خپل پوره مهر یا د مهر یوه حصه معاف کړې وی او وروستو بیا ؤغواړی نو خاوند به په دے مجبوره ولے شي چه دغه مهر ښځے له ورکړي ځکه چه د هغے د غوښتلو دا مطلب دے چه هغه په خپله خوشئ سره خپل ټول مهر یا د مهر څه حصه پریښودل نۀ غواړي. (د زیات تفصیل دپاره ؤګوره "حقوق الزوجین" عنوان "مهر").

ج د دے آیت ډیر زور مطلب دے. په دے کښے ټول اُمت ته ویلے شوی دی چه مالونه د ژوند تیرولو یوه ذریعه ده، دا خامخا د دے ناپوهه خلقو په لاس کښے ورکول نۀ دی پکار چه په غلطه طریقه ئے استعمال کړي او د ژوند د تیرولو ټول نظام خراب کړي - په یو څیز باندې د ملکیت حق چه یو سړي ته حاصل دے هغه دومره لامحدود نۀ دے چه که هغه په صحیح طریقه د دغے حق د استعمالولو اهل نۀ وی او که د هغے په استعمالولو باندې یو لوئ فساد راپورته کوی خو بیا هم د هغه نه د ملکیت حق نشي اخستلے کیدے. تر څو پورے چه د یو سړي د ژوند د ضرورتونو خبره ده هغه خو ضرور پوره کول پکار دی، لیکن تر کومه حده پورے چه د خپل مالکانه حق په آزادئ سره د استعمالولو تعلق دے په هغے باندې پابندی لګول پکار دی هسے نه چه دغه استعمال د اخلاقو او د شریک ژوند تیرولو دپاره نقصانی وی. د دے حکم مطابق ده مالدار انسان دپاره د دے خبرے لحاظ ساتل پکار دی چه هغه چاته خپل مال حواله کوی نو آیا هغه د هغے د استعمالولو

وَابْتَلُوا الْيَتٰمٰى حَتّٰىٓ اِذَا بَلَغُوا النِّكَاحَ ۚ فَاِنْ اٰنَسْتُمْ مِّنْهُمْ رُشْدًا فَادْفَعُوْٓا اِلَيْهِمْ اَمْوَالَهُمْ ۚ وَلَا تَاْكُلُوْهَآ اِسْرَافًا وَّبِدَارًا اَنْ يَّكْبَرُوْا ۗ وَمَنْ كَانَ غَنِيًّا فَلْيَسْتَعْفِفْ ۚ

او د یتیمانو آزمېښت کوئ ان تر دې پورې چې هغوئ د نکاح کولو عمر ته ورسېږي.[۹] پس د هغې نه که چېرې تاسو په هغوئ کښې هوښیارتیا ولیده نو د هغوئ مالونه هغوئ ته حواله کړئ.[۱۰] دا سې هیڅرې مه کوئ چې په بې انصافئ سره د هغوئ مالونه د دې ډېرې د وجې نه زر زر ؤخورئ چې دوئ به رالوئ شي او خپل حق به ؤغواړي. د یتیم کوم سرپرست چې مالدار وي هغه د پرهېزګارئ نه کار واخلي

قابلیت لري او که نه. او اسلامي حکومت له هم دې خبرې انتظام پکار دې چې په کومو خلقو کښې په خپله د خپل مال د لګولو قابلیت نه وي، او یا چې کوم خلق خپل دولت په غلطو طریقو باندې لګوي، د هغوئ مالونه دې په خپل انتظام کښې واخلي او د هغوئ د ژوند د ضرورتونو بندوبست دې ؤکړي.

[۹] یعنی کله چې هغوئ ځلمیتوب ته نزدې کېږي نو ګورئ ورته چې عقل ئې څومره کار کوي او د خپلې معاملې چلولو قابلیت پکښې څومره پیدا کېږي.

[۱۰] هغوئ ته د مال حواله کولو دپاره دوه شرطونه لګولې شوي دي: یو بلوغ دویم هوښیارتیا، یعنی د مال د صحیح استعمال قابلیت. د اول شرط په باره کښې خو د تول اُمت د دیني عالمانو اتفاق دې. د دویم شرط په باره کښې د امام ابوحنیفه رضی الله عنه رائې دا ده که ځلمیتوب ته د رسیدلو نه روستو هم پکښې هوښیارتیا رانغله نو د یتیم سرپرست له پکار دي چې اُوه کاله انتظار دې ورته نور ؤکړي. د دې نه روستو پکښې که هوښیارتیا راغله او که رانغله، پکار دي چې خپل مال ورته حواله کړي. او د امام ابویوسف، د امام محمد او د امام شافعي رحمهم الله رائې دا ده چې د مال حواله کولو دپاره په هر حال کښې هوښیارتیا ضروري ده. غالباً چې د دې روستنو حضراتو د رائې مطابق دا خبره به زیاته صحیح وي چې په دې معامله کښې دې د قاضي نه تپوس ؤکړې شي او که قاضي ته معلومه شوه چې په ده کښې هوښیارتیا نشته نو بیا دې د هغه د هر کار د نګرانئ دپاره په خپله څه مناسب انتظام ؤکړي.

وَمَنْ كَانَ فَقِيْرًا فَلْيَأْكُلْ بِالْمَعْرُوْفِ ۚ فَاِذَا دَفَعْتُمْ اِلَيْهِمْ اَمْوَالَهُمْ فَاَشْهِدُوْا عَلَيْهِمْ ۚ وَكَفٰى بِاللّٰهِ حَسِيْبًا ﴿۶﴾ لِلرِّجَالِ نَصِيْبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدٰنِ وَالْاَقْرَبُوْنَ ۖ وَلِلنِّسَآءِ نَصِيْبٌ مِّمَّا تَرَكَ الْوَالِدٰنِ وَالْاَقْرَبُوْنَ مِمَّا قَلَّ مِنْهُ اَوْ كَثُرَ ۚ نَصِيْبًا مَّفْرُوْضًا ﴿۷﴾ وَاِذَا حَضَرَ الْقِسْمَةَ اُولُوا الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنُ فَارْزُقُوْهُمْ مِّنْهُ

او کوم چه غریب وی هغه دِ دَ عام معلوم طریقے مطابق خوری.[۱۱] بیا چه کله هغوئ ته خپل مالونه حواله کوئ نو خلق پرِ گواهان کړئ، او دَ حساب کتاب دپاره الله کافی دے.

دَ نارینو دپاره په هغے مال کښ حصه ده چه هغه مور او پلار او رشته دارانو پریښودلے وی، او دَ زنانو دپاره هم په هغے مال کښ حصه ده چه هغه مور او پلار او رشته دارانو پریښودلے وی، که لږ وی او که ډیر،[۱۲] او دا حصه (دَ الله دَ طرفنه) مقرر ده.

او کله چه دَ تقسیم په وخت کښ دَ خاندان خلق او یتیمان او مسکینان[۱۳] حاضر شی نو هغے مال نه هغوئ له هم څه ورکړئ

---

[۱۱] یعنی دَ خپل خدمت کولو حق و تر هغه وخته پورې اخلی چه هر منصف سړے ورته مناسب وائی. دغه رنگے چه دَ خدمت څه معاوضه ترا اخلی نو په پټه ئے دِ نه اخلی بلکه په ښکاره دِ ئے دَ خلقو په مخکښے ځان له مقرر کړی او دَ هغے حساب کتاب دِ ځان سره ساتی.

[۱۲] په دے آیت کښے پنځه قانونی حکمونه شوی دی: یو دا چه میراث صرف دَ سړو حصه نه ده بلکه ښځے هم دَ دے حقداره دی. دویم دا چه میراث به هر حالت کښے تقسیمول پکار دی که هر څومره کم وی، تر دے پورے که دَ مړی نه یو گز کپړه پاتے شوی وی او دَ هغے لس وارثان وی نو پکار دی چه هغه هم په لسو حصو کښے تقسیم شی. دا بیله خبره ده چه یو وارث دَ نورو ټولو وارثانو حصه واخلی. دریم دا آیت نه دا خبره هم را ذځی چه دَ وراثت قانون به په هر قسم مالونو وچاپیداوو باندِ لگی. خواه که هغه کړیو ځائے نه بل ځائے ته (منقوله) کیدے شی او که نه شی کیدے (غیر منقوله) که دَ کرونده مال وی او که دَ کاریگری، او که بل قسم مال وی. څلورم دا چه دَ میراث حق هله پیدا کیږی چه مړی څه پریښودلی وی. پنځم دا چه مړی ته تر دے رشته دار موجود وی نو لرے رشته دار ته به میراث نه ملاویږی.

وَقُولُوا لَهُمْ قَوْلًا مَّعْرُوفًا ۝٨ وَلْيَخْشَ الَّذِينَ لَوْ تَرَكُوا مِنْ خَلْفِهِمْ ذُرِّيَّةً ضِعَافًا خَافُوا عَلَيْهِمْ فَلْيَتَّقُوا اللَّهَ وَلْيَقُولُوا قَوْلًا سَدِيدًا ۝٩ إِنَّ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ أَمْوَالَ الْيَتَامَىٰ ظُلْمًا إِنَّمَا يَأْكُلُونَ فِي بُطُونِهِمْ نَارًا ۖ وَسَيَصْلَوْنَ سَعِيرًا ۝١٠ يُوصِيكُمُ اللَّهُ فِي أَوْلَادِكُمْ ۖ لِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنثَيَيْنِ ۚ

او دَ شریفانو پشان خبرے ورسره ؤکړئ [۱۳]

خلقوله پکار دی چه دا خیال په زړه کښ راولی او ؤیریږی چه که دَ هغوی نه پخپله دا سے بے وسه اولاد پاتے شی نو دَ مرګ په وخت کښ به دَ هغوی دَ خپلو بچو په باره کښ څه څه دَ یرے فکر ونه کړ نیکے نو پکار دی چه هغوی دَ خدائے نه یره ؤکړی او دَ راستئ حقه خبره ؤکړی. کوم خلق چه په ظلم سره دَ یتیمانو مال خوری په حقیقت کښ هغوی په خپلو خیټو کښ ؤورا چوی او هغوی به ضرور دَ دوزخ بلولمبو ته اچولے کیږی [۱۴] ع

ستا سو اولاد په باره کښ الله تاسو ته [۱۵] حکم کوی چه :
چه دَ نارینه حصه دَ دوؤ ښځو نو برابر ده،

[۱۳] دَ مړی وارثانو ته وائي چه دَ میراث دَ تقسیمولو په وخت کښے کوم لرے نزدے خپلوان او دَ دغے کورنئ غریب او مسکین خلق او یتیمان بچی راشی نو زړهٔ ورته مه تنګوئ. که په شریعت کښے دَ هغوئ حصه نه وی نو نه دِ وی، تاسو زړهٔ فراخه کړئ او دَ میراث نه هغوئ له هم څه نه څه حصه ورکړئ او دَ هغوئ سره دا سے خبره مه کوئ چه دَ هغوئ زړونه پرےخفه شی، دا دَ زړهٔ تنګو خلقو کار دے چه په دا سے موقع هغه خبره کوی چه زړهٔ بدِ تنق چوی۔

[۱۴] په حدیث کښے راغلی دی چه دَ جنګ اُحد نه روستو دَ حضرت سعد بن ربیع ښځه دَ دوؤ ورو ورو ماشومانو سره دَ نبی صلی الله علیه وسلم په خدمت کښے حاضره شوه او عرض ئے ؤکړو چه "اے رسول الله ! دا دَ هغه سعد ورے ورے لونړه دی چه ستاسره په اُحد کښے شهید شوے دے ۔ دَ دوئ تره په ټول جائیداد باندی قبضه کړی ده او دَ دوئ د پاره ئے یو دانه قدر له هم نه دے پرینبودلے . او س به دَ دے بچو سره څوک نکاح ؤکړی!" په دے باندی دا آیتونه نازل شو۔

[۱۵] دَ میراث په معامله کښے دا اولنے اُصولی حکم دے چه دَ نارینه حصه دَ زنانه نه دوچند ده. په خاندانی ژوند کښے شریعت په نارینه باندی دَ روزئ ګټلو زیاته ذمے واری اچولی دی او زنانه

فَإِنْ كُنَّ نِسَاءً فَوْقَ اثْنَتَيْنِ فَلَهُنَّ ثُلُثَا مَا تَرَكَ ۖ وَإِنْ كَانَتْ وَاحِدَةً فَلَهَا النِّصْفُ ۚ وَلِأَبَوَيْهِ لِكُلِّ وَاحِدٍ مِنْهُمَا السُّدُسُ مِمَّا تَرَكَ إِنْ كَانَ لَهُ وَلَدٌ ۚ فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ وَلَدٌ وَوَرِثَهُ أَبَوَاهُ فَلِأُمِّهِ الثُّلُثُ ۚ فَإِنْ كَانَ لَهُ إِخْوَةٌ فَلِأُمِّهِ السُّدُسُ

که (د مړي وارثانې) د دوو نه زیاتې جینکۍ وي نو هغوئ له د میراث په دریو کښې دوه حصې ورکړې شي[16]۔

او که صرف یوه جینۍ وارثه وه نو نیم میراث د هغې دې۔

که د مړي اولاد وُو نو مور او پلار هر یو له د میراث شپږم حصه ورکول پکار دي[17]۔

او که اولاد ئې نه وُو او مور او پلار ئې وارثان وُو نو مور له د دریمه حصه ورکړې شي[18]۔

او که د مړي خور ورور هم وُو نو مور به یا د شپږمې حصې حقداره وي[19]۔

ئې د روزئ گټلو د بوج نه خلاصه کړې ده، نو په دې وجه انصاف داپکار وُو چه په میراث کښې د ښځې حصه د سړي په نسبت کمه کېښودلې شي۔

[16] که یواځې دوه جینکۍ وي نو بیا هم دغه حکم دې۔ مطلب دا دې که د سړي هلک نه وي او ئې ټولې جینکۍ وي، نو که دوه جینکۍ وي یا د دوو نه زیاتې، خو د ټول میراث د دریو حصو نه دوه حصې به په هغې جینکو باندې تقسیمولې شي، او باقي یوه حصه به په نورو وارثانو باندې تقسیمولې شي۔ لیکن که د مړي صرف یو هلک وي نو په دې باندې اجماع ده که نور وارثان نه وُو نو هغه به د ټول مال وارث وي، او که نور وارثان ئې وُو نو چه هغوئ له ترخپلې حصې ورکړې شي نو باقي ټول به د ده شي۔

[17] یعني چه د مړي اولاد وي نو د مړي مور او پلار هر یو به د شپږمې حصې حقدار وي، خواه که د مړي وارثان صرف جینکۍ وي، یا صرف ځامن وي، یا لونړه او ځامن دواړه وي، یا یو ځوئ وي یا یوه لور وي، پاتې شوې په دریو کښې دوه حصې، نو په دې کښې به نور وارثان شریک وي۔

[18] که د مور او پلار نه بغیر نور وارثان ئې نه وُو نو باقي دواړه حصې به د پلار شي۔ او که نور وارثان ئې وُو نو په دغه دواړو حصو کښې به پلار او نور وارثان شریک وي۔

[19] که د مړي ورونړه وُو نو د مور حصه د دریمې حصې پځائې شپږمه حصه کړې شوې ده، دغه شان د مور د حصې نه چه کومه شپږمه حصه اخستلې شوې ده هغه به د پلار په حصه کښې شامله

مِنۢ بَعۡدِ وَصِيَّةٖ يُوصِي بِهَآ أَوۡ دَيۡنٍۗ ءَابَآؤُكُمۡ وَأَبۡنَآؤُكُمۡ لَا تَدۡرُونَ
أَيُّهُمۡ أَقۡرَبُ لَكُمۡ نَفۡعٗاۚ فَرِيضَةٗ مِّنَ ٱللَّهِۗ إِنَّ ٱللَّهَ كَانَ عَلِيمًا

(دا ټولې حصې به هغه وخت ویشلې شي) کله چه مړي وصیت کړے وي هغه پوره کړے شي او په مړي چه څه قرض وي هغه ورکړے شي.[20] تاسو نه پوهیږئ چه ستاسو په مورا و پلار او ستاسو په اولاد کښ څوک د نفعے په لحاظ تاسو ته زیات نږدے دي. دا حصے الله مقرر کړي دي، او الله یقیناً د ټولو حقیقتونو د ـــه

کېږے شي ځکه چه د رور خور په موجودګئ کښے د پلار ذمه وارئ زیاته وي. دا یاد لرئ که د مړي مور او پلار ژوندي وُو نو د خویندو رونړو کښے برخه نه رسي.
(پخپله ئے برخه نه رسي خو د مور په برخه اثر غورزوي یعنی د دریمے له شپږم حصه شي. مترجم)

[20] د وصیت ذکر د قرض نه مخکښے ځ شو دا ځکه چه دا ضروري نه ده چه هر مړے دِ قرضدار دے دي او وصیت کول خو د هر مړي د پاره ضروري دي. لیکن په دے خبره د ټول اُمت اجماع ده چه د قرض و د کولو حکم په وصیت باندِ مخکښے دے. یعنی که په مړي باندِ قرض وي نو د ټولو نه اول به د مړي د مال نه هغه قرض ورکړے شي بیا به روستو وصیت پوره کړي، او پس د هغے نه به میراث په وارثانو تقسیم شي. د وصیت په باره کښے د سورۂ بقرے په حاشیه ۱۸۲ کښے مونږ ویلي دي چه سړي ته د خپل ټول مال د دریمے حصے پورے د وصیت کولو اختیار دے، او د وصیت کولو دا قاعده ځکه مقرر کړے شوې ده چه د میراث په قانون کښے کوم خپلوان وغیره نو ته د میراث نه څه حصه نه ملاویږي نو په هغوئ کښے چه څوک د امداد مستحق وي د هغوئ د پاره دِ په خپل اختیار باندِ حصه مقرر کړي. مثلاً یو یتیم نوسے یا نوسئ ده، یا د ځوي کونډه ښځه ده چه د غربئ ژوند تیروي، یا یو رور یا خور یا ورندار یا وراره یا خوریے یا یو بل خپل داسے دے چه د امداد حقدار ښکاري، نو د هغه په حق کښے د وصیت په ذریعه حصه مقرر کیدے شي. او که په خپلوانو کښے څوک د امداد حقدار نه وي نو د نورو حقدارو د پاره یا د عامے فائدے د کار د پاره هم وصیت کیدے شي. خلاصه دا ده چه د سړي مال به ټول درے حصے شي د یوے حصے یا د یوے حصے نه د کم په باره کښے به مړے وصیت وکړي او باقي دوه حصے یا د دوو حصو نه لږے زیاتے به د شریعت مطابق په وارثانو تقسیم کړے شي. بیا که چرے یو سړے په وصیت کښے زیاتے وکړي یا خپل اختیار په غلطه طریقه داسے استعمال کړي چه د بل جائز حق ته پرے نقصان رسي، نو د هغے د پاره دا طریقه ده چه د خپل خاندان خلق دِ یو بل په رضا سره هغه وصیت ټیک کړي او یا دِ د شریعت قاضي ته درخواست وکړي چه وصیت ټیک کړي. (د زیات تفصیل د پاره وګوره زما رساله "یتیم پوتے کی وراثت").

حَكِيمًا ﴿١١﴾ وَلَكُمْ نِصْفُ مَا تَرَكَ أَزْوَاجُكُمْ إِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّهُنَّ وَلَدٌ ۚ فَإِنْ كَانَ لَهُنَّ وَلَدٌ فَلَكُمُ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْنَ مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُوصِينَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ ۚ وَلَهُنَّ الرُّبُعُ مِمَّا تَرَكْتُمْ إِنْ لَّمْ يَكُنْ لَّكُمْ وَلَدٌ ۚ فَإِنْ كَانَ لَكُمْ وَلَدٌ فَلَهُنَّ الثُّمُنُ مِمَّا تَرَكْتُمْ مِنْ بَعْدِ وَصِيَّةٍ تُوصُونَ بِهَا أَوْ دَيْنٍ ۗ

خبر دے او په هر مصلحت پوه دے[21]

او ستاسو ښځو چه څه پرېښودي وي د هغې نیمه به تاسو ته ملاوېږي دلے هله که هغوی بے اولاده وي، او که د هغوی اولاد وُو نو بیا د میراث څلورمه حصه ستاسو ده هله چه اول د هغوی وصیت پوره کړے شي، او کوم قرض چه پرې پاتے وي هغه ورکړے شي. او ښځے ستاسو د میراث په مال کښ د څلورمے حصے حقدارے دي که تاسو بے اولاده وئ، او که اولاد مو وُو نو بیا به د هغوی اتمه حصه وي[22]، دا هله چه اول ستاسو وصیت پوره کړے شي او کوم قرض چه په تاسو پاتے وي هغه ورکړے شي.

---

[21] دا د هغه بې وقوفو خلقو جواب دے چه خدائے د میراث کوم قانون جوړ کړے دے په هغې نه پوهېږي او په خپل نیمګړي عقل هغه کښ پوره کول غواړي کوم چه د هغوی په خیال د الله په جوړ شوي قانون کښے پاتے شوے دے.

[22] یعني که کسرې یوه ښځه وي او که دېرے ښځے وي، خو چه اولاد لرے وي نو اتمه حصه څو او چه اولاد نه وي نو څلورمه حصه لرے ده، او دا اتمه یا څلورمه حصه به په ټولو ښځو یو شان برابر تقسیمېدے شي.

وَإِنْ كَانَ رَجُلٌ يُّوْرَثُ كَلٰلَةً أَوِ امْرَاَةٌ وَّلَهٗٓ أَخٌ أَوْ أُخْتٌ فَلِكُلِّ وَاحِدٍ مِّنْهُمَا السُّدُسُ ۚ فَإِنْ كَانُوْٓا أَكْثَرَ مِنْ ذٰلِكَ فَهُمْ شُرَكَآءُ فِي الثُّلُثِ مِنْۢ بَعْدِ وَصِيَّةٍ يُّوْصٰى بِهَآ أَوْ دَيْنٍ غَيْرَ مُضَآرٍّ ۚ وَصِيَّةً مِّنَ اللّٰهِ ۗ وَاللّٰهُ عَلِيْمٌ

او که هغه سړے یا ښځه (چه میراث به ئے تقسیمیږی) بے اولاده هم وی او مور او پلار ئے هم ژوندی نۀ وی، خو یو رُور یا یوه خور ئے وی، نو رور او خور هر یو ته به شپږمه حصه ملاوېږی، او که رورا و خور د یو نه زیات وُو نو بیا به د ټول میراث په دریمه حصه کښ ټول شریک وی[۲۳]، دا هله چه اول ترِ وصیت پوره کړے شی او کوم قرض چه په مړی پاتے وی هغه تِرِ ورکړے شی په دے شرط چه هغه نقصان ورکونکے نۀ وی[۲۴]. دا حکم دے د الله د طرف نه او الله پوهه دے

[۲۳] باقی شپږ ونه پنځه یاد د یو نه ده ځے چه که پاتے شوې هغے کښ بل وارث وُو خو هغه ته به حصه ملاوُ شی، او که نۀ بل وارث نۀ وُو نو د هغه باقی پاتے ټول مال په باره کښے دغه سړی ته د وصیت کولو حق حاصل دے.

د دے آیت په حقله د مفسرینو اجماع ده چه په دے کښے د رونړه خویندو نه مُراد هغه رورا و خوردی چه مور ئے شریکه وی او پلاران ئے جُدا جُدا دی. پاتے شرسکه رورا و خورا و هغه رونړه خویندے چه پلار ئے یو وی او میندے ئے جُدا جُدا وی، نو د هغوی حکم د دے سورة په آخر کښے دے.

[۲۴] په وصیت کښے نقصان ورکول دا دی چه په داسے طریقه وصیت وُکړی چه د حقدارو وارثانو حق پرے برباد کړی. او په قرض کښے ضرر ورکول دا دی چه په ځان باندې د داسے قرض اقرار وُکړی چه په اصل کښے دۀ د چانه اخستلے نۀ وی، خو دا ئے غرض وی چه د میراث حقداران د میراث د حصو نه محروم شی. یا بل څه داسے چل وُکړی چه غرض ئے پکښے وارثانو له حصه نۀ ورکول وی. دے قسم ضرر ورکولو ته ګناهِ کبیره وئیلے شوی ده. په حدیث کښے راغلی دی چه په وصیت کښے نقصان ورکول لویه ګناه ده. او په یو بل حدیث کښے د نبی صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه سړے ټول عُمر د جنتیانو په شان کارکوی خو د مرګ په وخت کښے د ضرر ورکولو وصیت وُکړی او خپل ژوند په داسے کار ختم کړی چه د دوزخ حقدار شی. دا نقصان ورکول او د بل حق وهل په هر حال کښے ګناه ده خو دلته د "کلاله" په مسئله کښے الله تعالیٰ د دے ذکر ځکه کړے دے چه د کوم سړی نۀ اولاد وی او نۀ ئے مور او پلار وی د هغه اکثر دا خیال وی چه خپل جائیداد په غلط طریقه برباد کړی او لرے رشته داران د حصے نه محروم کړی.

حَلِيْمٌ ﴿١٢﴾ تِلْكَ حُدُوْدُ اللّٰهِ ؕ وَمَنْ يُّطِعِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ يُدْخِلْهُ جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ؕ وَذٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيْمُ ﴿١٣﴾ وَمَنْ يَّعْصِ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَيَتَعَدَّ حُدُوْدَهٗ يُدْخِلْهُ نَارًا خَالِدًا فِيْهَا ۠ وَلَهٗ عَذَابٌ مُّهِيْنٌ ﴿١٤﴾ ع

او نرم خُويه دے.[25]

دا دَ الله مقرر کړے شوی حدونه دی. څوک چه د الله او د هغه د رسول حکم ومنی هغه به الله داسے باغونو ته داخل کړی چه لاندِ به ترِ نهرونه بهیږی او په دغه باغونو کښ به هغه همیشه وسیږی او دا لویه کامیابی ده. او څوک چه دَ الله او دَ هغه د رسول حکم و نه منی او دَ هغه دَ مقرر کړے شوؤ حدونو نه واوړی و هغه به الله وور ته واچوی چه په هغے کښ به همیشه وُسی او دَ هغه دپاره رسوا کونکی سزا ده.[25 الف]

[25] دلته دَ الله تعالیٰ دَعلم دَ صفت بیانولو دوه وجے دی: یوه دا که څوک دَ هغه دَ قانون خلاف ورزی وکړی نو دَ الله نه هیچرے په هیڅ شان څان نشی خلاصولے. دَویم دا چه کوم حصے الله په څه طریقه مقرر کړی دی هغه بالکل صحیح دی ځکه چه دَ بنده په څه کښے خیروی هغه دَ بنده نه الله ویر ښه پیژنی. او دَ الله دَ نرم خویئ صفت ئے ځکه بیان کړے دے چه په دے قانون مقرره ولو کښے الله سختی نه ده کړے بلکه الله داسے قاعدے مقرر کړی دی چه پکښے دَ انسانانو دپاره دَ زیاتو نه زیاته آسانتیا ده او دَ دے دپاره ئے مقرر کړی دی چه انسان ته کړاندنه شی.

[25 الف] دا ډیره ویرے آیت دے، الله چه د وراثت دپاره کوم قانون مقرر کړے دے څوک چه هغه بدل کړی یا هغه نور قانونونه مات کړی کوم چه الله په خپل کتاب کښے صفا بیان کړی دی، دَ هغوئ دپاره دَ همیشه عذاب خبر داریے ورکړے شوے دے. لیکن په دے خبره ډیر افسوس دے چه دَ دے سخت عذاب اوریدلو باوجود مسلمانانو خاص دَیهودیانو پشان زړورتیا وُکړه، دَ خدائے قانون ئے هم بدل کړو او دَ قانون حدونه ئے هم مات کړل. دَ دے میراث دَ قانون په باره کښے چه څومره نافرمانیانے شوی دی هغه تولے دَ بغاوت حد ته رسیدلی دی یعنی هغه تول دَ خدائے دَ قانون خلاف بغاوت دے. چا زنانه دَ میراث نه مستقل طور محروم کړی دی. چا مشر ځوئے دَ میراث حقدار ګرزولے دے. چا دَ سرنه دَ میراث طریقه پریښودلی ده او دَ "مشترک خاندانی جائیداد" طریقه ئے اختیار کړی ده. چا دَ زنانو او دَ نارینو حصه برابر کړی ده. او اوس خو دَ دے زړے سرکشئ سره یوه نوی سرکشی دا ده چه

وَالّٰتِیْ یَاْتِیْنَ الْفَاحِشَةَ مِنْ نِّسَآئِكُمْ فَاسْتَشْهِدُوْا
عَلَیْهِنَّ اَرْبَعَةً مِّنْكُمْ ۚ فَاِنْ شَهِدُوْا فَاَمْسِكُوْهُنَّ فِی
الْبُیُوْتِ حَتّٰی یَتَوَفّٰهُنَّ الْمَوْتُ اَوْ یَجْعَلَ اللّٰهُ لَهُنَّ سَبِیْلًا ﴿۱۵﴾
وَالَّذٰنِ یَاْتِیٰنِهَا مِنْكُمْ فَاٰذُوْهُمَا ۚ فَاِنْ تَابَا
وَاَصْلَحَا فَاَعْرِضُوْا عَنْهُمَا ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ تَوَّابًا رَّحِیْمًا ﴿۱۶﴾

---

ستاسو د زنانو نه چه څوک بدکاري وکړي، په هغوئ باندې د خپلو کسانو نه څلور تنه ګواهان کړئ، او که څلور واړو تنو پرې ګواهي وکړه نو هغوئ تر هغې پورې په خپلو کورونو کښې بندې کړئ چه مرګ ورله راشي یا الله پاک ورله څه بله لار راوباسي. او په تاسو کښې چه څوک دوه تنه بدکاري وکړي نو دواړو له تکلیف ورکړئ، بیا که هغوئ توبه وباسي او خپل ځانونه سم کړي نو پرې یې ږدئ ځکه چه الله ډیر توبه قبلونکے او رحم کونکے دے [۲۶]

---

ځنې مسلمان وطنونه په مغربي خلقو پسې روان دي او د هغوئ پشان په خپلو وطنونو کښې وفات ټیکس (DEATH DUTY) لګولې ورکوي، د دې مطلب خو دا دے چه ځمري په وارثانو کښې یو وارث حکومت هم دے چه د هغه حصه مقرره ول د الله نه هیر شوې وو! حالانکه په اسلامي اصولو باندې که د مړي میراث د حکومت ته رسي نو صرف په دا سې حالت کښې رسي چه د مړي هیڅ یو نږدې یا لرې رشته دار موجود نه وي او د هغه پاتې شوې مال د اشیاء متروکه (Unclaimed Properties) پشان بیت المال ته داخل شي. او یا خو که مړي په خپل وصیت کښې د حکومت د پاره څه حصه مقرر کړي نو هغه حصه د حکومت رسي.

[۲۶] په دې دواړو آیتونو کښې د زنا سزا بیان شوې ده. اولنۍ آیت صرف د زناکارو زنانو په باره کښې دے او سزائې دا ده چه هغوئ دې د بل حکم د راتللو پورې قید کړې شي. دویم آیت د زناکار سړي او د زناکارې ښځې دواړو د پاره دے. د دواړو په باره کښې دا حکم دے چه دواړو له ډې تکلیف ورکړې شي یعنې ګډ وهلې شي، سخت سپورې دې ورته وویلې شي او ذلیله دې کړې شي. دا د زنا په حقله اولنی حکم وو. روستو بیا په سورة نور کښې هغه آیت نازل شو چه په کښې د نارینه او زنانه دواړو د پاره یو حکم وشو چه دواړو ته به سل سل کورې ورکولې شي. د دې وخته پورې د عربو خلق د حکومت لاندې او د عدالت او د سزا د قانون لاندې د ژوند تیرولو عادت نه وو، نو که د اسلامي حکومت د قایمیدلو سره ناسا په هغوئ باندې د سزا قانون جاري

إِنَّمَا التَّوْبَةُ عَلَى اللَّهِ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السُّوٓءَ بِجَهَالَةٍ ثُمَّ يَتُوبُونَ مِن قَرِيبٍ فَأُولَٰٓئِكَ يَتُوبُ اللَّهُ عَلَيْهِمْ ۗ وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿۱۷﴾ وَلَيْسَتِ التَّوْبَةُ لِلَّذِينَ يَعْمَلُونَ السَّيِّئَاتِ حَتَّىٰٓ إِذَا حَضَرَ أَحَدَهُمُ الْمَوْتُ قَالَ إِنِّي تُبْتُ الْـَٔنَ

هو، په دے ځان پوهـ کړئ چه په الله باندې د هغے کسانو د توبے قبلولو حق دے چه د ناپوهـۍ په وجه څه بد کارونه کوي او د هغے نه روستو زر توبه وباسي. په داسے خلقو باندې الله د خپلے مهربانۍ نظر بیا کوي او الله د هر یو خبرے خبر او حکمت والا دے. خو توبه د هغے خلقو دپاره نه ده چه په مخه بد کارونه کوي آن تر دے پورے چه په دوئ کښ د چا د مرګ وخت راشي نو په هغه وخت کښ و وائي چه اوس مے توبه ده۔

کړے شوے وے نو داخبره به د حکمت نه ډیره خلاف وه۔ الله تعالیٰ رو رو هغوئي د سزا د قانون سره د عادتولو دپاره اول د زنانه په باره کښے داسزا کانے مقرر کړے، بیائے رو رو درجه په درجه د زنا، د زناد الزام نکولوا و د غلا حد ونه مقرر کړل او په آخرکښے د سزا کانو هغه لوئي قانون جوړ شو کوم چه د نبي صلی الله علیه وسلم او د خلفاءِ راشدینو په حکومتونو کښے جاري وو۔

سُدّی نوے تفسیر کوونکی د دے دواړو آیتونو ظاهري فرق ته کتلی دی او په مطلب اخستو کښے غلط شوے دے هغه وائي چه اولنے آیت د نکاح شوو ښځو دپاره دے او دوئیم آیت د نا واده کړي نارینه او زنانه دپاره دے. لیکن دا یو کمزورے تفسیر دے۔ د دے په مرسته کښے څه وزندار دلیل نشته. او د دے نه زیاته کمزورے خبره هغه ده چه ابومسلم اصفهاني لیکلی ده هغه وائي چه اولنے آیت د یوے زنانه کښے زنانه سره د بدکارۍ په باره کښے دے او دوئیم آیت د یو نارینه د بل نارینه سره د بدکارۍ په باره کښے دے. په دے خبره دیر تعجب دے چه د ابومسلم پشان د عالم سړي نظر د حقیقت ته ولے نه تللو چه قرآن خو د انسان د ژوند دپاره د قانون او د اخلاقو لویه لار جوړه وي او په هغے مسئلو باندې بحث کوي چه په دغه لویه لار باندې پیښے شي. پاتے شوے کوڅے او نرئ نرئ لارے، نو دے ته توجه ورکول او د هغے په درو ورو مسئلو باندې بحث کول د شاهانه کلام سره هیڅ کله مناسب نه دی. داسے کارونه هغه د اجتهاد دپاره پریښودلی دی. دغه وجه ده چه د نبوت د زمانے نه روستو کله داخبره پیښه شوه چه د یو نارینه د بل نارینه سره د بدکارۍ کولو څه سزا ده، نو په صحابه کرامو کښے یو هم دا ونه وئیل چه د سورة نساء په دے آیت کښے د دے حکم موجود دے۔

وَلَا الَّذِيْنَ يَمُوْتُوْنَ وَهُمْ كُفَّارٌ ۭ اُولٰۗىِٕكَ اَعْتَدْنَا لَهُمْ عَذَابًا اَلِـيْمًا ﴿١٨﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا يَحِلُّ لَكُمْ اَنْ تَرِثُوا النِّسَاۗءَ كَرْهًا ۭ وَلَا تَعْضُلُوْھُنَّ لِتَذْھَبُوْا بِبَعْضِ مَآ اٰتَيْتُمُوْھُنَّ

او دغه شان توبه د هغه چا دپاره هم نشته چه د مرګه پورے کافران پاتے شي. د دا سے خلقو دپاره خو مونږ ډیر دردناکه سزا تیاره کړې ده.[24]

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، ستاسو دپاره دا حلال نه دي چه په زور زبردستۍ ځان د ښځو وارثان کړئ.[25] او نه دا حلال دي چه هغوئ د دے غرض دپاره تنګے کړئ چه د خپل هغه مهر څه حصه تیر راؤ شوکوئ کوم چه تاسو هغوئ له ورکړے دے.

[24] د توبه معنی واپس کیدل دي. د ګناه کولو نه روستو د بنده خدائ ته د توبے ایستلو دا مطلب دے چه یو غلام د خپل مالک نه مرور شوے وو او د هغه فرمان ئے نه منلو، اوس پښیمانه شوے دے، چغولکیږ او فرمان منلو ته واپس راغلے دے. او د خدائ له طرفه په بنده باندې د توبے دا مطلب دے چه د مالک د مهربانۍ نظره غلام ته او ړیدلے وه خو په غلام د مهربانۍ نظر بیا وشو. الله تعالی په دے آیت کښے فرمائي چه زما سره معافي صرف د هغه بندګانو دپاره ده چه په قصداً ګناه نه کوي بلکه د ناپوهۍ په وجه چه تر کله ګناه وشي او دمه پر پوهه شي نو در شرمنده شي او د خپلے ګناه معافي وغواړي. هر کله چه دا سے بندګان په خپلو ګناهو نو شرمنده شي او خپل مالک طرفته را ګرځي نو هغوئ ته په دروازه پرانستې دی ـــ

ایں درگہِ ما درگہِ نومیدی نیست | دا زما دربار د ناامیدۍ دربار نه دے
صد بار اگر توبہ شکستی باز آ | سل ځله که توبه دې ماتے واپس راشه

خو توبه د هغه خلقو دپاره نه ده چه د خپل خدائ نه بیرته د زړه نه روګډ، بے پروا شي او ټول عمر ګناهونه کوي خو چه کله ورته د مرګ فرښته مخامخ ودریږي نو معافي غوښتل شروع کړي. دا خبره نبي صلی الله علیه وسلم په دے الفاظو کښے بیان کړې ده چه "ان الله يقبل توبة العبد مالم يغرغر" الله د بنده توبه د هغه وخته پورے قبلوي د کوم وخته پورے چه د مرګ علامے نه دي شروع شوي". ځکه چه کله د امتحان وخت پوره شي او د ژوند کتاب ختم شي نو بیا د واپس کیدو څه موقع وي. دغه شان چه یو سړے د کفر په حالت کښے د دنیا نه لاړ شي، په دویم ژوند کښے ورداخل شي او په خپلو سترګو وویني چه معامله خو هغه نه ده کومه چه ما په دنیا کښے ګنړله نو بیا په دغه وخت کښے د معافۍ غوښتلو هیڅ موقع نشته.

[25] د دے نه مراد دا دے چه د خاوند د مرګ نه پس د د مړي وارثان د مړي ښځه خپل د میراث سامان نه ګڼړي. د ښځے خاوند چه کله مړ شو نو هغه آزاده شوه. چه عدت تیر کړي بیا چه چرته تلل غواړي حلاله ده او چه د چا سره نکاح کول غواړي هغه سره دې نکاح وکړي.

إِلَّآ أَن يَأْتِينَ بِفَٰحِشَةٍ مُّبَيِّنَةٍ ۚ وَعَاشِرُوهُنَّ بِٱلْمَعْرُوفِ ۚ فَإِن كَرِهْتُمُوهُنَّ فَعَسَىٰٓ أَن تَكْرَهُوا۟ شَيْـًٔا وَيَجْعَلَ ٱللَّهُ فِيهِ خَيْرًا كَثِيرًا ﴿١٩﴾ وَإِنْ أَرَدتُّمُ ٱسْتِبْدَالَ زَوْجٍ مَّكَانَ

هغې که چرې هغوئ ښکاره بد کارۍ شروع کړي (نو بیا تاسو ته د هغوئ د تنګولو حق حاصل دے[29]) - د هغوئ سره په ښه طریقه ژوند تیروئ - که چرې هغوئ ستاسو خوښې نه وي نو کیدے شي چه یو شیز ستاسو خوښ نه وي خو الله به په هغې کښې ستاسو دپاره ډیره فائده ایښې دلے وي.[30] او که چرې تاسو د یوې ښځې په ځائے د بلې ښځې د راوستلو اراده

[29] د مال د اشوکولو دپاره نه بلکه د بد کارۍ د سزا ورکولو دپاره.

[30] یعني که چرې ښځه ښکلې نه وي، یا په هغې کښې بل څه داسې کمے وي چه د هغې په وجه د خاوند نه وي خوښه، نو دا مناسبه نه ده چه خاوند فوراً د ښځې پریښودلو ته تیار شي. تر څو پورې چه کیدے شي د صبر نه کار اخستل پکار دي. اکثر داسې وشي چه یوه ښځه ښکلې نه وي خو په هغې کښې نورې داسې ډیرې خوبۍ وي چه د شریک ژوند تیرولو دپاره د ښکلا نه زیاتې اهمیت لري. که چرې هغې له د خپلو خوبو ښکاره کولو موقع په لاس ورغله نو کیدے شي چه خاوند د هغې د بدشکلۍ پروا ونه لري او د هغې د ښو خوئ په وجه هغه خوښه شي. دغه شان کله داسې وشي چه د وادۀ په اولنو ورځو کښې د ښځې څه خبرې د خاوند خوښې نه شي او د ښځې نه زړۀ مړ شي، لیکن که هغه د صبر نه کار واخلي او ښځې له د کار کولو موقع ورکړي نو ورته به پخپله پته ولګي چه په ښځه کښې خو د بدو په نسبت خوبۍ ډیرې دي. نو دا ښه خبره نه ده چه سړے په خپل کور ورانولو کښې تیزي وکړي. طلاق خو بالکل د ټولو نه آخري خبره ده چه په هیڅ شان که سم نه شي نو بیا هله طلاق استعمالول پکار دي. د نبي صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه ابغض الحلال الی الله الطلاق یعني طلاق که جائز دے خو په ټولو جائزو کارونو کښې طلاق د خدائے سره خوښ نه دے. په بل حدیث کښې دي چه نبيؐ وفرمایل "تزوجوا ولا تطلقوا فان الله لا یحب الذواقین والذواقات" یعني نکاح وکړئ او طلاق مه ورکوئ ځکه چه الله داسې نارینه او زنانه نه خوښوي چه د بوڼو پشان د یو یو ګل نه مزه اخلي.

زَوْجٍ ۙ وَّاٰتَيْتُمْ اِحْدٰىهُنَّ قِنْطَارًا فَلَا تَاْخُذُوْا مِنْهُ شَيْـًٔا ؕ اَتَاْخُذُوْنَهٗ بُهْتَانًا وَّاِثْمًا مُّبِيْنًا ﴿۲۰﴾ وَكَيْفَ تَاْخُذُوْنَهٗ وَقَدْ اَفْضٰى بَعْضُكُمْ اِلٰى بَعْضٍ وَّاَخَذْنَ مِنْكُمْ مِّيْثَاقًا غَلِيْظًا ﴿۲۱﴾ وَلَا تَنْكِحُوْا مَا نَكَحَ اٰبَآؤُكُمْ مِّنَ النِّسَآءِ اِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ ؕ

ډکره نوکه هغې له تاسو ډېر مالونه ورکړي وي خو هیڅ ترې واپس مه اخلئ. آیا تاسو به دغه مال په تور پورې کولو او په ښکاره ظلم کولو سره واپس اخلئ؟ او آخر تاسو به ترې اغلئ څنګه هر کله چه تاسو د یو بل نه مزې اخستلې دي او هغوئ ستاسو نه کلکه وعده اخستلې ده؟[31]

او د کومو زنانو سره چه ستاسو پلارانو نکاح کړې وي د هغوئ سره هرګز نکاح مه کوئ، خو مخکښې چه څه شوي دي هغه شوي دي.[32]

[31] د کلکې وعدې نه مراد نکاح ده، ځکه چه نکاح په حقیقت کښې د وفادارۍ یوه داسې مضبوطه وعده ده چه په هغې باندې یوه ښځه اعتبار ؤکړي او خپل ځان یو سړي ته حواله کړي. او س که یو سړے په خپله خواهش باندې دغه وعده ماتوي نو کوم مال چه سړي د وعدې کولو په وخت کښې ښځې ته ورکړے وي د هغې د واپس اغستلو حق سړي ته نشته. (ؤګوره سورة بقره حاشیه ۲۵۱)

[32] د کلو کلو یعنې په معاملو کښې چه د جاهلیت د کومو غلطو طریقو رواج وو، قرآن چه کله دغه غلط طریقه حراموي نو دا خبره ورسره ضرور کوي چه "څه شوي دي هغه شوي دي"، د دې دوه مطلبونه دي؛ یو دا چه د ناخبرۍ او د ناپوهۍ په وخت کښې کومې غلطیانې ستاسو نه شوي دي په هغې به تاسو نه نیولے کیږئ، خو شرط دا دے چه د دے حکم د راتللو نه روستو خپل ځانونه سم کړئ او غلط کارونه پرېږدئ. بل دا چه کله هیڅ یوه طریقه اوس حرامه کړے شوې ده نو د هغې نه دا مطلب اخستل صحیح نه دي چه د مخکښې قانون یا رواج مطابق کوم کارونه مخکښې شوي دي هغه ټول ختم کړے شو، او د دغه کارونو ټولې فائدې ناجائزه کړے شوې، او څه ذمه وارۍ چه په چا راغلې هغه ټولې واپس کړے شوې. مثلاً که د میرنۍ مور سره نکاح کول اوس حرام شوي ده نو د دې دا مطلب نه دے چه تر اوسه پورې څومره خلقو داسې نکاحونه کړي وي د هغوئ اولاد حرامیان ؤګرزولے شو او د هغوئ د خپلو پلارانو په مال کښې د میراث حق ختم شو. دغه شان که د لین دین یو طریقه حرامه ګرزولے شوې ده نو د هغې دا مطلب نه دے چه مخکښې په دې طریقه څومره معاملې شوي دي هغه ټولې ختم کړے شي او اوس به هغه ټول دولت چه په دې طریقه چا ګټلې وي د هغه نه واپس اغستلے کیږي یا به دغه مال حرام ګرزولے کیږي.

إِنَّهُ كَانَ فَاحِشَةً وَمَقْتًا ۖ وَسَاءَ سَبِيلًا ﴿٢٢﴾ حُرِّمَتْ عَلَيْكُمْ أُمَّهَاتُكُمْ وَبَنَاتُكُمْ وَأَخَوَاتُكُمْ وَعَمَّاتُكُمْ وَخَالَاتُكُمْ

په حقيقت کښې دا يوه بې حيايي کار دے، ناخوښه کار دے او يد ه لار ده[۳۳] ع

پر تاسو باندې حرامې کړې شوې ستاسو ميندې[۳۴]، لونړه[۳۵]، خوېندې[۳۶]، د پلار خوېندې، د مور خوېندې،

---

[۳۳] په اسلامي قانون کښې دا کار د فوجدارۍ (د جنګ فساد) يو جرم دے، په دے جرم کښې پوليس مداخلت کولے شي. په ابوداؤد، په نسائي او په مسند احمد کښې دا روايتونه دي چه نبي صلی الله عليه وسلم د دے قسمه جرم کونکو خلقو ته د مرګ او د جائيداد د ضبط کولو سزا ورکړي ده. او ابن ماجه چه کا ابن عباس نه کوم روايت نقل کړے دے د هغې نه معلوميږي چه نبيؐ دا قاعدا مقرر کړي وه "من وقع علی ذات محرم فاقتلوه" "کوم سړي چه په حرامو کړے شوو ښځو کښې د چا سره زنا ذکړه هغه قتل کړئ" د فقهاؤ په مينځ کښې په دے مسئله کښې اختلاف دے. امام احمد خو د دے خبرے قائل دے چه دا سړے د قتل کړے شي او د هغه مال د ضبط کړے شي. د امام ابوحنيفه، د امام مالک او د امام شافعيؒ دا رائے ده که يو سړي په حرامو کړے شوو ښځو کښې د چا سره زنا کړي وي نو په هغه د د زنا حد جاري شي او که صرف نکاح ئے ورسره کړي وي نو هغه ته د سخته عبرتناکه سزا ورکړے شي.

[۳۴] مور که سکه مور وي او که ميرنۍ مور وي دواړه ميندے حرام دي. دغه رنګے په دے حکم کښې د پلار مور او د مور مور هم شامله دي.

په دے خبره کښې اختلاف دے چه د کومے ښځے سره د پلار ناجائزه تعلقات تير شوي وي چه هغه هم په ځوي باندې حرامه ده او که نه ده. په پخوانو عالمانو کښې څنے د داسے ښځے د حرامولی قايل نه دي، او څنے دا قسمه ښځه هم حرامه کرز وي، بلکه هغوئ خو دا چه کومے ښځے له پلار د شهوت په غرض لاس تد له وروړے وي هغه هم په ځوئ حرامه ده. د غه شان په پخوانو عالمانو کښې په دے خبره باندې هم اختلاف پاتے شوے دے چه کومے ښځے سره د ځوئ ناجائزه تعلقات تير شوي وي چه هغه په پلار باندې حرامه ده او که نه ده. او چه د کوم سړي سره د مور يا د لور ناجائزه تعلقات پاتے شوي وي يا رو ستو جوړ شوي وي چه د هغه سره نکاح د ے مور او لور دواړه له حرامه ده او که نه ده. په دے باره کښې د ير اوږده اوږد عالمانه بحثونه شوي دي خو دا خبره په لږ سوچ سره په د ماغو کښې راتلے شي چه د يو سړي په نکاح کښې داسے ښځه وي چه هغې ته د هغه پلار يا د هغه ځوئ هم بد خيال لري، يا د ښځے مور يا د ښځے لور ته هم د سړي خيال بد وي، نو دا د يو نيک صالح کورد پاره هيڅکله مناسب نشي کيدے. د الله تعالی شريعت په دے باره کښې هغه نرۍ باريکے قانوني خبرے نه تبلوي چه د هغې په وجه په معمولي معمولي خبرو کښې نرۍ کولے شي لکه دا چه نکاح ئے ورسره شوے ده او که نه ده، د نکاح نه مخکښې ئے او که دا سکو، لاس ئے ورو رله ؤ او که هغے ورته کتلي ؤو. وغيره وغيره. سيده او صفا خبره دا ده چه د کور په ژوند کښې د يوے ښځے سره د پلار او د ځوئ، يا د يو سړي سره د مور او د لور غلط تعلقات

وَبَنٰتُ الْاَخِ وَبَنٰتُ الْاُخْتِ وَاُمَّهٰتُكُمُ الّٰتِیْٓ اَرْضَعْنَكُمْ وَ اَخَوٰتُكُمْ مِّنَ الرَّضَاعَةِ وَاُمَّهٰتُ نِسَآئِكُمْ وَرَبَآئِبُكُمُ الّٰتِیْ

وریرے، خورزے[۳۷]، او ستاسو هغه میندے چه تاسوله ئے تے درکړے وی، او ستاسو دَ تی شریکے خویندے[۳۸]، او ستاسو دَ ښځو میندے[۳۹]، او ستاسو دَ ښځو هغه لونړه چه ستاسو

---

جو پیدل دَ سخت نساد ذریعه ده او شریعت دا هیچرے نشي برداشت کولے ۔ دَ نبی صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه "من نظر الی فرج امرأة حرمت علیه امها وابنتها" کوم سړی چه دَ یوے ښځے شرمګاه ته اوکتل دَ ښځے مور او لور دواړه په ده حرامے دی" او "لا ینظر الله الی رجل نظر الی فرج امرأة وابنتها" خدائے دَ هغه سړی شکل لیدل نه خوښه وی چه په یو وخت دَ مور او دَ لور دَ دواړو شرمګاهونو ته وګوری ۔ دَ دے روایتونو نه دَ شریعت مطلب صفا صفا ښکاره کیږی ۔

[۳۵] دَ لور په حکم کښے نمسۍ یعنی دَ ځوئ لور او دَ لور لور هم شامله دی ۔ البته په دے خبره کښے اختلاف دے چه په ناجائزه تعلقاتو سره یوه جینۍ شوی وی چه هغه هم حرامه ده او که نه ده ۔ دَ امام ابوحنیفه، مالک او احمد بن حنبل رحمهم الله علیهم په نزد غه لور هم دَ جائزے لور په شان په حرامو کړے شوو ښځو کښے شامله ده، او دَ امام شافعي په نزد غه لور په حرامو کړے شوو ښځو کښے شامله نه ده، خو په حقیقت کښے یو صفا زړه هیڅکله دا نه مني چه دَ یوه جینۍ په باره کښے سړی ته دا معلومه وی چه دا زما دَ نطفے نه پیدا شوی ده او بیا دِ دَ هغے سره نکاح وکړي ۔

[۳۶] سکه خور او دَ مور شریکه خور او پلار شریکه خور دے واړه په دے حکم کښے برابر دی ۔

[۳۷] په دے قول کښے سکه او میرنۍ برابر دی ۔ دَ پلار او دَ مور خور که سکه وی او که میرنۍ، یا پلار شریکه خور وی، خو بهرحال هغه په ځوی باندے حرامے دی. دغه شان د رور او خور که سکه وی او که میرنی وی یا پلار شریک وی، خو دَ هغوی لونړه دَ یو سړي دپاره دَ خپلے لور په شان حرامه دی ۔

[۳۸] په دے خبره دَ ټول امت اتفاق دے چه یو هلک یا جینۍ دَ کومے ښځے پئ وڅکل دَ هغه دپاره دغه ښځه مور ده او دَ دغے ښځے خاوند ئے پلار دے، او دَ خپل سکه مور او پلار دَ طرفه چه کومے رشتے په ده حرامے دی هغه ټولے رشتے په ده باندے دَ رضاعی مور او پلار دَ طرفه هم حرامیږی. دَ دے حکم بنیاد دَ نبی کریم صلی الله علیه وسلم دا ارشاد دے چه "یحرم من الرضاع ما یحرم من النسب" البته په دے خبره کښے اختلاف دے چه دَ رشتے حرامولے په څومره پیو څکلو سره ثابتیږی ۔ دَ امام ابوحنیفه او دَ امام مالک په نزد چه په څومره پیو څکلو سره روژه ماتیږی په هغومره پیو څکلو سره په چا باندِ دَ رشتے حرامولے راځی ۔ خو دَ امام احمد په نزد په درے ځله پیو څکلو سره او دَ امام شافعيؒ په نزد په پنځه ځله پیو څکلو سره رشته حرامیږی ۔ بیا په دے حکم کښے هم اختلاف دے چه په څومره عمر کښے په پیو څکلو سره دا رشته حرامیږی. په دے باره کښے دَ فقهاؤ دا لاندینی قولونه دی:

فِيْ حُجُوْرِكُمْ مِّنْ نِّسَآئِكُمُ الّٰتِيْ دَخَلْتُمْ بِهِنَّ ۫ فَاِنْ لَّمْ تَكُوْنُوْا دَخَلْتُمْ بِهِنَّ فَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ ۫ وَحَلَآئِلُ اَبْنَآئِكُمُ

په غیږو کښې لوئې شوې دي[۳۸] ـــــ د هغو ښځو لونړه چه ستاسو ورسره کور والے شوے وي. او که نه چرے (صرف نکاح شوې وي او) کور والے مو ورسره نه وي شوے نو (که هغه پرېږدئ او د هغوئ د لونړ و سره نکاح وکړئ) نو بیا هیڅ ګناه نشته ـــــ او ستاسو د ځلو

(۱) چه بچے لا د تی نه نه وي پرېکړے شوے او صرف د تی پئ د هغه خوراک وي او په دغه زمانه کښې هغه د یوے زنانه پئ وڅکی نو هله رشتے حرامیږي. او که نه چرے بچے د تی نه پرېکړے شوے وي او بیا روستو د یوے ښځے تے وخوري نو هغه داسے ده لکه چه اوبه وڅکی. دا رائے د اُم سلمه او د ابن عباس ده. د حضرت علیؓ نه هم دغسے یو روایت شوے دے. زُهريُ، حَسن بصري، قتاده، عکرمه او وزاعی د دے خبرے قائل دي.

(۲) په دوه کاله کښې دننه چه بوبچي د یوے ښځے پئ څکلی وي نو هله رشته حرامیږي. دا د حضرت عمرؓ، ابن مسعود، ابو هریره او د ابن عمر قول دے او په فقها وکښې امام شافعي، امام احمد، امام ابو یوسف امام محمد، او سُفیان ثوري دا قول قبول کړے دے. د امام ابو حنیفه نه هم یو قول د دے په مرسته کښې نقل کړے شوے دے. امام مالک هم د دے موده قایل دے، خو هغه وائي چه که د دوو کالو نه میاشت دوه میاشتے زیات عمر وي او په هغے کښې ئے پئ وڅکل نو هم دغه حکم دے.

(۳) د امام ابو حنیفه او د امام زُفر مشهور قول دا دے چه د بیو دوکولو زمانه دوه نیم کاله ده او په دے موده کښې دننه په پیو څکلو سره د رشتے حرامولے راځي.

(۴) که په هر عمر کښې د یوے ښځے پئ وڅکی نو حراموالے ثابتیږي. یعني اصلي اعتبار د پیو څکلو دے د عمر نه دے. پیو څکلو والا که بوډا هم وي خو هغه حکم ئے دے کوم چه د تی خوړونکي بچي دے. دا رائے د حضرت عائشهؓ ده. او د حضرت علی نه هم زیات صحیح روایت د دے قول په مرسته کښې نقل شوے دے. او په فقها وکښې عُروه بن زبیر، عطاء، لیث بن سعد او ابن حزم دا قول اختیار کړے دے.

[۳۹] په دے کښې اختلاف دے چه د کومے ښځے سره صرف نکاح شوې وي چه د هغے مور حرامه ده او که نه ده. امام ابو حنیفه، مالک، احمد او شافعيُ رحمهم الله د هغے د حراموالي قائل دي او د حضرت علیؓ دا رائے ده چه ترڅو پورے د یوے ښځے سره کور والے نه وي شوے ترهغے پورے پر د هغے مور نه حرامیږي.

[۴۰] د دا سے جینئ د حراموالي د پاره دا شرط نه دے چه هغه د غاغاد میړني پلار په کور کښې لویه شوې وي. دا الفاظ خو الله تعالی صرف د دے رشتے د نازکوالي د ظاهرولو د پاره استعمال کړي دي.

الَّذِيْنَ مِنْ اَصْلَابِكُمْ ۙ وَاَنْ تَجْمَعُوْا بَيْنَ الْاُخْتَيْنِ اِلَّا مَا قَدْ سَلَفَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۲۳﴾

وَّالْمُحْصَنٰتُ مِنَ النِّسَآءِ اِلَّا مَا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ ۚ

كِتٰبَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ ۚ وَاُحِلَّ لَكُمْ مَّا وَرَآءَ ذٰلِكُمْ اَنْ تَبْتَغُوْا

حقيقي ځامنو ښځې[۴۱]. او دا هم په تاسو باندې حرام کړې شوي دي چه په يو وخت کښې دوه خويندې د يو سړي په نکاح کښې يو ځائے کړئ[۴۲]، خو هغه چه څه شوي دي هغه شوي دي، الله بخښونکے او رحم والا دے[۴۳]. او هغه زنانه هم په تاسو باندې حرامې دي چه د بل په نکاح کښې وي (محصنات) البته هغه ښځې حرامې نه دي چه (په جنګ کښې) ستاسو لاس له راشي[۴۴]. دا د الله قانون دے او د دے پابندي په تاسو باندې لازم کړې شوې ده.
د دے نه ماسوا چه څومره ښځې دي د هغوئ حاصلول د خپلو مالونو په ذريعه ستاسو د پاره

د اُمت د ټولو عالمانو تقريباً په دے خبره باندې اجماع ده چه ميرنۍ لور يعني پرکټئ په هر حال کښې په سړي باندې حرامه ده که هغه د ميرنۍ پلار په کور کښې لويه شوي وي او که نه وي.

[۴۱] دا "حقيقي" لفظ نے ورسره ځکه زيات کړے دے چه چا سره يو هلک ته خپل ځوئے ويلے وي نو د هغه نه پاتے شوې کونډه ښځه يا د هغه طلاق کړې ښځه په سړي باندې حرامه نه ده. حرامه صرف د هغے ځوئ ښځه ده چه د سړي د خپلے نطفے نه حقيقي ځوئے وي. او د ځوئ په شان د نوسي (که د ځوئ ځوئے وي او که د لور ځوئے وي) ښځه په نيکه يعني د پلار په پلار باندې او د مور په پلار باندې حرامه ده.

[۴۲] د نبي صلی الله عليه وسلم حکم دے چه د موره خور (ترور) او خورزه، او د پلار خور او وريره په يو وخت په نکاح کښے ساتل حرام دي. د دے د پاره دا اصول دي چه دا سے دوه زنانه په يو نکاح کښے ساتل حرام دي چه که يو ه ورته سړے شي نو د يو بل نکاح ورسره حرامه وي.

[۴۳] يعني د جاهليت په زمانه کښې چه تاسو ظلم کولو او د دوو دوو خويندو سره مو په يو وخت کښے نکاح کوله د هغے به نيوسے نه کيږي خو که او س د دے کار نه منع شوئ (وګوره حاشيه ۳۲ع). په دے وجه دا حکم دے چه کوم سړي د کفر په حالت کښے دوه خويندے په يو ځائے په نکاح ساتلي وي نو هغه به د اسلام راوړلو نه روستو يوه خور ساتي او بله خور به پريږدي.

[۴۴] يعني کومے ښځے چه په جنګ کښے ونيولے شي نو که د هغوئ کافر خاوندان په دارحرب کښے موجود هم وي خو هغوئ حرامے نه دي، ځکه چه د دارالحرب نه دارالاسلام ته د راتللو سره د هغوئ نکاحونه مات شولے. د دا سے ښځو سره نکاح هم کيدے شي او چه څوک د هغوئ مالکان شو نو هغوئ

ترې په نکاح فایده (تمتّع) هم اخستے شي. البته د فقهاؤ په دے خبره کښې اختلاف دے چه که ښځه خاوند دواړه په یو ځائے ونیولے شي نو د هغوئ څه حکم دے. امام ابوحنیفه او د هغه ملګري وائي چه د هغوئ په خپله نکاح په ځائے وي او امام مالک او شافعي وائي چه د هغوئ نکاح هم ماتیږي.

د وینځو نه د فایدے اخستلو (تمتّع) په باره کښې ډیرے غلطے خبرے د خلقو په ذهن کښې دي، ځکه دے وجے نه په دے لاندینو مسئلو ځان ښه پوهه کول پکار دي.

(۱) کومے ښځے چه په جنګ کښې ونیولے شي نو د نیولو سره سم یو سپاهي ته د هغوئ سره د کور والی کولو اجازت نشته. بلکه اسلامي قانون دا دے چه دا سے ښځے د حکومت ته حواله کړے شي. د حکومت خوښه ده چه که هغوئ پریږدي، او که د هغوئ نه پیسے (فدیه) اخلي، او که د مسلمانانو قیدیانو د تبادلے په بدل کښې هغوئ دشمن له ورکوي، او که په خپلو سپاهیانو باندے ئے تقسیم وي. یو سپاهي ته صرف د هغے ښځے نه د فایدے اخستلو (تمتّع) اجازت دے چه د حکومت د طرفنه ورته باقاعده د ملکیت په طور ورکړے شوې وي.

(۲) کومه ښځه چه باقاعده د حکومت د طرفنه چا له ورکړے شي د هغے سره هم د هغے دخته پورے کور والے نشي کولے ترڅو چه هغے ته یو ځل میاشتینے مرض نه وي راغلے او ترڅو چه دا یقین نه وي راغلے چه دا د بچي اُمید واره نه ده. د دے نه مخکښې کور والے هغے سره حرام دے. او که په حیثیت ئے بچے وي نو د بچي پیدا کیدو نه مخکښې ورسره کور والے ناجائزه دے.

(۳) د وینځو نه د فایدے اخستلو (تمتّع) په باره کښې دا شرط نشته چه هغوئ دِ اهل کتاب وي. د هغوئ مذهب که هر څه وي خو چه کله تقسیم کړے شي او د چا په حصه کښې راشي نو بیا د هغوئ نه فایده اخستے شي.

(۴) یوه وینځه چه چا ته حواله کړے شوې وي صرف هغه سړے ترې فایده اخستے (تمتّع) شي. بل چا ته د هغے سره د لاس لګولو حق نشته. چا سره چه وینځه وي او د هغے اولاد وشو نو هغه به د هغه سړي جائز اولاد وي. د هغے بچو ته به هغه قانوني حقونه حاصل وي کوم چه په شریعت کښې د حقیقي بچو د پاره مقرر وي. چه اولاد ئے ترې پیدا شي نو بیا به دغه وینځه نشي خرڅولے کیدے. او چه مالک ئے مړ شي نو بیا به آزاده وي.

(۵) که مالک خپله وینځه بل چا ته په نکاح ورکړي نو بیا ترې مالک نور هسې څه خدمت اخستے شي خو د کور والي حق ئے ورسره نشته.

(۶) لکه څنګه چه شریعت د ښځو د ودونو په باب کښې د ښځو کولو باندے پابندي لګولے ده دغه شان ئے په وینځو باندے دا پابندي نه ده لګولے. خو د دے نه د شریعت دا مطلب نه دے چه مالدار خلق دِ بے شمیره وینځے واخلي او په کور کښې دِ راجمع کړي او د خپل کور نه دِ عیاشے خانه جوړه کړي. بلکه په حقیقت کښې د وینځو د تعداد نه مقرره دلو وجه د جنګي حالاتو په قابو کښې نه راتلل دي.

(۷) د ملکیت د نورو ټولو حقونو په شان هغه مالکانه حقوق هم د یو نه بل ته اوړیدے شي کوم چه د یو جنګي قیدي په حقله حکومت چا ته ورکړي وي.

(۸) حکومت چه چا ته باقاعده د ملکیت حق ورکړي هغه یو دا سے قانوني او روا کار دے لکه څنګه چه نکاح یو قانوني او روا کار دے. نو څوک چه نکاح خوښه وي نو د هغه د پاره هیڅ معقوله وجه

بِاَمْوَالِكُمْ مُّحْصِنِيْنَ غَيْرَ مُسٰفِحِيْنَ ۭ فَمَا اسْتَمْتَعْتُمْ بِهٖ مِنْهُنَّ فَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ فَرِيْضَةً ۭ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ فِيْمَا تَرٰضَيْتُمْ بِهٖ مِنْۢ بَعْدِ الْفَرِيْضَةِ ۭ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿۲۴﴾ وَمَنْ لَّمْ يَسْتَطِعْ مِنْكُمْ طَوْلًا اَنْ يَّنْكِحَ الْمُحْصَنٰتِ الْمُؤْمِنٰتِ فَمِنْ مَّا مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ مِّنْ فَتَيٰتِكُمُ الْمُؤْمِنٰتِ ۭ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِاِيْمَانِكُمْ ۭ بَعْضُكُمْ مِّنْۢ بَعْضٍ ۚ

حلالې کړې شوې دي، خو په دې شرط چه هغوئ د نکاح په قلعه کښې محفوظه وساتئ، نه دا چه تش چل شهوتونه پوره کوئ. بيا چه تاسو د هغوئ نه کوم والى مزه واخلئ نو په بدله کښې ورله خپل مهرونه د فرض په حيثيت ورکړئ، البته که د مهر مقررولو نه روستو تاسو په مينځ کښې په خپله رضا سره څه سمجوته وشوه نو په هغه کښې هيڅ ګناه نشته، الله عليم او پوهه دے - او په تاسو کښې چه د دومره وس نه کيږي چه د خاندانى مسلمانو ښځو (مُحْصَنَات) سره نکاح وکړي نو هغه له پکار دي چه ستاسو په قبضه کښې کومې وينځې وي، د هغوئ نه د مؤمنانو وينځو سره نکاح وکړي. الله ته ستاسو د ايمانونو حال ښه معلوم دے، تاسو ټول د يو بل نه يئ،

نشته چه د وينځې نه فائده اخستل (تمتع) نا خوښه ګڼړي.

(۹) حکومت چه يو ځل وينځه چا له په ملکيت کښې ورکړي نو بيا ئې ترې واپس اخستلو حق نشته. لکه څنګه چه يو سړے خپله لور يا خور چا له په نکاح ورکړي او بيا ورته د واپس اخستلو حق نه وي.

(۱۰) که يو فوجي کمانډر صرف د يو وخت د پاره عارضي طور خپلو سپاهيانو ته قيدي ښځې د شهوت پوره کولو د پاره ورکړي او صرف د يو وخت د پاره ئې په فوج باندې تقسيم کړي نو دا په اسلامي قانون کښې قطعاً يو ناجائزه کار دے. په دے کښې او په زنا کښې هيڅ فرق نشته، او زنا په اسلامي قانون کښې جرم دے. د زيات بحث د پاره وګوره زما کتاب "تفهيمات" حصه دوم، او "رسائل ومسائل" حصه اول.

۴۵ يعني په خلقو کښې چه د مرتبو کوم فرق دے دا صرف يو اعتباري شے دے، که نه نو په اصل کښې ټول مسلمانان يو شان دي، او د برترۍ حقيقي وجه صرف ايمان دے چه يواځې د ډيرو کورنو حصه نه ده، کيدے شي چه يوه وينځه په ايمان او په اخلاقو کښې د يوې خاندانى ښځې نه غوره وي.

---

فَانْكِحُوْهُنَّ بِاِذْنِ اَهْلِهِنَّ وَاٰتُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ بِالْمَعْرُوْفِ مُحْصَنٰتٍ غَيْرَ مُسٰفِحٰتٍ وَّلَا مُتَّخِذٰتِ اَخْدَانٍ ۚ فَاِذَآ اُحْصِنَّ فَاِنْ اَتَيْنَ بِفَاحِشَةٍ فَعَلَيْهِنَّ نِصْفُ مَا عَلَى الْمُحْصَنٰتِ مِنَ الْعَذَابِ ؕ ذٰلِكَ لِمَنْ خَشِيَ الْعَنَتَ مِنْكُمْ ؕ وَاَنْ

نو په دے وجه د هغوی د سرپرستانو په اجازت د هغوی سره نکاح وکړئ او د رِواج مطابق هغوی ته خپل مهرونه ورکړئ، د پاره د دے چه هغوی د نکاح په قلعه کښ محفوظے (محصنات) پاتے شی، د شهوت پوره کولو د پاره آزادے و نه ګرځی او نه پټ پټ آشنایانے وکړی. بیا هم کله چه هغوی د نکاح په قلعه کښ محفوظے کړے شی او د هغے نه روستو څه بد کاری وکړی نو په هغوی باندے د هغے سزا په نسبت نیمه سزا ده کومه چه د خاندانی ښځو (محصنات) د پاره مقرر ده.[۴۶] دا آسانتیا[۴۷] په تاسو کښ د هغه چا د پاره پیدا کړے شوی ده چه د واده د نه کولو په وجه د تقوی د حد ماتیدلو یره وی. لیکن که

[۴۶] که په ظاهره دلته یو کړکیچ ښکاری چه د هغے نه خوارجو او هغو خلقو فائده اخستلے ده چه د رجم (په کاڼو د وژلو سزا) نه منکر دی. هغوی وائی چه د اسلام په شریعت کښے د یو آزادے واده کړے شوی ښځے د پاره د زنا سزا رجم کول دی، نو د دے نیمه سزا به څه وی چه هغه وینځے له ورکړے شی؟ په دے وجه دا آیت د دے خبرے ثبوت دے چه په اسلام کښے د رجم کولو سزا نشته." لیکن دے خلقو د قرآن په الفاظو غور نه دے کړے. په دے رکوع کښے لفظ مُحْصَنٰتُ (محفوظے ښځے) په دوو مختلفو معنو سره استعمال کړے شوے دے یو "واده شوے ښځے" چه د خاوند په حفاظت کښے وی. بل "خاندانی ښځے" چه د خاندان په حفاظت کښے وی، اګر که نه وی واده شوی. په دے آیت کښے "مُحْصَنٰت" لفظ د وینځے په مقابله کښے د خاندانی ښځو د پاره په دے دویمه معنی سره استعمال شوے دے نه چه په اوله معنی سره، لکه څنګه چه د آیت د مطلب نه صفا ظاهریږی. د دے برخلاف د وینځو د پاره د مُحْصَنٰت لفظ په اوله معنی سره استعمال شوے دے او په الفاظو کښے یے صفا فرمائیلی دی چه هغوی کله د نکاح په حفاظت کښے راشی (فَاِذَآ اُحْصِنَّ) نو بیا د هغے نه د هغوی د پاره په زنا کولو باندے هغه سزا ده کومه چه ذکر شوه. اوس که په ژور نظر سره وکتے شی نو دا خبره صفا واضحه ده چه خاندانی ښځه په دوه حفاظتونو کښے وی. یو د خاندان حفاظت دے چه د دے په وجه هغه د واده نه بغیر هم محصنه ده. بل د خاوند حفاظت دے چه د خاندان د حفاظت د پاسه یو بل حفاظت جوړیږی. د دے برخلاف وینځه چه

تَصۡبِرُوۡا خَيۡرٌ لَّكُمۡ‌ؕ وَاللّٰهُ غَفُوۡرٌ رَّحِيۡمٌ ﴿۲۵﴾ ع يُرِيۡدُ اللّٰهُ لِيُبَيِّنَ لَـكُمۡ وَيَهۡدِيَكُمۡ سُنَنَ الَّذِيۡنَ مِنۡ قَبۡلِكُمۡ وَيَتُوۡبَ عَلَيۡكُمۡ‌ؕ وَاللّٰهُ عَلِيۡمٌ حَكِيۡمٌ ﴿۲۶﴾ وَاللّٰهُ يُرِيۡدُ اَنۡ

تاسو صبر وکړئ نو دا ستاسو دپاره بهتره ده، الله بخښونکے او رحم والا دے ع

الله غواړي چه تاسو ته هغه طریقے ؤښیائي او په هغو طریقو مو روان کړي چه په هغے باندِ بشاسونه وړاندِ تیر شوی صلحان خلق تلل. هغه دَ خپل رحمت سره ستاسو طرفته دَ متوجه کید و اراده لري، او هغه علیم هم دے او حکمت والا هم [۴۸]. او که، الله خو په تاسو باندِ د رحمت سره

ترڅو ینځه ده نو محصنه نه ده، ځکه چه هغے ته دَ خاندان حفاظت حاصل نه دے. البته چه نکاح ئے ؤشی نو صرف دَ خاوند حفاظت ورته حاصل شی او هغه هم نیمگړے حفاظت وی، ځکه چه دَ خاوند په حفاظت کښے دَ راتللو نه روستو هم نه خو وینځه دَ خپل مالک دَ خدمت نه آزاده وی او نه ورته په خلقو کښے هغه مرتبه حاصله وی کومه مرتبه چه خاندانی ښځے ته حاصله وی. دغه وجه ده چه وینځے ته کومه سزا ورکړے کیږی هغه به دَ ناواده کړے خاندانی ښځے دَ سزا نیمه وی، دَ واده کړے خاندانی ښځے دَ سزا نیمه به نه وی. دغه رنگے دَ دے ځائے نه دا خبره هم معلومه شوه چه دَ سورة نور په دویم آیت کښے دَ زنا کومه سزا ذکر شوی ده هغه صرف دَ ناواده کړے خاندانی ښځو دپاره ده او دَ هغه په مقابله کښے دلته دَ واده شوے وینځے سزا نیمه بیان کړے شوی ده. پاتے شوے واده شوی خاندانی ښځے، نو هغه خو دَ ناواده شوی خاندانی (محصنات) نه زیاته دَ سختے سزا حقداره وی، ځکه چه هغوئ دوه حفاظتونه ماتوی. اگر که قرآن دَ هغوئ دپاره دَ رجم کولو دَ سزا صفا بیان نه دے کړے، لیکن ډیر په باریکے طریقے سره ئے ورته اشاره کړي ده، دا سے اشاره ده چه کم دَ پلیت ذهن والا خلقو نه پته پاتے شی خو پاتے به شی، لیکن دَ نبی دَ پاک او صحیح ذهن نه پته نه شوه پاتے کیدے.

[۴۷] یعنی دا آسانتیا چه کم دَ خاندانی ښځو سره دَ نکاح کولو وَس دَ چا نه کیږی نو دَ یوے وینځے سره دِ دَ هغے دَ مالک په اجازت نکاح ؤکړي.

[۴۸] دَ سورة دَ شروع نه دَ دے ځائے پورے چه کوم هدایات شوی دی، او دَ دے سورة دَ نازلیدو نه وړاندِ په سورة بقره کښے چه دَ استوګنے په باره کښے کوم هدایات شوی وُو، هغے ټولو ته په جمع اشاره کوی او وائی چه دا دَ شریک ژوند تیرولو هغه اخلاقی قانون دے چه دَ پخوا زمانے راسے پرے په هر دور کښے دَ پیغمبرانو او دَ هغه دَ صالحانو منکرو عمل را روان دے، او دا کم الله

يَتُوبَ عَلَيْكُمْ ۗ وَيُرِيدُ الَّذِينَ يَتَّبِعُونَ الشَّهَوَاتِ أَن تَمِيلُوا مَيْلًا عَظِيمًا ﴿٢٧﴾ يُرِيدُ اللَّهُ أَن يُخَفِّفَ عَنكُمْ ۚ وَخُلِقَ الْإِنسَانُ ضَعِيفًا ﴿٢٨﴾

توجّه کول غواړی خو څوک چه د خپلو خواهشا تو پیروی هغوی دا غواړی چه تاسو د صحیح لارې نه بیخ ډیر لرې لاړ شئ[۴۹]. خدائے په تاسو باندې پابندئ سپکول غواړی ځکه چه انسان کمزورے پیدا کړے شوے دے.

مهربانی دا ده چه تاسو د جاهلیت د حال نه راوُباسی او د صالحانو خلقو د ژوند طریقه درته ښائی.

[۴۹] دا اشاره منافقانو ته او زړو جاهلانو ته او د مدینے یهودیانو ته ده. د منافقانو او د زړو جاهلانو خوهغه اصلاحات هډو خوښ نه وُو کوم چه د هغوی د پخوانو رسمونو رواجونو خلاف وُو کوم چه د کلونو راسے په خلقو کښے راچلیدل. په میراث کښے د نجو حصه. د کونډے ښځے د خپله خوښه نه خلاصیدل او د عدت نه روستو په خپله طبع نکاح کول. د میرنئ مور سره نکاح حرامیدل. دوه خویندے په یو وخت کښے د یو سړی په نکاح کښے یو ځائے کولو ته ناجائزه وئیل. د متبنٰی نه د میراث نه محرومه کول او د هغه کونډے او یا د هغه طلاقه کړے ښځه پلار له حلالیدل دا او د دے قسمه نور ډیر اصلاحات دا سے وُو چه په هغه باندې لوی زړو او د رسمونو رواجونو پټنګانو چغے اُووهلے. ډیره موده دے حکمونو په باره کښے خبرے اترے کیدلے. شرارتیانو خلقو به د دے خبرو په ذریعه خلق د نبی صلی الله علیه وسلم او د هغه د دعوت خلاف غصه کول. مثلاً چه یو سړے به د داسے مور او پلار نه پیدا شوے وُو چه اسلامی شریعت به د هغوی نکاح او س او س تازه حرامه کړے وه، نو هغه ته به ئے په دے خبره غصه ورویستله چه وُګوره ځوانه نن چه کوم نوی حکمونه راغلی دی په هغه کښے خو ستا د مور او پلار نکاح ناجائزه کړے شویده. په دے طریقه به دے کم عقلو خلقو په اصلاحی کارونو کښے بندیز پیدا کولو.

بل طرف ته یهودیان وُو چه کومے پیړۍ راسے یے د معمولی معمولی خبرو په باره ځان نه حکمونه او قانونونه جوړ کړی وُو او د خدائے اصلی شریعت ئے پکښے په منځ کښے پټ کړے وُو. بے شمیره پابندیانے او سختے سختے خبرے هغوی په شریعت کښے نیاتے شاملے کړے وے. ډیر حلال څیزونه هغوی حرام کړی وُو. ډیرے د وهم خبرے هغوی د خدائے په قانون کښے داخل کړے وے. اوس دا خبره د هغوی د عامو خلقو او د هغوی د عالمانو د ذهن نه بالکل خلاف وه چه هغوی د قرآن د سیده ساده شریعت قدر پیژندلے وے. هغوی چه به د قرآن حکمونه اوریدل نو هغه به ورتلله په یو یو حکم به ئے سل سل اعتراضونه کول. هغوی به وئیل چه یا خو قرآن د هغوی د عالمانو هغه ټول حکمونو، وهمونو او عبثو خبرو ته د خدائے قانون اُووائی، کنه نو دا هرګز د خدائے کتاب نه دے. د مثال په طور د یهودیانو دا دستور وُو چه په میاشتینه ناجوړتیا کښے به ښځه پلیته ګڼلے شوه. نه به ئے د هغے د

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَأْكُلُوٓا۟ أَمْوَٰلَكُم بَيْنَكُم بِٱلْبَٰطِلِ إِلَّآ أَن تَكُونَ تِجَٰرَةً عَن تَرَاضٍ مِّنكُمْ ۚ وَلَا تَقْتُلُوٓا۟ أَنفُسَكُمْ ۚ

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، په خپل منځ کښې د یو بل مالونه په باطلو طریقو سره مه خورئ، اغستل او خرڅول په خپلو کښې په رضامندئ سره پکار دی۔[۵۰] او خپل ځانونه مه قتلوئ۔[۵۱]

---

لاس پوخ شوے خوراک خوري۔ نه به یې د هغې د لاس اوبه څښلے۔ نه به ورسره یو ځائے کیناستل۔ بلکه د هغې د لاس سره به یې خپل لاس لګول هم نه غوښتل۔ په دے یو څو ورځو کښې به یې په خپل کور کښې ځان له یو ځائے پرائے وه۔ د یهودیانو د اثر د وجې نه دا رواج د مدینې په انصارو کښې هم وو هر کله چه نبی صلی الله علیه وسلم مدینې ته راغے نو د دے په باره کښې ترتپوس وشو۔ په جواب کښې ورته هغه آیت راغے کوم چه د سورة بقرے د ۲۸ تیشتمے رکوع په شروع کښې دے۔ نبی صلی الله علیه وسلم ورته د دے آیت په رڼا کښې حکم وکړو چه په میاشتینه ناجوړتیا کښې د ښځې سره صرف کوروالے کول ناروا دے، نور ټول کاروبار ورسره د نورو ورځو په شان روا دی۔ یهودیانو په دے شور جوړ کړو او وے وئیل چه مه سړي خو قسم خوړلے دے چه هغه ټول څیزونه به حلالوي کوم چه زمونږ په نزد باندې حرام دی، او کوم کوم څیزونو ته چه مونږه ناپاک وایو هغے ټولو ته به پاک وائي۔

[۵۰] د "باطلو طریقو" نه مراد هغه ټولے طریقے دی چه د حق خلاف دی او د شریعت او د اخلاقو د لحاظ سره ناجائزه وی۔ د "اغستلو او خرڅولو" نه مراد دا دے چه په خپلو کښې د فائدے او د منافعې تبادله کول پکار دی لکه څنګه چه په تجارت او په کاریګرئ کښې وی چه یو سړے د بل سړي د ضرورت پوره کولو د پاره محنت وکړي او هغه ورله د هغه محنت بدله ورکړي۔ په خپلو کښې په رضامندئ سره د دے مطلب دا دے چه په اغستلو و خرڅولو کښې دِ نه دوکه وی او نه دِ د ځه دباؤ لاندې وی۔ په رشوت او په سود کښې خو په ظاهره رضامندی وی خو په حقیقت کښې هغه د مجبورئ رضامندی وی او د ځه خاص دباؤ په وجه وی۔ په جوارئ کښې هم په ظاهره رضامندی وی خو په حقیقت کښې په جوارئ کښې هر سړے په دے غلط امید باندې رضا شوے وی چه ګټه به زما وی۔ د بائیلات په اراده سره څوک هم جوارئ کولو ته راضی نه وی۔ د دوکے په کاروبار کښې هم په ظاهره رضامندی وی خو دا د ناپوهئ په وجه وی چه ګنې په دے کښې دننه دوکه نشته۔ که یل ته دا پته ولګی چه ته د هغه سره دوکه کوے نو هغه به هیڅ کله په دے راضی نشی۔

[۵۱] دا فقره د تیرے شوے فقرے سره هم لګی او بیخپله ځان له یوه مستقله فقره هم ده۔ که د اولے فقرے سره ولګولے شی نو بیا یې مطلب دا دے چه د بل مال په ناجائزه خوړلو بیخپله خپل ځان هلاکول دی۔ د دے نه پره نیا کښې د وسیدلو نظام خرابیږی او د دے د خراب انجام نه حرام خور سړے هم نشی بچ کیدے۔ او د دے په وجه په آخرت کښې سړے د سختے سزا حقدار جوړیږی۔

إِنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُمْ رَحِيمًا ﴿٢٩﴾ وَمَن يَفْعَلْ ذَٰلِكَ عُدْوَانًا وَظُلْمًا فَسَوْفَ نُصْلِيهِ نَارًا ۚ وَكَانَ ذَٰلِكَ عَلَى اللَّهِ يَسِيرًا ﴿٣٠﴾ إِن تَجْتَنِبُوا كَبَائِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ نُكَفِّرْ عَنكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ وَنُدْخِلْكُم

یقین وکړئ چه الله په تاسو باندې ډیر مهربان دے.[52] څوک چه په ظلم او زیاتی سره داسے کارونه کوی هغه به مونږه ضرور اور ته غورزَوُو او دا کار خدائے ته هیڅ ګران نه دے. که تاسو د هغې لویو لویو ګناهونو نه ځان وساتلو د کومو نه چه تاسو منع کړے شوی یئ نو ستاسو واړه واړه غلط کارونه به مونږه ستاسو په حساب کښې نه راولو[53] او تاسو به

او که د ا ځان له یوه مستقله فقره وګڼړلے شی نو د دے دره معنے دی: یو دا چه یو بل مه قتلوئ. بل دا چه خودکشی مه کوئ. الله تعالیٰ داسے جامع الفاظ استعمال کړی دی او کلامیٔ په داسے ترتیب سره لګولے دے چه د دے نه دا درے واړه معنے راوځی او دریواړه حق دی.

[52] یعنی الله ستاسو خیرخواه دے، ستاسو ښیګړه غواړی، او دا د هغه مهربانی ده چه هغه تاسو د داسے کارونو نه منع کوی چه په هغې کښے ستاسو بربادی او هلاکت دے.

[53] یعنی مونږه زړه تنګی او تنګ نظره نه یُوچه په ورو ورو خبرو به خپلو بندګانو له سزا ورکوو. که ستاسو عملنامه د لویو لویو جُرمونو نه خالی وی نو وړے وړے غلطیٔ به درته معاف کړے شی او ستاسو په حساب کښے به نه راځی. البته که د لویو لویو جُرمونو سره راغلئ نو بیا چه څه مقدمه په تاسو باندې جوړه شی نو په هغې کښے به وړے وړے خطاګانے هم حسابیږی.

دلته په دے ځائے ځان پوهه کول پکار دی چه په لویه ګناه او په وړه ګناه کښے څه فرق دے. ترکومه حده پورے چه ما په قرآن او په سنت باندې غور کړے دے نو مانه معلومه شوی ده (والله اعلم بالصواب) چه درے څیزونه دی چه په هغې د یو کار نه لویه ګناه جوړیږی.

(۱) حق وهل: مثلاً د خدائے حق وهل، یا د مور او پلار حق وهل، یا د بل انسان حق وهل، یا پخپله د خپل نفس حق وهل. بیا چه د چا حق څومره زیات وی هغومره د هغه حق وهل زیاته لویه ګناه ده. په دے وجه ګناه ته "ظلم" هم ویلے شی او په دے وجه شرک ته په قرآن کښے لوئ ظلم ویلے شوے دے.

(۲) د الله نه نه یریدل او د هغه په مقابله کښے ځان غټ ګڼړل: د دے خیال په وجه سړے د الله د امر او د نهی پروا نه لری او د نافرمانئ په خیال په قصد باندې هغه کارونه کوی چه الله ترې منع کړی وی، او په قصد باندې هغه کارونه نه کوی چه د کوم کارونو الله حکم کړے وی. دا نافرمانی چه څومره

مُّدْخَلًا كَرِيمًا ﴿٣١﴾ وَلَا تَتَمَنَّوْا مَا فَضَّلَ اللَّهُ بِهِ بَعْضَكُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ ۚ لِّلرِّجَالِ نَصِيبٌ مِّمَّا اكْتَسَبُوا ۖ وَلِلنِّسَاءِ نَصِيبٌ مِّمَّا اكْتَسَبْنَ ۚ وَاسْأَلُوا اللَّهَ مِن فَضْلِهِ ۗ إِنَّ اللَّهَ كَانَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمًا ﴿٣٢﴾

دَ عزّت ځائے ته داخل کړو۔

او الله تعالیٰ چه په تاسو کښې یو تن له دَ بل په مقابله کښې څه زیات ورکړی دی تاسو دَ هغے آرزو کانے مه کوئ۔ نارینو چه څه کټلی دی دَ هغے مطابق دَ هغوئ حصه ده او زنانو چه څه کټلی دی دَ هغے مطابق دَ هغوئ حصه ده۔ او دَ الله نه دَ هغه دَ فضل دُعا کانے غواړئ، بیشکه چه الله دَ هر څه علم لری۔[۵۴]

زیاته په ضد او په زړه ورتیا سره اُوخداے نه بے پروے وی هغو مره په ګناه هم سخته وی۔ دَ دے معنے په لحاظ سره دَ ګناه دپاره دَ "فسق" او دَ "معصیت" الفاظ استعمال کړے شوی دی۔

(۳) هغه ترون پریکول او هغه تعلقات خرابول چه دَ هغے په ترلو او په مضبوتیا او په سالمتیا باندے دَ انسانی ژوند دَ امن دارومدار دے، خواه که دا ترون دَ بنده او دَ خداے په مینځ کښے وی او که دَ بنده او دَ بنده په مینځ کښے وی۔ بیا چه یوه رابطه (ترون) څومره زیاته اهم وی او چه دَ هغے په ختمیدلو امن ته څومره زیات نقصان رسیږی هغو مره دَ هغے دَ پریکولو او دَ خرابولو ګناه زیاته لوئیږی۔ مثلاً دَ زنا او دَ هغے په مختلفو رخونو غور وُکړئ۔ دَ زنا کارئ سره دَ استوګنے نظام خرابیږی او ددے وجے نه دا پخپله یوه لویه ګناه ده خو په مختلفو شکلونو کښے ددے ګناه نوره هم زیاتیږی۔ چه واده ئے کړے وی دَ هغے سړي زناکول دَ ناواده کړي سړي دَ زنا په نسبت زیاته سخته ګناه ده۔ دَ نکاح شوے ښځے سره زناکول دَ بے نکاح ښځے په نسبت زیاته ګناه ده۔ دَ ګاونډئ ښځے سره زناکول دَ غیر ګاونډئ ښځے په نسبت زیات بدکار دے۔ دَ محرمو ښځو مثلاً دَ خور، یالور، یا مور سره زناکول دَ حلالو ښځو په نسبت زیات دَ ګناه کار دے۔ په جُمات کښے زناکول دَ بل ځائے په نسبت زیاته سخته ګناه ده په دے مثالونو کښے هم دا یو کار په مختلفو شکلونو کښے دَ ګناه په حیثیت سره فرق لری۔ چرته چه دَ امن توقع څومره زیاته ده، چرته چه انسانی رابطه څومره قابل احترام ده او چرته چه دَ انسانی ترون دَ پریکولو نه څومره زیات فساد جوړیږی، هغو مره دَ زناکولو ګناه بنه زیاتیږی۔ دَ دے معنے په لحاظ سره دَ ګناه دپاره دَ "فجور" لفظ استعمالیږی۔

[۵۴] په دے آیت کښے یو ډیر لوئ اهم اخلاقی حکم شوے دے، که دَ دے حکم لحاظ وُساتلے شی نو په اجتماعی ژوند کښے به انسان ته ډیر لوئ امن نصیب شی۔ الله تعالیٰ ټول انسانان یو شان نه دی جوړ کړي، هر انسان دَ بل انسان نه په هر حیثیت سره بدل دے۔ څوک ښکلی دی او څوک بدشکله۔ دَ چا آواز خوږ دے او دَ چا نه دے۔ څوک طاقتور دی او څوک کمزوری۔ څوک په اندامونو روغ دی او څوک پیدائشی نیمګړی دی۔ په جسمانی او ذهنی توتونو کښے چا له یو قوت زیات ورکړے شوے دے او چا له بل۔ څوک په ښه حالاتو کښے پیدا

وَلِكُلٍّ جَعَلْنَا مَوَالِيَ مِمَّا تَرَكَ الْوَالِدٰنِ وَالْأَقْرَبُوْنَ ۗ وَالَّذِيْنَ عَقَدَتْ أَيْمَانُكُمْ فَاٰتُوْهُمْ نَصِيْبَهُمْ ۗ إِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ شَهِيْدًا ﴿۳۳﴾

او کوم میراث چه مور او پلار او رشته داران پریږدی مونږ د هغه حقداران مقرر کړی دی. باقی شو هغه خلق چه ستاسو ورسره لوزونه دی نو د هغوی حصه هغوی له ورکړی، یقیناً د الله په هر څه باندې نظر دے.[۵۵] ع

کړے شوے دے او شوک په بد وحالاتو کښې. چاله ئے ډیر څه ورکړی دی او چاله ئے کم. د دے فرق او بیلتون په وجه په انسانی ژوند کښې بنائیت برقرار دے او دا بالکل د حکمت مطابق دے. چرته چه انسان دا فرق د خپل فطری حد نه اړولے دے او د خپله خانه ئے ډیر زیاته را وتلے دے نو هلته یو قسم له فساد راپورته شوے دے، او چرته چه د دے فرق ختمولو د پاره د فطرت سره د جنګ کولو کوشش شوے دے هلته یو بل قسم فساد راپورته شوے دے. انسان چه څوک د ځان نه زیات وینی نو څه او پریشانه شی، د انسان دا قسم خیال د حسد، د ځان برابرولو، د ترېګنې او دښمنۍ او د جنګ جګړو بنیاد دے، او د دے خیال بیا دا نتیجه راوځی چه یو څیز انسان ته په جائزه طریقه نه حاصلیږی نو هغه بیا په ناجائزه طریقه د هغې د حاصلولو کوشش شروع کړی الله تعالیٰ په دے آیت کښې د دے خیال نه د بچ کیدو حکم کوی. د هغه د حکم دا مطلب دے چه څه فضل الله په بل باندې کړے وی د هغې آرزو ته مه کوه، البته د الله نه د فضل دعا غواړه، هغه به د خپل علم او حکمت مطابق چه څه فضل ستا د پاره مناسب وی، تاله ورکړی. او دا ایې چه فرمائیلی دی "چه نارینو څه ګټلی دی د هغې مطابق د هغوی حصه ده او زنانه چه څه ګټلی دی د هغې مطابق د هغوی حصه ده" نو تر څو پورے چه پرې زهٔ پوهه شوے یم نو د دے مطلب دا دے چه په نارینو او زنانو کښې الله چا ته څه ورکړی دی د هغې په استعمال سره چه چا څومره او څه رنګه بدی یا نیکی ګټلې هغومره او هغه رنګه به د الله سره خپله حصه بیا موی.

[۵۵] د عربو په خلقو کښې دا قاعده وه چه د کومو خلقو په مینځ کښې به د دوستۍ او د ورورولۍ لوزونه شوی وو هغوی به د یو بل د میراث حقداران وو. دغه شان چه چا به چا ته هسې خپل ځوی ویلے وو نو هغه به هم د هغې مُلک په نوم پلار وارث ګڼلے شو. په دے آیت کښې د جاهلیت د زمانې دا طریقه منسوخ شوی ده او حکم شوے دے چه د میراث کومه قاعده مونږ مقرر کړی ده میراث هم د هغې مطابق په رشته دارانو کښې تقسیمیدل پکار دی. البته چه د کومو خلقو سره تاسو لوزونه کړی وی نو هغوی له په خپل ژوند کښې چه څه درکول غواړئ هغه ورکولے شئ.

اَلرِّجَالُ قَوّٰمُوْنَ عَلَى النِّسَآءِ بِمَا فَضَّلَ اللّٰهُ بَعْضَهُمْ عَلٰى بَعْضٍ وَّبِمَآ اَنْفَقُوْا مِنْ اَمْوَالِهِمْ ؕ فَالصّٰلِحٰتُ قٰنِتٰتٌ حٰفِظٰتٌ لِّلْغَيْبِ بِمَا حَفِظَ اللّٰهُ ؕ وَالّٰتِىْ تَخَافُوْنَ نُشُوْزَهُنَّ فَعِظُوْهُنَّ وَاهْجُرُوْهُنَّ فِى الْمَضَاجِعِ وَاضْرِبُوْهُنَّ ۚ

نارینه پر زنانو باندې حاکمان دي[۵۲]، په دې وجه چه الله په هغوی کښ یو له په بل باندې فضیلت[۵۳] ورکړې دے، او په دې وجه چه نارینه خپل مال لګوي. پس کومې ښځې چه نیکې صالحانې دي هغوی حکم منونکې وي او د نارینو نه پټه شا د الله په حفاظت او نګرانۍ کښ د هغوی د حقونو حفاظت[۵۴] کوي. او د کومو ښځو د نافرمانۍ یره چه ستاسو سره پیدا شوه نو په نصیحت یې بنه پوه کړئ، د خوب بستره ترنه جدا کړئ او ووهئ[۵۵]،

[۵۲] قوّام (حاکم) یا قیّم (ناظم) هغه سړي ته وائي چه د یو سړي یا د یو اداره یا د یو نظام د معاملاتو د صحیح چلولو ذمه داروي، او د هغه د حفاظت او د نګرانۍ ذمه واري هم د دې په سر وي.

[۵۳] دلته د فضیلت معنیٰ شرف او عزت نه دے، لکه چه یو عام سړے ترې مطلب اخلي، بلکه دلته په دې لفظ کښې دا معنیٰ پرته ده چه په دوئ کښې یو طرف (یعنې سړو) ته الله تعالیٰ څه داسې خاصیتونه او قوتونه طبعاً ورکړي دي چه بل طرف (یعنې ښځو) ته ئې نه دي ورکړي یا ئې د هغوی نه کم ورکړي دي. د دې وجه ده چه د کور په نظام کښې سړے د حاکموالۍ اهلیت لري او ښځه فطرتًا داسې جوړه کړے شوې ده چه هغه له په کور کښې د سړي د حفاظت او د نګرانۍ لاندې اوسیدل پکار دي.

[۵۴] په حدیث کښې دي چه نبي صلی الله علیه وسلم وفرمائیل "بهترینه ښځه هغه ده چه کله ورته وګورې نو ستا زړه خوشحاله شي، چه د څه خبرې ورته ووائې نو هغه ستا خبره ومني، او چه کله ته په کور کښې نه یې نو هغه ستا پسې ستا د مال او د خپل ځان حفاظت کوي." دا حدیث د دې آیت ډیر ښه تفسیر کوي. خو دلته په دې ځان بنه پوهه کول پکار دي چه ښځې له د خپل خاوند د حکم منلو نه وړاندې د خپل خالق حکم منل ضروري دي. نو که یو خاوند خپلې ښځې ته د خدائے نه د نافرمانۍ کولو حکم وکړي، یا د خدائے د فرائضو د منع کولو کوشش وکړي، نو بیا د هغې نه منل د ښځې فرض دي. په دې کښې که ښځه د خاوند ومني نو هغه به ګناهګاره وي. د دې نه برخلاف که خاوند خپلې ښځې ته د نفل مونځ نه کولو یا د نفل روژه نه نیولو حکم وکړي نو بیا ضروري ده چه ښځه د خاوند حکم ومني. که ښځې ونه منله او نفل ئې سرته ورسول نو دا به قبول نه وي.

فَاِنْ اَطَعْنَكُمْ فَلَا تَبْغُوْا عَلَيْهِنَّ سَبِيْلًا ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيًّا كَبِيْرًا ﴿۳۴﴾ وَاِنْ خِفْتُمْ شِقَاقَ بَيْنِهِمَا فَابْعَثُوْا حَكَمًا مِّنْ اَهْلِهٖ وَحَكَمًا مِّنْ اَهْلِهَا ۚ اِنْ يُّرِيْدَآ اِصْلَاحًا يُّوَفِّقِ اللّٰهُ بَيْنَهُمَا ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلِيْمًا خَبِيْرًا ﴿۳۵﴾

بیا که هغوئ ستاسو خبرې ته غاړه کېښوده نو خامخا په هغوئ باندې د ظلم کولو د پاره بهانې مه لټوئ، یقین لرئ چه پورته الله موجود دے چه ډیر لوئ او د هر چا د پاسه دے۔۵۹ او که ستاسو د اېره وه چه د ښځې خاوند تعلقات به خراب شي نو یو فیصلې والا د سړي د خپلوانو نه او بل د ښځې د خپلوانو نه مقرر کړئ،۶۰ نو که هغوئ دواړه روغه کول غوښتل نو الله به د هغوئ په منځ کښې د روغې څه لار راوباسي، الله ته هر څه معلوم دي او د هر څه نه خبر دے۔۶۱

۵۹ د دې مطلب دا نه دے چه د بې وارې کارونو په پوخت وکړه شي، بلکه مطلب دا دے چه د نافرمانۍ په حالت کښې د دې درې وارو کارونو اجازت دے۔ او س پاتې شو په دې باندې عمل کول، نو په دې کښې د نافرمانۍ د کاریني د قصور او د سزا په منځ کښې تناسب ساتل پکار دي، چرته چه په آسانه روغه کیدے شي هلته د سختۍ کولو نه کار نه دے اخستل پکار۔ نبي صلی الله علیه وسلم چه کله د ښځو د وهلو اجازت ورکړے دے نو ډیر په ناخوښۍ ئې ورکړے دے او بیائې هم ناخوښي ښکاره کړې ده۔ خو بیا هم ځنې ښځې پکښې داسې دي چه د وهلو نه بغیر نه سمیږي۔ په داسې حالت کښې نبي صلی الله علیه وسلم فرمائیلي دي چه په مخ دې نه وهي، په بې رحمۍ سره دې ئې نه وهي او په داسې څیز دې ئې نه وهي چه هغه په بدن نښه کوي۔

۶۰ د دواړو نه مراد فیصلې والا هم دي او ښځه خاوند هم۔ په هره جګړه کښې د روغې امکان وي خو شرط پکښې دا دے چه دواړه طرفونه هم صلح خوښه وي او منځګړي هم دا غواړي چه د دواړو په منځ کښې روغه وشي۔

۶۱ په دې آیت کښې دا هدایت شوے دے چه هر کله د ښځې خاوند په منځ کښې نااتفاقي راشي نو نه ئې خپل تعلقات ختم وي او نه ئې خبره عدالت ته رسوي بلکه په کور دننه دې د اصلاح کولو کوشش وکړے۔ او د هغې طریقه دا ده چه د ښځې او د خاوند د خاندان نه یو یو سړے د دې فرض د پاره مقرر کړي چه دوی به په شریکه د هغوئ د خفګان وجه معلومه کړي او بیا به خپلو کښې سره کیني او د اصلاح او د روغې څه لار راوباسي۔ څوک به دا فیصلې والا مقرره وي؟ دا خبره الله تعالیٰ په ځائے پرېښودے ده۔ څنګه چه ښځه خاوند چټپله وغواړي نو د خپلو خپلو رشتہ دارانو نه دې یو یو سړے د فیصلې کولو

وَاعْبُدُوا اللّٰهَ وَلَا تُشْرِكُوْا بِهٖ شَيْـًٔا وَّبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا وَّبِذِي الْقُرْبٰى وَالْيَتٰمٰى وَالْمَسٰكِيْنِ وَالْجَارِ ذِي الْقُرْبٰى وَالْجَارِ الْجُنُبِ وَالصَّاحِبِ بِالْجَنْۢبِ وَابْنِ السَّبِيْلِ ۙ وَمَا

او تاسو ټول د الله بندګي کوئ، د هغه سره څوک مه شریکوئ، د مور او پلار سره ښه سلوک کوئ، د خپلوانو او د یتیمانو او د مسکینانو سره ښه سلوک ساتئ، د رشته دار ګاونډي سره، د غیر رشته دار ګاونډي سره، د سنګي ملګري سره[۶۲] او د مسافر سره او د هغه وینځو غلامانو سره چې

دپاره خوښ کړي، او که نه نو د دواړو د طرفه د مشرانو نه یو یو سړی منتخب وکړي او جرګه دې مقرر کړي، او که چرې مقدمه عدالت ته ورسیږي نو عدالت دې هم د خپلې کاروایۍ شروع کولو نه مخکښې د دواړو د خپلوانو نه یوه جرګه مقرر کړي او د هغې په ذریعه د اصلاح کولو کوشش وکړي.

په دې خبره کښې اختلاف دے چې د فیصله کولو ثالثانو اختیارات بڅه دي. په دیني عالمانو کښې یوه ډله وائي چې دے ثالثانو ته د فیصلې کولو اختیار نشته. البته دومره خبره ده چې د صفائۍ دپاره هغوئ ته څه خبره مناسب ښکاره شي د هغې سفارش کولے شي. باقي منل او نه منل د ښځې خاوند په اختیار کښې دي. او که ښځې خاوند دغه ثالثان د طلاق او یا د خُلع یا د څه بلې خبرې د فیصلې کولو دپاره خپل ځان له وکیلان مقرر کړي وي نو بیا به د هغوئ فیصله منل د ښځې خاوند دپاره واجب وي. دا د حنفي او د شافعي علماؤ مسلک دے. د بلې ډلې په نزد ثالثانو ته دا اختیار شته دے چې د روغه را وستلو فیصله وکړي، خو د جدائۍ را وستلو فیصله هغوئ نشي کولے. دا د حسن بصري او قتاده او د څه نورو فقهاؤ قول دے. یوه بله ډله د دې خبرې قائله ده چې دے ثالثانو ته د یوځائې کولو او د جدا کولو پوره اختیارات حاصل دي. ابن عباس، سعید بن جُبیر، ابراهیم نخعي، شعبي، محمد بن سیرین او څینو نورو حضراتو دا رائے اختیار کړې ده.

د حضرت عثمان رضی او د حضرت علي رضی د فیصلو کومې مثالونه چې موږ ته را رسیدلي دي د هغې نه معلومیږي چې کله به دے دواړو ثالثان مقرر کړل نو د عدالت د طرفه به ئې هغوئ ته حاکمانه اختیارات ورکول. بلکه چې د حضرت عقیل بن ابي طالب او د هغه د ښځې فاطمه بنت عُتبه بن ربیعه مقدمه د حضرت عثمان په عدالت کښې پیش شوه نو هغه د خاوند د خپلوانو نه حضرت ابن عباس رضی او د ښځې د خپلوانو نه حضرت معاویه بن ابي سفیان مقرر کړل او ورته ئې ووئیل چې که ستاسو د دواړو په رائے کښې دوی جدا کول مناسب وي نو جدا ئې کړئ. د هم دغه شان په یوه مقدمه کښې حضرت علي رضی ثالثان مقرر کړل او دا اختیار ئې ورله ورکړو چې که تاسو غواړئ نو یوځائې ئې کړئ او که جدا کول ئې غواړئ نو جدا ئې کړئ. د دې نه معلومه شوه چې ثالثانو ته خو په خپله عدالتي اختیارات حاصل نه دي. خو که عدالت د هغوئ د مقرر ولو په وخت کښې هغوئ

مَلَكَتْ اَيْمَانُكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ مَنْ كَانَ مُخْتَالًا فَخُوْرَا ۣ ﴿۳۶﴾ الَّذِيْنَ يَبْخَلُوْنَ وَيَاْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبُخْلِ وَ يَكْتُمُوْنَ مَآ اٰتٰهُمُ اللّٰهُ مِنْ فَضْلِهٖ ؕ وَاَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابًا مُّهِيْنًا ﴿۳۷﴾ وَالَّذِيْنَ يُنْفِقُوْنَ اَمْوَالَهُمْ رِئَآءَ

ستا سو په قبضه کښ وی، ښه سلوک کوئ. يقين وکړئ چه الله هيڅ يو داسے سړے نه خوښوی چه هغه په خپل خيال کمان کښ مغرور وی او په خپله لوئي باندې فخر کوی. او داسے خلق هم د الله خوښ نه دی چه شومتيا کوی او نورو ته هم د شومتيا سبق ښائی او الله چه ورله د خپل فضل نه څه ورکړی دی هغه پټوی[۶۴] د داسے نعمت ناشکره خلقو دپاره موږ ذليل کونکے عذاب تيار ساتلے دے. او هغه خلق هم د الله خوښ نه دی چه خپل مالونه خلقو ته د خود ښه د پاره

لا اختيارات ورکړی ود نو بيا به د هغوی فيصله يو عدالتی فيصله دی.

۶۲ په عربئ کښه لفظ "الصاحب بالجنب" دے، د دے نه مراد د يو ځائے د ناستے پاستے دوست هم دے او داسے سړے هم دے چه چرته په يو وخت کښے د سړی ملګرے شی. مثلاً ته په بازار کښے روان ئے او يو سړے ستا سره يو ځائے روان دی، يا د يو دوکان نه ته سودا اخلے او بل څوک ترے هم اخلی، يا څوک ستا سره يو ځائے ناست وی يا په سفر کښے د چا سره ملګرے شی. دا د لږ ساعت يو ځائے کيدل هم په شريف انسان باندے دا حق ماتی چه د خپله وسه پورے د هغه سره نيک سلوک ؤکړی او چه د ده د لاسه هغه ته څه تکليف ونه رسی.

۶۳ د الله فضل پټول دا دی چه سړے په داسے شان ژوند تيروی لکه چه الله پرے هيڅ فضل نه وی کړے. مثلاً چا له الله دولت ورکړے وی او هغه د خپل حيثيت نه لاندې ژوند تيروی. نه په خپل ځان خرچ کوی او نه په خپل بال بچ، نه د خدائے د بندګانو امداد کوی، او نه په نيکو کارونو کښے حصه اخلی چه خلق يے وينی نو وائی چه د غريب ډير بد حال دے. دا په اصل کښے د الله تعالیٰ سخته ناشکری ده. په حديث کښے دی چه نبی صلی الله عليه وسلم ؤ فرمائيل إِنَّ اللّٰهَ إِذَا أَنْعَمَ نِعْمَةً عَلٰى عَبْدٍ أَحَبَّ أَنْ يَظْهَرَ أَثَرُهَا عَلَيْهِ، الله چه يو بنده ته نعمت ورکوی نو هغه دا خوښه وی چه د دغه نعمت اثر دے په بنده باندې ښکاره شی. يعنی د هغه د خوراک، څښاک، د اوسيدلو، د جامو او د کور او د هغه د خير خيرات او سخاوت او د هر څيز نه دے د الله د دغه ورکړے شوی نعمت اظهار کيږی.

النَّاسِ وَلَا يُؤْمِنُونَ بِاللّٰهِ وَلَا بِالْيَوْمِ الْآخِرِ ۗ وَمَنْ يَكُنِ
الشَّيْطٰنُ لَهٗ قَرِينًا فَسَآءَ قَرِينًا ﴿۳۸﴾ وَمَاذَا عَلَيْهِمْ لَوْ اٰمَنُوا بِاللّٰهِ
وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ وَاَنْفَقُوا مِمَّا رَزَقَهُمُ اللّٰهُ ۗ وَكَانَ اللّٰهُ بِهِمْ عَلِيمًا ﴿۳۹﴾
اِنَّ اللّٰهَ لَا يَظْلِمُ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ ۚ وَاِنْ تَكُ حَسَنَةً يُّضٰعِفْهَا وَ
يُؤْتِ مِنْ لَّدُنْهُ اَجْرًا عَظِيمًا ﴿۴۰﴾ فَكَيْفَ اِذَا جِئْنَا مِنْ كُلِّ
اُمَّةٍ بِشَهِيدٍ وَّجِئْنَا بِكَ عَلٰى هٰٓؤُلَآءِ شَهِيدًا ﴿۴۱﴾ يَوْمَئِذٍ
يَوَدُّ الَّذِينَ كَفَرُوا وَعَصَوُا الرَّسُولَ لَوْ تُسَوّٰى بِهِمُ الْاَرْضُ ۗ

وقف النبی علیه السلام

خرچ کوی او په حقیقت کښې نه په الله باندې ایمان لری او نه په ورځ د آخرت باندې ـ رښتیا خبره دا ده
چه شیطان د چا ملګرے شو نو هغه ته ډیر خراب ملګرے ملاؤ شو ـ آخر په دے خلقو باندې
څه آفت راتلو که په الله او په ورځ د آخرت باندې ئے ایمان راوړے وے او څه چه ورله الله
ورکړی دی د هغې نه ئے خرچ کولے ـ که دوی داسے کولے نو د الله نه د دوی د نیکئ حال پټ
نه پاتے کیدو ـ الله په چا باندې د زرے هومره ظلم نه کوی ـ که څوک یو دنیکی وکړی نو الله
هغه دوچند کوی او بیا د خپل طرفه ورله نیات اجر ورکوی ـ بیا سوچ وکړه چه هغوئ
به دوئ څه کوی کله چه موږ د هر امت نه یو یو ګواه راولو او په دے خلقو باندې
تا (یعنی محمد صلی الله علیه وسلم) ګواه کړو۶۴ ـ په دغه وخت کښې به هغه ټول
خلق چه د رسول خبره ئے نه وی منلی او د هغه نافرمانی ئے کړی وی، دا آرزو
وکړی چه افسوس دا زمکه وشلیدے او مونږ ټول پکښې ورغلے شوے ـ

۶۴ یعنی د هرے زمانے پیغمبر به د خپلے زمانے په خلقو باندې د الله په عدالت کښې دا ګواهی ورکوی چه
ما الله تاسو ته د ژوند کومه نیغه لاره او د فکر او د کار کومه صحیح طریقه ما ته ښودلی وه هغه ما دے
خلقو ته رسولی وه ـ بیا دغه شهادت به محمد صلی الله علیه وسلم د خپلے زمانے په خلقو باندې ورکړی، او د
قرآن نه دا معلومیږی چه د نبی صلی الله علیه وسلم زمانه د هغه د نبوت نه را واخله تر قیامت پورے ده ـ (ال
عمران حاشیه ۶۹)

وَلَا يَكْتُمُوْنَ اللّٰهَ حَدِيْثًا ﴿۴۲﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَقْرَبُوا الصَّلٰوةَ وَاَنْتُمْ سُكٰرٰى حَتّٰى تَعْلَمُوْا مَا تَقُوْلُوْنَ وَلَا جُنُبًا اِلَّا عَابِرِيْ سَبِيْلٍ حَتّٰى تَغْتَسِلُوْا ۭ وَاِنْ كُنْتُمْ

هلته به هغوئ د الله نه څښله هيڅ خبره پټه نکړے شي ع

اے هغه خلقو چه ايمان مو راوړے دے، کله چه تاسو د نشے په حالت کښ يئ نو مونځ له نزدے مه ورځئ.[65] مونځ هغه وخت کول پکار دی چه تاسو څه وايئ چه په هغے پوهيږئ.[66] دغه شان د جنابت[67] په حالت کښ هم مانځه له تر هغے نزدے مه ورځئ تر څو چه مو غسل نه وی کړے. او که په لاره تيريدئ نو بيا خير دے. او که چرے تاسو بيماران يئ

[65] دا د شرابو په حقله دويم حکم دے. اولنے حکم هغه وو چه د سورة بقرے په آيت ۲۱۹ کښے تير شوے دے. په هغے کښے صرف دومره خبره شوی وه چه شراب خراب شيز دے او د خدائ خوښے نه دے. نو ديرو مسلمانانو د حکم نه روستو د شرابو نه ځان ساتلے وو. خو ډير خلقو به بيا هم شراب استعمالول او اکثر به د نشے په حالت کښے په مانځه ودريدل او د مونځ په ځائے به ئے بل بل څه وئيل. غالباً د څلورم هجری په شروع کښے دا دويم حکم راغے او د نشے په حالت کښے مونځ کول منع کړے شو. د دے دومره اثر وشو چه خلقو د شرابو څکلو خپل وختونه بدل کړل او د مانځه په وختونو کښے ئے شراب څکل پريښودل. د دے نه لږ موده روستو د شرابو د بالکل حراموالی هغه حکم راغے چه د سورة مائيدے په آيت ۹۰-۹۱ کښے دے. دلته په دے خبره ځان پوهه کول پکار دی چه په آيت کښے د سُکر يعنی د نشے لفظ راغلے دے. د دے وجه نه دا حکم يوائے د شرابو د پاره خاص نه دے بلکه د هر نشه ئي شيز د پاره عام دے. او اوس هم د دے حکم باقی دے. اګرچه د نشه ئي شيزونو استعمال حرام دے، ليکن د نشے په حالت کښے مونځ کول دوچنده او لويه ګناه ده.

[66] په دے وجه نبی صلی الله عليه وسلم دا فرمائيلی دی چه کله په چا خوب غلبه وکړی او په مانځه کښے بيا بيا ګوته خوری نو هغه له پکار دی چه مونځ پريږدی او اوده شي. څينے خلق د دے آيت نه دا مطلب راوباسی چه څوک د مونځ د عربئ په مطلب نه پوهيږی نو د هغه مونځ نه کيږی. دا يو دے ځايه سخته خبره ده او د قرآن خپل الفاظ هم د دے خبرے سره ملګرتيا نه کوی. په قرآن کښے حتیٰ تفقهوا يا حتی تفهموا ما تقولون نه دی فرمائيلی بلکه حتیٰ تعلموا ما تقولون ئے فرمائيلی دی. يعنی په مانځه کښے دومره ضروری ده چه سړے په دے پوهيږی چه هغه په ژبه څه وائي. داسے نه چه دلاړ په مانځه وی او وا شروع کړی کښے بوغرل

[67] د جنابت اصلی معنے لرے والے او نا آشنائی ده. اجنبی لفظ د دغه نه وتلے دے. د شرعے په اصطلاح کښے د جنابت نه مراد هغه پليتی ده چه د کوروالی په وجه يا د خوب ليدو په وجه د منئ اوبه د سړی نه وځی او غسل پرے واجب شی. ځکه چه د دے په وجه سړے د پاکوالی نه لرے او نا آشنا شی.

مَّرْضٰٓى اَوْ عَلٰى سَفَرٍ اَوْ جَآءَ اَحَدٌ مِّنْكُمْ مِّنَ الْغَآىِٕطِ اَوْ لٰمَسْتُمُ النِّسَآءَ فَلَمْ تَجِدُوْا مَآءً فَتَيَمَّمُوْا صَعِيْدًا طَيِّبًا فَامْسَحُوْا بِوُجُوْهِكُمْ وَاَيْدِيْكُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَفُوًّا غَفُوْرًا ﴿۴۳﴾

یا په سفرکښې یئ، یا په تاسوکښې څوک د اودس ماتی نه واپس راشي، یا تاسو د ښځو سره لمس وکړئ[79] او اوبه بیا ونه مومئ نو د پاکې خاورې نه کار واخلئ او د هغې نه په خپلو مخونو او لاسونو باندې مسح وکړئ، بیشکه الله د نرمئ نه کار اخستونکے او بخښونکے دے.

[78] د فقهاؤ او د مفسرینو یوه ډله وائي چه د دے آیت مفهوم دا دے چه د جنابت په حالت کښې جمات ته تلل نه دي پکار، او که د څه کار د پاره د جمات نه اخوا تیریدل وي نو بیا خیر دے که په جمات تیر شئ. دا رائے عبدالله بن مسعود، انس بن مالک، حسن بصري او ابراهیم نخعي وغیره اختیار کړې ده. بله ډله وائي چه د دے نه مراد سفر اخلي، یعنې که د سفر په حالت کښې سړي ته جنابت راغے نو تیمم وهلے شي. د جمات په باره کښې د دوي دا رائے ده چه که جُنُب سړے اودس وکړي او په جمات کښې کیني نو جائز دي. دا رائے حضرت علي، ابن عباس، سعد بن جُبیر او ځینو نورو علماؤ اختیار کړې ده. په دے خبره خو تقریباً د ټولو اتفاق دے چه د سفر په حالت کښې څوک جُنُب شو او غسل کول ممکن نه وي نو په تیمم باندې مونځ کولے شي. لیکن اولنئ ډله دا مسئله د حدیثو نه راخلي او دویمه ډله وائي چه د دے بنیاد د قرآن دا پاسنے آیت دے.

[79] په دے خبره کښې اختلاف دے چه د لمس یا د کوتو وروړلو نه څه مراد دے. د حضرت علي، ابن عباس، ابو موسی اشعري، ابي بن کعب، سعید بن جُبیر، حسن بصري او د نورو ډیرو اماماؤ دا رائے ده چه د دے نه مراد د ښځې سره کوروالے کول دي. او دا رائے امام ابو حنیفه او د هغه ملګرو او امام سفیان ثوري اختیار کړې ده. د دے نه برخلاف د حضرت عبدالله بن مسعود او د حضرت عبدالله ابن عمرؓ دا رائے ده. او د ځینو روایاتو نه دا معلومیږي چه د حضرت عمر ابن خطابؓ دا رائے ده چه د دے نه مراد کوتې وروړل یا لاس لګول دي او دا رائے امام شافعيؒ اختیار کړې ده. ځینې اماماو د منځ منځ لارهم اختیار کړې ده مثلاً د امام مالکؒ دا رائے ده که ښځه او سړے د شهوت په غرض لاس ولګوي نو اودس به ما تیږي او د ماغه دپاره به نوے اودس کوي. لیکن که هسے بغیر د شهوت نه د یو بدن د بل سره ولګی نو په دے هیڅ نه کیږي.

[80] د دے حکم تفصیل دا دے چه که سړے بے اودسه وي یا په غسل ارېدلے وي او اوبه ورته نه ملاویږي نو په تیمم مونځ کولے شي. که مریض وي او د غسل یا د اودس کولو په وجه ورته د نقصان رسیدو ډیره وي نو که اوبه موجود هم وي خو تیمم وهلے شي.

د تیمم معنی قصد کول دي. مطلب دا دے چه کله اوبه ملاؤ نشي یا وي خو استعمالول ئې سړي ته نقصان رسوي نو بیا د پاکې خاورې قصد وکړه.

# أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتَابِ يَشْتَرُونَ الضَّلَالَةَ وَيُرِيدُونَ أَن تَضِلُّوا السَّبِيلَ ﴿٤٤﴾ وَاللَّهُ أَعْلَمُ بِأَعْدَائِكُمْ

تا هغه خلق هم ولیدلي چه د کتاب د علم نه څه حصه ورله ورکړے شوې ده؟[٦٨] هغوئ پخپله د ګمراهئ خریداران جوړ شوي دي او دا غواړي چه تاسو هم بے لارے شئ. الله ستاسو د دښمنانو ښه پیژنی

د تیمم په طریقو کښے د فقهاؤ په مینځ کښے اختلاف دے. د یوے ډلے په نز د تیمم طریقه دا ده چه یو ځلے په خاورو باندې لاس ووهه په مخ ئے را کاږه او بل ځلے بیا لاس په خاورو باندې ووهه او په لاسونو باندې ئے تر د سنګلو پورے را کاږه. د امام ابو حنیفه، امام شافعي، امام مالک او د ډیرو فقهاؤ دا مذهب دے. او د صحابو او د تابعینو نه حضرت علي، عبد الله بن عمرؓ، حسن بصري، شعبي او سالم بن عبد الله وغیره هم د دے قایل دُو. د بلے ډلے په نز باندې صرف یو ځل لاس په خاورو باندې وهل کافي دي. هم په مخ را کاږه او بیائے د مروند ونو پورے په لاسونو باندې هم را کاږه. د سنګلو پورے د مسح کولو ضرورت نشته. دا د عطاء او د مکحول او د اوزاعي او د احمد بن حنبل رحمهم الله مذهب دے او عموماً اهل حدیث حضرات د دے قایل دي.

د تیمم د پاره دا ضروري نه ده چه خامخا په زمکه باندې لاس اووهی. د دے غرض د پاره هر ګرد جن شیز او د زمکے د اجزاؤ نه هر یو شیز کافي دے.

څوک خلق دا اعتراض کوي چه په زمکه باندې د لاس وهلو او په مخ او په لاس باندې د لا بنګلو سره آخر پاکي څنګه راتلے شي. خو دا په حقیقت کښے یو ډیر اهم نفسیاتي کار دے دا په سړي کښے د پاکوالي خیال قایم ساتي او د مونځ عزت او احترام برقرار ساتي. د دے دا فایده ده که سړے هر څو مره موده اوبه استعمال نه کړي خو په ده کښے به د پاکوالي احساس برقرار وي. شریعت چه د پاکئ دا وستلو د پاره کوم قانون مقرر کړے دے، دے به د هغے قانون پابندي هر وخت برابر کوي، او د ده په زړه کښے به هر وخت دا خیال تازه وي چه په دے حالت کښے د مونځ کولو قابل یم او په دے حالت کښے د مونځ کولو قابل نه یم.

[٦٨] د اهل کتابو د علماؤ په حقله قرآن اکثر دا الفاظ استعمال کړي دي چه "هغوئ ته د کتاب څه حصه ورکړے شوې ده." د دے وجه دا ده چه اول خو هغوئ د کتاب الهي یوه حصه ورکه کړي وه. بیا چه څه د الله د کتاب نه د هغوئ سره موجود وُو د هغے د مطلب او د هغے د مقصد او مدعا نه هم نا اشنا شوي وُو. د هغوئ ټول زور په لفظي بحثونو او د حکمونو په جزئیاتو باندې وُو او څو له مینه ئے د هغے حکمت سره وه چه عقیده پرکر کیښے کیږي او ګرانیږي. دغه وجه ده چه هغوئ د دین د حقیقت نه نا اشنا وُو او د دینداری د اصل نه خالي وُو، اګرچه خلقو به ورته د دین عالمان او د ملت پیشوایان ویل.

وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَلِيًّا ۟ وَّكَفٰى بِاللّٰهِ نَصِيْرًا ﴿۴۵﴾ مِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهٖ وَيَقُوْلُوْنَ سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا وَاسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ وَّرَاعِنَا لَيًّا ۢ بِاَلْسِنَتِهِمْ وَطَعْنًا فِي الدِّيْنِ ۭ وَلَوْ اَنَّهُمْ قَالُوْا سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا وَاسْمَعْ وَانْظُرْنَا

او ستاسو د مرستې او مدد دپاره الله کافی دے. کوم خلق چه د یهودیت په لار روان شوی دی[۲] په هغوی کښ څه خلق دی چه الفاظ د خپلو ځایونو نه بدلوی[۳] او په حق دین کښ د خلل اچولو دپاره خپلې ژبې تاؤ راتاؤ کړی او وائی سَمِعْنَا وَعَصَيْنَا[۴] او اِسْمَعْ غَيْرَ مُسْمَعٍ[۵] او رَاعِنَا[۶] - حالانکه که هغوی دا ے ویلی چه سَمِعْنَا وَاَطَعْنَا ، او اِسْمَعْ او اُنْظُرْنَا

[۲] دا ئې وُنۀ فرمائیل چه "یهودیان دی" بلکه دا ئې وُفرمائیل چه "یهودیان شوی دی" ځکه چه پۀ اول کښې خو هغوی هم مسلمانان وُو، لکه څنګه چه هر نبی اُمت په اصل کښې مسلمانان وی، خو روستو هغوی صرف یهودیان پاتې شول.

[۳] د دے درے مطلبونه دی، یو دا چه د الله د کتاب په لفظونو کښې ردو بدل کوی. دوئم دا چه د کتاب د آیتونو معنے د خپلې تشریح په ذریعه بدلوی. دریم دا چه دا خلق به د محمد صلی الله علیه وسلم او د هغۀ د ملګرو مجلسونو ته راتلل او د هغوی خبرے به ئې اوریدلے او چه واپس به لاړل نو خلقو ته به ئې په غلطه طریقه بیان کولو. خبرے به بل څه شوی وے او هغوی به په خلقو کښې بل رنګ مشهوره کړه. غرض به ئې دا وُو چه دوی بدنام کړے شی او د دوی په حقله بدګمانئ خورے شی او خلق اسلامی جماعت ته د راتلو نه منع شی.

[۴] یعنی هغوی ته چه کله د خدائے حکمونه اوروَلے کیږی نو په زوره وائی چه سَمِعْنَا (مونږه واوریدل) او رو ورسره وائی چه عَصَيْنَا (مونږه قبول نۀ کړو) یا به ئې د اَطَعْنَا (مونږه قبول کړو) لفظ وینا په ژبه کښې داسے تاؤ راتاؤ کړه چه عَصَيْنَا به ترې جوړ شو.

[۵] یعنی د وینا په دوران کښې چه هغوی څه خبره محمد صلی الله علیه وسلم ته کول غواړی نو وائی چه اِسْمَعْ (واوره) او بیا ورسره غَيْرَ مُسْمَعٍ هم وُوائی چه ډیرے معنے ئې دی. ددے یوه معنی دا ده چه ته داسے عزتمند ئې چه تا ته ستا د مرضئ نه خلاف څوک خبره نشی کولے. بله معنی ئې دا ده چه ته د دے قابل نۀ ئې چه تا ته دِ څوک خبره وُکړی. او یوه بله معنی ئې دا ده چه خدائے دِ تا کونړ کړی.

لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ وَأَقْوَمَ وَلٰكِن لَّعَنَهُمُ اللّٰهُ بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُونَ إِلَّا قَلِيلًا ﴿٤٦﴾ يٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتٰبَ آمِنُوا بِمَا نَزَّلْنَا مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُم مِّن قَبْلِ أَن نَّطْمِسَ وُجُوهًا فَنَرُدَّهَا عَلٰىٓ أَدْبَارِهَآ أَوْ نَلْعَنَهُمْ كَمَا لَعَنَّآ أَصْحٰبَ السَّبْتِ ۚ وَكَانَ أَمْرُ اللّٰهِ مَفْعُولًا ﴿٤٧﴾ إِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ أَن يُشْرَكَ بِهِ وَيَغْفِرُ مَا دُونَ ذٰلِكَ لِمَن يَشَآءُ ۚ وَمَن يُشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدِ

نو دا د هغوئ د پاره غوره وه او زیاته صحیح طریقه وه۔ خو په هغوئ باندې د خپلې باطل پرستئ په وجه د الله لعنت شوے دے ځکه پکښې کم خلق ایمان راوړي۔

اے هغه خلقو چه کتاب درکړے شوے وُو، او س چه کوم کتاب موږ نازل کړے دے[76] دا ومنئ، دا هغه کتاب تصدیق کوي کوم چه ستاسو سره د اول نه موجود وُو[77]۔ په دے باندې ایمان راوړئ ردو مخکښې د دے نه چه موږ هغوئ په بله کونه کړو او شا طرفې ته ئې واړو یا په هغوئ باندې هغه شان لعنت وکړو لکه څنګه چه په سبت والو باندې موږ کړے وُوه[78] او یاد لرئ چه د الله حکم خامخا جاري کیږي۔ الله خو بس یو شرک نه معاف کوي[79]، د دے نه بغیر نور چه څومره ګناهونه دي هغه چه ئې د چا د پاره خوښه شي نو معاف کوي ئې[80]۔ او د الله سره چه چا څوک شریک کړل

[76] د تشریح د پاره وګوره سورة بقرة حاشیه نمبر ۱۰۹۔

[77] د تشریح د پاره وګوره سورة آل عمران حاشیه نمبر ۲

[78] وګوره سورة بقرة حاشیه نمبر ۸۲، ۸۳۔

[79] دا ئې ځکه وفرمائيل چه اهل کتاب اګرکه د پیغمبرانو او د آسماني کتابونو د پیروئ دعوې کوونکي وُو خو په شرک کښې اخته شوي وُو۔

[80] د دے دا مطلب نه دے چه سړے د بې شرک نه کوي او نور ټول ګناهونه د زړه کا خلاصه کوي۔ بلکه د دے مطلب دا دے چه شرک چه خلقو په معمولي څیز ګنړلے وُو خو په اصل کښې دا د ټولو ګناهونو نه لوئیه ګناه ده، تر دے پورے چه د نورو ګناهونو معافي کیدے شي خو شرک یوه داسے لویه ګناه ده چه دا معاف کیدے هم نشي۔ د یهودو

افْتَرَىٰ إِثْمًا عَظِيمًا ﴿٤٨﴾ أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يُزَكُّونَ أَنفُسَهُم ۚ بَلِ
اللَّهُ يُزَكِّي مَن يَشَاءُ وَلَا يُظْلَمُونَ فَتِيلًا ﴿٤٩﴾ انظُرْ كَيْفَ
يَفْتَرُونَ عَلَى اللَّهِ الْكَذِبَ ۖ وَكَفَىٰ بِهِ إِثْمًا مُّبِينًا ﴿٥٠﴾ أَلَمْ تَرَ
إِلَى الَّذِينَ أُوتُوا نَصِيبًا مِّنَ الْكِتَابِ يُؤْمِنُونَ بِالْجِبْتِ

نو هغه ډیر غټ دروغ جوړ کړل او ډیره سخته د ګناه خبره ئې وکړه.

تا هغه خلق هم ولیدل چه د خپل ځان د پاکئ غټه دعوی کوي؟ حالانکه پاکوالے خو چه الله

چاته وغواړي هغه له ئې ورکوي، او (دا دوئ ته چه پاکي نه ملاویږي نو په حقیقت کښ)

په دوئ باندې د ذرې هومره ظلم هم نه کیږي. ګوره خو، دوئ په الله باندې هم د دروغو

تړلو نه منع کیږي او د دوئ د ښکاره ګنهګاریدو دپاره بس دا یو ګناه کافي ده۔ ع

آیا تا هغه خلق نه دي لیدلي چه د کتاب د علم نه ورته څه حصه ورکړے شوې ده او حال ئې دا دے چه جبت ق

علمانو به د شریعت د ورد د پرهیزګارو ډیر خیال ساتلو، بلکه د هغوئ تول وخت به د هغه ورېد و پرو مسئلو

په کچ میچ کښې تیریدلو که چه به فقهي نقطې د دغو رو مسئلو نه راپیدا کیدے. خو شرک ورته په نظر کښې

دېپک او وړوکے کار ښکاریدو، نه ئې ترې ځان بچ کولو فکر کولو او نه ئې خپل قوم د شرک خیالاتو

او د شرک د اعمالونه د بچ کولو کوشش کولو او نه ورته د مشرکانو سره دوستي او ملګرتیا کښې څه ګناه ښکاریده.

ته د جبت اصلي معنیٰ ده، بے حقیقته، بے اصله او بے فائدې څیز. په اسلام کښې جادو، د

غیبو خبرې ویل، علم نجوم، فال نیول، منتر تونکے، څه څیزه ځان دپاره ښه یا بد ګنړل او په

ستورو پورې قسمتونه تړل او نور ډیر وهمي او خیالي خبرو ته "جبت" ویلے شي. په حدیث کښې

راغلي دي العیافة والطرق والطیر من الجبت. یعنې د ځناورو په آوازونو پوهه فال نیول، په

زمکه باندې د ځناورو د خپو د نښو نه فال راایستل او د فالونو نیولو نورې تولې طریقې په "جبت"

کښې شاملې دي. پس د "جبت" مطلب هغه دے چه په اردو (پښتو) ژبه کښې ورته وهم وايي

او په انګریزئ کښې ورته (Superstitions).

وَالطَّاغُوتِ وَيَقُولُونَ لِلَّذِينَ كَفَرُوا هَٰؤُلَاءِ أَهْدَىٰ مِنَ الَّذِينَ آمَنُوا سَبِيلًا ﴿٥١﴾ أُولَٰئِكَ الَّذِينَ لَعَنَهُمُ اللَّهُ ۖ وَمَن يَلْعَنِ اللَّهُ فَلَن تَجِدَ لَهُ نَصِيرًا ﴿٥٢﴾ أَمْ لَهُمْ نَصِيبٌ مِّنَ الْمُلْكِ فَإِذًا لَّا يُؤْتُونَ النَّاسَ نَقِيرًا ﴿٥٣﴾ أَمْ يَحْسُدُونَ النَّاسَ عَلَىٰ مَا آتَاهُمُ اللَّهُ مِن فَضْلِهِ ۚ فَقَدْ آتَيْنَا آلَ

او طاغوت[۸۲] مني او دَ کافرانو په حقله وائي چه دَ مؤمنانو نه خو دوی زیات په صحیح لار باندِ دی[۸۳] هم دغه خلق دی چه په هغوی باندِ الله لعنت کړے دے او په چا چه الله لعنت وکړي نو ته دَ هغه هیڅوک مددګار نهٔ مومے. ولے په حکومت کښ دَ دوی څه حصه ده څهٔ؟ که چرے داسے وے نو دوی به نورو خلقو له یوه ماته پیسه هم نهٔ وه ورکړې۔[۸۴] یا بیا دوی دَ خلقو سره په دے وجه حسد کوی چه الله په هغوی باندِ خپل فضل وکړے دے[۸۵]؟ که دا خبره وی نو دَ دے نه دِ هم خبر شی چه مونږ خو دَ ابراهیم

[۸۲] دَ تشریح دپاره وګوره سورة بقرة حاشیه نمبر ۲۸۶ او ۲۸۸۔

[۸۳] یهودی عالمان په ضد کښے دے حد ته رسیدلی وو چه کوم خلقو په محمد صلی الله علیه وسلم باندِ ایمان راوړے وو هغه به ئے دَ عربو دَ مشرکانو نه زیات بے لارے ګڼل او وئیل به ئے چه دَ دوی نه خو دا مشرکان زیات په صحیح لار باندِ دی. حالانکه هغوی به ښکاره لیدل چه یو طرفته خالص سوچه توحید دے چه دَ شرک هیڅ شبه پکښے نهٔ وه او بل طرفته ښکاره بُت پرستی وه چه په ټول بائبل کښ دَ هغے بد وئیلے شوی وو.

[۸۴] یعنی دَ خدائے دَ حکومت په څه حصه باندِ دَ دوی څه قبضه ده څهٔ چه دوی دا فیصلے کوی چه څوک په نیغه لار دی او څوک په نیغه لار نهٔ دی؟ که داسے وے نو دَ دوی د لاسه به چا یوه ماته پیسه هم نهٔ وه نصیب شوی ځکه چه دَ دوی دومره وړوکے زړهٔ دے چه حق ته حق هم نشی وئیلے. بل مطلب ئے دا هم کیدے شی چه ولے دَ دوی سره دَ یو ملک حکومت دے نو چه په هغے کښے دوی سره نور خلق شریک کیدل نهٔ خواری او دوی ورله څه حصه نهٔ ورکوی؟ دلته خو خبره صرف دَ حق منلو ده، او په هغے کښے هم دوی دَ شرمیتیا نه کار اخلی۔

[۸۵] هر کله چه الله دَ دے نااهلو خلقو پرځائے په نورو خلقو خپل فضل او انعام وکړو او دَ عربو په امیانو کښے ئے یو عظیم الشان نبی پیدا کړو چه دَ هغه په وجه په عربو کښے روحانی، اخلاقی،

إِبْرٰهِيمَ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَاٰتَيْنٰهُمْ مُّلْكًا عَظِيمًا ﴿۵۴﴾
فَمِنْهُمْ مَّنْ اٰمَنَ بِهٖ وَمِنْهُمْ مَّنْ صَدَّ عَنْهُ ؕ وَكَفٰى
بِجَهَنَّمَ سَعِيرًا ﴿۵۵﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِاٰيٰتِنَا سَوْفَ
نُصْلِيْهِمْ نَارًا ؕ كُلَّمَا نَضِجَتْ جُلُوْدُهُمْ بَدَّلْنٰهُمْ جُلُوْدًا
غَيْرَهَا لِيَذُوْقُوا الْعَذَابَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَزِيْزًا حَكِيْمًا ﴿۵۶﴾
وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ سَنُدْخِلُهُمْ جَنّٰتٍ

الربع

اولاد ته کتاب او حکمت ورکړو او مُلکِ عظیم[۸۶] مو ورله ورکړو، خو د هغوی نه څه خلقو په هغې ایمان راوړو او څه خلقو ترې مخ واړولو[۸۷]، او د مخ اړونکو دپاره خو بس د دوزخ لمبې کافي دي. کوم خلقو چه زموږ د آیتونو منلو نه انکار کړے دے یقین لرئ چه هغوی به موږ وُور ته غورزوُو او هر کله چه د هغوی د بدن څرمنه خوږېږي شي نو موږ به ورته د هغې پځائے نورے څرمنے ورکړو دپاره پیدا کړو چه د عذاب مزه به وڅکي، الله لوئ قدرت لري او د خپلو فیصلو په حکمت بنه پوهېږي. او کوم خلقو چه زموږ د آیتونو ومنل او نیک عملونه ئې وکړل هغوی به موږ داسے باغونو کښ ورداخل کړو

ذهني او عملي ژوند پیدا شو او ټول عرب د ترقۍ په طرف روان شو، نو دوي دوئ په دے وجه حسد کوي او د دے حسد په وجه ئے د اخبرے د خولو نه راوځي.

[۸۶] د "ملکِ عظیم" نه مراد د دُنیا امامت او مشري ده او په ټول عالم باندے د مشرۍ کولو اختیار حاصلول دي. څوک چه د الله د کتاب علم حاصل کړي او د هغه علم و حکمت مطابق عمل وکړي، نو دا مشري ورته لازماً حاصلیږي.

[۸۷] یاد لرئ چه دا د بني اسرائیلو د حسد جواب دے. د دے جواب مطلب دا دے چه تاسو آخر په کوم خبره باندے سوزئ؟ تاسو هم د ابراهیم اولاد یئ او دا بني اسماعیل هم د ابراهیم اولاد دے. د ابراهیم سره چه موږ د دُنیا د امامت کوم وعده کړے وه هغه خو د ابراهیم په اولاد کښے صرف د هغه خلقو دپاره وه چه زموږ د رالیږلې شوي کتاب او حکمت پیروي وکړي. دا کتاب او حکمت اول موږ تاسو ته رالیږلے وُو خو دا ستاسو خپل نالائقتوب وُو چه تاسو ترې مخ واړولو. او س هم هغه څیز موږ بني اسماعیل له ورکړے دے او دا د هغوی خوش نصیبي ده چه هغوی پرې ایمان راوړے دے.

تَجۡرِيۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ خٰلِدِيۡنَ فِيۡهَاۤ اَبَدًا ؕ لَهُمۡ فِيۡهَاۤ
اَزۡوَاجٌ مُّطَهَّرَةٌ ۙ وَّنُدۡخِلُهُمۡ ظِلًّا ظَلِيۡلًا ﴿۵۷﴾
اِنَّ اللّٰهَ يَاۡمُرُكُمۡ اَنۡ تُؤَدُّوا الۡاَمٰنٰتِ اِلٰۤى اَهۡلِهَا ۙ وَ
اِذَا حَكَمۡتُمۡ بَيۡنَ النَّاسِ اَنۡ تَحۡكُمُوۡا بِالۡعَدۡلِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ
نِعِمَّا يَعِظُكُمۡ بِهٖ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ سَمِيۡعًاۢ بَصِيۡرًا ﴿۵۸﴾

چلانې به ترولې بهیږی، هلته به همیشه همیشه وسیږی، او پاکې بیبیانې به ورته ملاؤ شی او موږ به ئې په درنو سورو کښې ساتو.

اے مسلمانانو، الله تاسو ته حکم کوی چه امانتونه د امانت خاوندانو ته حواله کړئ، او کله چه د خلقو په مینځ کښې فیصله کوئ نو په انصاف سره فیصله کوئ[۸۸]، الله تاسو ته ډیره ښه نصیحت کوی او دا یقینی ده چه الله هر څه اوری او هر څه وینی.

[۸۸] یعنی تاسو هغه بد کارونه مه کوئ چه بنی اسرائیلو کول. د بنی اسرائیلو یو بنیادی غلطی به یوه غلطی داوه چه هغوی د خپل تنزل په زمانه کښې امانتونه، یعنی د ذمه داری عهدے او مذهبی مشری او د قومی سرداری مرتبې (Positions of Trust). داسے خلقو ته ورکول شروع کړل چه نااهله، کم حوصلے والا، بد اخلاقه، خیانتګر او بدکاره وو. نتیجه ئې دا شوه چه د بدانو خلقو په مشرئ کښې ټول قوم په خرابیدو شو. مسلمانانو ته دا نصیحت کیږی چه تاسو داسے ونه کړئ، امانتونه هغه خلقو ته حواله کړئ چه په هغوی کښې د امانت د بوج د اوچتولو صلاحیت وی. د بنی اسرائیلو دویمه لویه کمزوری دا وه چه هغوی د انصاف نه لاس وینځلی وو. هغوی به د خپلے ذاتی او قومی غرضونو دپاره په آسانه خپل ایمانونه برباد کړل. ښکاره به په ضد تینګ ولاړ وو. د انصاف په مرئ باندې به ئې بنهٔ په راستئ چاړه راښکله. د هغوی د بے انصافئ بد حال په هغه زمانه کښې ټپله مسلمانانو ته معلوم شوے وو. یو طرفته د هغوی وړاند د محمد رسول الله صلی الله علیه وسلم او په هغه باندې د ایمان راوړونکو پاک ژوند وو. بل طرفته هغه خلق وو چه د بتانو عبادت به ئې کولو، لونړه به ئې ژوندئ ښخه وله، د میرنئ میند وسره به ئې نکاحونه کول، او د کعبه نه به ئې چاپیره په لغړه طواف کولو. دے تش په نوم اهل کتابو به دے دویمه ډلے ته په اوله ډله باندې ترجیح ورکوله او په دے خبره کولو باندې به هیڅ نه شرمیدل چه د اولے ډلے په مقابله کښې دا دویمه ډله زیاته په صحیح لار باندې ده. الله تعالیٰ ددې

يَآيُّهَا الَّذِينَ اٰمَنُوٓا اَطِيعُوا اللّٰهَ وَاَطِيعُوا الرَّسُولَ وَاُولِي الْاَمْرِ مِنْكُمْ ۚ فَاِنْ تَنَازَعْتُمْ فِي شَيْءٍ فَرُدُّوهُ اِلَى اللّٰهِ وَالرَّسُولِ

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړی دی، حکم منئ د الله او حکم منئ د رسول او د هغه خلقو منئ چه په تاسو کښ حاکمان وی، بیا که ستاسو په منځ کښ په څه خبره باندې جګړه راشی نو هغه الله او د رسول[89] طرف ته واړوئ

مسلمانانو ته دا نصیحت کوی چه تاسو چرته داسے بے انصافی و نه کړئ. که د چا سره مو دوستی وی او که دښمنی، په هر حال کښے چه خبره کوئ نو د انصاف خبره کوئ او کله چه فیصله کوئ نو په انصاف ئے کوئ.

[89] دا آیت د اسلام د مذهبی نظام او د شریک ژوند ټیرولو او د سیاسی نظام بنیاد دے او د اسلامی ریاست دستور اولنئ دفعه ده. په دے کښے دا لاندینی مستقل اصول دی:

(۱) په اسلامی نظام کښے په حقیقت کښے حکم د الله منلے کیږی. یو مسلمان د ټولو نه اول د خدائے بنده دے، بیا هر څه چه دے هغه د دے نه روستو دے. هر مسلمان به ځان له په خپل ژوند کښے د خدائے فرمان منی او د هغه وفادار بنده به وی او دغه شان ټول مسلمانان به په شریکه هم د خدائے فرمان منی او د هغه وفادار بندګان به وی. نور به ټولے خبرے په هغه منظوری چه هغه د خدائے د حکم مطابق وی. هغه فرمان او حکم به هیچرے نشی منلے کیدے چه هغه د خدائے د اطاعت نه مخالف وی ځکه چه د مسلمان دپاره اصلی او بنیادی اطاعت د الله اطاعت دے. هم دا خبره نبی صلی الله علیه و سلم په دے الفاظو کښے فرمائیلی ده چه لا طاعة لمخلوق فی معصیة الخالق. "چه مخلوق به هیڅ داسے حکم نه منی چه د خالق نا فرمانی پکښے راځی."

(۲) په اسلامی نظام کښے دویم بنیاد د رسول اطاعت دے. دا څه مستقل ذاتی اطاعت نه دے بلکه د خدائے د اطاعت کولو یو عملی شکل دے. د رسول خبره په دے وجه منلے کیږی چه هم دا یوه داسے محکمه او مضبوطه واسطه ده چه د دے په ذریعه مونږ ته د خدائے تعالی حکمونه رارسیږی. مونږ د خدائے اطاعت صرف په دے طریقه کولے شو چه د رسول اطاعت وکړو. د خدائے هیڅ داسے اطاعت چه د رسول د واسطے نه بغیر وی هغه معتبر نه دے، او د رسول د اطاعت نه مخ اړول د خدائے خلاف بغاوت او سرکشی ده. دا خبره په دے حدیث کښے بنه واضحه شوی ده چه من اطاعنی فقد اطاع الله ومن عصانی فقد عصی الله. "چا چه زما اطاعت وکړو هغه د خدائے اطاعت وکړو او چا چه زما نافرمانی وکړه هغه د خدائے نافرمانی وکړه." او هم دا خبره څرګنده په قرآن کښے بنه په تفصیل سره راروانه ده.

(۳) د دے دوه خبرو منلو نه روستو په اسلامی نظام کښے چه کومه دریمه خبره منل په مسلمانانو باندې واجبه ده هغه د هغه "حاکمانو" اطاعت دے چه هغه د مسلمانانو نه وی. په "اولی الامر" کښے هغه ټول خلق شامل دی چه د مسلمانانو د اجتماعی کارونو سربراهان وی، که هغه ذهنی او فکری کار کونکی عالمان وی، یا سیاسی رهنمایان وی، یا د ملک انتظام کونکی حاکمان وی، یا عدالتی فیصلے کونکی منصفان وی، یا د کلو محلو مشران وی. غرض دا چه څوک په هر حیثیت سره د مسلمانانو حاکم وی هغه د اطاعت

حقدار دے، دَ هغهٔ په مخالفت سره دَ مسلمانانو په اجتماعی ژوند کښې خلل اچول درست نه دی. - خو دا شرط یکښې دے چه هغه دَ مسلمانانو نه وی او دَ خدائے او دَ رسول منونکے وی. دا دواړه شرطونه دَ اطاعت دپاره لازمی شرطونه دی، او دا نه یوائے په دے آیت کښې ذکر شوی دی بلکه په حدیث کښې نبی صلی الله علیه وسلم هم په تفصیل سره بیان کړی دی. مثلاً دا لاندې حدیث وګورئ.

السمع والطاعة علی المرء المسلم فی ما احب وکره مالم یؤمر بمعصیة فاذا امر بمعصیة فلا سمع ولا طاعة. (بخاری ومسلم)

په مسلمانانو باندې لازم دی چه دَ خپل حاکم خبره واوری او ومنی که دا ورته خوښه وی او که نه وی خوښه، ترڅو پورے چه هغه ورته دَ ګناه حکم نه وی کړے. او کله چه هغهٔ ورته دَ ګناه حکم ورکړو بیا هغهٔ نه څه اوریدل پکار دی او نه څه منل پکار دی.

لاطاعة فی معصیة، انما الطاعة فی المعروف (بخاری ومسلم)

دَ خدائے او دَ رسول په نافرمانئ کښې اطاعت نشته، اطاعت په "معروف" یعنی نیکئ کښې دے.

یکون علیکم امراء تعرفون وتنکرون فمن انکر فقد برئ ومن کره فقد سلم ولکن من رضی وتابع فقالوا افلا نقاتلهم؟ قال لا ما صلوا. (مسلم)

نبیؐ فرمائیلی دی چه په تاسو باندې به داسے خلق هم حکومت کوی چه څه خبرے به ئے تاسو ته دَ نیکئ ښکاری او څه به ئے بدې. نو چا چه دَ هغوی په بدو کارونو باندې ناراضګی ښکاره کړه نو هغه خلاص شو، او چا چه ورپاندې خوښی ښکاره کړه هغه هم پرې شو. خو که څوک پرې راضی شوا و ورپسے روان شو نو هغه کیر شو. - صحابو پوښتنه وکړه چه دَ داسے حاکمانو وخت راشی نو جنګ ورسره ونه کړو؟ نبیؐ وفرمائیل چه نه ترڅو چه هغوی مونځ کوی.

یعنی مونځ پریښودل به داسے علامت وی چه صفا به ترے دا معلومیږی چه هغه دَ خدائے او دَ رسول دا طاعت نه بهر شوے دے، نو بیا به دَ هغه خلاف کوشش کول صحیح وی.

شرار ائمتکم الذین تبغضونهم ویبغضونکم وتلعنونهم ویلعنونکم قلنا یا رسول الله افلا ننابذهم عند ذلک؟ قال لا ما اقاموا فیکم الصلوٰة، ما لا اقاموا فیکم الصلوٰة. (مسلم)

نبیؐ فرمائی چه ستاسو دَ تولو نه بد سردارانِ هغه دی چه ستاسو ورته په زړهٔ کښې بغض وی او دَ هغوی تاسو ته بغض وی، تاسو په هغوی لعنت وایئ او هغوی په تاسو لعنت وائی. صحابو عرض وکړو چه اے دَ الله رسوله! کله چه داسے حالت راشی نو مقابلے له ورته ونه ړا پاسو؟ نبیؐ وفرمائیل چه نه ترڅو چه هغوی ستاسو په منځ کښې مونځ قایم وی، نه ترڅو چه هغوی ستاسو په منځ کښې مونځ قایمه وی.

په دے حدیث کښې دا پاسنی شرط نور هم زیات واضح کړے شوے دے. - دَ هغه بل حدیث نه دا ګمان کیدے شو چه که هغوی ځان له ذاتی طور دَ مونځ پابند وی نو دَ هغوی خلاف بغاوت نشی کیدے. لیکن دَ دے حدیث نه دا پته لګی چه دَ مونځ کولو نه مراد په اصل کښې په مسلمانانو کښې دَ مونځ نظام قایمه ول دی. یعنی یوائے دا کافی نه دہ چه هغوی پخپله دَ مونځ پابند وی، بلکه دا ورسره هم ضروری دہ چه هغوی کوم حکومت

چلوي په حقه کښې د کم از کم د مونځ قایمولو انتظام وي. دا به د دې خبرې علامه وي چې د هغوی حکومت د اصولو په اعتبار سره یو اسلامي حکومت دې. او که نه چرې د مونځ قایمولو انتظام پکښې هم نه وي نو بیا به دا مطلب وي چې د هغوی حکومت د اسلام نه په وړه شوی دې، د هغوی د بدلولو کوشش به د مسلمانانو د پاره جائز وي. هم دا خبره په یو بل روایت کښې داسې بیان شوې ده چې "نبي صلی الله علیه وسلم زمونږ نه د نورو خبرو سره د دې خبرې وعده هم واخسته چې ان لا ننازع الامر اهله الا ان تروا کفرا بواحا عندکم من الله فیه برهان، یعنی دا چې "مونږه به د خپلو سردارانو او حاکمانو سره جګړه نه کوو، خو که د هغوی په کارونو کښې مونږ داسې ښکاره کفر ولیدو چې هغه زمونږ د پاره د خدائ په دربار کښې یو دلیل وي نو بیا د جنګ کولو اجازت دې؟ (بخاري و مسلم)

(۴) څلورم مستقل اصول په دې آیت کښې دا دې چې په اسلامي نظام کښې د خدائ حکم او د رسول طریقه بنیادي قانون او آخري سند (Final Authority). دې. د مسلمانانو په مینځ کښې یا د حکومت او د رعیت په مینځ کښې چې په څه خبره وانګړه راشي نو فیصله به په قرآن او په سنت کولې شي، او چې څه فیصله وشي نو هغه به ټول مني. دغه شان د ژوند په ټولو مسئلو کښې د خدائ کتاب او د رسول سنت آخري سند منل، د اسلامي نظام حکومت یو لازمي خاصیت دې په کوم نظام کښې چې کتاب الله او سنت رسول الله آخري سند نه وي هغه به په یقین سره یو غیر اسلامي نظام وي.

ځنې خلق دا شبه کوي چې د ژوند د ټولو مسئلو فیصلې په کتاب الله او سنت رسول الله کښې څنګه کولې شو چې په هغې کښې د ښار د صفائي انتظام، د ریلوائې او د ډاکخانې قاعدې ضابطې او نور داسې بې شمیره کارونه هډو وشته هم نه. لیکن حقیقت دا دې چې دا شبه هغه بې اکبري چې سړې د دین د اصولونه بیخي ناخبره وي. د مسلمان او د کافر په مینځ کښې فرق دا دې چې کافر ځان بالکل آزاد ګڼړي او مسلمان په اصل کښې ځان بنده ګڼړي او د بنده کیدو نه روستو ځینې د رب په حدودو کښې شوې دا ئې کښې ورته د آزادۍ نه فایده اخلي. کافر د خپلو ټولو معاملاتو فیصلې د خپلو جوړ شوو اصولو او قانونو مطابق کوي، ځان هډو د خدائ د فیصلې حاجتمند نه ګڼړي. د دې نه برعکس مسلمان د خپلې هرې معاملې کښې د ټولو نه اول د خدائ او د هغه د رسول (صلی الله علیه وسلم) طرف ته رجوع کوي، چې که هغه ځائې نه څه حکم ملاؤ شي نو هغه په سترګو مني، خو که څه حکم ملاؤ نشي نو بیا خپل ځان آزاد ګڼړي، خو دا آزادي په حقله هغه دا وائي چې په دې معامله کښې خدائ او د هغه رسول حکم نه دې کړې نو دا یو دلیل دې زمونږ د پاره چې په دې مسئله کښې خدائ او د هغه رسول مونږ له آزادي راکړې ده.

إِنْ كُنْتُمْ تُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ ۚ ذَٰلِكَ خَيْرٌ وَأَحْسَنُ تَأْوِيلًا ﴿٥٩﴾ ع أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يَزْعُمُونَ أَنَّهُمْ آمَنُوا بِمَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ وَمَا أُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ يُرِيدُونَ أَنْ يَتَحَاكَمُوا إِلَى الطَّاغُوتِ وَقَدْ أُمِرُوا أَنْ يَكْفُرُوا

که تاسو واقعي په الله او په ورځ د آخرت باندې ایمان لرئ. دا یوه صحیح طریقه ده او د انجام په اعتبار سره هم بهتره ده۔ ۹۰ ع

ای نبي، تا ونه لیدل هغه خلق چه دعوی دا کوي چه مونږ ایمان راوړی دی په هغه کتاب باندې چه پر تا نازل کړې شوی دی او په هغه کتابونو باندې چه شا نه ړومبی نازل کړې شوي وو، خو غواړي دا چه خپلې معاملې د فیصلې کولو دپاره طاغوت ته وړاندې کړي، حالانکه هغوی ته دا حکم شوی وو چه طاغوت سره

---

۹۰ قرآن مجید یوازې د قانون کتاب نه دی بلکه دا د تعلیم او د وعظ و نصیحت کتاب هم دی، د غه وجه ده چه په اوله فقره کښې کوم قانوني اُصول بیان کړې شوي وو اوس په دې دویمه فقره کښې د هغې حکمت او مصلحت بیانوي په دې کښې دوه خبرې شوې دي، یوه دا چه چا ایمان راوړې وي د هغوی دپاره لازمي ده چه په پاسنو څلورو وارو اُصولو باندې عمل وکړي. چه یو سړی ځان ته مسلمان وائي او بیا په دې اصولو باندې عمل نه کوي نو دا دواړه خبرې یو ځای نشي جمع کیدې. دویمه دا چه مسلمانان په دې اُصولو باندې خپل ژوند تیروي نو په دې کښې د هغوی دپاره بهتري هم ده. په دنیا کښې به په دغه لار قائم وي او آخرت به ئې هم صحیح وي. دا نصیحت تیک د هغې تقریر نه روستو شوې دی چه په هغې کښې د یهودیانو په اخلاقي او دیني حالت باندې تبصره کیدله. په دې کښې مسلمانانو ته یوه نرۍ اشاره شوې ده چه ستاسو نه مخکښې امت د دین د دې اصولو نه مخ واړولو او د تنزلۍ د کچت نه بکته راپریوتل، نو تاسو ترې نه عبرت واخلئ. هر کله چه یوه ډله د خدای کتاب او د هغه د رسول حکمونه شاته وغورزوي او داسې سردارانو او مشرانو پسې روانه شي چه د خدای او د رسول حکم نه مني، او د خپل مذهبي پیشوایانو او سیاسي حاکمانو نه حسب مرضي سند مني، نو هغه به د هغې خرابۍ نه په هیڅ شان نشي بچ کیدې کومې خرابۍ چه په بني اسرائیلو کښې وې۔

بِهٖ ؕ وَيُرِيْدُ الشَّيْطٰنُ اَنْ يُّضِلَّهُمْ ضَلٰلًاۢ بَعِيْدًا ﴿۶۰﴾ وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا اِلٰى مَاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَاِلَى الرَّسُوْلِ رَاَيْتَ الْمُنٰفِقِيْنَ يَصُدُّوْنَ عَنْكَ صُدُوْدًا ﴿۶۱﴾ فَكَيْفَ اِذَاۤ اَصَابَتْهُمْ مُّصِيْبَةٌۢ بِمَا قَدَّمَتْ اَيْدِيْهِمْ ثُمَّ جَآءُوْكَ يَحْلِفُوْنَ ۖ

کفر وکړي[91] ــــــ شیطان دا غواړي چه دوی د ښیغې لارې نه ډیر لرې بوځي. - او هر کله چه ورته وویلې شي چه هغې څیز له راشئ چه خدائ نازل کړے دے او رسول له راشئ نو ته وینې چه دا منافقان ستا طرف ته د راتلو نه ځان بچ کوي.[92] بیا هغه وخت څه حال وي کله چه د دوی د خپلو لاسونو مصیبت په دوی راشي؟ هغه وخت دوی تا له راځي او قسمونه خوري[93]

[91] دلته د "طاغوت" نه مراد هغه حاکم دے چه د خدائ د قانون نه بغیر د بل قانون مطابق فیصله کوي، او د دے نه مراد د عدالت هغه نظام دے چه نه د الله تعالیٰ اطاعت مني او نه د الله کتاب آخري سند مني. د دے آیت دا معنی بالکل صفا ده چه کوم عدالت طاغوتي عدالت وي هغې له فیصلې وړل د مؤمنانو کار نه دے او چه څوک په الله او د الله په کتاب باندې ایمان لري د هغوی د پاره دا ضروري ده چه د داسې طاغوتي عدالت منلو نه انکار وکړي. د قرآن د حکم مطابق په الله باندې ایمان او د طاغوت سره کفر کول، د دواړه ضروري دي، او خدائ او طاغوت دواړه په یو وخت منل منافقت دے.

[92] د دے نه دا معلومیږي چه دا د منافقانو عام طریقه وه چه په کوم مقدمه کښې به د کټې امید وو نو هغه مقدمه به ئې نبي صلی الله علیه وسلم له راوړله او په کومه مقدمه کښې چه به د بیلاڅ خطره وه نو هغه به ئې نبي له نه راوړله او س هم د ډیرو منافقانو دا حال دے چه که د شریعت فیصله ئې په حق کښې راځي نو په سرسترګو ئې مني او که په شریعت کښې ئې پرې راځي نو بیا هر هغه قانون، هر هغه رسم ورواج او هر هغه عدالت له فیصله وړي چه د دوی په کښې دا امید وي چه فیصله به د دوی په رضا وشي.

[93] غالبًا د دے نه دا مراد دے چه هر کله د دوی د منافقت د یو کار پته مسلمانانو ته ولګي او د دوی سره دا یره شي چه اوس به دا نه تپوس کوي او سزا به راکوي نو په دغه وخت کښې دوی د خپل ایمان د ثابتولو د پاره قسمونه خوري.

بِاللّٰهِ إِنْ أَرَدْنَآ إِلَّآ إِحْسَانًا وَّتَوْفِيقًا ﴿٦٢﴾ أُولٰٓئِكَ الَّذِينَ يَعْلَمُ اللّٰهُ مَا فِي قُلُوبِهِمْ فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ وَعِظْهُمْ وَقُلْ لَّهُمْ فِيٓ أَنْفُسِهِمْ قَوْلًا بَلِيغًا ﴿٦٣﴾ وَمَآ أَرْسَلْنَا مِنْ رَّسُولٍ إِلَّا لِيُطَاعَ بِإِذْنِ اللّٰهِ وَلَوْ أَنَّهُمْ إِذْ ظَّلَمُوٓا أَنْفُسَهُمْ جَآءُوكَ فَاسْتَغْفَرُوا اللّٰهَ وَاسْتَغْفَرَ لَهُمُ الرَّسُولُ لَوَجَدُوا اللّٰهَ تَوَّابًا رَّحِيمًا ﴿٦٤﴾ فَلَا وَرَبِّكَ لَا يُؤْمِنُونَ حَتّٰى يُحَكِّمُوكَ فِيمَا شَجَرَ بَيْنَهُمْ ثُمَّ لَا يَجِدُوا فِيٓ أَنْفُسِهِمْ حَرَجًا مِّمَّا

او وائی چه په خدائے مو قسم دی موږ خو صرف ښیګړه غوښتله او دا مو نیت وُو چه د دواړو ډلو په منځ کښې په څه طریقه موافقت پیدا شي ـــــ څه چه د دوئ په زړونو کښې دي هغه الله ته معلوم دي، ته د هغوئ نه لاس واخله، هغوئ پوه کړه او داسې نصیحت ورته کوه چه زړونو ته یې کوز شي. (هغوئ ته اُووایه) موږ چه هر یو رسول رالیږلے دے نو ددے دپاره مو رالیږلے دے چه د خدائے په حکم سره د هغه اطاعت وکړے شي.[۹۴] که دوئ داسې کار کړے وے چه کوم وخت ئے په ځانونو باندې زیاتے کړے وُو او ستا له راغلی وے او د الله نه ئے معافی غوښتلې وے او رسول هم د هغوئ دپاره د معافۍ درخواست کړے وے، نو یقینًا چه الله به ئے بخښونکے او رحم کونکے موندلے وے. نه، اے محمد! ستا په رب مې دې قسم وي چه دوئ هیڅکله تر هغې مومنان نشي کیدے تر څو چه دوئ په خپلو اختلافاتو کښې تا فیصله کونکے و نه مني او بیا چه ته څه فیصله وکړې نو په هغې باندې په خپلو زړونو کښې څه

[۹۴] یعنی د خدائے د طرفه رسول ددے دپاره نه راځی چه بس د رسول په رسالت باندې ایمان راوړه او بیا چه زړه دې د چا خبرو منل غواړی هغه منه. بلکه د رسول د رسالت د راتلو غرض دا وی چه د ژوند دپاره کوم قانون هغه راوړے دے، نو ټول قانونونه به پریږدے او صرف د هغه پیروی به کوے، او د خدائے د طرفه چه هغه کوم حکمونه راوړی دی نو نور ټول حکمونه به پریږدے او صرف د خدائے په حکمونو باندې به عمل کوے که چا داسې ونه کړل نو بیا رسول صرف یو رسول په حیثیت سره منل هیڅ مطلب نه لری.

قَضَيْتَ وَيُسَلِّمُوا تَسْلِيمًا ﴿٦٥﴾ وَلَوْ أَنَّا كَتَبْنَا عَلَيْهِمْ أَنِ اقْتُلُوا
أَنفُسَكُمْ أَوِ اخْرُجُوا مِن دِيَارِكُم مَّا فَعَلُوهُ إِلَّا قَلِيلٌ
مِّنْهُمْ ۖ وَلَوْ أَنَّهُمْ فَعَلُوا مَا يُوعَظُونَ بِهِ لَكَانَ خَيْرًا لَّهُمْ
وَأَشَدَّ تَثْبِيتًا ﴿٦٦﴾ وَإِذًا لَّآتَيْنَاهُم مِّن لَّدُنَّا أَجْرًا عَظِيمًا ﴿٦٧﴾
وَلَهَدَيْنَاهُمْ صِرَاطًا مُّسْتَقِيمًا ﴿٦٨﴾ وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ

تنګسیا دانه وړلی، بلکه پوره پوره ئې ومني[95] که موږ ده دوئ ته حکم کړے وے چه خپل ځانونه
قتل کړئ یا د خپلو کورونو نه بهر وځئ نو په دوئ کښ به ډیرو کمو خلقو په دے عمل کړے وو۔[96]
حالانکه دوئ ته چه کوم نصیحت کیږی که دوئ په هغې عمل کړے نو دا به د دوئ د پاره زیات د
بهترئ او زیات د مضبوطیا سبب وے[97] او چه داسے ئې کړے نو موږ به ورله د خپل طرفه
ډیر اجر ورکړے او سیغه لار به مو ورته خودلے۔[98] څوک چه د الله او د رسول[2]

[95] دے آیت حکم صرف د نبی د ژوند پورے نه دے بلکه د تیامته پورے دے. څه چه د الله د طرفه نبی
صلی الله علیه وسلم راوړی دی او هغه چه په کومه طریقه د الله په حکم پاندے عمل کړے دے هغه د مسلمانانو
د پاره یو سند دے او د دے سند په منلو یا نه منلو پاندے د سړی د مؤمن کیدو او د نه مؤمن کیدو فیصله ده۔
په حدیث کښے دا خبره نبی صلی الله علیه وسلم په دے الفاظو فرمایلے ده چه لایؤمن احدکم حتی یکون هواه تبعا
لما جئت به. په تاسو کښے یو سړے هم تر هغې مؤمن نشی جوړیدے تر څو چه د هغه د نفس خواهشات د هغې طریقے
تابع نه دی کومه طریقه چه ما راوړی ده۔

[96] یعنی هر کله چه د هغوئ دا حال دے چه د شریعت په پابندئ کښے لږ شان نقصان او لږ شان
تکلیف هم نشی برداشت کړے نو د هغوئ نه لویے تربانئ امید څه کله نشی کیدے. که د ځان مرکولو یا د کور
پریښودلو مطالبه ترې شوے نو دوئ به وتښتی او د ایمان څائے به ئې د کفر په لاره روان شی۔

[97] یعنی که دے خلقو شک نه کړے او بینه په اطمینان سره په رسول پسے کلک روان شوی وے نو
تول ژوند به ئې د شک ښځے نه پاک وے. د هغوئ خیالات، اخلاق او هر کار به مضبوط وے او د نیغے
لارے تهول برکتونه به ورته حاصل شوی وے. کوم سړے چه په شک کښے وی ،، او په یوه لاره ځی او
کله په بله لار ، او د یوے لارے په حقله ئې دا اطمینان نه وی چه دا صحیح ده نو د هغه ټول ژوند داسے
تیریږی لکه د اوبو پاسه نقشه، او ټول کوششونه ئې بے فایدے شی۔

فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الَّذِيْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنَ النَّبِيّٖنَ وَ الصِّدِّيْقِيْنَ وَ الشُّهَدَآءِ وَالصّٰلِحِيْنَ ۚ وَحَسُنَ اُولٰٓئِكَ رَفِيْقًا ﴿۶۹﴾ ذٰلِكَ الْفَضْلُ مِنَ اللّٰهِ ۭ وَكَفٰى بِاللّٰهِ عَلِيْمًا ﴿۷۰﴾ ع

حکمونه منی هغه به د هغه خلقو سره وی چه الله پرنعمتونه کړی دی یعنی پیغمبرانه صدّیقان، شهیدان او صالحان.[۹۸] څنګه ښه دی دا ملګری چه د چا نصیب شی.[۹۹] دا هغه حقیقی فضل دے چه د الله د طرفه ملاویږی او د حقیقت پیژندلو د پاره بس د الله علم کافی دے. ع

[۹۸] یعنی که هغوئ شک پریښودلے وے او ښه په یقین سره ئے د رسول د اطاعت فیصله کړے وے نو د خدائے په فضل به هغوئ ته نیغه لار صفا ښکاره شوے وه او دا به ورته معلومه شوی وه چه خپل منزل ته رسیدو د پاره په کومه لار قدم واخلی.

[۹۹] صدّیق هغه څوک دے چه ډیر رښتینے وی، په هغه کښے رښتینولی او حق پرستی کمال درجے ته رسیدلی وی، په خپله هر معامله او په هر کار کښے سیده او صفا لار اختیاره وی، هر وخت د زړه د خلا د حق ملګیه وی، او څه چه د حق نه خلاف وی د هغے په مقابله کښے مضبوط ولاړ وی یوه ذره کمزوری نه ښکاره کوی. دومره سپین صفا او بے داغه انسان وی چه خپل پردے هرڅوک تری د رښتیا نه بغیر د بلے خبرے امید نه لری.

د شهید معنیٰ ګواه ده. شهید هغه چا ته وائی چه په خپل ایمان باندے خپل عمل ګواه کړی. د خدائے په لار کښے چه څوک سر ورکوی هغه ته هم شهید په دے وجه وائی چه هغه په خپل سر ورکولو دا ثابته کړی چه په کوم څیز باندے هغه ایمان راوړے وُو هغه ئے په رښتیا سره حق منلے وُو او دومره ورته ګران وُو چه د هغے د پاره ئے د سر قربانولو نه هم مخ وانه ړوُو. هغه رښتینو خلقو ته هم شهید وئیلے کیږی چه دومره پرِ د خلقو باوروی چه هغوئ په څه څیز باندے ګواهی ورکړی نو د هغے په حقیقت او صحیح والی کښے بیا څوک خبرے نه کوی.

صالح هغے سړی ته وائی چه په خپله عقیده او نیت کښے، په خپله وینا او کار کښے په نیغه لار باندے روان وی او په خپل ټول ژوند کښے ئے د نیکئ لار اختیار کړی وی.

[۱۰۰] یعنی هغه سړے خوش قسمته دے، چه په دُنیا کښے ورته دا سے ملګری ملاو شی او په آخرت کښے ورته هم د دا سے خلقو ملګرتیا نصیب شی. چه یو سړے نه پوهیږی خو هغه بله خبره ده، او که نه شه لږ دیر پوهیږی نو په حقیقت کښے د بد خویه او د بد عمل خلقو سره ژوند تیرول خو په دنیا کښے یو دردناک عذاب دے پاتے شو لا په آخرت کښے چه هلته هم سړے د بد عملو سره ملګیه شی نو بیا ډیره ګرانه ده. دغه وجه ده چه د الله د نیکو بندګانو همیشه دا آرزو وی چه د نیکانو

يَاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا خُذُوْا حِذْرَكُمْ فَانْفِرُوْا ثُبَاتٍ اَوِ انْفِرُوْا جَمِيْعًا ﴿۷۱﴾ وَاِنَّ مِنْكُمْ لَمَنْ لَّيُبَطِّئَنَّ ۚ فَاِنْ اَصَابَتْكُمْ مُّصِيْبَةٌ قَالَ قَدْ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَيَّ اِذْ لَمْ اَكُنْ مَّعَهُمْ شَهِيْدًا ﴿۷۲﴾ وَلَئِنْ اَصَابَكُمْ فَضْلٌ مِّنَ اللّٰهِ لَيَقُوْلَنَّ كَاَنْ لَّمْ تَكُنْ ۢ بَيْنَكُمْ

اے هغه خلقو چه ايمان مو راوړے دے، د مقابلے د پاره هر وخت تيار وسئ[۱۰۱]، بيا موقعے ته کورئ که ځان له د ډلو په شکل کښ وزئ او که په جمع وزئ. او په تاسو کښ يو نيم تن داسے هم شته چه د جنګ نه ځان پټ کوي[۱۰۲]، که په تاسو څه مصيبت راشي نو وائي چه خدائے په ما ډير فضل وکړو چه زه د دے خلقو سره لا نه ړم، او که د الله د طرفه په تاسو فضل وشي نو وائي —— او داسے وائي لکه چه تاسو او د هغه په مينځ کښ

خلقو سره ئے ژوند نصيب شي او چه د مرګ نه روستو هم د نيکانو خلقو سره يو ځائے وي.

[۱۰۱] ياد لرئ چه دا خطبه په هغه وخت کښے نازله شوي وه کله چه د اُحد د شکست د وجے نه د خوا وشا د قبائيلو حوصلے ورچتے شوي وے او مسلمانان د هر طرف نه په خطرو کښے ګير شوي وو. هره ورځ به دا خبرو راتلل چه د فلانئ قبيلے نيت مسلمانانو ته خراب دے، فلانئ قبيله دُشمنئ ته تياره ده، په فلانئ ځائے باندِ د حملے کولو تيارے کيږي. د مسلمانانو سره به په بغته دوکے کيدلے. مسلمانانو تبليغ کولو له به بولے دو که دعوت ورکړے شوا و بيا به قتل کړے شو. د مدينے د حدونو نه بهر هغوئ په امن نه شو ګرځيدلے. په دے حالاتو کښے مسلمانانو له سخت کوشش کول پکار وو چه د دے ډيرو خطرو د وجے نه د اسلام دا تحريک ختم نشي.

[۱۰۲] يو مطلب ئے دا هم دے چه بچپله خو ځان پټ کوي، خو د نورو حوصلے هم خرابوي او هغوئ ته داسے خبرے کوي چه هغوئ هم د دوئ په شان جهاد له لا نه شي او په ځائے کيني.

وَبَيْنَهُ مَوَدَّةٌ يَّلَيْتَنِي كُنتُ مَعَهُمْ فَأَفُوزَ فَوْزًا عَظِيمًا ﴿٧٣﴾ فَلْيُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ الَّذِينَ يَشْرُونَ الْحَيَوٰةَ الدُّنْيَا بِالْآخِرَةِ ۚ وَمَن يُقَاتِلْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ فَيُقْتَلْ أَوْ يَغْلِبْ فَسَوْفَ نُؤْتِيهِ أَجْرًا عَظِيمًا ﴿٧٤﴾ وَمَا لَكُمْ لَا تُقَاتِلُونَ فِي سَبِيلِ اللَّهِ وَالْمُسْتَضْعَفِينَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاءِ وَالْوِلْدَانِ الَّذِينَ يَقُولُونَ رَبَّنَا أَخْرِجْنَا مِنْ هَٰذِهِ الْقَرْيَةِ الظَّالِمِ أَهْلُهَا وَاجْعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ وَلِيًّا وَاجْعَل لَّنَا مِن لَّدُنكَ نَصِيرًا ﴿٧٥﴾

د دوستۍ څه تعلق هېڅ وو نه ـــ چه هغۀ افسوس کړ زۀ هم د دوئ سره وے نو لوئ کاربه شوے وو. (دا سے خلق دِ خبر شي چه) د الله په لار کښې هغه خلقو له جنګېدل پکار دي چه د آخرت د ژوند دپاره د دُنیا ژوند خرڅوي،[۱۰۳] بیا چه څوک د الله په لار کښې وجنګیږي نو که ووژلے شي او که غالب شي نو هغه له به موږ ضرور لوئ اجر ورکوو. آخر څه وجه ده چه تاسو د الله په لار کښې د هغه بے وسه نارینو، زنانو او وړو وړو ماشومانو د خاطره جنګ نۀ کوئ چه د کمزورۍ په وجه پرے ظلم کیږي او هغوئ فریاد کوي چه اے خدایه موږ د دے کلي نه وباسے چه خلق ئے ظالمان دي، او د خپل طرفه زموږ د پاره څوک ملګرے او مدد ګار پیدا کړے۔[۱۰۴]

[۱۰۳] یعني د الله په لار کښې جنګېدل د دُنیادارو خلقو کار نۀ دے. دا د داسے خلقو کار دے چه د هغوی مقصد صرف د الله رضا حاصلول وي، چه په الله او په آخرت باندِ پوره باور لری، او په دُنیا کښې خپلے هرے خوشحالئ او خپلے هرے فائدے قربانولو ته په دے اُمید باندِ تیار وي چه خپل رب به تر راضي شي او که په دُنیا کښې نۀ وي نو په آخرت کښې به خامخا د قربانو فائدۀ هغه ته ملاؤ شي ـ پاتے شو هغه خلق چه په اصل کښې ورته د دُنیا فائدے لوئے ښکاري، نو په حقیقت کښې د لاره د هغوئ د پاره نۀ ده ـ

[۱۰۴] اشاره ده هغه ماشومانو، زنانو او نارینو ته چه په مکه کښې او د عربو په نورو قبائلو کښې ئے اسلام قبول کړے وو او ظلم به پرې کیدو وخو نۀ ئے هجرت کولے شو او نۀ ئے خپل ځان د ظلم نه بچ کولے شو. په دے غریبانو به هر قسم ظلم کیدو او هغوئ به دُعاګانے غوښتلے چه څوک دا سے وے چه موږ د دے ظلم نه بچ کړي ـ

اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۚ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا يُقَاتِلُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ الطَّاغُوْتِ فَقَاتِلُوْٓا اَوْلِيَآءَ الشَّيْطٰنِ ۚ اِنَّ كَيْدَ الشَّيْطٰنِ كَانَ ضَعِيْفًا ﴿۷۶﴾ اَلَمْ تَرَ اِلَى الَّذِيْنَ قِيْلَ لَهُمْ كُفُّوْٓا اَيْدِيَكُمْ وَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ وَاٰتُوا الزَّكٰوةَ ۚ فَلَمَّا كُتِبَ عَلَيْهِمُ الْقِتَالُ اِذَا فَرِيْقٌ مِّنْهُمْ يَخْشَوْنَ النَّاسَ كَخَشْيَةِ اللّٰهِ اَوْ اَشَدَّ خَشْيَةً ۚ وَقَالُوْا رَبَّنَا لِمَ كَتَبْتَ

کومو خلقو چه د ایمان لاره اختیار کړې ده، هغوئ د الله په لار کښې جنګ کوی او کومو خلقو چه د کفر لار اختیار کړې ده، هغوئ د طاغوت په لار کښې جنګ کوی.[۱۰۵] نو د شیطان د ملګرو سره جنګ کوئ او یقین لرئ چه د شیطان د دوکے چلونه په حقیقت کښې ډیر کمزوری دی۔[۱۰۶] ع

تا هغه خلق هم ولیدل چه هغوئ ته وئیلے شوی وو چه خپل لاسونه ونیسئ او مونځ قایم کړئ او زکوٰة ورکوئ؟ اوس چه ورته د جنګ کولو حکم ورکړے شو نو په هغوئ کښې د یو ډلے دا حال دے چه د خلقو نه داسے یریږی لکه څنګه چه د خدائے نه یریدل پکار دی یا څه لږ د دے نه هم زیات.[۱۰۷] او وائی چه خدایه دا په مونږ باندې

[۱۰۵] دا د الله صفا فیصله ده. د الله په لار کښے د هغه غرض د پاره جنګ کول چه په زمکه باندې د الله دین قایم شی، دا د ایمان والو کار دے او څوک چه په حقیقت کښے مؤمن وی هغه به د دے کار نه هیڅ کله نه راوړی. او د طاغوت په لار کښے د هغه غرض د پاره جنګ کول چه د خدائے په زمکه باندې د خدائے نه د باغیانو خلقو راج راشی، دا د کافرانو کار دے او یو ایمان والا سړے دا کار نشی کولے.

[۱۰۶] یعنی په ظاهره خو شیطان او د هغه ملګری ډیر په شان شوکت سره راوچتیږی او زبردسته دوکه او چلونه کوی، لیکن ایمان والوله نه د هغوئ د شان شوکت نه یریدل پکار دی او نه د هغوئ د دوکو نه. آخر انجام د هغوئ ناکامی ده.

[۱۰۷] د دے آیت درے مطلبونه دی او درے واړه په خپل خپل ځائے صحیح دی۔

یو مطلب ئے دا دے چه اول دا خلق جنګ ته ډیر لیواله وو. هر وخت به ئے وئیل چه په مونږه ظلم کیږی، مونږ له تکلیف راکولے کیږی، وهلے کیږو، کنځلے راته کیږی، آخر مونږ به تر کومه پورے صبر کوو، مونږ له د دے مقابلے کولو اجازت راکړے شی. په هغه وخت کښے به ورته وئیلے شو چه صبر کوئ او د مونځ او د زکوٰة په ذریعه د خپل ځان اصلاح کوئ، نو دوئ ته به دا د صبر او د برداشت

عَلَيْنَا الْقِتَالَ ۚ لَوْلَآ اَخَّرْتَنَآ اِلٰٓى اَجَلٍ قَرِيْبٍ ۗ قُلْ مَتَاعُ الدُّنْيَا قَلِيْلٌ ۚ وَالْاٰخِرَةُ خَيْرٌ لِّمَنِ اتَّقٰى ۣ وَلَا تُظْلَمُوْنَ فَتِيْلًا ﴿٧٧﴾ اَيْنَ مَا تَكُوْنُوْا يُدْرِكْكُّمُ الْمَوْتُ وَلَوْ كُنْتُمْ فِيْ بُرُوْجٍ مُّشَيَّدَةٍ ۗ وَاِنْ تُصِبْهُمْ حَسَنَةٌ يَّقُوْلُوْا هٰذِهٖ مِنْ عِنْدِ اللّٰهِ ۚ وَاِنْ تُصِبْهُمْ سَيِّئَةٌ يَّقُوْلُوْا هٰذِهٖ

د جنگ حکم ولے ولیکو، ولے دلږ نور مهلت مونږ له را نهٔ کړو؟ دوئ ته ووایه چه د دُنیا د ژوند سامان لږ دے، او آخرت د پرهیزګار سړی د پاره زیات بهتر دے او په تاسو باندې به د ذرے هومره ظلم هم نهٔ کیږی.[۱۰۷] پاتے شو مرګ، نو په هر ځائے کښ چه تاسو یئ هغه به تاسو ته د رسی اګرکه په ډیرو مضبوطو قلا ګانو کښ یئ۔
که دوئ ته څه فایده ورسی نو وائی چه دا د الله د طرفنه ده، او که څه نقصان ورسی نو وائی چه دا

حکم کړان دی۔ خو چه اوس ورته د جنګ کولو حکم ورکړے شو نو هغه کسان چه اول جنګ ته لیواله وو په هغوئ کښے یوه ډله اوس د دُشمنانو د تعداد او د جنګ د خطرونه یریږی۔

دویم مطلب ئے دا دے چه ترڅو پورے د دوئ نه د مونځ او د زکوٰة او د داسے بے خطره کارونو مطالبه کیدله او لا د جنګ خبره په مینځ کښے نهٔ وه راغلے نو دوئ پاخه دیندار وو۔ خو اوس چه د حق د پاره د سر او د مال ورکولو کار شروع شو نو په دوئ باندې ریږدیل راغلل۔

دریم مطلب ئے دا دے چه، اول خو به د لوټ مار او د خپلے مرضئ د جنګونو د پاره دوئ خپلے توره هر وخت په لاس کښے نیولے وه او شپه ورځ ئے د جنګ نه بغیر بل څه کار نهٔ وو۔ په هغه وخت کښے هغوئ د وینے تویولو نه منع کړے شوی وو او ورته ویلے شوی وو چه د مونځ او د زکوٰة په ذریعه د خپلو ځانونو اصلاح وکړئ۔ اوس چه ورته د خدائے د پاره د تورے د چتولو حکم وشو نو هغه خلق چه د خپلے مرضئ په جنګ کښے ازمریان وو، هغوئ د خدائے د پاره په جنګ کښے بزدله شو۔ هغه لاس چه د نفس او د شیطان په لار کښے به ډیر تیز چلیدل اوس د خدائے په لار کښے شل ګوډ شو۔

دا درے واړه معنے د مختلفو مختلفو خلقو سره لګی او د آیت الفاظ دو مره جامع دی چه په درے واړو معنو باندې یو شان دلالت کوی۔

[۱۰۷] یعنی که تاسو د خدائے د دین خدمت وکړو او د هغه په لار کښے مو محنت وکړو نو دا کیدے

مِنْ عِنْدِكَ ؕ قُلْ كُلٌّ مِّنْ عِنْدِ اللّٰهِ ؕ فَمَالِ هٰٓؤُلَآءِ الْقَوْمِ لَا يَكَادُوْنَ يَفْقَهُوْنَ حَدِيْثًا ﴿٧٨﴾ مَآ اَصَابَكَ مِنْ حَسَنَةٍ فَمِنَ اللّٰهِ ۫ وَمَآ اَصَابَكَ مِنْ سَيِّئَةٍ فَمِنْ نَّفْسِكَ ؕ وَاَرْسَلْنٰكَ لِلنَّاسِ رَسُوْلًا ؕ وَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا ﴿٧٩﴾ مَنْ يُّطِعِ الرَّسُوْلَ فَقَدْ اَطَاعَ اللّٰهَ ۚ وَمَنْ تَوَلّٰى فَمَآ اَرْسَلْنٰكَ عَلَيْهِمْ حَفِيْظًا ﴿٨٠﴾

ستا [١٠٨] د وجې نه دے۔ ورته ووایه چه هر څه د خدائے د طرفه دی۔ آخر په دے خلقو څه شوی دی چه په هیڅ خبره نه پوهیږی۔
اے انسانه، تا ته چه څه ښیګړه دررسی دا د الله په مهربانئ دررسی، او څه مصیبت چه په تا راځی هغه ستا د عمل په وجه راځی۔
اے محمدؐ، مونږه ته د ټولو خلقو دپاره د رسول په حیثیت لیږلے یئے او په دے باندې د خدائے ګواهی کافی ده۔ چا چه د رسولؐ اطاعت وکړو هغه په اصل کښې د خدائے اطاعت وکړو۔ او چا چه مخ واړوو، نو ته خو مونږه په دوئی باندې د یو نګران په حیثیت نه ئے لیږلے۔

نشی چه د خدائے سره به ستاسو بدله منائیږ شی۔

١٠٩ یعنی هر کله چه فتح، کامیابی او خوشحالی نصیب شی نو وائی چه دا د الله فضل دے او دا خبره ئے هیره شی چه دا فضل خو الله تعالیٰ په دوئی باندې د نبی په ذریعه کړے دے. خو هر کله چه د خپلو کمزورو او غلطو په وجه شکست و خوری او پښاشی نو ټول الزام په نبی باندې ږدی او ځپله ځان سپین باز ښکاره کړی۔

١١٠ یعنی د خپل عمل دوئی پخپله ذمه وار دی۔ د دوئی د عملونو پوښتنه به ستا نه نه کیږی۔ تا ته چه کوم کار حواله کړے شوے دے هغه صرف دا دے چه د الله حکمونه دوئی ته ورسوه۔ دا کار تا ورته سرته ورسولو۔ اوس دا کار ستا نه دے چه ته ئے د لاس نه ونیسه او په زور ئے په نیغه لاره روان کړے۔ کومه لارچه ورته ته ښایئے او دوئی په هغې باندې نه ځی، نو د هغې هیڅ ذمه واری په تا باندې نشته، تا نه به دا پوښتنه نه کیږی چه دے خلقو ولے حکم نه دے منلے۔

وَيَقُولُونَ طَاعَةٌ فَإِذَا بَرَزُوا مِنْ عِندِكَ بَيَّتَ طَائِفَةٌ مِّنْهُمْ غَيْرَ الَّذِي تَقُولُ ۖ وَاللَّهُ يَكْتُبُ مَا يُبَيِّتُونَ ۖ فَأَعْرِضْ عَنْهُمْ وَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ ۚ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ وَكِيلًا ﴿٨١﴾ أَفَلَا يَتَدَبَّرُونَ الْقُرْآنَ ۚ وَلَوْ كَانَ مِنْ عِندِ غَيْرِ اللَّهِ لَوَجَدُوا فِيهِ اخْتِلَافًا كَثِيرًا ﴿٨٢﴾ وَإِذَا جَاءَهُمْ أَمْرٌ مِّنَ الْأَمْنِ أَوِ الْخَوْفِ أَذَاعُوا بِهِ ۖ وَلَوْ رَدُّوهُ إِلَى الرَّسُولِ وَإِلَىٰ أُولِي الْأَمْرِ مِنْهُمْ لَعَلِمَهُ الَّذِينَ

دوی په خوله باندې وائي چه موږ فرمان منونکي يو۔ خو هر کله چه ستا د خوا نه بهر وځي نو په دوی کښې يوه ډله د شپې راجمع کيږي او ستا د خبرو خلاف مشورې کوي۔ الله د دوی دا ټولې د غوږ خبرې ليکي۔ ته د دوی پروا مه کوه او په الله بروسه کوه، هم هغه د بروسې د پاره کافي دے۔ آيا دا خلق په قرآن باندې غور نه کوي؟ که دا د الله نه بغير د بل چا د طرف نه وے نو دوی به په دے کښې ډير اختلاف موندلے وو۔[۱۱۱] دا خلق چه په هر ځائے کښې د اطمينان يا د يرې خبر واوري نو هغه خوروی، حالانکه که دوی دغه خبر رسول ته او د خپل جماعت ذمه وارو کسانو ته ورسوی نو دغه خبر به په دوی کښې د داسې قابلو خلقو په علم کښې راشي

[۱۱۱] په پاسنو آيتونو کښې چه منافقانو او د کمزوري ايمان والو خلقو ته کوم خبردارے ورکړے شوے دے د هغې لويه او اصلي وجه دا وه چه د هغوی په قرآن کښې شک وو چه آيا دا د الله د طرفنه دے او که نه دے۔ د هغوی دا يقين نه راتلو چه واقعي رسول ته وحي راځي او دا رسول چه کومې خبرې کوي دا نيغ په نيغه د خدائے نه راځي۔ د منافقت په دے کار باندې د ملامته کولو نه روستو ورته دا ويلے کيږي چه دا خلق په قرآن باندې غور نه کوي کنې، نو د قرآن کلام پخپله ګواهي کوي چه دا د خدائے نه بغير د بل چا کلام نشي کيدے۔ هيڅ يو انسان په دے خبره باندې قادر نه دے چه د کلونو راسې دِ په مختلفو حالاتو کښې، په مختلفو موقعو کښې او په مختلفو بحثونو باندې تقريرونه کوي، او د ادل نه را د اخله تر آخره پورې دِ د هغه ټول تقريرونه داسې هموار او يو رنګ برابر وي چه يوه حصه دِ د بلې حصې نه مخالفه نه وي، او خيالات ئے پکښې چرته بدل شوي نه وي، او د خپل نفس د جذباتو هيڅ کردونه پکښې نه وي، او په هغې باندې د دوباره نظر اچولو هيڅ ضرورت نه راځي۔

يَسْتَنْۢبِطُوْنَهٗ مِنْهُمْ ۭ وَلَوْلَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَتُهٗ لَاتَّبَعْتُمُ الشَّيْطٰنَ اِلَّا قَلِيْلًا ﴿٨٣﴾ فَقَاتِلْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۚ لَا تُكَلَّفُ اِلَّا نَفْسَكَ وَحَرِّضِ الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّكُفَّ بَاْسَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا ۭ وَاللّٰهُ اَشَدُّ بَاْسًا وَّاَشَدُّ تَنْكِيْلًا ﴿٨٤﴾ مَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً حَسَنَةً يَّكُنْ لَّهٗ نَصِيْبٌ مِّنْهَا ۚ

چه هغوی به د هغې نه صحیح مطلب راوُباسی[۱۱۲]. که په تاسو باندې د الله مهربانی او رحمت نه وې نو (ستاسو کمزورتیاګانې داسې دي چه) د یو څو کسانو نه بغیر نور ټول به په شیطان پسې روان شوی وئ.

پس اے نبیٔ، ته د الله په لار کښې جنګ کوه، ته د خپل ځان نه بغیر د بل چا د پاره ذمه وار نه یې، البته مؤمنانو ته په جنګ باندې د ورتیزولو خبرې کوه، لرې نه ده چه الله د کافرانو زور مات کړي، د الله زور د ټولو نه زیات زبردست دے او د هغهٔ سزا د ټولو نه سخت، ده. څوک چه د نیکئ سفارش کوی هغه ته به د هغې نه حصه ملاویږی

[۱۱۲] دغه د هنګامے وخت وُو ځکه به د هر طرف نه افواګانې خوریدلې. کله به د خطرے بے بنیاده خبرونه راغلل او د هغې په وجه به د مدینې په بنارکښې او پښواوُشا علاقه کښې پریشانی خوره شوه. کله به دُشمن چرته لاک وُکړو او د خطرے پتحول دپاره به د امن خبرونه خوارهٔ کړل او د هغې په وجه به خلق د خطرے نه بے پرواه شو. په دے افواګانو کښې به هغه خلقو ډیره دلچسپی اخستله چه د هغوی به هسے هنګامه خوښه وه، او د اسلام او د جاهلیت دا جنګ به ورته څه لوبه خبره نهٔ ښکاریده، او چه په دے هډو پوهیدل نهٔ چه د دا سے قسم افواګانو خورولوا نجام به څومره خراب راوُځی. چه په غوږ به ئے څه واوریدل هغه به ئے بے تحقیقه ځایهٔ ځائے خورول. هم دے خلقو ته په دے آیت کښې زُور نه ردکړے شوی ده او په سختئ سره ورته خبردا ریه ورکړے شوے دے چه د افواګانو خورولو نه منع شئ او کومه خبره چه درته ورسی هغه ذمه وارو خلقو ته ورسوئ او بیا چپ کینئ.

وَمَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً سَيِّئَةً يَّكُنْ لَّهٗ كِفْلٌ مِّنْهَا ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ مُّقِيْتًا ﴿۸۵﴾ وَاِذَا حُيِّيْتُمْ بِتَحِيَّةٍ فَحَيُّوْا بِاَحْسَنَ مِنْهَآ اَوْ رُدُّوْهَا ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ حَسِيْبًا ﴿۸۶﴾ اَللّٰهُ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ؕ لَيَجْمَعَنَّكُمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيْهِ ؕ وَمَنْ اَصْدَقُ مِنَ اللّٰهِ حَدِيْثًا ﴿۸۷﴾ ع

او څوک چه د بدئ سفارش کوی هغه ته به د هغې نه حصه ملاویږی.[113] او الله په هر څیز باندې نظر لرونکے دے.

او کله چه څوک تاسو ته په عزت سره سلام وکړی نو تاسو ورته د هغې نه په ښه طریقه جواب ورکړه یا کم از کم د هغې په شان.[114] الله د هر څیز حساب اخستونکے دے. الله هغه دے چه د هغه نه بغیر بل خدائے نشته، هغه به تاسو ټول د هغې قیامت په ورځ راجمع کړی چه د هغې په راتلو کښې هیڅ شک شبه نشته، او د خدائے د خبرے نه زیاته د رښتینې خبرې د بل چا کیدے[115] شی. ع

[113] یعنی دا خو د هر چا خپله خپله خوښه او خپل خپل نصیب دے چه څوک د خدائے په لار کښې کوشش کوی او د حق د چتولو دپاره خلق تیاره وی او د هغې ثواب ورته حاصلوی، او څوک خلق دوکه کوی او د هغوی د خو صلو خرابولو کوشش کوی او دائے زور وی چه خلق د کلمے د اوچتولو د کوشش نه منع کړی او ځان د الله د سزا مستحق کړی.

[114] په دغه وخت کښې د مسلمانانو او د کافرانو په مینځ کښې تعلقات ډیر خراب وو، او ویره خبره بیره وه چه هسے نه مسلمانان د نورو خلقو سره په بد خوئی ملاویدل شروع کړی. د دے وجے نه هغوی ته دا حکم وشو چه څوک تاسو سره د عزت او احترام سلوک کوی تاسو هم د هغوی سره هغه شان سلوک کوئ بلکه د هغې نه زیات په عزت سره ملاویږئ. د ښه خوئی جواب خو ښه خوئی دے، بلکه ستاسو مرتبه دا ده چه د نورو نه زیات ښه خوئی والا جوړ شئ. یوه داسے ډله چه د دُنیا خلق ښیخې لاره ته د رابللو دپاره او د حق طرف ته د دعوت ورکولو دپاره راپورته شوی وی، د هغې دپاره بد خوئی، ترېو تندے او ترخه خبره کول مناسب نه دی. د دے نه هغه مقصد ته نقصان رسیږی د کوم مقصد دپاره چه دا ډله راپورته شوی ده.

[115] یعنی کافران او مشرکان او دهریه خلق چه څه کوی د هغې په وجه د خدائے په خدائی کښې هیڅ کمے نه راځی. د الله یو واله او د هغه مطلقه خدائی یو داسے حقیقت دے چه د چا په بدلولو بدلیدے

فَمَا لَكُمْ فِي الْمُنٰفِقِيْنَ فِئَتَيْنِ وَاللّٰهُ اَرْكَسَهُمْ بِمَا كَسَبُوْا ؕ

بیا دا په تاسو باندې څه شوي دي چه دَ منافقانو په باره کښې ستاسو په منځ کښې دوه رائې دي،[115] حالانکه چه هغوئ کومې بدئ کړي دي دَ هغې په وجه الله هغوئ واپس کړځولي دي[116].

نشي بیا به هغه پورته د اتول انسانان راجمع کړي او هر یو ته به دَ خپل عمل انجام ورښائي دَ هغه دَ فیصلې نه څوک تیښتیدے نشي. نو په دے وجه خدائے تعالیٰ دَ دے خبرے حاجتمند نه دے چه څوک دې دَ الله په باغیانو باندې ته زړه بران وباسي او دَ هغوئ سره دې بد خوئ وچلوي.

۱۱۵ خو دَ پاسني آیت سره دے آیت تعلق دے. لیکن کوم تقریر چه دَ تیرو شوو دوو دریو رکوع کانو نه راروان دے، دا آیت دَ هغې تقریر خاتمه هم ده. په دے لحاظ سره دَ آیت مطلب دا دے چه په دُنیا کښې څوک په کومه طریقه ژوند تیره ول غواړي په هغه طریقه دې ژوند تیره وي، آخر به ټول یوه ورځ خدائے ته حاضریږي، بیا به هر یو دَ خپل عمل انجام وويني.

۱۱۶ دلته دَ هغه منافقانو مسلمانانو په مسئله باندې بحث شوے دے چه اسلام خو ئې قبول کړے وُو خو دَ مکے او دَ عربو دَ نورو ځایونو نه ئې دار الاسلام ته هجرت نه کولو او دَ خپل کافر قوم سره یو ځائے اوسیدل، او چه کله به دَ اسلام او دَ مسلمانانو خلاف څه کارکیدلو نو اکثر به پکښې دوئ شریک وُو. دَ مسلمانانو دپاره دا یوه سخته مسئله وه چه آخر دَ دوئ سره څه وُکړي. څنې مسلمانانو به ویل که هر څه دي، آخر دي خو مسلمانان. کلمه وائي، مونځ کوي، روژه نیسي دَ قرآن تلاوت کوي. دَ هغوئ سره دې دَ کافرانو پشان معامله څنګه وُکړے شي، الله تعالیٰ په دے رکوع کښې دَ دے اختلاف فیصله کړې ده.

دلته په یوه خبره باندې ځان پوهه کول ضروري دي، کښئ نو نه یوائې په دے ځائے کښې، بلکه دَ قرآن مجید په هغه ټولو ځایونو باندې به سړے هیڅ پوهه نشي کوم ځائے کښې چه هجرت نه کونکي مسلمانان په منافقانو کښې شمار کړے شوي دي. حقیقت دا دے چه کله نبي صلی الله علیه وسلم مدینے ته هجرت وُکړو او دَ عربو په زمکه کښې ورته یوه داسے وړوکی شان ټوکړه ملاوُ شوه چه هلته مؤمنانو دَ خپل دین او دَ ایمان کار په آزاده کولے شو، نو عام حکم وُکړے شو چه هر چرته مؤمنان دَ کافرانو زیر لاندې او اسلامي ژوند په آزاده نشي تیرولے، نو دَ هغه ځائے نه دې هجرت وُکړي، او دَ مدینے دار الاسلام ته دې راشي. په هغه وخت کښې چه کومو خلقو دَ هجرت کولو طاقت لرلو او بیا ئې صرف په دے وجه هجرت وُنه کړو چه هغوئ ته خپل کور او خپل عزیزان او خپلے فائدے دَ اسلام نه ګرانے وے، نو هغه ټول په منافقانو کښې شمار کړے شو. او کوم خلق چه په حقیقت کښې مجبوره وُو هغوئ په "مُسْتَضْعَفِيْنَ" کښې شمار کړے شو، لکه څنګه چه وړاندې په څلورلسمه رکوع کښې راځي.

اوس دے خبره واضحه شوه هر کله چه دَ دار الاسلام دَ طرفنه داسے ټولو مسلمانانو ته چه هغوئ دَ کفر په وطن کښې اوسیږي، دَ راتلو عام دعوت وُشي او بیا ورته هغوئ دَ راتلو دپاره خپلے دروازے هر وخت پرانستے ؤلري، او بیا هم هغوئ هجرت نه کوي او په دار الکفر کښې اوسیدل غواړي، نو

أَتُرِيدُونَ أَن تَهْدُوا مَنْ أَضَلَّ اللَّهُ ۖ وَمَن يُضْلِلِ اللَّهُ فَلَن تَجِدَ لَهُ سَبِيلًا ﴿٨٨﴾ وَدُّوا لَوْ تَكْفُرُونَ كَمَا كَفَرُوا فَتَكُونُونَ سَوَاءً ۖ فَلَا تَتَّخِذُوا مِنْهُمْ أَوْلِيَاءَ حَتَّىٰ يُهَاجِرُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ ۚ فَإِن تَوَلَّوْا فَخُذُوهُمْ وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ وَجَدتُّمُوهُمْ ۖ وَلَا تَتَّخِذُوا مِنْهُمْ وَلِيًّا وَلَا نَصِيرًا ﴿٨٩﴾ إِلَّا الَّذِينَ يَصِلُونَ

آیا تاسو دا غواړئ چه الله چا ته هدایت نۀ دے کړے هغوئ ته تاسو لار وښایئ؟ حالانکه چه الله څوک بے لارے کړی دی د هغوئ د پاره تۀ څه لار نشې موندلے. هغوئ خو دا غواړی لکه څنګه چه هغوئ پخپله کافران دی چه غسے تاسو هم کافران شئ او تاسو او هغوئ تول یو برابر شئ. په دے وجه په هغوئ کښ هیڅوک ځان له دوستان مۀ جوړوئ تر څو چه هغوئ د الله په لار کښ هجرت ونۀ کړی، او که هغوئ د هجرت نۀ منع شول، نو چیرته کوم ځائے کښ ئے مومئ هلته ئے نیسئ او وژنئ ئے او د هغوئ نه هیڅوک ځان له دوست او مددګار مۀ جوړوئ. البته هغه منافقان په دے حکم کښ نۀ راځی چه کوم داسے

هله ورته منافقان ویلے کیږی. په دے مسئله کښے به هغه ټول مسلمانان بےشکه منافقان وی چه په دارالکفر کښے د دارالاسلام جوړولو کوشش هم نۀ کوی او که د دا تلو طاقت غوری نو هجرت هم نۀ کوی. لیکن که د دارالاسلام د طرفنه ورته نۀ دعوت شوے وی او نۀ ئے ځپله دروازه ورپاندے بیرینو ته پرانستے وی نو بیا که د کفر وطن نه یو مسلمان دارالاسلام ته هجرت نۀ کوی نو هغۀ ته به منافق نۀ شی ویلے کیدے هغه به هله منافق وی چه په حقیقت کښے د منافقت څه کارونه کړی.

ﷲ یعنی کوم منافقت او مطلب پرستی چه هغوئ کړے وه او د آخرت په بدله کښے ئے دُنیا له ترجیح ورکړی وه، د دے په وجه الله تعالیٰ دوئ هغه طرفته کړزولی دی چه د کوم طرفنه دوئ راغلی وو. دوئ د کفر نه اسلام طرفته راغلی خو وو لیکن په اسلام باندے د ټینګ پاتے کیدلو د پاره د څپلے فائدے قربانولو ضرورت وو او په آخرت باندے د پوخ یقین ساتلو د پاره د څپلے دُنیا قربانولو ضرورت وو، او هغه ټول دوئ خوښ نۀ کړل. نو په دے وجه چه هغوئ د کوم ځائے نه راغلی وو په شا واپس هغه ځائے ته لاړل. اوس د هغوئ په باره کښے د اختلاف کولو څه نۀ دی پاتے شوی.

ﷲ دا حکم د هغه منافقانو مسلمانانو په باره کښے دے چه تعلق ئے د هغه کافرو قوم سره وی چه د مسلمانانو سره جنګیږی او دوئ په دغه جنګ کښے د مسلمانانو خلاف د کافرانو مرسته کوی.

إِلَىٰ قَوْمٍ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُم مِّيثَاقٌ أَوْ جَاءُوكُمْ حَصِرَتْ صُدُورُهُمْ
أَن يُقَاتِلُوكُمْ أَوْ يُقَاتِلُوا قَوْمَهُمْ ۚ وَلَوْ شَاءَ اللَّهُ لَسَلَّطَهُمْ عَلَيْكُمْ
فَلَقَاتَلُوكُمْ ۚ فَإِنِ اعْتَزَلُوكُمْ فَلَمْ يُقَاتِلُوكُمْ وَأَلْقَوْا إِلَيْكُمُ
السَّلَمَ فَمَا جَعَلَ اللَّهُ لَكُمْ عَلَيْهِمْ سَبِيلًا ﴿٩٠﴾ سَتَجِدُونَ آخَرِينَ
يُرِيدُونَ أَن يَأْمَنُوكُمْ وَيَأْمَنُوا قَوْمَهُمْ كُلَّمَا رُدُّوا إِلَى الْفِتْنَةِ
أُرْكِسُوا فِيهَا ۚ فَإِن لَّمْ يَعْتَزِلُوكُمْ وَيُلْقُوا إِلَيْكُمُ السَّلَمَ وَيَكُفُّوا
أَيْدِيَهُمْ فَخُذُوهُمْ وَاقْتُلُوهُمْ حَيْثُ ثَقِفْتُمُوهُمْ ۚ وَأُولَٰئِكُمْ

قوم سره ملاؤ شو چه دَ هغوی سره ستاسو معاهده وی۔ [۱۱۹] دغه شان هغه منافقان هم په دے حکم کښ نه راځی چه ستاسو خوا له راشی او د جنګ نه زړونه ئې ماتۍ شوی وی نه ستاسو سره جنګ کول غواړی او نه دَ خپل قوم سره. که خدائے غوښتے نو دوی به ئے په تاسو باندِ مسلط کړی وے او دوی به درسره هم جنګونه کول. نو که چرے دوی ستاسو نه څنګ ؤکړی او دَ جنګ نه منع شی او تاسو ته دَ صلح دپاره لاس راوُږد کړی، نو بیا الله تعالیٰ تاسو له په هغوی باندِ دَ حملے کولو څه حق نه دے درکړے۔ یو بل قسم منافقان به درته داسے ملاؤ شی چه دا غواړی چه ستاسو نه هم په امن کښ پاتے شی او دَ خپل قوم نه هم په امن کښ پاتے شی، خو چه کله ورته دَ شر موقع ملاو یږی نو په هغے کښ به ورداننګی. داسے خلق که ستاسو دَ مقابلے نه منع نه شو او تاسو ته ئے صلح دروړاندِ نه کړه او خپل لاسونه ئے بند نه کړل نو چه کوم ځائے درته ملاؤ شی هلته ئے نیسیٔ او وژنئ ئے

[۱۱۹] دَ دے حکم دا مطلب نه دے چه "دَ هغوی سره که بیا دوستانه چوروی نو خیر دے"، بلکه دَ دے مطلب دا دے چه دوی بیا مه وژنئ. یعنی که هغه منافق مسلمان چه قتلوَل ئے واجب وی چرته دَ یو داسے قوم سره پناه واخلی چه دَ هغوی سره دَ اسلامی حکومت معاهده وی نو هلته ورپسے تلَه نه دی پکار او نه دا جائز دی چه دَ دار الاسلام یو مسلمان چرته په یو غیر جانبدار ملک کښے یو منافق وُوینی او هلته ئے مړ کړی. دا احترام په اصل کښے دَ منافق دَ وینے نه دے بلکه دَ معاهدے دے۔

جَعَلْنَا لَكُمْ عَلَيْهِمْ سُلْطٰنًا مُّبِيْنًا ﴿۹۱﴾ ع وَمَا كَانَ لِمُؤْمِنٍ اَنْ يَّقْتُلَ مُؤْمِنًا اِلَّا خَطَـًٔا ۚ وَمَنْ قَتَلَ مُؤْمِنًا خَطَـًٔا فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ وَّدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ اِلٰٓى اَهْلِهٖٓ اِلَّآ اَنْ يَّصَّدَّقُوْا ۚ فَاِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍ عَدُوٍّ لَّكُمْ وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَتَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ۭ

په هغوی باندې د لاس وچتولو دپاره موږ تاسو له واضحه دلیل درکړے دے. ع

د یو مومن دا کار نه دے چه بل مومن قتل کړي، سوا د دے نه چه د هغه نه غلطی وشی.[۱۲۰] او څوک چه یو مومن په غلطۍ سره قتل کړي نو د هغې کفاره دا ده چه یو مومن د د غلامۍ نه آزاد کړي[۱۲۱] او د مړي وارثانو له د د وینے قیمت ورکړي،[۱۲۲] لیکن که وارثان د وینے قیمت معاف کړي نو بیا دې نه ورکوی. او که چرے دغه مومن مړے د یو داسے قوم سړے وُو چه د هغوی سره ستاسو دشمنی وه نو د هغې کفاره یو مومن غلام آزاده ول دی.

[۱۲۰] دلته خبره د هغه منافقانو مسلمانانو نه ده چه په پاسنی آیت کښے د وژلو اجازت شوے دے، بلکه دا خبره د هغے مسلمانانو ده چه یا د دارالاسلام وسیدُنکی وی، او یا خو په دارالکفر کښے دی خو داسے هیڅ ثبوت پرِ نه وی چه گنی د دُشمنانو سره په کاروائی کښے شریک دے. په هغه وخت کښے د یرخلق داسے هم وُو چه د اسلام قبیلو نه رو ستو د خپلو خاصو مجبورو په وجه په دُشمنانو کښے وُسیدل. او اکثر به داسے هم وُشوه چه مسلمانانو به په یو دشمن قبیله باندې حمله وکړه او په هغے کښے به په غلطۍ سره څه مسلمانان د هغوی د لاسه مړه شول. نو په دے وجه الله تعالی دلته د دے خبرے حکم بیان کړے دے چه کله په غلطۍ سره یو مسلمان د بل مسلمان د لاسه مړ شی.

[۱۲۱] چونکه وژلے شوے یو مؤمن سړے وو نو د دے وجے نه د هغه د قتل کفاره د یو مؤمن غلام آزادول مقرر کړے شوه.

[۱۲۲] نبی صلی الله علیه وسلم د وینے قیمت سل اوښان یا دوه سوه غواګانے یا دوه زره بیزے مقرر کړی دی. که په بل شکل کښے څوک د وینے قیمت ورکول غواړی نو د هغے مقدار به د دے څیزونو د قیمت په لحاظ سره مقرریږی وے نی. مثلاً د نبی صلی الله علیه وسلم په زمانه کښے د وینے نقد قیمت اته سوه دیناره یا اته زره درهمه مقرر دُو. کله چه د حضرت عمر رض زمانه راغله نو هغه وفرمایل چه د اوښانو قیمت زیات شوے دے نو د دے وجے نه اوس به د سرو زرو یو زر دیناره او د سپینو زرو نه دولس زره درهمه خون بها ورکولے کیږی. خو دا په ذهن کښے یاد لری چه د وینے دا کوم قیمت مقرر کړے شوے دے دا د هغے قتل دپاره دے چه په خطا کښے شوے وی، نه چه په قصد شوے وی.

وَإِنْ كَانَ مِنْ قَوْمٍۭ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَهُمْ مِّيثَاقٌ فَدِيَةٌ مُّسَلَّمَةٌ إِلَىٰٓ أَهْلِهِۦ وَتَحْرِيرُ رَقَبَةٍ مُّؤْمِنَةٍ ۖ فَمَن لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ شَهْرَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ تَوْبَةً مِّنَ ٱللَّهِ ۗ وَكَانَ ٱللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿۹۲﴾

او که چرې هغه د یو داسې غیرمسلمه قوم سړے وُو چه ستاسو ورسره معاهده وه نو د هغه وارثانو له به د وینے قیمت ورکوی او یو مومن غلام به آزاده وی.[۱۲۳] که چا غلام پیدا نه کړو نو هغه دې مسلسل دوه میاشتے روژے ونیسی.[۱۲۴] دا په دے ګناه باندې الله تعالیٰ ته د توبے ایستلو طریقه ده[۱۲۵] او الله په هر څه پوه دے او د حکمت خاوند دے.

۱۲۳ په دے آیت کښے چه کوم حکمونه دی د هغے خلاصه دا ده:

که مړے د دارالاسلام وُسیدونکے وُو نو قاتل به د وینے قیمت هم ورکوی او د خدائے نه به د معافی غوښتلو دپاره یو غلام هم آزادوی.

که مړے د دارالحرب وُسیدونکے وُو نو قاتل به صرف غلام آزاده وی. د وینے قیمت ورکول پرې نشته.

که مړے د یو داسے دارالکفر وُسیدونکے وُو چه د هغے سره د اسلامی حکومت معاهده وه نو قاتل به یو غلام آزاده وی او د وینے قیمت (خون بها) به هم ورکوی. لیکن دا د وینے قیمت به هغومره وی څومره چه د دغه قوم سره د معاهدے مطابق فیصله شوی وی.

۱۲۴ یعنی روژے به پرله پسے نیسی، په مینځ کښے به ناغه نه کوی. که څوک د شرعی عذر نه بغیر یوه روژه هم په مینځ کښے پریږدی، نو روژے به بیا د سره شروع کوی.

۱۲۵ یعنی دا "جرمانه" نه ده بلکه "توبه" او "کفاره" ده. جرمانه اکثر خلق نه خوښه وی بلکه د مجبورئ نه ئے ورکوی، او د ورکولو په وخت کښے نه په زړه کښے شرم محسوسه وی او نه ئے د بیا دپاره د ځان تیک کولو خیال وی، او په دے وجه د سړي په زړه کښے نفرت او بیزاری پیدا کیږی. د دے نه برعکس الله تعالیٰ دا غواړی چه د کوم بنده نه ګناه شوی وی هغه دې د خپلے ګناه اثر د عبادت او د نیکو کارونو ادا کولو په ذریعه لرے کړی، او په شرمندګی سره دې الله طرف ته رجوع وکړی، چه هم ئے ګناه معاف شی او د بیا دپاره خپل ځان د ګناهونو نه محفوظ وساتی. د کفارے معنیٰ ده "پټونکے څیز" یو نیک کار د ګناه دپاره د کفارے ګرځولو مطلب دا دے چه دا نیکی به هغه ګناه باندې وروغوړیږی او د هغه ګناه داغ به پټ کړی لکه چه په دیوال د تور داغ په سپیدۍ پټ شی.

وَمَنْ يَّقْتُلْ مُؤْمِنًا مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآؤُهٗ جَهَنَّمُ خٰلِدًا فِيْهَا وَغَضِبَ اللّٰهُ عَلَيْهِ وَلَعَنَهٗ وَاَعَدَّ لَهٗ عَذَابًا عَظِيْمًا ﴿۹۳﴾ يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اِذَا ضَرَبْتُمْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ فَتَبَيَّنُوْا وَلَا تَقُوْلُوْا لِمَنْ اَلْقٰۤى اِلَيْكُمُ السَّلٰمَ لَسْتَ مُؤْمِنًا ۚ تَبْتَغُوْنَ عَرَضَ

او څوک چه یو مومن په قصد قتل کړی نو د هغه جزا جهنم ده چه همیشه به پکښ ؤسیږی. په هغه باندِ د الله غضب او د هغه لعنت دے او الله د هغه د پاره سخت عذاب تیار ساتلے دے.

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، کله چه تاسو د الله په لار کښ د جهاد د پاره ؤځئ نو په دوست دشمن کښ تمیز کوئ او څوک چه په تاسو اول سلام واچوی نو هغه ته فورًا دا مه وایئ چه ته مؤمن نه یئے.[۱۲۶] که تاسو د دُنیا فائده

[۱۲۶] د اسلام په اول کښے د "السّلامُ علیکم" لفظ د مسلمانانو د پاره شعار ولویه نښه وه، یو مسلمان چه به بل مسلمان ؤلید و نو دا لفظ به ئے د دے مطلب د پاره استعمالولو چه زهٔ ستاسو د ډلے سړے یم، ستا دوست او خیرخواه یم، زما د طرفه تاسو ته امن او سلامتیا ده، نو په دے وجه مهٔ تاسو زما سره دشمنی کوئ او نهٔ زما د طرفه د دُشمنئ او د ضررخطره فکر کوئ. لکه څنګه چه په فوج کښے یو لفظ (Password). د یو علاقے په طور مقرر وی او د شپے چه یو فوجی د بل فوجی د سره تیریږی نو دا لفظ خاص د دے غرض د پاره وائی چه د مخالف فوجی پته ورته ؤلګی، نو دغه شان د سلام دا لفظهم په مسلمانانو کښے د علامے په طور مقرر شوے ؤو. خاص طور د دے شعار یا نښے ضرورت په هغه زمانه کښے په دے وجه نور هم زیات ؤو چه په کوم وخت کښے د نوی مسلمانانو او د کافرانو په منځ کښے د جامے او د ژبے او د نورو څیزونو څه خاص فرق نهٔ ؤو چه د هغے په وجه به یو مسلمان بل مسلمان زر پیژندے شو.

لیکن د جنګ په موقع کښے به دا مشکلات مخے له راتلل چه کله به مسلمانانو په دشمن حمله ؤکړه او مخے له به ورله یو مسلمان ورغے نو هغه به زر "السّلامُ علیکم" یا "لَآ اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ" د دے غرض د پاره اُووے چه زهٔ هم مسلمان یم او ستاسو دینی ورور یم. خو د مسلمانانو به کله کله دا شک راتلو چه دا کافر دے خو صرف د ځان بچ کولو د پاره دا الفاظ وائی. نو اکثر به ئے هغه قتل کړو او د هغوئ مال به ئے د غنیمت په طور لوټ کړو. نبی صلی الله علیه وسلم به په هسے داسے موقع باندِ سخته رټنه کوله خو بیا به هم داسے واقعات پیښیدل. آخر دا چه الله تعالیٰ په قرآن مجید کښے دا مسئله حل کړه. د آیت مطلب دا دے چه څوک ځان ته مسلمان اُووائی نو تاسو د هغهٔ په حقله زر دا فیصله مهٔ کوئ چه دے د ځان بچ کولو د پاره دروغ وائی. کیدے شی چه هغه رښتینے وی او دا هم کیدے شی چه دروغ وائی. حقیقت خو په تحقیق سره معلومیدے شی. که بے

الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا فَعِنْدَ اللّٰهِ مَغَانِمُ كَثِيْرَةٌ ؕ كَذٰلِكَ كُنْتُمْ مِّنْ قَبْلُ
فَمَنَّ اللّٰهُ عَلَيْكُمْ فَتَبَيَّنُوْا ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ﴿۹۴﴾
لَا يَسْتَوِي الْقٰعِدُوْنَ مِنَ الْمُؤْمِنِيْنَ غَيْرُ اُولِي الضَّرَرِ وَ
الْمُجٰهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ ؕ فَضَّلَ
اللّٰهُ الْمُجٰهِدِيْنَ بِاَمْوَالِهِمْ وَاَنْفُسِهِمْ عَلَى الْقٰعِدِيْنَ دَرَجَةً ؕ
وَكُلًّا وَّعَدَ اللّٰهُ الْحُسْنٰى ؕ وَفَضَّلَ اللّٰهُ الْمُجٰهِدِيْنَ عَلَى

غواړئ نو دَ الله سره ستاسو دپاره دَ غنیمت ډیر مالونه دی. دَ دے نه مخکښ خو آخر تاسو هم په دغه حالت کښ وئ، بیا الله په تاسو باندِ احسان وکړو[126] نو په دے وجه اوس بنه تحقیق کوئ، څه چه تاسو کوئ الله دَ هغے نه خبردار دے.

په مسلمانانو کښ هغه خلق چه بے دَ څه عذر نه په کور کښ ناست وی او هغه خلق چه د الله په لار کښ په سر و مال جهاد کوی، دواړه یو شان نه دی. الله په سر و مال باندِ جهاد کونکوله د ناستو خلقو په نسبت لویه درجه ورکړې ده. اګرچه دَ هر یو دپاره الله تعالیٰ د نیکۍ وعده کړې ده، خو دَ الله سره دَ مجاهدینو دَ خدمتونو بدله

دَ تحقیق نه پریږدئ نو څو سره چه دَ دے خیرے امکان دے چه یو کافر به په دروغ دینا باندِ ځان بچ کړی نو هغومره امکان دَ دے خبرے هم دے چه بےدَ تحقیق نه قتل کړئ نو یو بے ګناه مؤمن به ستاد لاسه مړ شی. او که یو کافر په غلطۍ سره پریښودلے شی نو دا خبره دَ دے نه په څو څو چنده بهتره ده چه یو مؤمن په غلطۍ سره قتل کړے شی.

[126] یعنی یو وخت په تاسو دا سے هم تیر شوے دے چه په کافرانو کښ یو یو ، سید لئ . دَ ظلم دَ لاسه په خپل اسلام پټولو باندِ مجبوروئ، دَ خپل ایمان د ثبوت دپاره در سره دَ ژبے د اقرار نه سوا بل څه نه وو. اوس دا دَ الله احسان دے چه یو ځائے ژوند درته نصیب شو او دَ دے خبرے قابل شوئ چه دَ کافرانو په مقابله کښے مو دَ اسلام جنډه راوچته کړې ده. دَ دے احسان دا صحیح شکریه نه ده چه کوم مسلمانان په اول حالت کښے وی او تاسو دَ هغوئ سره دَ نرمۍ نه کار وانه خلئ.

الْقٰعِدِيْنَ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۹۵﴾ دَرَجٰتٍ مِّنْهُ وَمَغْفِرَةً وَّرَحْمَةً ؕ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۹۶﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ تَوَفّٰىهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ ظَالِمِيْٓ اَنْفُسِهِمْ قَالُوْا فِيْمَ كُنْتُمْ ؕ قَالُوْا كُنَّا مُسْتَضْعَفِيْنَ فِى الْاَرْضِ ؕ

د ناستو خلقو نه ډیره زیاته ده.[۱۲۸] د هغوی د پاره د الله د طرفه لوئ درجې دي بخښانه ده او رحمت دې، او الله ډیر معاف کونکے او رحم کونکے دے. ع

کوم خلق چه په خپل نفس باندې ظلم کوونکي وو[۱۲۹] هغوی ته روحونه چه کله فرښتو قبض کړل نو تپوس ئې ترې وکړو چه دا تاسو په څه حال کښې مبتلا وئ؟ هغوی ورله جواب ورکړو چه مونږ په زمکه کښې کمزوري او مجبور وو.

[۱۲۸] د دې ایت د هغې ناستو خلقو ذکر نه دے چه د جهاد حکم ورته وشي او هغوی څه بهانه وکړي او پاتې شي، یا عام اعلانِ جنگ وشي او جهاد په ټولو خلقو باندې فرض عین شي او بیا هم هغوی د جنګ نه په څه طریقه ځان بچ کوي. دلته د هغې ناستو خلقو ذکر دے چه جهاد فرضِ کفایي وي او دوی میدانِ جنګ ته لاړ نشي او د هغې ځائے نور کارونه شروع کړي. په اولنو دوو حالتو کښې چه څوک جهاد ته لاړ نشي هغه منافق وي او د الله د طرفه د هغه د پاره هیڅ د نیکۍ وعده نشته، سوا د هغې صورت نه چه په حقیقي عذر پاتې شوے وي. د دې نه برخلاف دا آخري دا سے حالت دے چه په هغې کښې د اسلامي جماعت ټول فوجي طاقت ته ضرورت نۀ وي بلکه صرف د یو حصے ضرورت وي. په دا سے حالت کښې که د بادشاه (امام) د طرفه اپیل وشي چه میدان جنګ ته د تلو د پاره څوک سرورکولو ته تیار دی. نو کوم خلق چه سرورکولو ته تیار شي هغه ډیر بهتر دی په نسبت د هغې خلقو چه په نورو کارونو کښې مشغول پاتې شي، خواه که هغه نور کار په خپل ځلئ باندې ډیر ګټا ور هم وي.

[۱۲۹] د دې نه مراد هغه خلق دي چه د اسلام راوړلو نه روستو هم بې د څه مجبورۍ او بې د څه عذر نه په خپل کافر قوم کښې دننه وسېدل، په نیمه مسلماني او په نیمه کافرۍ کښې ئې ژوند تیرول خوښ وو، او حال دا وو چه دارالاسلام تیار شوے وو، و هلته د خپلې عقیدے مطابق د پوره اسلامي ژوند تیرولو د پاره دوی تللے شو. دا د هغوی په خپل نفس باندې ظلم وو ځکه چه دا د هغوی څه حقیقي مجبوري نۀ وه چه د پوره اسلامي ژوند تیرولو ځائے پرې کړو وه ژوند تیرولو باندې صبرناک شوی وو بلکه صرف د خپل نفس خوښه وه او د خپل خاندان او د خپل جائیداد او د دنیاوي فائدو مینه وه، چه هغوی ورله د دین په مقابله کښې ترجیح ورکړې وه. (د زیاتې تشریح د پاره وګورئ حاشیه نمبر ۱۱۶)

قَالُوْٓا اَلَمْ تَكُنْ اَرْضُ اللّٰهِ وَاسِعَةً فَتُهَاجِرُوْا فِيْهَا ۭ فَاُولٰۗىِٕكَ مَاْوٰىهُمْ جَهَنَّمُ ۭ وَسَاۗءَتْ مَصِيْرًا ﴿۹۷﴾ اِلَّا الْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الرِّجَالِ وَالنِّسَاۗءِ وَالْوِلْدَانِ لَا يَسْتَطِيْعُوْنَ حِيْلَةً وَّلَا يَهْتَدُوْنَ سَبِيْلًا ﴿۹۸﴾ فَاُولٰۗىِٕكَ عَسَى اللّٰهُ اَنْ يَّعْفُوَ عَنْهُمْ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ عَفُوًّا غَفُوْرًا ﴿۹۹﴾ وَمَنْ يُّهَاجِرْ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ يَجِدْ فِي الْاَرْضِ مُرٰغَمًا كَثِيْرًا وَّسَعَةً ۭ وَمَنْ يَّخْرُجْ مِنْۢ بَيْتِهٖ مُهَاجِرًا اِلَى اللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ ثُمَّ يُدْرِكْهُ الْمَوْتُ فَقَدْ وَقَعَ اَجْرُهٗ عَلَي اللّٰهِ ۭ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۱۰۰﴾



فرښتو ورته اووے، ولے دَ خدائے زمکه فراخه نهٔ وه چه تاسو پکښې هجرت کړے وَے؟ دا هغه خلق دی چه جهنم ئے ځائے دے او جهنم ډیر بد ځائے دے. هغه کوم نارینه، زنانه او ماشومان چه واقعی بے وَسه دی او دَ وتلو څه لار او ذریعه نهٔ مومی، نژدے ده چه الله هغوئ معاف کړی، الله ډیر معاف کونکے او بخښونکے دے. څوک چه دَ الله په لار کښې هجرت وکړی هغه به په زمکه کښې دَ پناه دَ پاره ډیر ځائے او دَ اِستوګنے دَ پاره فراخه ځائے بیا مومی، او څوک چه دَ خپل کور نه دَ الله او دَ رسول طرف ته دَ هجرت دَ پاره وُځی. او بیا په لاره کښې ورله مرګ راشی نو دَ هغه اجر دَ الله په ذمه واجب شو، الله ډیر بخښونکے او مهربانه دے[۱۳۱] ع

[۱۳۰] یعنی هر کله چه په یو ځائے کښې دَ خدائے دَ باغیانو غلبه وه او دَ خدائے په قانون باندې عمل کول ممکن نهٔ وُو نو هلته دَ سیدو څه ضرورت وُو؟ دَ هغه ځائے نه بل یو داسے ملک ته ولے نهٔ وتلے چه هلته دَ خدائے په قانون باندې عمل کول ممکن وُو؟

[۱۳۱] دلته په دے خبره پوهیدل پکار دی چه څوک دَ الله په دین باندې ایمان راوړی نو دَ هغه دَ پاره دَ کفر دَ نظام لاندې ژوند تیرول صرف په دوه حالتو کښې جائز کیدے شی. یو دا چه هغه هم په دغه زمکه کښې دَ اسلام دَ غالب کولو او دَ کفر نظام دَ اسلام په نظام کښې دَ بدلولو کوشش کوی لکه څنګه چه پیغمبرانو علیهم السلام او دَ هغوئ اولنو ملګرو کول. دوئیم دا چه په حقیقت کښې دَ هغه دَ هغه ځائے نه دَ وتلو لار نهٔ وی او دیر په تنګئ سره هلته دَ مجبورئ نه اوسیږی. دَ دے دواړو حالتونو بغیر په هر حالت کښې په دارالکفر کښې اوسیدل یو مستقل ګناه ده او دَ دے ګناه دَ پاره دا هیڅ عذر نهٔ دے چه څوک اُووائی چه په دنیا کښې یو داسے دارالاسلام نشته چه هلته موږ هجرت وکړو. که دارالاسلام نشته نو ولے دَ خدائے په زمکه کښې یو غر یا یو ځنګل هم داسے

وَإِذَا ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ أَنْ تَقْصُرُوا مِنَ الصَّلَوٰةِ ﷺ

اوکله چه تاسو په سفر روان شئ نو هیڅ ګناه نه ده چه په مونځ کښې اختصار وکړئ[۱۳۲] (خصوصًا)

نشته چه هلته سړے د دِین په پالنه او دِ بیزو په سیوباند کذا به وکړی او د کفر د حکمونو منلو نه ئې او ساتی. ځنې خلق د دے حدیث نه په مطلب اخستلو کښې غلط شوی دی چه لا هجرت بعد الفتح، یعنی د مکے د فتح کولو نه روستو اوس هجرت نشته. حالانکه دا حدیث د همیشه د پاره نه دے بلکه صرف د هغے وخت د حالاتو مطابق د عربو د پیښو په نسبت دا وینا شوی وه. تر څو پورے چه د عربو زیاته حصه دارالکفر وه او صرف په مدینه کښې او د مدینے په اطرافو کښې اسلامی حکمونه جاری کیدل، نو مسلمانانو ته دا حکم وو چه د هر طرف نه را شی او دارالاسلام ته را جمع شی. خو چه کله مکه فتح شوه او د کفر زور ختم شو او تقریبًا تول ملک د اسلام د اثر لاندے راغے نو نبی اکرم صلی الله علیه وسلم وفرمائیل چه اوس هجرت ته هیڅ حاجت نشته. د دے نه دا مراد هیڅکله نه وو چه د دُنیا د تولو مسلمانانو د پاره په هر حالت کښې د قیامته پورے د هجرت فرضیت ختم شوے دے.

[۱۳۲] چه د امن زمانه وی او سړے په سفر روان شی نو په سفر کښې قصر دا دے چه د کوم وختونو په مونځونو کښې څلور رکعته فرضونو د څلورو په ځائے به دوه رکعته کوی. او د جنګ په حالت کښې د قصر د پاره هیڅ حد مقرر نه دے. د جنګ په حالاتو کښې چه څنګه آسانه وی هغه شان دِ مونځ کوی. که د امامتی مونځ وه نو په امام پسے دِ کوی کنه نو ځان له ځان له دِ کوی. که قبلے ته مخ نه شو کیدے نو هر خوا ته که مخ شو. په سورلئ سور او په روان روان کښې هم کیدے شی. که رکوع او سجده ممکنه نه وه نو په اشاره سره دِ وکړی. که ضرورت راشی نو په مونځ کښې ګرځیدے هم شی. که په جامو باندے وینه وی نو هم څه ګناه نشته. که بیا هم خطره زیاته وی او مونځ کول ګران وی نو مونځ روستو کولے هم شی لکه څنګه چه په جنګ خندق کښې شوی وو.

په دیکښې اختلاف دے چه په سفر کښې به صرف فرض کوی او که سنت به ورسره هم کوی. د نبی صلی الله علیه وسلم نه دا ثابته ده چه هغه به په سفر کښې د سحر سنت او د ماښام وترضرور کول او په باقی وختونو کښې به ئې صرف فرض کول او د سنتو کولو ثبوت ئې نشته. البته د نفل مونځ وخت که به ملاؤ یدو نو کول به ئې. ان تر دے پورے چه په سورلئ سوریدے هم نفل کول. په دے وجه عبدالله بن عمر خلق په سفر کښې د سحر د سنتو نه بغیر د نورو وختونو د سنتو کولو نه منع کړی دی. خو اکثر عالمان سنت پریښودلو او کولو دواړو ته جائز وائی او د بنده اختیار ته ئې پریږدی. د حنفیانو غوره مذهب دا دے چه مسافر کله په لاره روان وی نو سنت نه کول بهتر دی او کله چه دمه کوی او اطمینان ورته حاصل شی نو بیا کول بهتر دی.

ځنې اماما نو د قصر د سفر د پاره دا شرط لګولے دے چه هغه سفر دِ فی سبیل الله وی، لکه جهاد، حج، عمره او علم زده کول وغیره. د ابن عمرؓ، د ابن مسعودؓ او د عطاء دا فتوی ده. امام شافعیؒ او امام احمدؒ وائی

چه سفر د داسې مقصد دپاره وي چه هغه په شریعت کښې جائز وي، د حرام او د ناجائزه غرض دپاره چه کوم سفر وي په هغې کښې د قصر کولو اجازت نشته۔ حنفیه علماء وائي چه قصر په هر سفر کښې کیدے شي، پاتې شو سفر، نو هغه په خپل ځائے باندې د ثواب یا د عذاب مستحق کیدے شي، خو د قصر په حکم باندې د هغې هیڅ اثر نه پریوځي۔

بعض امامانو د "فَلَيْسَ عَلَيْكُمْ جُنَاحٌ" (هیڅ ګناه نه ده) نه دا مطلب اخستے دے چه په سفر کښې قصر کول ضروري نه دي صرف د قصر اجازت دے، که څوک غواړي نو قصر دې وکړي کنې نو پوره مونځ دې وکړي۔ دا رائے امام شافعيؒ اختیار کړې ده، خو بیا هم هغه قصر کول بهتر ګڼړي او قصر نه کولو ته بهتره شیز پریښودل وائي۔ د امام احمدؒ په نز باندې قصر کول واجب خو نه دي، خو نه کول ئے مکروه دي. د امام ابوحنیفهؒ په نز باندې قصر کول واجب دي او په یو روایت کښې دا رائے د امام مالکؒ هم ده. د حدیث نه ثابته ده چه نبي صلی الله علیه وسلم همیشه په سفر کښې قصر کړے دے او په یو معتبر روایت کښې دا نشته چه نبيؐ چرته په سفر کښې څلور رکعته مونځ کړے دے. ابن عمرؓ فرمائي چه زه د نبي صلی الله علیه وسلم او د ابوبکر او د عمر او د عثمان رضی الله عنهم سره په سفرونو کښې پاتې شوے یم او ما چرته نه دي لیدلي چه هغوئ پوره مونځ کړے دے۔ د دے په تائید کښې د ابن عباس او د نورو ډیرو صحابو نه هم مستند روایتونه نقل کړے شوي دي. حضرت عثمانؓ چه کله د حج په موقع باندې په منیٰ کښې څلور رکعته مونځ ورکړو نو صحابو پرې اعتراض وکړو او حضرت عثمانؓ په دے جواب خلق مطمئن کړل چه ما په مکه کښې واده کړے دے، او ما د نبي صلی الله علیه وسلم نه اوریدلي دي چه څوک په یو ښار کښې واده وکړي نو لکه چه دے د هغه ښار اوسیدونکے شو په دے وجه ما دلته قصر و نه کړو. د دے ډیرو روایتونو خلاف دوه روایتونه د حضرت عائشهؓ نه روایت شوي دي چه د هغې نه دا معلومیږي چه قصر کول او پوره مونځ کول دواړه صحیح دي، لیکن دا روایتونه یو خو د سند په لحاظ سره ضعیف دي او بل په خپله د حضرت عائشې د مسلک نه خلاف دي. البته دا صحیح ده چه یو نیم حالت د سفر او د غیر سفر په مینځ کښې دي چه په هغې کښې په یو عارضي دمه ځائے باندې د موقعے مطابق کله قصر او کله پوره مونځ ادا کیدے شي۔ او غالباً حضرت عائشهؓ به د دے حالت په حقله فرمائیلي دي چه نبي صلی الله علیه وسلم په سفر کښې قصر هم کړے دے او پوره مونځ ئے هم کړے دے۔ پاتې شو د قرآن دا الفاظ چه "هیڅ ګناه نه ده که قصر وکړئ" نو د دے مثال د سورة بقرې په نولسم رکوع کښې تیر شوے دے چه هلته د صفا او د مروه په مینځ کښې د سعي په حقله هم دا الفاظ ویلے شوي دي، حالانکه دا سعي د حج په کارونو کښې واجب ده۔ په اصل کښې په دے دواړو ځایونو کښې د دے الفاظو د وئیلو مقصد د خلقو نه دا یره لرے کول دي چه په دے کولو کښې نه ګناه شته او نه په ثواب کښې څه کمے۔

د ظاهریه په نز باندې د قصر دپاره د سفر هیڅ مقدار نشته، په هر سفر کښې قصر کیدے شي که کم وي او که زیات وي. د امام مالکؒ په نز باندې د اته څلویښتو میلو (یعنی د اوه اویا کلومیټرو) نه په کم

إِنْ خِفْتُمْ أَنْ يَفْتِنَكُمُ الَّذِينَ كَفَرُوا ۚ إِنَّ الْكَافِرِينَ كَانُوا لَكُمْ عَدُوًّا مُبِينًا ﴿١٠١﴾ وَإِذَا كُنْتَ فِيهِمْ فَأَقَمْتَ لَهُمُ

چه کله تاسو سره ویره نه کړی چه کافران به مو تنګوي[133] ځکه چه کافران ښکاره ستاسو دښمنۍ ته تیار ولاړ دي.

او اے نبیؐ، هرکله چه ته په مسلمانانو کښې موجود یې او (د جنګ په وخت کښې) هغوی له د

یا دیرش ورځے او دیرش ورځے نه په کم سفر کښې قصر نشته. هم دا رائے د امام احمدؒ ده. د امسلک د ابن عباسؓ هم دے او د امام شافعیؒ نه هم یو قول د دے په تائید کښې روایت شوے دے. حضرت انسؓ د پنځلسو میلو (یعنی ۲۴ کلومیټره) په سفر کښې قصر کول ته جائز ووئیل. امام اوزاعی او امام زهری د حضرت عمرؓ دا رائے خوښه کړې ده چه د یوے ورځے سفر د قصر د پاره کافی دے. حسن بصری د دوو ورځو او امام ابو یوسف د دوو ورځو نه په زیات سفر کښې قصر کول ته جائز وائی. د امام ابو حنیفه په نیز یانډ چه په کوم سفر کښې پیاده یا اوښ په منزل درے ورځے لګی (یعنی تقریباً اتلس فرسنګ یا خلور پنځوس میله یا څه د پاسه ۸۰ کلومیټره) په هغے کښې قصر کیدے شی. هم دا رائے د ابن عمرؓ، د ابن مسعود او د حضرت عثمان رضی الله عنهم ده.

په سفر کښې د ننه د قیام کولو موده د مختلفو امامانو په نیز مختلفه ده. د امام احمد په نیز چه چا د خلورو ورځو د قیام اراده وکړه هغه به پوره مونځ کوی. د امام مالک او د امام شافعی په نیز چه چرته د څلورو ورځو نه زیات د قیام کولو اراده وی هلته قصر جائز نه دے. امام اوزاعی دیارلس[13] ورځے او امام ابو حنیفه پنځلس[15] ورځے یا د دے نه زیاتے ورځے د قیام کولو په اراده د پوره مونځ کولو حکم کوی. د نبی صلی الله علیه وسلم نه په دے باره کښې څه تفصیلی حکم روایت کړے شوے نه دے. او که په یو ځائے کښې څوک د مجبورۍ نه حصار شوے وی او هر وخت ئے دا خیال وی که مجبوری ختم شوه نو وطن ته به ځم، نو په دے مسئله کښې د ټولو اتفاق دے چه ترڅو پورے حصار وی ترهغے پورے به قصر کوی. د صحابه کرامو ډیر مثالونه دا سے نقل شوی دی چه هغوی په دا سے حالاتو کښې دوه دوه کاله مسلسل قصر کړے دے. امام احمد بن حنبل په دے قیاس کړے دے او قیدی ته ئے د قید په ټوله زمانه کښې د قصر کولو اجازت ورکړے دے.

[133] ظاهریانو او خارجیانو د دے فقرے نه دا مطلب اخستے دے چه قصر صرف د جنګ د حالت د پاره دے او د امن په حالت کښې په سفر کښې قصر کول د قرآن خلاف دے. لیکن په حدیث کښې د مستند روایت نه ثابته ده چه کله حضرت عمرؓ هم دا شبه نبی صلی الله علیه وسلم ته وړاندې کړه نو نبیؐ ورته وفرمائیل صدقة تصدق الله بها علیکم فاقبلوا صدقته" د قصر د اجازت یو انعام دے چه الله په تاسو باندې کړے دے، نو د هغه انعام قبول کړئ". دا خبره قریباً په تواتر سره ثابته ده چه نبی صلی الله علیه وسلم د امن او د خطرے په دواړو

الصَّلٰوةَ فَلْتَقُمْ طَآئِفَةٌ مِّنْهُمْ مَّعَكَ وَلْيَاْخُذُوْٓا اَسْلِحَتَهُمْ ۫ فَاِذَا سَجَدُوْا فَلْيَكُوْنُوْا مِنْ وَّرَآئِكُمْ ۪ وَلْتَاْتِ طَآئِفَةٌ اُخْرٰى لَمْ يُصَلُّوْا فَلْيُصَلُّوْا مَعَكَ وَلْيَاْخُذُوْا حِذْرَهُمْ وَاَسْلِحَتَهُمْ ۚ وَدَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا لَوْ تَغْفُلُوْنَ عَنْ اَسْلِحَتِكُمْ وَاَمْتِعَتِكُمْ

مونځ درولو دپاره ودریږي[۱۳۴] نو پکار دي چه په هغوئ کښ یوه ډله ستاسره ودریږي او خپله وسله دِ دَ ځان سره واخلي، نو بیا چه کله هغوئ سجده وُکړي[۱۳۵] نو روستو دِ لاړ شي او بله ډله چه لا مونځ ئې نۀ دے کړے هغه دِ راشي او ستا سره دِ مونځ وُکړي هغه دِ هم بیدار وُسي او دَ ځان سره دِ خپله وسله واخلي،[۱۳۶] ځکه چه کافران په دے انتظار کښ دي چه کۀ تاسو دَ خپلو وسلو او دَ خپلو سامانونو نه لږ شان غافله شئ نو

حالت نۀ کښه په سفر کښه تشریف ږوړه: ابن عباس صحابیان کوی چه "ان النبی صلی الله علیه وسلم خرج من المدینة إلى مكة لا یخاف الا رب العٰلمین فصلی رکعتین" نبی صلی الله علیه وسلم د مدینے نه مکے ته تشریف ویوړ او په هغه وخت کښے د هغه په زړه کښے دَ رب العٰلمین نه بغیر د بل چا یره نۀ وه، خو بیا هم دوه رکعته ئې وُکړل" په دے وجه ما په ترجمه کښے دَ "خصوصاً" لفظ په دے وُکړ خو کښے د تنه زیات لیکلے دے.

[۱۳۴] امام ابو یوسف او حسن بن زیاد دے الفاظو نه دا گمان کړے دے چه صلوٰة خوف یوځے دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ زمانے دپاره خاص وو. لیکن په قرآن کښے دا سے ډیر مثالونه موجود دي چه یو حکم نبی صلی الله علیه وسلم ته شوے مے هم هغه حکم د هغه نه روستو د هغه د جانشینو دپاره دے. ځکه خو هیڅ وجه نه راسخیږي کیږي چه صلوٰة خوف دَ نبی سره خاص کړے شي. بیا د ډیرو تد رمنو صحابو نه دا ثابته ده چه هغوئ دَ نبی نه روستو هم صلوٰة خوف کړے دے او په دے باره کښے دَ یو صحابي اختلاف نشته.

[۱۳۵] د صلوٰة خوف دا حکم دَ هغې حالت دپاره دے چه دَ دُشمن دَ حملے خطره وي خو لا میدان جنګ ګرم نۀ وي. او چه جنګ بالکل ګرم وي نو بیا دَ حنفیا نو په نیز مونځ روستو کولے شي. دَ امام مالک او دَ امام ثوري په نیز که رکوع او سجده نشي کیدے نو په اشاره دِ مونځ کوي. دَ امام شافعيؒ په نیز دَ مانځه په حالت کښے لږ شان دَ هل تکول هم کولے شي. دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه دا ثابته ده چه هغه په غزوهٔ خندق کښے څلور مونځونه نۀ وُو کړي او بیا ئې روستو په ترتیب سره ادا کړل، حالانکه دَ غزوه خندق نه وړاندې دَ صلوٰة خوف حکم راغلے وُو.

[۱۳۶] دَ صلوٰة خوف کولو زیات تعلق دَ جنګی حالاتو سره دے. نبی صلی الله علیه وسلم په مختلفو حالاتو کښے په مختلفو طریقو سره مونځ کړے دے او دَ هغه وخت امام ته اجازت دے چه دَ جنګی حالاتو مطابق په دے طریقو کښے یو طریقه اختیار کړي.

فَيَمِيلُونَ عَلَيْكُم مَّيْلَةً وَاحِدَةً ۚ وَلَا جُنَاحَ عَلَيْكُمْ إِن كَانَ بِكُمْ أَذًى مِّن مَّطَرٍ أَوْ كُنتُم مَّرْضَىٰ أَن تَضَعُوا أَسْلِحَتَكُمْ ۖ وَخُذُوا حِذْرَكُمْ ۗ إِنَّ اللَّهَ أَعَدَّ لِلْكَافِرِينَ عَذَابًا مُّهِينًا ﴿١٠٢﴾ فَإِذَا قَضَيْتُمُ الصَّلَاةَ فَاذْكُرُوا اللَّهَ قِيَامًا

چه په یو ځل درباندې حمله وکړي البته که باران د وجې نه تاسو ته تکلیف وي یا ناروغه یئ نو په وسله ایښودو کښې ګناه نشته، خو بیا هم بیدار اوسئ. یقین لرئ چه الله د کافرانو دپاره رسوا کونکے عذاب تیار ساتلے دے۔[۱۳۷] بیا چه کله د مانځه نه فارغه شئ نو په ولاړه

---

یوه طریقه داده چه د فوج یوه حصه دې د امام سره موښځ کوي او بله حصه دې د دشمن مقابلے ته ودریږي. بیا چه کله یو رکعت پوره شي نو اوله حصه دې سلام واړه وي او لاړه دې شي او بله حصه دې راشي دویم رکعت دې د امام سره پوره کړي په دے طریقه د امام به دوه رکعته وشي او د فوج به یو یو رکعت وشي۔

دریمه طریقه داده چه یوه حصه دې د امام سره یو رکعت وکړي او بیا دې لاړه شي. بیا دویمه حصه دې راشي یو رکعت دې د امام سره وکړي، بیا دواړه حصے دې په نمبر نمبر راځي او چل یو یو رکعت دې ځان له کوي. په دے طریقه به یو یو رکعت د امام سره وشي او یو یو رکعت به ځان له ځان له۔

دریمه طریقه داده چه د فوج یوه حصه دې د امام سره دوه رکعته وکړي او د تشهد نه روستو دې سلام واړه وي او لاړه دې شي. بیا دویمه حصه دې د امام سره په دریم رکعت کښے شامله شي او د امام سره دې سلام واړه وي. په دے طریقه به د امام څلور رکعته او د فوج دوه دوه رکعته وشي۔

څلورمه طریقه داده چه د فوج یوه حصه دې د امام سره یو رکعت وکړي او کله چه امام دویم رکعت ته پاسي نو مقتدي دې باقي یو رکعت ځان له وکړي او سلام دې واړه وي. بیا دې دویمه حصه د امام سره په دویم رکعت کښے شریکه شي چه امام سلام واړه وي نو دوئ دې پاسي او یو رکعت دې ځان له وکړي. په دے طریقه کښے به امام په دویم رکعت کښے تیا ما اوږد کوي.

اولنۍ طریقه ابن عباس، جابر بن عبدالله او مجاهد روایت کړي ده. دویمه طریقه عبدالله ابن مسعود روایت کړي ده او حنفیانو دے ته ترجیح ورکړي ده. دریمه طریقه حسن بصري د ابوبکره نه روایت کړي ده. او څلورمه طریقه سهل بن ابي حثمه روایت کړې ده او دے طریقے ته امام شافعي او امام مالک د څه اختلاف سره ترجیح ورکړي ده.

د دے نه علاوه د صلوٰة خوف نورے طریقے هم شته چه تفصیل ئې په مبسوطات کښے ملاویدے شي۔

[۱۳۷] یعني د کوم احتیاط کولو چه تاسو ته حکم کیږي دا هسے یو دنیاوي تدبیر دے، په اصل کښے خو فتح او

وَّقُعُوْدًا وَّعَلٰى جُنُوْبِكُمْ ۚ فَاِذَا اطْمَاْنَنْتُمْ فَاَقِيْمُوا الصَّلٰوةَ ۚ اِنَّ الصَّلٰوةَ كَانَتْ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ كِتٰبًا مَّوْقُوْتًا ﴿۱۰۳﴾ وَلَا تَهِنُوْا فِى ابْتِغَآءِ الْقَوْمِ ؕ اِنْ تَكُوْنُوْا تَاْلَمُوْنَ فَاِنَّهُمْ يَاْلَمُوْنَ كَمَا تَاْلَمُوْنَ ۚ وَتَرْجُوْنَ مِنَ اللّٰهِ مَا لَا يَرْجُوْنَ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿۱۰۴﴾ ع اِنَّاۤ اَنْزَلْنَاۤ اِلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ لِتَحْكُمَ بَيْنَ النَّاسِ



او پہ ناستہ او پہ ملاستہ او پہ هر حال کښ الله یادوئ. او کله چه اطمینان درته نصیب شی نو پوره مونځ کوئ. مونځ په حقیقت کښ داسے فرض دے چه د وخت د پابندئ سره په مؤمنانو باندے لازم کړے شوے دے.

۱۳۸ او د دغه قوم په تعقیب کښ کمزوری مه ښکاره کوئ. که تاسو ته تکلیف رسیږی نو ستاسو په شان هغوئ ته هم تکلیف رسیږی. او تاسو د الله نه د هغه څیز امید لرئ چه د هغے امید د هغوئ نشته. ۱۳۹ الله په هر څه پوه دے او د حکمت خاوند دے. ع

اے نبی، ۱۴۰ مونږه دا کتاب تا ته د حق سره نازل کړے دے، د دے د پاره چه الله

شکست تاسو پر تدبیرونو باندے نه دی، بلکه د الله په فیصله باندے دی. څکه خو تاسو له پکار دی چه په دے احتیاطی کارونو باندے د عمل کولو سره سره دے خبرے یقین ولرئ چه څوک د الله نه په ټوکو باندے مرکوی، الله به هغوئ رسوا کوی.

۱۳۸ یعنی د کفارو د ډلے چه په هغه وخت کښے د اسلام په لار کښے پرلوئ خنډ ؤد.

۱۳۹ یعنی دیره د تعجب خبره ده چه مؤمنان د حق د پاره هغو سره تکلیفونه هم برداشت نه کړی څو مره چه کفار د باطل د پاره برداشت کوی، حالانکه د کفارو مخے ته صرف دُنیا او د دُنیا نیمګړے فائدے دی او مؤمنان د خپل پروردګار د رضا او د هغه د همیشه انعامونو اُمید لرونکی دی.

۱۴۰ په دے رکوع کښے او د دے نه پس دے روستو رکوع کښے په یو داسے اهمه معامله باندے بحث شوے دے چه په هغه زمانه کښے پیښه شوی وه. قصه دا ده چه د انصارو په قبیله بنی ظفر کښے یو سړے ؤ چه نوم ئے طعمه یا بشیر بن اُبیرق ؤ. دهٔ د یو انصاری نه یوه زغره پټه کړله. کله چه په هغے پسے لټون شروع شو نو هغه هغه د یو یهودی سره کیښوده. د زغرے مالک نبی صلی الله علیه وسلم ته مقدمه پیش کړه او په طعمه باندے ئے شک ظاهر کړو، خو طعمه او د هغه عزیزانو او د بنی ظفر قبیلے نورو ډیرو خلقو په خپلو کښے اتفاق اوکړو او په یهودی باندے ئے الزام اولګولو. د یهودی نه چه تپوس وشو نو هغه خپله صفائی پیش کړه. لیکن د طعمه خلقو د طعمه په حق کښے وکالت کولو او وئیل ئے چه دا یهودی خبیث دے، د حق نه انکار کوی او د الله رسول نه منی، د دهٔ په خبره هڅه اعتبار دے نه کیږی زمونږ منل پکار دی چه مونږ مسلمانان یو. قریب وه چه بنی ظاهری خبرو نه متاثره شو او فیصله ئے د یهودی خلاف کړے وے او د زغرے مالک ته ئے هم په بنی اُبیرق باندے

بِمَآ اَرٰىكَ اللّٰهُ ؕ وَلَا تَكُنۡ لِّلۡخَآئِنِيۡنَ خَصِيۡمًا ۝۱۰۵ وَّاسۡتَغۡفِرِ اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ كَانَ غَفُوۡرًا رَّحِيۡمًا ۝۱۰۶ وَلَا تُجَادِلۡ عَنِ الَّذِيۡنَ يَخۡتَانُوۡنَ اَنۡفُسَهُمۡ ؕ اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ مَنۡ كَانَ خَوَّانًا اَثِيۡمًا ۝۱۰۷ يَّسۡتَخۡفُوۡنَ

تا ته کومه نیغه لار خودلے ده دَ هغے مطابق په خلقو کښ فیصلے کوه ۔ ته دَ خیانت کوونکو په جګړه کښ طرفدار مه جوړیږه، او د الله نه معافی غواړه، هغه ډیر بخښونکے او رحم والا دے ۔ څوک چه دَ خپلو ځانو نو سره خیانت کوی[141] ته دَ هغوی حمایت مه کوه ۔ دَ الله دا سړے خوښ نه دے چه خیانت کروی او پیشه ئے دَ ګناه وی ۔ دا خلق خپل کارونه دَ

په النامرکولو خبردارے ورکړے وے ۔ په دیګښے دی راغله او تهول حقیقت ښکاره شو ۔

که چرے نبی صلی الله علیه وسلم دَ ظاهری خبرو مطابق فیصله کړے وے نو دَ یو قاضی په حیثیت سره دا دَ هغهٔ دپاره ګناه نهٔ وه ۔ او قاضیانو له اکثر دا سے مقدمے راځی چه غلطے ګواهئ ورته خلق وکړی او دحقیقت نه خلاف فیصلے ترے صادرے کړی ۔ لیکن په یو داسے وخت کښے چه دَ اسلام او دَ کفر په میځ کښے یو زبردست کشمکش شروع وُو، که نبی صلی الله علیه وسلم دَ ظاهری خبرو مطابق دَ یهودی خلاف فیصله کړے وے نو دَ اسلام مخالفینو ته به دَ پیغمبر خلاف او دَ اسلام خلاف او دَ مسلمانانو خلاف یوه زبردسته وسله په لاس ورغلے وے هغوی به هر ځائے کښے دا وئیل چه دَ لته حق او انصاف په دوی کښے کوم ځائے دے، دوی کښے خوهم هغه ډله بازی او بدنیتی ده چه دَ کومے خلاف دوی تبلیغ کوی ۔ دَ دے خطرے نه دَ بچ کیدلو دپاره الله تعالی خاص طور په دے مقدمه کښے مداخلت وکړو ۔

په دے رکوع کانو کښے یو طرفته هغه مسلمانان سخت ملامته کړے شوی دی چه صرف دَ خاندان او دَ قبیلے د خاطره ئے دَ مجرمانو طرفداری کړی وه ۔ بل طرفته عامو مسلمانانو ته دا سبق ورکړے شوے دے چه دَ انصاف په معامله کښے دِ لحاظ داری مه کوئ ۔ دا هیڅ دیانتداری نهٔ ده چه دَ خپلے ډلے سړے که په ناحقه وی خو طرفداری ئے کوئ او دَ بلے ډلے سړے که په حقه وی خو بے انصافی ورسره کوئ ۔

[141] څوک چه دَ بل سره خیانت کوی هغه په اصل کښے دَ ټولو نه اول دَ ځان سره خیانت کوی حکه چه دَ زړهٔ او دَ ماغو کوم طاقتونه دَ دهٔ سره دَ امانت په طور دی، په هغوی باندے دے زور راوړی چه په خیانت کولو کښے دَ دهٔ سره ملګری شی ۔ او خپل زړهٔ د وسره دباؤ کړی چه هغه بیا دَ خیانت په کار کښے دهٔ له مخے نه نشی راتلے ۔ انسان چه کله په خپل ځان کښے د نه دا ظالمانه طاقت حد ته ورسوی نو پس دَ هغے بهرَ هغه نه دَ خیانت او ګناه کار کیدی

مِنَ النَّاسِ وَلَا يَسْتَخْفُونَ مِنَ اللَّهِ وَهُوَ مَعَهُمْ إِذْ يُبَيِّتُونَ مَا لَا يَرْضَىٰ مِنَ الْقَوْلِ ۚ وَكَانَ اللَّهُ بِمَا يَعْمَلُونَ مُحِيطًا ﴿١٠٨﴾ هَا أَنتُمْ هَٰؤُلَاءِ جَادَلْتُمْ عَنْهُمْ فِي الْحَيَاةِ الدُّنْيَا فَمَن يُجَادِلُ اللَّهَ عَنْهُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَم مَّن يَكُونُ عَلَيْهِمْ وَكِيلًا ﴿١٠٩﴾ وَمَن يَعْمَلْ سُوءًا أَوْ يَظْلِمْ نَفْسَهُ ثُمَّ يَسْتَغْفِرِ اللَّهَ يَجِدِ اللَّهَ غَفُورًا رَّحِيمًا ﴿١١٠﴾ وَمَن يَكْسِبْ إِثْمًا فَإِنَّمَا يَكْسِبُهُ عَلَىٰ نَفْسِهِ ۚ وَكَانَ اللَّهُ عَلِيمًا حَكِيمًا ﴿١١١﴾ وَمَن يَكْسِبْ خَطِيئَةً أَوْ إِثْمًا ثُمَّ يَرْمِ بِهِ بَرِيئًا فَقَدِ

---

انسانانو نه پټولے شی خو د خدائے نه ئے نشی پټولے. هغه خو په هغه وخت کښ هم د دوی سره وی کله چه دوی پټ په شپو کښ د هغه د مرضی خلاف مشورے کوی. د دوی په ټولو عملونو باندې الله قابو لرونکے (محیط) دے. بس! تاسو خو په دے دنیا کښ د مجرمانو د طرفه جګړه وکړه، خو د قیامت په ورځ به د دوی د طرفه څوک جګړه کوی؟ آخو هلته به د دوی وکیل څوک وی؛ که څوک غلط کار وکړی یا په خپل ځان باندې ظلم وکړی او بیا الله تر د معافئ درخواست وکړی نو الله به معاف کونکے او رحم کونکے بیا مومی. خو چه څوک بدی وګټی نو د هغه دا ګټه به د هغه د پاره وبال وی، الله د هر څه نه خبر دے او هغه حکیم او دانا دے. او چا چه خطا کار وکړو او یا ئے ګناه وکړه بیا ئے د هغے الزام په یو بے ګناه سړی باندې ولګولو نو



احْتَمَلَ بُهْتَانًا وَّ اِثْمًا مُّبِيْنًا ﴿١١٢﴾ وَلَوْ لَا فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكَ وَ رَحْمَتُهٗ
لَهَمَّتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْهُمْ اَنْ يُّضِلُّوْكَ ؕ وَ مَا يُضِلُّوْنَ اِلَّاۤ اَنْفُسَهُمْ
وَ مَا يَضُرُّوْنَكَ مِنْ شَیْءٍ ؕ وَ اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلَيْكَ الْكِتٰبَ وَ الْحِكْمَةَ
وَ عَلَّمَكَ مَا لَمْ تَكُنْ تَعْلَمُ ؕ وَ كَانَ فَضْلُ اللّٰهِ عَلَيْكَ عَظِيْمًا ﴿١١٣﴾
لَا خَيْرَ فِیْ كَثِيْرٍ مِّنْ نَّجْوٰىهُمْ اِلَّا مَنْ اَمَرَ بِصَدَقَةٍ اَوْ مَعْرُوْفٍ
اَوْ اِصْلَاحٍۭ بَيْنَ النَّاسِ ؕ وَ مَنْ يَّفْعَلْ ذٰلِكَ ابْتِغَآءَ مَرْضَاتِ
اللّٰهِ فَسَوْفَ نُؤْتِيْهِ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿١١٤﴾ وَ مَنْ يُّشَاقِقِ الرَّسُوْلَ

/ هغه خود غټ دروغ او ښکاره ګناه ېپېټې په ځان بار کړو۔

اے نبیؐ، که د الله فضل په تا باندې نه وے او د هغه رحمت درسره شامل نه وے نو په دوی کښې یوے ډلے دا فیصله کړې وه چه تا په دوکه کښې واچوی، حال دا دے چه په حقیقت کښې هغوی د ځان نه بغیر بل څوک نه دوکه کول او تا ته هیڅ نقصان نه شو در رسولے۔[142] الله په تا باندې کتاب او حکمت نازل کړے دے او تا ته ئے هر هغه څه خودلی دی چه تا ته معلوم نه وو او د هغه فضل په تا باندې ډیر دے۔

د خلقو د غونډې په پټو خبرو کښې اکثر څه ښیګړه نه وی. هو که څوک په پټه باندې د صدقے او د خیرات ورکولو چا ته څه اُووائی یا د یو نیک کار دپاره یا د خلقو په معاملاتو کښې د اصلاح را وستلو دپاره چا ته څه اُووائی نو دا بیا بنه خبره ده، او څوک چه د الله د رضا دپاره دا سے کوی هغه له به موږ ډیر اجر ورکوؤ. خو چه چا د رسولؐ مخالفت ته ملا تړلې وی او

[142] یعنی که هغوی په خپلو غلطو خبرو ته دوکه کړے هم وے او ستا نه ئے د بے انصافئ فیصله هم حاصله کړے وے نو نقصان د هغوی وو تا ته هیڅ نقصان نه وو. ځکه چه د خدائ په نیز به مجرمان هغوی وو نه به ته وے. څوک چه حاکم له دوکه ورکړی او په هغه غلطه فیصله ؤکړی نو هغه خپله خپل ځان په دے دوکه کښې اچوی چه ګنی په دے چل حق زما سره شو، حالانکه د الله په نیز چه حق د چا دے هغه هم د هغه دے، او د دوکه شوی حاکم په فیصله حقیقت نه بدلیږی۔ (وګورئ سورة بقره حاشیه نمبر ۱۹)۔



مِنْ بَعْدِ مَا تَبَيَّنَ لَهُ الْهُدٰى وَيَتَّبِعْ غَيْرَ سَبِيْلِ الْمُؤْمِنِيْنَ نُوَلِّهٖ مَا تَوَلّٰى وَنُصْلِهٖ جَهَنَّمَ ۭ وَسَاۗءَتْ مَصِيْرًا ﴿۱۱۵﴾ اِنَّ اللّٰهَ لَا يَغْفِرُ اَنْ يُّشْرَكَ بِهٖ وَيَغْفِرُ مَا دُوْنَ ذٰلِكَ لِمَنْ يَّشَاۗءُ ۭ وَمَنْ يُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًاۢ بَعِيْدًا ﴿۱۱۶﴾ اِنْ يَّدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِهٖٓ اِلَّآ اِنٰثًا ۚ وَاِنْ يَّدْعُوْنَ اِلَّا شَيْطٰنًا مَّرِيْدًا ﴿۱۱۷﴾

دَ مؤمنانو د لارے نه بغیر په بله لار روان شی، او حال دا وی چه نیغه لار ورته ښکاره شوی وی، نو هغه به مونږ هم هغے طرفته بوځو کوم طرفته چه هغه په خپله وګرزیدو[۱۴۳] او هغه به جهنم ته غورزوو چه بدترین ځائے دَ قرار دے ع

د الله سره[۱۴۴] خوبی دَ یو شرک بخښنه نشته، دَ دے نه بغیر نور هر څه معاف کیدے شی چه هغه ئے معاف کول وغواړی، چا چه د الله سره څوک شریک کړل هغه خو دَ نیغے لارے نه ډیر لرے لاړو۔ هغوئ دَ الله پرځائے دَ زنانه بتانو عبادت کوی۔ هغوئ دَ هغے باغی شیطان عبادت کوی[۱۴۵]

۱۴۳؎ هرکله چه پردے پاسنئ مقدمه کښے بنی صلی الله علیه وسلم دَ مسلمان خلاف او دَ یهودی په حق کښے فیصله وکړه نو دغے منافق خپل جاهلیت شروع کړو دَ مدینے نه مکے ته لاړو او دَ اسلام او دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ دُشمنانو سره ملاؤ شو او مخالفت ئے شروع کړو۔ په دے آیت کښے د هغهٔ دے حرکت ته اشاره ده۔

۱۴۴؎ په دے رکوع کښے د غه پاسنئ خبره جاری روانه ده۔ وائی چه دغه جاهل سړے په غصه کښے په کومه لار روان شو هغه څومره لاره ده، او چه دَ صالحانو خلقو نه جُدا شو نو دَ څنګه خلقو سره ملګرے شو۔

۱۴۵؎ هیڅوک دَ شیطان په دا سے طریقه عبادت نهٔ کوی چه خدائے ئے ترجوړ کړی او بیا دَ هغه په وړاندِ سر په سجده ږدکوی. البته چه سړے دَ خپل نفس واګے دَ شیطان په لاس کښے ورکړی، چه کوم خوا ته ئے هغه بوځی هلته دَے ځی، لکه چه دَے دَ هغهٔ بنده وی او هغه دده خدائے وی، نو دے ته دَ شیطان عبادت وائی. دَ دے نه دا معلومه شوه چه څوک د چا حکونه بے پتوسه منی او په ړند وسترګو په هغه پسے روان وی نو دے ته هم عبادت وائی او په حقیقت کښے دَے دَ هغه عبادت کوی۔

لَّعَنَهُ اللّٰهُ ۘ وَقَالَ لَاَتَّخِذَنَّ مِنْ عِبَادِكَ نَصِيْبًا مَّفْرُوْضًا ﴿۱۱۸﴾ وَّلَاُضِلَّنَّهُمْ وَلَاُمَنِّيَنَّهُمْ وَلَاٰمُرَنَّهُمْ فَلَيُبَتِّكُنَّ اٰذَانَ الْاَنْعَامِ وَلَاٰمُرَنَّهُمْ فَلَيُغَيِّرُنَّ خَلْقَ اللّٰهِ ؕ وَمَنْ يَّتَّخِذِ الشَّيْطٰنَ وَلِيًّا مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ فَقَدْ خَسِرَ خُسْرَانًا مُّبِيْنًا ﴿۱۱۹﴾ يَعِدُهُمْ

چه الله پرلعنت کړې ده. (هغوی د هغه شیطان خدمتی) چه الله ته یې ویلی وو چه "ستا د بندیانو نه به ضرور یوه مقرره حصه اخلم،[۱۴۶] زه به هغوی بې لاره کوم، زه به ئې په طمع اُمیدونو کښې اچوم او زه به ورته حکم کوم او هغوی به زما په حکم د څناورو غوږونه څیره[۱۴۷] وی او زه به ورته حکم کوم او هغوی به زما په حکم د خدائے په جوړښ کښې ردوبدل[۱۴۸] راولی." دا شیطان چه چا د الله پځائے څان له خپل ولی او سرپرست جوړ کړو هغه ښکاره په نقصان کښې پرېوتو. هغه دوی خلقو سره وعدې کوی

[۱۴۶] یعنی زه به هغوی په دوکه دې دې راضی کوم چه هغوی به د خپلو وختونو، کوششونو، محنتونو او د خپلو قوتونو او قابلیتونو او د خپلو اولادو او خپلو مالونو ډیره حصه زما په لار کښې لګوی.

[۱۴۷] دا د عربو وهمونو ته اشاره ده. په عربو کښې دا قاعده وه چه یوه اُوښه به پنځه یا لس بچی راوړل نو د هغې غوږونه به ئې څیری کړل او د یو بُت په نوم به ئې پرېښودله او د هغې نه به ئې بیا کار اخستل حرام ګڼڼل. دغسې چه د یو اُوښ د نطفې نه به لس بچی وُشو نو هغه له به ئې هم غوږونه څیره کړل او د یو بُت په نوم به ئې خیراتی پرېښودو. څیری غوږ به ددې خبرې علامه وه چه دا صدقه شوې څاروی دې.

[۱۴۸] د خدائے په جوړښ کښې د ردوبدل را وستلو مطلب دا نه دې چه د څیزونو په پیدائښتی شکل کښې ردوبدل څوک راولی. که دائے مطلب شی بیا خو دا انسان د ژوند کړې ټول کارونه د شیطان په لمسه کېږی. ځکه چه تهذیب خونوم د هغې تبدیلئ دے چه انسان ئے د خدائے په جوړ شوؤ څیزونو کښې کوی. دلته چه کوم ردوبدل ته شیطانی کاروئیلے شوې دې هغه دا دې چه انسان د یو څیز نه هغه کار واخلی چه د هغې دپاره خدائے هغه نه وی پیدا کړے، او د یو څیز نه هغه کار وانه خلی چه د هغې دپاره خدائے هغه پیدا کړې وی. یعنی هغه ټول کارونه چه انسان ئے د خپل فطرت نه خلاف کوی او د نورو څیزونو د فطرت نه ئے خلاف کوی، هغه د دې[۳] آیت په رڼرا

وَيُمَنِّيهِمْ ۖ وَمَا يَعِدُهُمُ الشَّيْطَانُ إِلَّا غُرُورًا ﴿١٢٠﴾ أُولَٰئِكَ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَلَا يَجِدُونَ عَنْهَا مَحِيصًا ﴿١٢١﴾ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ سَنُدْخِلُهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ۖ وَعْدَ اللَّهِ حَقًّا ۚ وَمَنْ أَصْدَقُ مِنَ اللَّهِ قِيلًا ﴿١٢٢﴾ لَّيْسَ بِأَمَانِيِّكُمْ وَلَا أَمَانِيِّ أَهْلِ الْكِتَابِ ۗ مَن يَعْمَلْ سُوءًا

او دوی له اُمیدونه ورکوی،[۱۴۹] خو د شیطان ټولې وعدې د دوکې نه سیوا بل څه نه دی۔ د دې خلقو ځائے جهنم دے چه د هغې نه د خلاصۍ هیڅ صورت به نه مومی. پاتې شو هغه خلق چه ایمان راوړی او نیک عمل وکړی، نو هغوی به مونږ داسې باغونو ته ورداخل کړو چه لاندې به ترې ولې بهیږی او هلته به هغوی همیشه همیشه وسیږی۔ دا د الله رښتینې وعده ده او د الله نه زیاته د رښتیا خبره به د چا وی۔
آخری انجام نه ستاسو په آرزوګانو منحصر دے او نه د اهل کتابو په آرزوګانو بلکې منحصر دے په دې چه بدی وکړه

---

کښې ټول شیطانی حرکتونه دی. مثلاً د لوطؑ د قوم عمل (یعنی نارینو سره بدکاری کول)، بې بند ول، د دنیا نه کناره کشی کول، برهمچرج (پاکلمنه نه سیدل)، نارینه او زنانه بې اولاده کول، د سړی نه هیجړا جوړه ول، زنانه چه فطرتاً د کوم خدمت د پاره پیدا دی هغوی د هغې خدمت نه منع کول او هغوی نه د سړو کارا خستل. دا او داسې ډیر نور کارونه چه د شیطان شاګردان ئې په دنیا کښې کوی دده په اصل کښې دا مطلب دے چه دا خلق د خدائے پاک قانون غلط ګڼړی او دوی په هغې کښې اصلاح کول غواړی۔

۱۴۹؎ د شیطان ټول کارونه د وعدو او د اُمیدونو په طاقت باندې روان دی. شیطان چه یو ځل یو تن یا د انسانانو یوه ډله کله په غلطه لار بوتلل غواړی نو هغوئی ته د اُمیدونو شین باغ وښائی. چاله د مزو او د خوندونو او د کامیابئ اُمیدونه ورکړی، څوک د قوم د ترقئ په طمع کیښنوی، چاله د انسانانو د فلاح او د ښیګړې یقین ورکړی، چاله صداقت ته د رسید و تسلی ورکړی، چاله دا بروسه ورکړی چه نه خدائے شته او نه آخرت، بس خو د مرګ نه پس ټو خاوره کیدل دی، او چاله دا تسلی ورکړی که آخرت وی هم نو هغه به د فلانی فلانی په وجه بچ شے. غرض دا چه څوک په څه دوکه کیدے شی هغه په هغې دوکه کوی۔

يُجْزَ بِهٖ ۙ وَلَا يَجِدْ لَهٗ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿۱۲۳﴾ وَمَنْ يَّعْمَلْ مِنَ الصّٰلِحٰتِ مِنْ ذَكَرٍ اَوْ اُنْثٰى وَهُوَ مُؤْمِنٌ فَاُولٰٓئِكَ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ وَلَا يُظْلَمُوْنَ نَقِيْرًا ﴿۱۲۴﴾ وَمَنْ اَحْسَنُ دِيْنًا مِّمَّنْ اَسْلَمَ وَجْهَهٗ لِلّٰهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ وَّاتَّبَعَ مِلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ؕ وَاتَّخَذَ اللّٰهُ اِبْرٰهِيْمَ خَلِيْلًا ﴿۱۲۵﴾ وَلِلّٰهِ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ بِكُلِّ شَيْءٍ مُّحِيْطًا ﴿۱۲۶﴾ وَيَسْتَفْتُوْنَكَ فِي النِّسَآءِ ؕ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ فِيْهِنَّ ۙ

د هغې بدله به مومي او د الله په مقابله کښې به د خپل ځان د پاره هيڅوک حمايت کونکے او مددګار بيا نۀ مومي. او څوک چه نيک عملونه کوي، که هغه سړے وي او که ښځه، خو چه ايماندار وي نو دغسې خلق به جنت ته داخليږي او د ذرے هومره حق به ئے نۀ وهلے کيږي. د هغه سړي نه د ژوند بهتره طريقه د بل چا کيدے شي چه الله ته ئے خپل سرتسليم کړو او خپله رويه ئے نيکه وساتله او سيدا يو مخيزے د ابراهيم په طريقه روان شو، د هغه ابراهيم په طريقه چه خدائے ځان له دوست کړے وو. په آسمانونو او په زمکه کښې چه څه دي دا د الله دي[150] او هر شيز د الله په قابو کښې دے[151]ع

خلق ستا نه د ښځو په معامله کښې فتوي تپوسي.[152] ورته ووايه چه الله تاسو ته د هغوي په معامله کښې فتوي درکوي

---

[150] يعني د خدائے وړاندې خپل سرتسليمول او د خپل اختيار نه منع کيدل په دې وجه بنه بهتره طريقه ده چه بالکل د حقيقت مطابق ده. هر کله چه الله د زمکې او د آسمانونو او د هغې ټولو شيزونو مالک دے چه په زمکه او آسمانونو کښې دي نو بيا د انسان د پاره صحيح طريقه دا ده چه سرکشي او خپل اختيار پريږدي او د الله په بندګئ او اطاعت باندې راضي شي.

[151] يعني که انسان الله ته سرتسليم نۀ کړي او د سرکشئ نه منع نۀ شي نو د الله نه چرته تښتيدے نشي. د الله قدرت د دۀ نه هر طرفته چاپيره دے.

[152] دا ئے صفا نۀ دي وئيلي چه خلقو به د ښځو په معامله کښې څۀ تپوس کړو. خو هغې چه کومه فتوي ورکړے شوې ده د هغې نه د تپوس پته لګي.

وَمَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ فِي الْكِتٰبِ فِيْ يَتٰمَى النِّسَآءِ الّٰتِيْ لَا تُؤْتُوْنَهُنَّ مَا كُتِبَ لَهُنَّ وَتَرْغَبُوْنَ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ وَالْمُسْتَضْعَفِيْنَ مِنَ الْوِلْدَانِ ۙ وَاَنْ تَقُوْمُوْا لِلْيَتٰمٰى بِالْقِسْطِ ؕ وَمَا تَفْعَلُوْا مِنْ خَيْرٍ

او ورسره درته هغه حکمونه هم یادوی چه د اول نه تاسو ته په دے کتاب کښې اورولے کیږی.[153] یعنې هغه حکمونه چه د هغه یتیمانو جینکو په حقله دی چه د هغوی حقونه تاسو نه ورکوئ او نکاح ورسره نه کوئ یا د لالچ په وجه ورسره تاسو پخپله نکاح کول غواړئ[155]، او هغه حکمونه چه د کمزورو بچو ماشومانو په حقله دی.[156] الله تاسو ته حکم کوی چه د یتیمانو سره په انصاف قایم وسئ، او څه نیکی چه تاسو کوئ

[153] دا د اصلی تپوس جواب نه دے بلکه د جواب ورکولو نه اول الله تعالیٰ د هغه حکمونو په پابندئ بیا زور ورکړے دے کوم چه د دے سورة په شروع کښې د یتیمانو جینکو او د یتیمانو بچو په باره کښې شوی وو. دے نه معلومیږی چه د الله په نظر کښې د یتیمانو حقونه څومره زیات اهم دی. په اولنو دوه رکوعګانو کښې د یتیمانو د حقونو سخت تاکید شوے وو خو په هغے باندې اکتفا و نه شوه. اوس چه د ستونځے په باره کښې د مسئلو خبره راغله، نو خلقوله د جواب ورکولو نه مخکښې د یتیمانو د فایدے ذکر ئے پخپله وکړو.

[154] هغه آیت ته اشاره ده چه په هغه کښې ویلے شوی وو چه "که د یتیمانو سره د بے انصافئ کولو نه یریږئ نو کومې زنانه چه ستاسو خوښے شی ......" (سورة نساء. آیت ۳)

[155] د "تَرْغَبُوْنَ اَنْ تَنْكِحُوْهُنَّ" دا مطلب هم کیدے شی چه "تاسو ورسره نکاح کول غواړئ" او دا هم کیدے شی چه "تاسو ورسره نکاح کول نه غواړئ"! د دے په تشریح کښې حضرت عائشه فرمائی چه د کومو خلقو په سرپرستئ کښې به داسے یتیمانے جینکۍ وے چه هغوئ ته به د مور او پلار دولت پاتے شوے وو، نو د هغوئ سره به ئے په مختلفو طریقو ظلمونه کول. که جینکۍ به مالدارے هم وے او ښایسته به هم وے نو دے خلقو به د هغوئ سره پخپله نکاح کوله او مهر او نفقه به ئے نه ورکوله او د هغے د مال او د ښایست نه به ئے فایده اخستله. او که جینئ به بدشکله وه نو دوی به ورسره نه پخپله نکاح کوله او نه به ئے بل له په نکاح ورکوله چه چیرے نه چه څوک د سرسرے پیدا شی او صباله راند دے د حق تپوس وکړی.

[156] هغه حکمونو ته اشاره ده چه د دے سورة په اولنئ او دویمه رکوع کښې د یتیمانو د حقونو په باره کښې شوی دی.

فَإِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِهٖ عَلِيْمًا ﴿١٢٧﴾ وَإِنِ امْرَاَةٌ خَافَتْ مِنْۢ بَعْلِهَا نُشُوْزًا اَوْ اِعْرَاضًا فَلَا جُنَاحَ عَلَيْهِمَآ اَنْ يُّصْلِحَا بَيْنَهُمَا صُلْحًا ۭ وَالصُّلْحُ خَيْرٌ ۭ وَاُحْضِرَتِ الْاَنْفُسُ الشُّحَّ ۭ وَاِنْ تُحْسِنُوْا وَتَتَّقُوْا

هغه به د الله نه پټه نۀ پاتې کیږي.

[157] که چرې یوې ښځې ته د خپل خاوند د بد سلوکۍ یا د بې پروائۍ خطره وي نو هیڅ ګناه نۀ ده که ښځه خاوند (د خپلو حقونو په کمي زیاتي باندې) په خپلو کښې صلح وکړي. صلح په هر حال کښې بهتره ده.[158] زړونه په لوبه ځه زر تنګیږي،[159] خو که تاسو احسان وکړئ او د خدائے نه ویریږئ نو

[157] د دے ځائے نه د اصلي پوښتنې جواب شروع کیږي. په دے جواب باندې د پوهیدو د پاره اول په سوال ځان پوهه کول پکار دي. د جاهلیت په زمانه کښې به یو سړي بې شمیره ښځې کولے او د دے تولو ښځو به خپل هیڅ حقونه نۀ وو. کله چې د سورة نساء اولنۍ آیتونه نازل شو نو د ښځو په باره کښې دوه قسمه پابندۍ ولګیدے. یو دا چې د ښځو کولو تعداد د زیات نه زیات څلور مقرر کړے شو. دویم دا چې که څوک د یوې نه زیاتې ښځې کوي نو د هغوئ په مینځ کښې انصاف کول (یعنې برابر سلوک ساتل) شرط کړے شو. اوس پکښې دا سوال را پیدا شو چې که د چا ښځه شنډه وي، یا په همیشه مرض پرته وي، یا د خاوند حقونه ادا کولے او هغه دویمه ښځه واده کوي نو آیا دے مجبوره دے چې د دواړو سره به یو شان مینه لري، او یو شان کور والے به کوي؟ او که دے دا سے ونۀ کړي نو آیا انصاف بیا دا دے چې د دویم واده کولو د پاره دا ولنۍ ښځه پریښې دي؟ او که چرے اولنۍ ښځه پخپله مرضۍ جدا کیدل نۀ غواړي نو آیا بیا د ښځے خاوند په مینځ کښې څه دا سے معامله کیدے شي چې د هغه او لنۍ ښځه خپل څه حقونه پریږدي او خاوند د طلاق ورکولو نه منع کړي؟ او آیا دا سے کول خو به د انصاف نه خلاف نۀ وي؟ دا سوالونه دي چې جواب ئے په دے آیتونو کښې شوے دے.

[158] یعنې د طلاقو نه دا بهتره ده چې په خپلو کښې صلح وکړي او ښځه د خپل زوړ خاوند سره ژوند تیر کړي.

[159] د ښځے د طرفه زړه تنګي دا ده چې پخپله ورته دا معلومه دي چې په دے وجه د خاوند زما سره نالګي ده او بیا هم دا غواړي چې خاوند دې زما سره هغه سلوک کوي لکه څنګه چې د دواړو مینو وي. د سړي د طرفه زړه تنګي دا ده چې یوه ښځه د زړه په مینه د هغه سره وسیدل غواړي او دے دا کوشش کوي چې هغه د تولو نه زیاته دباؤ کړي او د هغے حقونه بے حده کم کړي.

فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُونَ خَبِيرًا ﴿١٢٨﴾ وَلَنْ تَسْتَطِيعُوا أَنْ تَعْدِلُوا بَيْنَ النِّسَاءِ وَلَوْ حَرَصْتُمْ فَلَا تَمِيلُوا كُلَّ الْمَيْلِ فَتَذَرُوهَا كَالْمُعَلَّقَةِ ۚ وَإِنْ تُصْلِحُوا وَتَتَّقُوا فَإِنَّ اللَّهَ كَانَ

یقین لرئ چه ستاسو د هغه کار نه به الله ناخبره نه وی.[۱۶۰] د ښځو په منځ کښې پوره انصاف کول ستاسو په وَس کښې نه دی. که تاسو ئې غواړئ هم خو کولے ئې نشئ. نو د الله د قانون د منشا پوره کولو دپاره دا کافی ده چه) یو ښځې ته داسے مه مائله کیږئ چه بلهٔ ئې آسرے او ویزاندهٔ پریږدئ.[۱۶۱] که تاسو خپل عمل درست کړو او د الله نه ویریدئ نو الله

[۱۶۰] دلته بیا الله تعالیٰ سړی ته وائی چه په دے معاملو کښې زړهٔ فراخه ساته. کومے ښځے چه دیر کلونه ستا سره یو ځائے تر وند تیر کړے دے نو که هغه ستا خوښه هم نه وی خو تهٔ ورسره احسان کوه او د هغے خدائے نه ویریږه چه که د انسان نه د گناهونو په وجه خفه شو او د هغه په کی راغے نو بیا به ئے په دُنیا کښے چرته ځائے نه وی.

[۱۶۱] مطلب دا دے چه سړے په هر وخت کښے او په هر څیز کښے د دوؤ یا د زیاتو ښځو په منځ کښې برابرے نشی ساتلے. یا به یوه ښکلې وی او بله بد رنګه، یا به یوه ځوانه وی او بله پخه، یا به یوه همیشه مریضه وی او بله روغه رمټه، یا به یوه بد خویه وی او بله ښهٔ خوئ والا او د غه شان نورے دیرے خبرے کیدے شی چه د هغے په وجه به یوے ښځے سره مینه زیاته وی او د بلے سره کمه. په داسے حالاتو کښے قانون دا نه وائی چه په مینه محبت او کوروالی کښے د ضرور د دواړو په منځ کښے برابرے وساتلے شی. بلکه قانون صرف دا مطالبه کوی چه هر کله ستا د یوے ښځے سره مینه نشته او طلاق ورله نهٔ ورکوے او د ځان سره ئے په خپل خواهش یا د هغے په خواهش ساتے، نو بیا دومره تعلقات ورسره ضرور ساته چه هغه خلقو ته بے خاونده نهٔ ښکاری. په داسے حالاتو کښے د یوے په نسبت د بلے سره زیاته مینه لرل یو قدرتی خبره ده، خو داسے هم نه دی کول پکار چه هغه بله ښځه داسے اویزانده شی لکه چه هډو خاوند ئے نه وی.

د دے آیت نه ځنے خلقو دا مطلب را ایستلے دے چه قرآن خو یو طرفته د څلورو ښځو کولو پورے اجازت ورکوی ولے هلته چه په انصاف ئے ساتلے شی، او بل طرفته وائی چه په دیرو ښځو کښے انصاف کول ناممکنه دی. نو دا ئے معلومیږی لکه چه د دیرو ښځو کولو اجازت منسوخ شوے دے لیکن په حقیقت کښے د داسے مطلب راایستلو دپاره په دے آیت کښے هیڅ ګنجائش نشته. که صرف دومره ویلے شوے وے چه" تاسو د ښځو په منځ کښے انصاف نشئ کولے" نو بیا تر دا مطلب را ایستلے کیدے شو، خو چه روستو ورپسے دا وفرمایلے شو چه" یوے ښځے ته بالکل مه مائله کیږئ" نو کوم مطلب چه تر پسے مسیحی یورپ پسے تلونکی خلق

غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۱۲۹﴾ وَاِنْ يَّتَفَرَّقَا يُغْنِ اللّٰهُ كُلًّا مِّنْ سَعَتِهٖ ؕ وَ
كَانَ اللّٰهُ وَاسِعًا حَكِيْمًا ﴿۱۳۰﴾ وَلِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا فِى الْاَرْضِ ؕ
وَلَقَدْ وَصَّيْنَا الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَاِيَّاكُمْ اَنِ
اتَّقُوا اللّٰهَ ؕ وَاِنْ تَكْفُرُوْا فَاِنَّ لِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا فِى الْاَرْضِ ؕ
وَكَانَ اللّٰهُ غَنِيًّا حَمِيْدًا ﴿۱۳۱﴾ وَلِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَمَا فِى الْاَرْضِ ؕ
وَكَفٰى بِاللّٰهِ وَكِيْلًا ﴿۱۳۲﴾ اِنْ يَّشَاْ يُذْهِبْكُمْ اَيُّهَا النَّاسُ وَيَاْتِ
بِاٰخَرِيْنَ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلٰى ذٰلِكَ قَدِيْرًا ﴿۱۳۳﴾ مَنْ

معاف کونکے او رحم کونکے دے[۱۶۲] لیکن که ښځه خاوند د یو بل نه جدا شی نو خدائے به خپل
لوئ قدرت سره هر یو د بل د محتاجئ نه خلاص کړی. د الله سینه ډیره فراخه ده او هغه
هوښیار او پوهه دے. په آسمانونو او په زمکه کښ چه څه دی هغه د الله دی ستاسو نه
مخکښ چه چا ته مونږ کتاب ورکړے وُو هغوئ ته هم مونږ دا ویلی وُو او اُوس
تاسو ته هم دا وایُو چه د خدائے نه په یره بره کار کوئ. لیکن که تاسو نه منئ نو مه ئے منئ،
د زمکے او د آسمانونو د ټولو څیزونو مالک الله دے او هغه بے نیازه غنی دے، د هر تعریف
لائق دے. هو، الله مالک دے د هغه ټولو څیزونو چه په آسمانونو کښ دی او چه په زمکه کښ
دی او د کارسازئ دپاره بس هم هغه کافی دے. که هغه وغواړی نو اے خلقو تاسو به لرے کړی
او ستاسو په ځائے به نور خلق راولی، او هغه د دے پوره قدرت لری. څوک

دا ایستل غواړی، هغے ته هم حاجت پاتے نه شو.

[۱۶۲] یعنی د خپله وسه پورے که ته په قصد ظلم نه کوے او د انصاف کولو کوشش کوے
نو د مجبورئ د وجے نه که څه لږه ډیره غلطی کا انصاف په معامله کښے درنه وشی نو هغه به الله
معاف کړی.

كَانَ يُرِيدُ ثَوَابَ الدُّنْيَا فَعِنْدَ اللّٰهِ ثَوَابُ الدُّنْيَا وَالْاٰخِرَةِ ۚ وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيعًا بَصِيرًا ﴿۱۳۴﴾ ع يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا كُوْنُوْا قَوّٰمِيْنَ بِالْقِسْطِ شُهَدَآءَ لِلّٰهِ وَلَوْ عَلٰۤى اَنْفُسِكُمْ اَوِ الْوَالِدَيْنِ

چه بوازے دَ دُنيا دَ ثواب طلبګاروی هغه لحان خبرول پکاردی چه دَ الله سره دَ دُنيا ثواب هم شته او دَ آخرت ثواب هم، الله اوريد ونکے او ليد ونکے دے.[۱۶۳] ع

اے هغه خلقو چه ايمان مو راوړے دے، دَ انصاف جنډه اوچتونکی او دَ خدائے دَ پاره ګواهی کونکی جوړشئ اګرکه ستاسو انصاف او ستاسو ګواهی په خپله ستاسو دَ خپل ځان يا ستاسو دَ مور او پلار[۱۶۵]

[۱۶۳] عام طور چه کله قانونی حکمونه بيان شی، او خصوصًا چه کله په معيشرونډ تيرولو باندې زور ورکړ شی، نو الله تعالیٰ په يو خوا ترنا کو جملو کښے يو مختصر وعظ کوی او مقصد ئے دا وی چه خلق دَ دغه حکمونو پابندئ ته تيار کړے شی. دا هم دغه شان يو مختصر وعظ دے. دَ دے نه مخکښے دَ يتيمانو او دَ يتيمانو بچو سره دَ انصاف او دَ ښځے سلوک ساتلو حکم شوے دے نو دَ دې دا ضروری وه چه يو څو دَ نصيحت خبرے مؤمنانو ته ذکر کړے شی.

يوه دا چه ته هيڅ په دے مه دوکه کيږه چه دَ چا قسمت جوړول او ورانول ستا په لاس کښے دی، که ته دَ چا نه لاس واخستل نو هغه به بے آسرے پاتے شی. نه، ستا او دَ هغه او دَ ټولو دَ قسمتونو مالک الله دے او دَ الله سره دَ خپل يو بنده سره امداد کول غواړی نو دَ هغه دَ پاره يو اځے ته ذريعه نه ده. دَ الله سره ډيرے ذريعے دی او هغه خپله ټولے ذريعے په حکمت استعمالولے شی.

دويمه دا چه دَ تيرو شوو پيغمبرانو اُمتونو ته او تاسو ته هميشه دا نصيحت کيږی چه په هر کار کښے دَ خدائے نه ويره کوی. که دا نصيحت مؤمنو نو په دے کښے ستاسو خلاصے دے، دَ خدائے هيڅ فائده پکښے نشته. او که تاسو نه منئ نو مخکښنو اُمتونو هم نافرمانئ کړے ده هغوئ خدائے ته څه نقصان ورسولو چه تاسو به ئے هم ورته ورسوئ. خدائے نه مخکښے دَ چا پروا ساتلی ده او نه اوس ستاسو څه پروا ساتی. که دَ هغه دَ حکم نه مخ واړوئ نو تاسو به لرے کړی او بل قوم به راپورته کړی. ستاسو په لرے کيدو به دَ هغه په بادشاهئ کښے هيڅ فرق رانشی.

دريمه دا چه دَ خدائے سره دَ دُنيا فائدے هم شته او دَ آخرت فائدے هم شته، عارضی او دَ يو وخت فائدے هم شته او مضبوطے او هميشه فائدے هم شته. او دا دا ستاسو خپله حوصله او همت خبره ده چه له دَ هغه نه کوم قسم فائدے غواړئ. که ته دَ دُنيا دَ يو څو ورځو فائدے غواړے او دَ دے په مقابل کښے دَ هميشه ژوند فائدو قربانولو ته تيار ئے نو خدائے به درله دا هر څه دلته په دنيا کښے زر درکړی، خو آخرت به هميشه فائده وکښے به دَ بيا هيڅ حصه نه وی. دريا ب خو ستا دَ پتی او به کولو دَ پاره هميشه تيار دے،

وَالْاَقْرَبِيْنَ ۚ اِنْ يَّكُنْ غَنِيًّا اَوْ فَقِيْرًا فَاللّٰهُ اَوْلٰى بِهِمَا ۫ فَلَا تَتَّبِعُوا الْهَوٰٓى اَنْ تَعْدِلُوْا ۚ وَاِنْ تَلْوٗٓا اَوْ تُعْرِضُوْا فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ بِمَا تَعْمَلُوْنَ خَبِيْرًا ﴿۱۳۵﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اٰمِنُوْا بِاللّٰهِ وَرَسُوْلِهٖ وَالْكِتٰبِ الَّذِيْ نَزَّلَ عَلٰى رَسُوْلِهٖ

او د رشته دارانو خلاف راځي. فریقین ولے والا که مالدار وي او که غریب وي، الله ستاسو نه زیات د هغوي خیرخواه دے. خو هسے نه چه د خپل نفس په خواهشاتو پسے لار شئ او بے انصافي وکړئ. او که تاسو د طرفدارۍ خبره وکړه او یا مو د ریښتیاؤ نه مخ واړونو په دے ځان پوهه کړئ چه د تاسو څه کوئ الله د دے نه خبر دے.

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے[۱۶۶]، ایمان راوړئ په الله باندې او د هغه په رسول باندې او په هغه کتاب باندې چه الله په خپل رسول باندې نازل کړے دے

خو چه او س ته ترصرف یو فصل اُوبه کړے او بیا همیشه د پاره سُوکه خو بسوے نود استاخپله ناپوهتیا ده. که ته لږ هم پوهیږے نو د طاعت او د بندګۍ هغه لار اختیار کړه چه د دُنیا او د آخرت فایدے حاصلے کړے.

په آخر کښے ئے وفرمائیل چه الله اوریدونکے او لیدونکے دے. نو د دے مطلب دے چه الله څه روند کونړ نه دے چه د یو بے خبرو بادشاه پشان په ړند وکار کوي او په ورکړو کښے د ښه او بد تمیز نه کوي. هغه په دے خپل کائینا تو باندې داسے حکومت کوي چه د هر څه نه خبر دے. د هر چا حوصلے او قابلیت ته کوري. په چا کښے چه څه صفتونه وي هغه ټول ورته معلوم دي. هغه ته ښه معلومه ده چه تاسو په کومه لار کښے محنتونه او کوششونه کوئ. که د الله د نافرمانۍ لار دو اختیار کړه نو بیا د هغے بخششونو اُمید مه ساته کوم چه به الله صرف خپلو فرمانبردارو بندګانو له ورکوي.

[۱۶۴] صرف په دے خبره ئے اکتفاء ونه کړه چه په انصاف باندې چلیږئ، بلکه دا ئے وفرمائیل چه د انصاف جنډه وچتونکی جوړ شئ. ستاسو کار صرف انصاف کول نه دي بلکه د انصاف جنډه راغستل او پاسیدل دي. تاسو له پکار دي چه دے خبرے ته ملاؤ تړئ چه ظلم ختم شي او د هغے په ځائے عدل و انصاف قائم شي. د عدل و انصاف قائمولو د پاره چه د کومے سهارے ضرورت دے، نو د مؤمن په حیثیت دا ستاسو مقام دے چه تاسو د عدل سهارا شئ.

[۱۶۵] یعنی تاسو له پکار دي چه صرف د خدائے د پاره ګواهي کوئ، د چا مخ ملاحظه پکښے مه کوئ، مه خپلو ذاتي فائیدو ته ګورئ او مه د خدائے نه علاوه د بل چا رضا ته ګورئ.

[۱۶۶] مؤمنانو ته دا وئیل چه ایمان راوړئ هسے خو یوه عجیبه خبره ښکاري. لیکن په اصل کښے د لته

وَالْكِتٰبِ الَّذِیْٓ اَنْزَلَ مِنْ قَبْلُ ؕ وَمَنْ يَّكْفُرْ بِاللّٰهِ وَمَلٰٓئِكَتِهٖ وَكُتُبِهٖ وَرُسُلِهٖ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ فَقَدْ ضَلَّ ضَلٰلًاۢ بَعِيْدًا ﴿۱۳۶﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا ثُمَّ اٰمَنُوْا ثُمَّ كَفَرُوْا ثُمَّ ازْدَادُوْا كُفْرًا لَّمْ يَكُنِ اللّٰهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ سَبِيْلًا ؕ ﴿۱۳۷﴾

او په هر هغه کتاب چه الله د دے نه وړاندې نازل کړے دے. چا چه د الله نه او د هغهٔ د فرښتو نه او د هغه د رسولانو نه او د ورځ د آخرت نه انکار وکړو[166] نو هغه په ګمراهئ کښې ډیر لرې لاړو. او هغه خلق چه ایمان ئے راوړو، بیا ئے کفر وکړو، بیا ئے ایمان راوړو، بیا ئے کفر وکړو، بیا په خپل کفر کښې وړاندې لاړل،[167] نو الله به هیچرې هغوئ معاف نهٔ کړي او نهٔ به ورته نیغه لار وښائي.

د ایمان لفظ په دوه جدا جدا معنو کښې استعمال شوے دے. د ایمان راوړلو یو مطلب دا دے چه سړے د انکار پځائے اقرار وکړي، د نهٔ منونکو نه جدا شي او د منونکو سره شامل شي. او بل مطلب ئے دا دے چه یو شخص په رښتیا سره د زړهٔ نه ومني. بشپړه په اخلاص سره ئے ومني. او خپل فکر او خپله خوښه ناخوښه او خپله دوستي او دشمني او خپل هر کوشش بالکل د هغه عقیدے مطابق جوړ کړي چه په کوم باندې دهٔ ایمان راوړے وي. په دے آیت کښې د ټولو منونکو مسلمانانو نه دا مطالبه شوې ده چه په رښتیا سره د زړهٔ د اخلاصه مؤمنان شي.

[166] د انکار کولو هم دوه مطلبونه دي. یو دا چه سړے صفا انکار وکړي. بل دا چه په ژبه ئے مني خو د زړهٔ نه ئے نهٔ مني یا په خپل عمل دا ثابته کړي چه د کوم څیز د منلو دعوی دے کوي هغه په حقیقت کښې دے نهٔ مني. د لته د کفر نه دا دواړه معنے مراد دي. او د آیت مقصد دا دے چه خلق په دے خبره خبردار کړي چه چا د کفر دے دواړو قسمونو نه هم یو قسم سلوک د اسلام د بنیادي عقیدو سره وکړو نو هغه به د حق نه بښه لرے شي او د باطل په لارو کښې به کړه وړه سرګردانه ګرځي.

[167] د دے نه مراد هغه خلق دي چه دین ورته هسے د زړهٔ د آزادئ یوه لوبه ښکاري. او د خپل خیالاتو او خواهشاتو مطابق ورسره لوبے کوي. کله چه ئے په دماغو کښې یو څپه راشي نو مسلمانان شي او کله چه په کښې بله څپه راشي نو کافر شي. یا چه ورته په مسلمانیدو کښې فائده ښکاره شي نو مسلمانان شي او کله چه ورته فائده په بل څه کښې ښکاره شي نو هغے طرفته منډه کړي. بس د خپلے فائدے عبادت کوي. د داسے خلقو دپاره د الله سره نهٔ بخښنه شته او نهٔ هدایت. او دا چه ئے وفرمائیل چه "بیا په خپل کفر کښې وړاندې لاړل" نو د دے دا مطلب دے چه یو سړے صرف په خپل کافر کیدو اکتفا ونکړي بلکه د کافر کیدو نه روستو دا کوشش کوي چه نور خلق هم د اسلام نه واوړي، د اسلام خلاف پټ پټ سازشونه او ښکاره ښکاره تدبیرونه

بَشِّرِ الْمُنٰفِقِيْنَ بِاَنَّ لَهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ﴿۱۳۸﴾ الَّذِيْنَ يَتَّخِذُوْنَ الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ؕ اَيَبْتَغُوْنَ عِنْدَهُمُ الْعِزَّةَ فَاِنَّ الْعِزَّةَ لِلّٰهِ جَمِيْعًا ﴿۱۳۹﴾ وَقَدْ نَزَّلَ عَلَيْكُمْ فِي الْكِتٰبِ اَنْ اِذَا سَمِعْتُمْ اٰيٰتِ اللّٰهِ يُكْفَرُ بِهَا وَيُسْتَهْزَاُ بِهَا فَلَا تَقْعُدُوْا مَعَهُمْ حَتّٰى يَخُوْضُوْا فِيْ حَدِيْثٍ غَيْرِهٖٓ ۖ اِنَّكُمْ اِذًا مِّثْلُهُمْ ؕ اِنَّ اللّٰهَ جَامِعُ الْمُنٰفِقِيْنَ

او کوم منافقان چه مومنان پریږدي او کافران ځان له دوستان کوي هغوی ته دا خوشخبري واوروه چه د هغوی دپاره دردناکه سزا تیاره ده. آیا دوی د هغوی خوا ته د عزت لټولو دپاره ځي؟[169] حالانکه ټول عزت خو د الله دپاره دی. الله په دې کتاب کښې تاسو ته د مخکښې نه دا حکم کړې دې چه په کوم ځائې کښې تاسو دا واورئ چه د الله د آیتونو خلاف د کفر خبرې کیږي او ټوقې ورپورې کیږي نو هلته ترڅو پورې مه کینئ ترڅو چه هغوی څه بله خبره نه وي شروع کړې. او که چرې تاسو داسې کوئ نو تاسو هم د هغوی په شان یئ.[170] یقین لرئ چه الله به منافقان

شروع کړي، او په دې کوشش کښې زور لګوي چه کفر ترقي وکړي او د الله د دین جنډه ښکته شي. دا په کفر کښې وړاندې تلل او ترقي ده او د یو جرم دپاسه بل په نور جرمونه کول دي. نو پکار دي چه دې عذاب یوازې د کفر نه وي بلکه چه د کفر د عذاب نه ضرور زیات وي.

169 د "عزت" مطلب په عربئ ژبه کښې ډیر زیات وسیع دے. په اردو پښتو ژبه کښې د "عزت" معنی صرف احترام او قدر کول دي. خو په عربئ کښې د عزت مطلب دا دے چه یو سړي ته داسې اوچت او د هر څه نه محفوظ حیثیت حاصل شي چه بیا ئې هیڅوک څه نشي کولے. یعنی داسې عزت چه څوک ئې سپکاوے نشي کولے.

170 یعنی که چرې یو سړې د اسلام دعوی لري او سره د هغه د کافرو په داسې مجلسونو کښې شریکیږي چه هلته د الله د آیاتونو خلاف د کفر خبرې کیږي او دې که هغه ئې او د رسول خلاف ټوقې ښه په اطمینان سره اوري، نو په دې کښې او په کافرو کښې هیڅ فرق نشته. (په دې آیت کښې چه د کوم حکم ذکر شوې دې هغه د سورة انعام په آیت ۶۸ کښې بیان شوې دې).

وَالْكٰفِرِيْنَ فِيْ جَهَنَّمَ جَمِيْعًا ﴿۱۴۰﴾ الَّذِيْنَ يَتَرَبَّصُوْنَ بِكُمْ ۚ فَاِنْ
كَانَ لَكُمْ فَتْحٌ مِّنَ اللّٰهِ قَالُوْۤا اَلَمْ نَكُنْ مَّعَكُمْ ۖ وَاِنْ كَانَ
لِلْكٰفِرِيْنَ نَصِيْبٌ ۙ قَالُوْۤا اَلَمْ نَسْتَحْوِذْ عَلَيْكُمْ وَنَمْنَعْكُمْ
مِّنَ الْمُؤْمِنِيْنَ ۚ فَاللّٰهُ يَحْكُمُ بَيْنَكُمْ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۗ وَلَنْ يَّجْعَلَ
اللّٰهُ لِلْكٰفِرِيْنَ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ سَبِيْلًا ﴿۱۴۱﴾ اِنَّ الْمُنٰفِقِيْنَ
يُخٰدِعُوْنَ اللّٰهَ وَهُوَ خَادِعُهُمْ ۚ وَاِذَا قَامُوْۤا اِلَى الصَّلٰوةِ
قَامُوْا كُسَالٰى ۙ يُرَآءُوْنَ النَّاسَ وَلَا يَذْكُرُوْنَ اللّٰهَ اِلَّا



او کافران په جهنم کښ یو ځائے راجمع کوی. دا منافقان ستاسو په معامله کښ انتظار کوی (چه اوښ به په کومه د وه څملی). که د الله د طرفه فتح ستاسو نصیب شی نو دوی به وائی چه ولے موږه ستاسو سره نه وُو څه؟ او که د کافرانو طرف ته روند شی نو هغوی ته به وائی چه آیا موږ ستاسو خلاف په جنګ کولو قادر نه وُو او بیا هم موږه تاسو د مسلمانانو نه بچ کړی؟[171] بس الله به ستاسو او د دوی د معاملے فیصله د قیامت په ورځ کوی. او (په دے فیصله کښ) الله تعالیٰ په مسلمانانو باندے د کافرانو د غالب کیدو هیڅ لاره هرګز نه ده پریښودلے ع

دا منافقان د الله سره دوکه بازی کوی حالانکه په حقیقت کښ الله تعالیٰ دوی په دوکه کښ اچولی دی. کله چه دوی د مانځه د پاره پاسی نو په زړه ماتی سست سست پاسی او خلقو ته د ښودنے د پاره پاسی او خدائے ډیر کم

[171] د هرے زمانے د منافقانو دا کار دے چه په مسلمانانو باندے وسره کومے فائدے حاصلولے شی نو هغه تش د ژبے په اقرار او د مسلمانئ په نوم حاصل وی. او کومے فائدے چه په کافرانو وسره حاصلوی نو د هغے د پاره د کافرانو سره ملاوے .... په هره طریقه چه وی خود هغوی دا یقین راولی چه موږ خو هغه مسلمانان نه یُو چه د کافرانو سره بد نیتی کوُو، هسے په نوم غرمو تعلقات د مسلمانانو سره ضرور شته دے خو زموږه زړونه تاسو سره تړلی دی او تاسو وفادار ملګری یُو، زموږه او ستاسو فکر او تهذیب یو شان دے، او د کفر او د اسلام په جنګ کښے چه زموږه نه کیږی نو ستاسو سره به ئے کوُو.

قَلِيلًا ﴿١٤٢﴾ مُّذَبْذَبِينَ بَيْنَ ذٰلِكَ ۖ لَآ إِلَىٰ هٰٓؤُلَآءِ وَلَآ إِلَىٰ هٰٓؤُلَآءِ ۚ وَمَن يُضْلِلِ اللَّهُ فَلَن تَجِدَ لَهُ سَبِيلًا ﴿١٤٣﴾

یادوی.[142] دَ کفر او دَ ایمان په منځ کښ پریشانه دی. نهٔ پوره دِے طرفته دی او نهٔ پوره هغې طرفته.

الله چه څوک بے لارے کړے وی دَ هغهٔ د پاره ته هیڅ لاره نشے موندلے.[143]

[142] دَ نبی صلی الله علیه وسلم په زمانه کښے به یو سړے دَ مسلمانانو په ډله کښے تر هغې پورے شماریدلے نهٔ شو تر څو چه به هغه د مونځ پابند نهٔ وُو. لکه څنګه چه دَ دُنیاوی ډلو او جلسونو په اجتماعاتو کښ یو ممبر بے دَ څه عذر نه شریک نشی نو وائی چه دَ دے ډلے سره دهٔ مینه نشته - او بیا لکه څنګه چه پرله پسے په یو څو اجتماعاتو کښ شریک نشی نو دَ ممبری نه ئے وُباسی، دغه شان دَ اسلامی جماعت یو رکن چه به دَ اماعتی د مونځ نه پاتے شو نو هغې به دا مطلب وُو چه دهٔ مینه دا اسلام سره نشته او که چرے هغه به پرله پسے یو څو ځله جماعت ته حاضر نهٔ شو نو خلقو به وے چه دے مسلمان نهٔ دے. دغه وجه وه چه که د سخت نه سخت منافق به وُو خو په هغه زمانه کښ به پنځه وخته جماعت ته ضرور حاضریدو، ځکه چه د دے نه بغیر به دَ مسلمانانو په ډله کښ شماریدلے نشو. البته یو څیز وُو چه په هغې به منافق پیژندلے شو او هغه دا وُو چه رښتونے مومن به په شوق سره دَ وخت نه مخکښ جمات ته رسیدو، دَ مانځهٔ نه روستو به هم په جُمات کښ ناست وُو، او دَ هغهٔ دَ هر کار نه به دا معلومیدله چه په حقیقت کښ دَ مونځ سره دهٔ مینه ده - د دے برخلاف به په منافق باندې دَ آذان آواز تندر لګیدو، ځان به ئے په زور پاسوُو، دَ هغه دَ راتلو نه به صفا پته لګیدله چه بغیر له نه راځی او څوک ئے په زور راولی، دَ مونځ دَ ختمیدو سره به داسے په منډه زغلیدو لکه چه د تید نه راخلاص شی، او د هر حرکت نه به ئے دا معلومیدله چه دَ خدائے د ذکر سره ئے هیڅ مینه نشته.

[143] یعنی چا چه دَ خدائے دَ کلام او دَ هغهٔ د رسول دَ طریقے نه ځان له لارښمه نهٔ کړه، او چا چه ښکاره دحق نه مخ واړوُو او باطل طرفته وُګرزیدو او بیا خدائے هم هغې طرفته وُګرزوُو کوم طرفته چه دهٔ تلل غوښتل او دهٔ دَ خپلے رضا مطابق پرے خدائے دَ نیغے لارے دروازے بندے کړے او صرف دَ ګمراهئ لارئے ورته پرانستے پریښودے، نو داسے سړی ته نیغه لاره ښودل په حقیقت کښے دَ انسان د وَس کار نهٔ دے. دَ دے معاملے مثال لکه دَ رزق دے. دا یو حقیقت دے چه دَ رزق ټول خزانے د الله سره دی - انسان ته چه څه ملاویږی دا د الله د طرفنه ملاویږی. خو څوک چه په کومه طریقه رزق حاصلول غواړی الله هم په هغې طریقه هغه له رزق ورکوی. که څوک رزق په حلاله طریقه کټل غواړی نو الله ورته حلالے لارے پرانزی او بیا چه څومره دَ سړی نیت صفا وی هغومره ورته الله دَ حرامو لارے بندے کړی. د دے نه برخلاف چه څوک په حرامو پسے منډے تر رے وهی نو هغه ته دَ خدائے

يَاأَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تَتَّخِذُوا الْكَافِرِينَ أَوْلِيَاءَ مِن دُونِ الْمُؤْمِنِينَ ۚ أَتُرِيدُونَ أَن تَجْعَلُوا لِلَّهِ عَلَيْكُمْ سُلْطَانًا مُّبِينًا ﴿۱۴۴﴾ إِنَّ الْمُنَافِقِينَ فِي الدَّرْكِ الْأَسْفَلِ مِنَ النَّارِ وَلَن تَجِدَ لَهُمْ نَصِيرًا ﴿۱۴۵﴾ إِلَّا الَّذِينَ تَابُوا وَأَصْلَحُوا

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے ، دَ مومنانو په ځائے کافران خپل دوستان مهٔ جوړوئ۔ آیا تاسو غواړئ چه الله له دَ خپل ځان خلاف ښکاره دلیل ورکړئ؟ یقین وُلرئ چه منافقان به دَ جهنم دَ ټولو نه په لاندِ درجه کښې وی او تهٔ به هیڅوک دَ هغوئ مددګار بیا نهٔ مومے۔ البته چه به هغوئ کښې څوک توبه وُباسی او دَ خپل عمل اصلاح وُکړی

په حکم باندِ دحرامو رزق ملاویږی او بیا هٔ په نصیب کښې دَ حلالو رزق نهٔ وی۔ بالکل هم دغه شان دا یو حقیقت دے چه په دُنیا کښې دَ فکر و عمل ټولے لارے دالله تعالیٰ په اختیار کښې دی هیڅوک هم دالله دَ حکم او دَ هغهٔ دَ توفیق نه بغیر په یوه لاره نشی تلے۔ پاتے شوه داخبره چه چاته په کومه لاره باندِ دَ تللو اجازت ملاویږی او په کومه لاره دَ تللو اسباب په آسانه جوړیږی، نو دا د سړی دَ خپلے میینے او دَ کوشش سره تعلق لری۔ که دَ سړی دَ خدائے سره مینه وی، دَ رښتیاؤ او دحق طلبګار وی او په خالص نیت دَ خدائے په لاره دَ تللو کوشش کوی، نو الله هم دهٔ ته اجازت ورکوی او هم په دغے لاره باندِ ورته دَ تللو اسباب جوړه وی۔ ددے برخلاف چه څوک هیڅ له ګمراهی خوښه وی او په غلطو لارو باندِ دَ تللو کوشش کوی، نو دَ الله دَ طرفنه دَ هغه دپاره دهدایت دروازے بندے شی او هغه لارے ورته پرانستے شی کومے چه دهٔ دَ ځان دپاره په خپله غوره کړې وی۔ بیا دا دهیچا په اختیار کښې نهٔ دهٔ چه داسے سړے دَ غلطو سوچونو، دَ غلطو کارونو او په غلطو لارو کښې دَ کوشش کولو نه بچ کړی۔ دَ خپل نصیب نیغه لاره چه چا په خپله ورکه کړه او الله ترے محروم کړو نو دَ هغه دپاره دا نعمت موندل بیا ګران دی۔

وَاعْتَصَمُوْا بِاللّٰهِ وَاَخْلَصُوْا دِيْنَهُمْ لِلّٰهِ فَاُولٰٓئِكَ مَعَ الْمُؤْمِنِيْنَ وَسَوْفَ يُؤْتِ اللّٰهُ الْمُؤْمِنِيْنَ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۱۴۶﴾ مَا يَفْعَلُ اللّٰهُ بِعَذَابِكُمْ اِنْ شَكَرْتُمْ وَاٰمَنْتُمْ ۚ وَكَانَ اللّٰهُ شَاكِرًا عَلِيْمًا ﴿۱۴۷﴾

او د الله لمن ونیسي او خپل دین د الله د پاره خالص کړي،[۱۷۴] دغه خلق د مومنانو سره دي او الله به مؤمنانو له ضرور لوئ اجر ورکوي. آخر په الله څه ضرور ده چه تاسو له خامخا سزا درکوي که تاسو شکر گذاره بندگان جوړ شئ[۱۷۵] او د ایمان په لاره روان شئ. الله ډير قدردان[۱۷۶] دے او د ټولو د حال نه خبر دے.

[۱۷۴] خپل دین د الله د پاره دخالص کولو مطلب دا دے چه سړے خالص د الله وفادار بنده شي، خپله مینه او محبت د الله ورانڼ نذر کړي، او د څه شیز سره ئے د زړه مینه دومره پاتے نشي چه هغه بیا د الله درضا د پاره قربانولے نشي، یعني هر څیز د الله درضا د پاره قربانولے شي.

[۱۷۵] د شکر اصلي معنیٰ نعمت منل یا احسان مند کیدل دي. د آیت مطلب دا دے چه که چرے تا د الله احسان هیر نه کړو او د نمک حرامۍ لار د اختیار نه کړه، بلکه په صحیح طور د هغهٔ احسان و منو، نو بیا هیڅ وجه نشته چه الله تا له خامخا سزا درکړي.

د یو احسان کوونکي سره د صحیح احسان کولو طریقه دا کیدے شي چه سړے د د زړهٔ نه د هغه احسان و مني، په ژبه د هغهٔ اقرار وکړي او په عمل ئے ثابته کړي چه زهٔ ستا احسان مند یم. دا درے واړه کارونه چه راپوخاۀ شي نو دے ته شکر دائي. او شکر ایتل دے ته وائي چه اول نه اول خو سړے احسان د هغه چا و مني چه په اصل کښ ورسره چا احسان کړے وي او بل څوک ورسره په شکریه کښ ملګرے نه کړي. دویم دا چه د سړي په زړهٔ کښ د خپل احسان کوونکي سره مینه او وفاداري وي او د هغه د مخالفینو سره یوه ذره د مینے او د و فادارۍ تعلق نه لري. دریم دا چه دے د خپل احسان کوونکي منونکے او فرمانبردار بنده وي او هغه چه کوم نعمت ورکړے وي هغه د خپل محسن د رضا نه خلاف نهٔ استعمالوي.

[۱۷۶] په اصل کښ لفظ شاکراً استعمال شوے دے چه د هغے ترجمه مونږ "قدردان" کړي ده. شکر چه کله د الله د طرف نه بنده ته وي نو د هغے معنیٰ به "خدمت منل" یا قدرداني کول وي، او کله چه د بنده د طرف نه الله تعالیٰ ته وي نو د هغے معنیٰ به نعمت منل یا احسان مند کیدل وي. د الله د طرف نه د بندګانو د شکریه ایستلو مطلب دا دے چه الله قدردان دے، بنده چه هر څومره او هر څنګه خدمت د هغهٔ وکړي الله د هغے قدر کوي، د چا خدمت بے بدلے نهٔ پریږدي، بلکه د هغه خودومره سخا ده چه هر سړي ته د هغهٔ د خدمت نه زیاتر بدله ورکوي. د بندګانو خو دا حال دے چه څوک ئے خدمت

لَا يُحِبُّ اللّٰهُ الْجَهْرَ بِالسُّوْٓءِ مِنَ الْقَوْلِ اِلَّا مَنْ ظُلِمَ

وَكَانَ اللّٰهُ سَمِيْعًا عَلِيْمًا ﴿۱۴۸﴾ اِنْ تُبْدُوْا خَيْرًا اَوْ تُخْفُوْهُ اَوْ تَعْفُوْا عَنْ سُوْٓءٍ فَاِنَّ اللّٰهَ كَانَ عَفُوًّا قَدِيْرًا ﴿۱۴۹﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ يَكْفُرُوْنَ بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ وَيُرِيْدُوْنَ اَنْ يُّفَرِّقُوْا بَيْنَ اللّٰهِ

الله دا نهٔ خوښوی چه سړے په بدۀ وینا ژبه وُخوزه وی، بغیر دَ هغه چا نه چه په چا ظلم شوے وی‌ه او الله هر څه اوریدونکے او په هر څه پوهیدونکے دے. (چه مظلوم ته دَ بدے وینا حق اگرچه تاته حاصل دے) لیکن که ته نیکی وُکړے که په ښکاره وی او که په پټه وی، یا کم از کم بدی معاف کړے، نو دَ الله صفت هم دا دے چه هغه ډیر معاف کونکے دے حالانکه په سزا ورکولو باندے پوره قدرت لری[۱۸۱]۔
کوم خلق چه دَ الله او دَ هغه دَ رسولانو سره کفر کوی او غواړی چه دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسولانو

ذکری نو قدر ئے کم کوی او چه څوک ورله څه ذکری نو بیا ئے ډیر په سختی سره رانیسی. لیکن دَ الله داحال دے چه څوک څه ذکری نو په حساب کتاب کښ ورسره ډیره نرمی او چشم پوشی کوی، او چه څوک څه ذکری نو دَ هغے قدر دَ هغه نه زیات کوی.

[۱۸۱] په دے آیت کښ مسلمانانو ته ډیرهٔ وُچتو اخلاقو تعلیم ورکړے شوے دے. په هغے وخت کښ منافقانو، یهودیانو او بت پرستانو ټولو دَ اسلام په لار کښ مشکلاتو پیدا کولو ته ملا تړلی وه، او چا چه اسلام قبول کړے وو دَ هغوی دَ تنګولو او دَ هغوی دَ پریشانه کولو کلکه اراده ئے کړی وه، یو بدترین تدبیر داسے نهٔ وو چه هغوی دَ دے نوی تحریک خلاف نهٔ استعمالولو. دا ضروری خبره وه چه په دے سره دَ مسلمانانو په زړونو کښ نفرت او غصه راپیدا شی. الله تعالیٰ چه کله دَ مسلمانانو په زړونو کښ داقسم جذبات راپورته کیدل وُلیدل نو وے فرمائیل چه په بدۀ وینا باندے ژبه خوزه ول دَ خدائے خوښه نهٔ ده. په دے کښ هیڅ شک نشته چه په تاسو باندے ظلم کیږی او که مظلوم دَ ظالم خلاف بده ژبه وُخوزوی نو هغه په حقه دے. لیکن بیا هم بهتره خبره دا ده چه که په پټه وی او که په ښکاره وی په هر حال کښ نیکی کوه او بدیٔ معاف کوه، ځکه چه تاله پکار دی چه دَ خدائے دَ اخلاقو سره ځان نزدے کړے، دَ کوم خدائے نزدیکت چه ته غواړے دَ هغه دا شان دے چه ډیر صبرناک او بار وُړونکے دے، دَ سخت نه سخت مجرمانو ته رزق ورکوی او ډیر لوئ لوئ ګناهونه هم معاف کوی. نو دَ هغهٔ سره دَ نزدیکت دپاره تاله هم پکار دی چه دَ وُچتهٔ حوصلے او فراخه سینے والا جوړ شے.

---

وَرُسُلِهٖ وَيَقُوْلُوْنَ نُؤْمِنُ بِبَعْضٍ وَّنَكْفُرُ بِبَعْضٍ ۙ وَّيُرِيْدُوْنَ اَنْ يَّتَّخِذُوْا بَيْنَ ذٰلِكَ سَبِيْلًا ۙ﴿۱۵۰﴾ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ حَقًّا ۚ وَاَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ عَذَابًا مُّهِيْنًا ﴿۱۵۱﴾ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَرُسُلِهٖ وَلَمْ يُفَرِّقُوْا بَيْنَ اَحَدٍ مِّنْهُمْ اُولٰٓئِكَ سَوْفَ يُؤْتِيْهِمْ اُجُوْرَهُمْ ۗ وَكَانَ اللّٰهُ غَفُوْرًا رَّحِيْمًا ﴿۱۵۲﴾ ع

په منځ کښې فرق وکړي، او دا وائي چه څوک به منو او څوک به نه منو، او غواړي چه د کفر او د ایمان په منځ کښې یوه لاره وباسي، نو دا ټول باخه کافران دي ۱۷۸ او د داسې کافرانو دپاره موږ هغه سزا تیاره کړې ده چه دوئ به خوار و ذلیله کړي ——— ددې برخلاف کوم خلق چه الله او د هغه ټول رسولان مني، او د هغوئ په منځ کښې فرق نه کوي، هغوئ ته به موږ ضرور خپله بدلې ورکړو، ۱۷۹ او الله ډیر معاف کونکے او رحم کونکے دے ۱۸۰ ع

۱۷۸ یعنې هغه خلق چه نه خدائے مني او نه د هغه رسولان، او هغه خلق چه خدائے مني خو رسولان نه مني، او څوک چه ځنې رسولان مني او ځنې نه مني دا ټول یو شان کافران دي. د دوئ په کفر کښې یو ذره شک نشته۔

۱۷۹ یعنې کوم خلق چه د یو خدائے عبادت کوي او هغه خپل مالک مني او د هغه د رالیږلو شوو پیغمبرانو پیروي قبوله کړي، نو صرف هغوئ په خپلو عملونو باندې د اجر اخستلو مستحق دي، او هغوئ چه څومره نیک عمل وکړي د هغې اجر به بیا موي۔ باقي شو هغه خلق چه د الله سره شریک خدائي او یا لنه مني، یاد خدائے په نمائیندګانو کښې ځنې مني او ځنې نه مني، نو د هغوئ دپاره دا سوال د سره نه پیدا کیږي چه د هغوئ په عمل باندې څه اجر هغوئ له ورکړې شي، ځکه چه دداسې خلقو یو عمل هم د خدائے په نظر کښې قانوني عمل نه دے۔

۱۸۰ یعنې کومو خلقو چه د الله او د هغه په رسولانو باندې ایمان راوړے دے د هغوئ سره به الله تعالیٰ په حساب کولو کښې سختي نه کوي بلکه ډیره نرمي به ورسره کوي او معاف کوي به ئې۔

يَسْـَٔلُكَ اَهْلُ الْكِتٰبِ اَنْ تُنَزِّلَ عَلَيْهِمْ كِتٰبًا مِّنَ السَّمَآءِ فَقَدْ سَاَلُوْا مُوْسٰۤى اَكْبَرَ مِنْ ذٰلِكَ فَقَالُوْۤا اَرِنَا اللّٰهَ جَهْرَةً فَاَخَذَتْهُمُ الصّٰعِقَةُ بِظُلْمِهِمْ ۚ ثُمَّ اتَّخَذُوا الْعِجْلَ مِنْۢ بَعْدِ مَا جَآءَتْهُمُ الْبَيِّنٰتُ فَعَفَوْنَا عَنْ ذٰلِكَ ۚ وَاٰتَيْنَا مُوْسٰى

دا اهل کتاب که تن ستا نه دا مطالبه کوی چه ته پر دوی باندِ دَ آسمان نه څه لیکل را نازل کړے[۱۸۱] نو دوی خو دَ موسیٰ نه دَدے نه هم لوئی غټه دَجرم مطالبه کړی وه۔ هغه ته خو دوی وئیلی وُو چه موږ ته خدائے په ډاګه ؤ ښایه او دَدے سرکشئ په وجه په هغوی باندِ ناساپه دَ بجلئ بوټند رالوېدلے وُو۔ بیا هغوی دَ سخی عبادت شروع کړو حالانکه دا ښکاره نښے ئے لیدلے وے[۱۸۲] بیا هم موږ هغوی معاف کړل۔ موږ موسیٰؑ له

[۱۸۱] دَ مدینے یهودیانو چه به دَ نبی صلی الله علیه وسلم نه کوم عجیبه عجیبه مطالبے کولے په هغے کښ یوه دا هم وه چه موږ ته تا ترهغه وخته پورے رسول نه منو ترڅو پورے چه یو لیکلے شوے کتاب زموږ په مخکښ دَ آسمان نه نازل شوے نه وی، یا ترڅو چه زموږ دَ هر سړی په نوم باندِ دَ آسمان نه دا لیکل رانشی چه دا محمدؐ زموږ رسول دے په ده باندِ ایمان راوړئ۔

[۱۸۲] دلته دَ څه واقعے تفصیل بیانول مقصد نه دی، بلکه دَ یهودیانو دَ جرمونو یوه مختصره نقشه پیش کول مقصد دی، دغه وجه ده چه دَ هغوی دَ قومی تاریخ یو څو خاص خاص واقعاتو طرف ته سرسری اشارے شوی دی۔ په دے آیت کښ چه دَ کومے واقعے ذکر دے هغه دَ سورة بقرے په آیت ۵۵ کښ هم تیر شوے ده۔ (وګوره سورة بقره، حاشیه نمبر ۷۱)

[۱۸۳] دَ ښکاره نښو نه مُراد هغه نښے دی چه کله موسیٰ علیه السلام رسول مقرر کړے شو دَ هغے نه را واخله دَ فرعون دَ غرق کیدو پورے او دَ بنی اسرائیلو دَ مصر نه دَ وتلو پورے پر لپسے دے خلقو لیدلے وے۔ ظاهره خبره ده چه دَ مصر غوندِ عظیم الشان طاقت د ښځو نه بنی اسرائیل چا خلاص کړی وُو هغه څه دَ غوا بچے نه وُو بلکه الله رب العلمین وُو۔ خو دا قوم په باطل پرستئ کښ دومره انتها ته رسیدلے وُو چه دَ خدائے قدرت او دَ هغه دا روښانه نښے په خپلو سترګو ښه ؤ لیدلے او بیا هم دَ خپل احسان کوونکی خدائے په وړاندِ ټیټ نشو بلکه دَ یو خوسی مجبور کړے شوی سخی بت ته وړاندِ ټیټ شو۔

سُلْطٰنًا مُّبِيْنًا ﴿۱۵۳﴾ وَرَفَعْنَا فَوْقَهُمُ الطُّوْرَ بِمِيْثَاقِهِمْ وَقُلْنَا لَهُمُ ادْخُلُوا الْبَابَ سُجَّدًا وَّقُلْنَا لَهُمْ لَا تَعْدُوْا فِي السَّبْتِ وَاَخَذْنَا مِنْهُمْ مِّيْثَاقًا غَلِيْظًا ﴿۱۵۴﴾ فَبِمَا نَقْضِهِمْ مِّيْثَاقَهُمْ وَكُفْرِهِمْ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَقَتْلِهِمُ الْاَنْۢبِيَآءَ بِغَيْرِ حَقٍّ وَّقَوْلِهِمْ قُلُوْبُنَا غُلْفٌ ؕ بَلْ طَبَعَ اللّٰهُ عَلَيْهَا بِكُفْرِهِمْ فَلَا يُؤْمِنُوْنَ

ښکاره فرمان ورکړو او د دے خلقو د پاسه مو طور وُچت کړو او د دوی نه مو د دغے فرمان د منلو وعده واخستله.[۱۸۴] مونږه دوی ته حکم وکړو چه دروازے ته د سجدے په حالت کښې ورننوځئ.[۱۸۵] مونږه دوی ته ووئیل چه د سبت قانون مهٔ ماتوئ او په دے باندے مو د دوی نه ښه پخه وعده واخستله.[۱۸۶] آخر دا چه د دوی د خپلے وعدے د ماتولو په وجه، او په دے وجه چې دوی د الله آیتونو نه انکار اوکړو، او ډیر پیغمبران ئې ناحقه اووژل، او تر دے پورے ئې چې داخبره اوکړه چې زمونږ زړونه په پردو کښے محفوظ دی[۱۸۷] ــــ حال دا دے چه په حقیقت کښې د دوی د باطل پرستئ په وجه الله تعالی د دوی په زړونو باندے تاپه لګولے ده او د دے وجے نه دوی ډیر کم

---

[۱۸۴] د ښکاره فرمان نه مُراد هغه حکمونه دی چه حضرت موسیٰ علیه السلام له په تختو باندے لیکلی ورکړے شوی وُو. د سورة اعراف په اوولسمه رکوع کښې به د دے ذکر زیات په تفصیل سره راشی. او د وعدے نه مراد هغه وعده ده چه د طور د غرِ په لمن کښې د بنی اسرائیلو د نمائندګانو نه اخستے شوی وه. د سورة بقرے په آیت ۶۳ کښې د دے ذکر تیر شوے دے او د سورة اعراف په آیت ۱۷۱ کښې به بیا د دے طرفته اشاره وُشی.

[۱۸۵] وګوره سورة بقره آیت ۵۸ ــ ۵۹ او حاشیه نمبر ۷۵.

[۱۸۶] وګوره سورة بقره آیت ۶۵ او حاشیه نمبر ۸۲، ۸۳.

[۱۸۷] د یهودیانو دے قول ته د سورة بقرے په آیت ۸۸ کښې هم اشاره شوی ده. په حقیقت کښې به دے خلقو د نورو جاهلانو پشان په دے خبره فخر کولو چه کوم خیالات، پره جنبه او رسم رواج مونږ ته د پلار نیکهٔ نه پاتے شوی دی، په هغه باندے زمونږه عقیده دومره پخه شوی ده چه اوس مونږه د دے نه هیڅوک نشی اړولے. هرکله چه د خدائے د طرفنه پیغمبران راغلی دی او د دوی د پوهه کولو کوشش ئے کړے دے، نو دوی ورله دا جواب ورکړے دے چه که تاسو هر څومره دلیلونه او آیتونه راوړئ خو په مونږ باندے ستاسو د خبرے اثر نهٔ کیږی، څه چه مونږ منلی دی او څه کار چه مونږ کوو، هم هغه به منو او هم هغه کار به کوو. (وګوره سورة بقره حاشیه نمبر ۹۴).

إِلَّا قَلِيلًا ﴿۱۵۵﴾ وَبِكُفْرِهِمْ وَقَوْلِهِمْ عَلَىٰ مَرْيَمَ بُهْتَانًا عَظِيمًا ﴿۱۵۶﴾

ایمان راوړي ـــــ بیا په خپل کفر کښې دومره وړاندې لاړل[189] چه په مریم باندې ئې سخت بهتان ولګولو،[190]

---

۱۸۸ه دا د روان تقریر په منځ کښې بله خبره ده.

۱۸۹ه منځنۍ خبره ختمه شوه او اصل تقریر بیا شروع شو.

۱۹۰ه یهودي قوم په حقیقت کښې د حضرت عیسیٰ علیه السلام د پیدائیش په معامله کښې یو ذره هم شکمن نهٔ وو بلکه په کومه ورځ چه هغه پیدا شوے وو د هغې ورځ نه الله تعالیٰ ټول قوم په دے خبره باندې ګواه کړے وو چه دا یو لوئ شخصیت والا دے، د ده پیدائیش په معجزه شوے دے په اخلاقي جرم نهٔ دے شوے. کله چه د بني اسرائیلو دیرے شریفے او د مذهبي کورنۍ ناواده شوے جینۍ په غیږ کښې بچے راغستے وو او کورته راغله، او د قوم لوئ واړهٔ په زرګونو خلق د هغې کورته راغلل نو هغه په خاموشۍ سره دے ماشوم طرف ته اشاره وکړه او وے وئیل چه ستاسو ټولو تپوسونو جواب به دا ماشوم تاسو له درکړي. ټول خلق حیران شو چه د هغې یې نه به سو بړغه تپوس وکړو چه په زانګو کښې پروت دے. خو ناساپه هغه بچي شروع وکړه او ډیر په صفا ژبه کښې ئې خلقو ته ووئیل چه إِنِّي عَبْدُ اللَّهِ آتَانِيَ الْكِتَابَ وَجَعَلَنِي نَبِيًّا. "زهٔ د الله بنده یم، الله ماله کتاب راکړے دے او زهٔ ئې نبي جوړ کړے یم" (سورة مریم رکوع ۲). په دے طریقه الله تعالیٰ هغه شک د همیشه دپاره ختم کړے وو چه د مسیح د پیدائیش په باره کښې راپیدا کیدے شو. او دغه وجه وه چه حضرت عیسیٰ علیه السلام ځوانۍ ته ورسید و خو هیچا نهٔ په حضرت مریم باندې د زنا الزام ولګولو او نهٔ چا حضرت عیسیٰ ته د ناجائزه پیدائیش پیغور ورکړو. خو کله چه دیرش کالو ته ورسیدو او د نبوت کار ئې شروع کړو، او یهودیانو ئې په خپله بدعملۍ ملامته کول شروع کړل، او د هغوی عالمانو ئې په دے وو تټول چه ریا کاري مه کوئ، او د هغوی عوام او خواص ټول ئې د خپل اخلاقي زوال نه خبر کړل، او هغه خطرناکے لارے ته ئې خپل قوم له دعوت ورکړو چه په هغې کښې د خدائے د دین قائمه ولو دپاره د هر قسمه قرباني برداشت کول وو او هر طرفته د شیطاني طاقتونو سره جنګ کول وو، نو دا بے باکه مجرمان د دے رښتینی آواز د دباؤلو دپاره تیار شول او د هر قسمه ګنده چلونو استعمالول ئې شروع کړل. په دے وخت کښې دوئ هغه خبره شروع کړه چه د دیرشو کالو پورے ئې نهٔ وه کړے یعنی چه مریم علیها السلام، توبه خدایه توبه، زناکاره وه، او عیسیٰ ابن مریم ولد الزنا دے. حالانکه دے ظالمانو ته به په یقین سره معلومه وه چه دا دواړه مور او ځوئ د دے ګندګۍ نه بالکل پاک دي. نو په حقیقت کښې د هغوی په زړهٔ کښې هیڅ شک نهٔ وو، بلکه دا خالص بهتان وو چه د حق په مخالفت کښې ئې قصداً په هغوی باندې لګولے وو. په دے وجه ورته الله تعالیٰ د ظلم او د دروغو په ځائے کفر وئیلے دے ځکه چه د دے الزام د لګولو نه د هغوی اصلي مقصد د خدائے د دین لاره بندول وو، دا نهٔ چه په یو بے ګناه ښځه باندې ئې الزام لګول مقصد وو.

وَّقَوۡلِهِمۡ اِنَّا قَتَلۡنَا الۡمَسِيۡحَ عِيۡسَى ابۡنَ مَرۡيَمَ رَسُوۡلَ اللّٰهِ‌ۚ وَمَا قَتَلُوۡهُ وَمَا صَلَبُوۡهُ وَلٰـكِنۡ شُبِّهَ لَهُمۡ‌ؕ وَاِنَّ الَّذِيۡنَ

او پخپله ئې ووئیل چه مونږه مسیح، عیسیٰ د مریم ځوئ، د الله رسول قتل کړے دے[۱۹۱] او حال دا دے چه په حقیقت کښې هغوئ نه هغه قتل کړو او نه ئې په سولئ وخیژوه[۱۹۲] بلکه د هغوئ دپاره دا معامله شکمنه کړے شوه[۱۹۳] او کوم خلقو چه

۱۹۱ه په جرم کښې تردے حده پورے زړَور شوي وُو چه بنه به ئې پیژندو چه دا رسول دے او بیا به ئې هم قتل کړو، او بنه ئې په فخر سره به ئې ووئیل چه مونږه د الله رسول قتل کړو. برو چه مونږه د زانګو د واقعے کومه حواله ورکړې ده چه په هغه غور وکړے شي نو دا خبره صفا کیږي چه یهودیانو د مسیح علیه السّلام په نبوت کښې هیڅ شک نه وُو. بیا هغه روښانه نښے چه هغوئ د عیسیٰ ؑ په پیغمبرۍ باندې ولیدے (چه ذکر ئې د سورة آلِ عمران په رکوع ۵ کښې تیر شوے دے) د هغے نه روستو خو بیا په دیکښې هډو شه شک نه وُو چه هغه د الله پیغمبر دے حقیقت دا دے چه هغوئ د عیسیٰ ؑ سره څه کول نو هغوئ څه دوکه شوي نه وُو بلکه ښه ئې پیژندلو چه دا مونږ د هغه انسان سره کوُچه د الله پیغمبر دے.

هسے خو دا خبره ډیره عجیبه معلومیږي چه یو قوم یو سړے پیژني چه دا نبي دے او منی ئې هم او بیا ئې قتل کړي. خو حقیقت دا دے چه دخرابو قومونو کارونه وي څه داسے عجیبه شان. هغوئ په خپل منځ کښې داسے سړے نه پریږدي چه هغوئ له په بدو کارونو زورنه ورکوي او د ناجائزه کارونو نه ئې منع کوي. داسے سړے که پیغمبر هم وي خو هغه همیشه د بدعمله قومونو د لاسه د قید او د قتل سزا گانے خوړلے دي. په تلمود کتاب کښې لیکلي دي چه بخت نصر کله بیت المقدس فتح کړو او سلیماني هیکل ته ورننوتلو او سیل ئې کولو. نو د قربانئ ځائے ته مخامخ په دیوال باندې یو ځائے کښې ئې دغشي نشان ولیدو. هغه دیهودیانو نه تپوس وکړو چه دا څه نښه ده؟ نو هغوئ ورته اُووئیل چه دلته زکریا نبي مونږه قتل کړے وُو. هغه به مونږه په غلطو کارونو باندې ملامته کولو آخر دا چه تنګ شونو نو قتل مو کړو. په بائیبل کښې د یرمیاه نبي په باره کښې دا لیکلي دي چه کله بني اسرائیل د حده زیات بداخلاقه شو او حضرت یرمیاه نبي ورله دا خبره ورکړه چه د دے بدعملئ په وجه به خدائے تاسو په نورو قومونو باندې ذوهي نو په هغه ئې دا الزام ولګوُ چه دے د کسدیانو (کلدانیانو) سره ملاؤ شوے دے او د قوم غدار دے. په دے الزام کښې هغه جیل ته ولیږلے شو. په خپله د حضرت مسیح ؑ د سُولئ د واقعے نه دوه درے کاله مخکښې د حضرت یحیٰ معامله پیښه شوي وه. عام یهودیانو هغه پیژندو چه دے نبي دے او کم از کم دومره خو ئې منله چه دے یو نیک صالح انسان دے. خو چه کله هغه د هیرودیس (دیهودیانو د ریاست والی) د دربار په بدو کارونو تنقید شروع کړو نو اول ئې جیل ته ولیږلو او بیا ئې د والئ ریاست د معشوقے په وینا باندې د هغه نه سر پریکړو. دیهودیانو د دے کارونو نه چه سړے ګوري نو دا څه حیرانتیا خبره نه ده

اخْتَلَفُوْا فِيْهِ لَفِيْ شَكٍّ مِّنْهُ ؕ مَا لَهُمْ بِهٖ مِنْ عِلْمٍ اِلَّا اتِّبَاعَ الظَّنِّ ۚ وَمَا قَتَلُوْهُ يَقِيْنًا ۙ﴿۱۵۷﴾ بَلْ رَّفَعَهُ اللّٰهُ

دَ هغه په باره کښې اختلاف کړے دے هغوی هم تول په شک کښې پراته دی، دَ هغوی سره په دے معامله کښې هیڅ علم نشته، تش په ګمان پسے روان دی.[۱۹۴] هغوی حضرت عیسیٰ په یقین سره قتل نکړو بلکه الله هغه خپل طرف ته

چه کله هغوی په خپل خیال کښې مسیحؑ په سولئ وُخیژوو او بیائے روستو په فخر سره داوئیلی دی چه "مونږه دالله رسول قتل کړے دے".

[۱۹۲] دا بیا په منځ کښې یوه خبره ده.

[۱۹۳] دا آیت دا خبره صفاکوی چه حضرت مسیح علیه السلام په سولئ باندې دَ خیژولو نه وړاندې پورته کړے شوے وُو او دَ عیسایانو او دیهودیانو دا خیال صرف یوه دوکه ده چه مسیح په سولئ باندې ساه ورکړې ده. دَ قرآن او دَ بائیبل دَ بیانونو نه مونږته دا معلومیږی چه غالباً د پیلاطس بادشاه په عدالت کښې خو دَ مسیحؑ پیشی شوی ده خو چه کله ئے دَ مرګ دَ سزا فیصله واوریده وله، او یهودیانو دده پاک انسان په مقابله کښې یو داکو زیات قیمتی وګڼړلو او په خپل ځان ئے دَ حق سره دَ دشمنۍ کولو او دَ باطل سره دَ مینے کولو آخری مُهر هم ولګولو، نو پس دَ هغه تر الله پاک په څه وخت کښې حضرت مسیحؑ پورته کړو. روستو چه یهودیانو کوم سړے په سُولئ وُخیژوو لو هغه عیسیٰ نه وُو بل څوک وُو خو معلوم نه ده چه په څه وجه ورته هغوی عیسیٰ ابن مریم وئیلو. هرڅه چه وُو په دے سره دَ هغوی جُرم کمیږی نه، ځکه چه هغوی خو چاته دا زغو تاج په سره وُو او دَ چا په مخ ئے لاپے ټوکلے او په سُولئ ئے خیژوو نو هغوی په خپل خیال کښې دا وئیل چه عیسیٰ ابن مریم دے. اوس ددے معلومولو د پاره زمونږ سره هیڅ ذریعه نشته چه دا معامله په هغوی باندې څنګه مشتبه کړے شوه. په دے باره کښې هیڅ یقینی معلومات نشته دے نو ددے وجے نه صرف په قیاس او په ګمان باندې دا نشي وئیلے کیدے چه هغه دَ څه قسم شک وُو چه یهودیانو دا وئیل چه مونږ عیسیٰ ابن مریم په سولئ خیژولے دے او حال دا وُو چه هغه دَ هغوی د لاس نه وتلے وُو.

[۱۹۴] دا اختلاف کونکو نه مُراد عیسایان دی. دَ مسیحؑ علیه السلام د پانسئ په باره کښې دَ عیسایانو څه یوه خبره نه ده بلکه دَ هغوی په دے باره کښې شل قسمه خبری دی او دَ هغوی دا دیره خبره په دے دلالت کوی چه اصل حقیقت ورته معلوم نه دے او په شک کښې پراته دی. څوک وائی چه کوم سړے په سُولئ خیژولے شوے وُو هغه مسیحؑ نه وُو بلکه دَ مسیحؑ په شکل بل څوک وُو چه یهودیانو او د روم سپایانو په سُولئ خیژولو او مسیحؑ هغه چرته په ځائے کښې ولاړ وُو او په دے بیوقوفانو پورے ئے خندل. څوک وائی چه په سُولئ خو مسیحؑ خیژولے شوے وُو خو روح ئے په سرلئ د پاسه نه وو وتلے چه کله راکوز کړے شو نو ساه ئے وُخنتله. او څوک وائی چه هغه دَ سولئ د پاسه وفات شو او بیا راژوندے شو او تقریباً لس ځله د خپلو ملګرو حواریانو سره ملاو شو او خبرے ئے ورسره وُکړے. څوک وائی چه دَ مسیح انسانی جسم په سُولئ

اِلَيۡهِ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ عَزِيۡزًا حَكِيۡمًا ﴿۱۵۸﴾ وَ اِنۡ مِّنۡ اَهۡلِ الۡكِتٰبِ اِلَّا

پورته کړو،[195] الله زبردست طاقت والا او حکمت والا دے. او په اهل کتابو کښې به هیڅوک دا سے نۀ وی

سره مړشو او هغه ښخ کړے شو خو په هغه کښې چه کوم اُلوهیت روح وُو هغه پورته کړے شو. او څوک وائی چه د مرګ نه روستو مسیح علیه السلام ژوندے شو او د جسم سره پورته کړے شو. دا ښکاره خبره ده که د هغوی سره د حقیقت علم وے نو او دومره مختلفے خبرے به پکښې مشهورې شوی نۀ وے.

[195] دا د دے معاملے اصلی حقیقت دے چه الله تعالیٰ ښودلے دے. په دیکښې ښۀ په صفائی سره دا وئیلی شوی دی چه د حضرت مسیح په قتلولو کښې یهودیان کامیاب نۀ شو او هغه الله تعالیٰ خپل ځان طرفته پورته کړو. او دے پاتے شوه دا خبره چه څنګه ئے پورته کړو د دے په باره کښې قرآن هیڅ تفصیل نۀ دے ښودلے. په قرآن کښې نۀ صفا دا سے دی چه هغه الله تعالیٰ د جسم او د روح سره د زمکے نه آسمان ته چرته یوړو او نۀ ئے صفا دا وئیلی دی چه هغه په زمکه باندې مړ شو او صرف روح ئے پورته کړے شو. د دے وجه نه د قرآن په بنیاد باندې نۀ خو د دے نه انکار کیدے شی او نۀ ئے سره منلے شی. لیکن د قرآن د بیان نه دا خبره صفا معلومیږی چه که په هر شکل مسیح علیه السلام پورته کړے شوے دے خو بهرحال الله په یوه نا آشنا طریقه پورته کړے دے. دا نا آشنا والے د دریو څیزونو نه ظاهریږی.

یو دا چه د اول نه د عیسایانو دا عقیده وه چه مسیح علیه السلام د جسم او د روح سره پورته کړے شوے دے، او هم دغه وجه وه چه د عیسایانو یوه لویه ډله د مسیح د مرګ د منلو نه انکار کوی. او دا ټول په دے وجه دی چه هغوی د مسیح د مرګ قائله شوی ده، لیکن سره د قرآن دا سے نۀ وائی چه د عیسایانو دا عقیده غلطه ده بلکه چه عیسایان د دے واقعے د پاره کوم لفظ "رفع" (Ascension) استعمالوی، هم هغه لفظ ئے استعمال کړو. او دا خبره د کتاب مبین د شان نه خلاف ده چه هغه یو خیال ته غلط وئیل غواړی او بیا د هغه د پاره داسے ژبه استعمال کړی چه هغه خیال پرنور هم مضبوطیږی.

دویم دا که مسیح علیه السلام د دُنیا د نورو مړو په شان پورته کړے شوے دے او یا که د پورته کیدو نه مطلب د هغه درجه او مرتبے پورته کول وے لکه چه څنګه د حضرت ادریس په باره کښې فرمائیلی شوی دی چه وَّ رَفَعۡنٰهُ مَكَانًا عَلِيًّا، نو دا بیان به په دے طریقه نۀ وُو لکه چه دا په کومه طریقه دے. بیا خو چه په دے طریقه بیان کړے وے نو زیاته به مناسبه وه چه "یقین لرئ چه هغوئ مسیح قتل نۀ کړو بلکه الله ژوندے بچ کړو او بیا په خپل مرګ مړ شو. یهودیانو د هغه د ذلت غوښتلو خو الله هغه له لوئ درجے ورکړلے."

دریم دا چه که دا هغسے عام پورته کیدل وُو لکه څنګه چه مړ ته د یو مړی په باره کښې وائیو چه هغه الله واخستو یا پورته کړو، نو بیا د روستو دا فقره مناسبه نۀ وه چه "الله زبردسته طاقت والا او حکمت والا دے." دا فقره خو د یوے داسے واقعے نه روستو مناسب دی چه په هغے کښې د الله د تهری قوت او د هغه د لوئ حکمت اظهار شوے دی.

لَيُؤْمِنَنَّ بِهٖ قَبْلَ مَوْتِهٖ ۚ وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ يَكُوْنُ عَلَيْهِمْ شَهِيْدًا ﴿۱۵۹﴾

چې د هغه د مرګ نه مخکښې په هغه باندې ایمان را نه وړي[۱۹۶] او د قیامت په ورځ به هغه په هغوئ باندې ګواهي کوي.[۱۹۷]

د دې په جواب کښې د قرآن نه صرف یو دلیل پیش کیږي شي چې په سورة آل عمران کښې الله تعالیٰ لفظ مُتَوَفِّيْكَ استعمال کړے دے (آیت ۵۵). لیکن هلته هم مونږه په حاشیه نمبر ۵۱ کښې وئیلي دي چې د دې لفظ معنیٰ یوازې خپل طبعي مرګ نه ده، بلکه د روح اخستل او د روح او د جسم دواړه اخستل معنیٰ ئې هم کیدے شي. نو دا دلیل د هغې مناسبتونو ختمولو دپاره کافي نه دے کوم چې مونږه بره بیان کړي دي. کوم خلق چې د مسیحؑ په خپل طبعي مرګ باندې ډیر زور ورکوي هغوئ دا تپوس کوي چې آیا چرته بل داسې مثال هم شته چې د توفی لفظ د روح او د جسم د دواړو اخستلو دپاره استعمال شوے وي؟ لیکن دا تپوس خوبې مطلبه ځکه دے چې هر کله د روح او د جسم د دواړو په یو ځل د اخستلو واقعه په انساني تاریخ کښې راغلې یو ځل ده نو څنګه به په دې معنیٰ کښې د دې لفظ بل استعمال راشي. غور په دې خبره پکار دے چې په دې ټکي کښې د دې معنیٰ د استعمال ګنجائش شته او که نه؟ که چرې وي نو بیا به دا منل ضروري وي چې قرآن د دې عقیدې نه انکار نه کوي چې مسیح د جسم سره پورته شوے دے، بلکه د دې لفظ په استعمال سره د دې عقیدې له نور تقویت ورکوي، ځکه څو د مرګ دپاره ښکاره لفظ "موت" پریښي دي، او د دوو معنو لفظ "وفات" استعمالوي. بیا ډیر حدیثونه داسې دي چې د مسیح د جسم سره د پورته کیدو د دې عقیدې له زیات تقویت ورکوي، په هغې حدیثونو کښې دا بیان دے چې د قیامت نه مخکښې به عیسیٰ ابن مریم علیه السلام دوباره دنیا ته راځي او د دجال سره به جنګ کوي. (د سورة احزاب په آخر کښې دا حدیثونه مونږ نقل کړي دي). د دې حدیثونو نه د حضرت عیسیٰؑ په دویم ځل راتلل خو قطعي طور ثابت دي. اوس دا اندازه هر سړے په خپله ښه لګولے شي چې د مرګ نه روستو دوباره دنیا ته راتلل زیات مناسب دي، یا دا چې د خدائے په خدائیۍ کښې چرته ژوندے وي او بیا واپس دنیا ته راشي.

[۱۹۶] د دې نقرې دوه معنې استعمال شوي دي او دواړه معنې ئې مطلب کیدے شي. یوه معنیٰ هغه ده چې مونږه په ترجمه کښې لیکلې ده. دویمه دا چې "په اهل کتابو کښې داسې هیڅوک نشته چې د خپل مرګ نه مخکښې په مسیحؑ باندې ایمان را نه وړي". د اهل کتابو نه مراد یهودیان دي او کیدے شي چې عیسایان هم وي. د اولې معنې په لحاظ سره به دا مطلب وي چې کله د مسیح خپل طبعي مرګ وي نو په هغه وخت کښې چې څومره اهل کتاب موجود وي هغوئ ټول لو به په مسیحؑ باندې (یعنې د هغه په رسالت باندې) ایمان راوړے وي. د دویمې معنې په لحاظ سره به مطلب دا وي چې په ټولو اهل کتابو باندې عین د مرګ نه لږ مخکښې د مسیح د رسالت حقیقت ښکاره کیږي او هغوئ په مسیح باندې ایمان راوړي، خو په دې وخت کښې ایمان راوړل هیڅ فائده نه لري. دا دواړه معنې ډیرو صحابو، تابعینو او د لویو مفسرینو نه نقل شوي دي او صحیح مطلب ئې صرف د الله په علم کښې دے.

فَبِظُلْمٍ مِّنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ طَيِّبٰتٍ اُحِلَّتْ لَهُمْ وَبِصَدِّهِمْ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ كَثِيْرًا ﴿۱۶۰﴾ وَّاَخْذِهِمُ الرِّبٰوا وَقَدْ نُهُوْا عَنْهُ وَاَكْلِهِمْ اَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ

[۱۹۸]غرض دا چه د دے یهودیانو د خلقو د ظلم په وجه، او په دے وجه چه دوی خلق ډیر زیات د الله د لارے نه منع کوی،[۱۹۹] او سود اخلی چه د هغے نه دوی منع کړے شوی وو،[۲۰۰] او د خلقو مالونه په ناجائزو طریقو سره خوری، (نو په دے وجه) مونږ په دوی باندے ډیرے هغه پاکے شیزونه حرام کړل چه مخکښ د دوی د پاره حلال وو،[۱۹۷]

[۱۹۷] یعنی یهودیانو او عیسایانو چه د مسیح علیه السلام سره او د هغه د پیغام سره کومه معامله کړی ده په هغه باندے به مسیح د خدائے تعالیٰ په عدالت کښ ګواهی کوی. د دے ګواهئ تفصیل مخکښ سورة مائده په آخری رکوع کښ را تلونکے دے.

[۱۹۸] د تقریر په منځ کښ چه کومه بیله خبره وه هغه ختمه شوه او کوم تقریر چه روان وو هغه بیا شروع شو.

[۱۹۹] یعنی یواځے په دے اکتفا نه کوی چه پخپله د الله د لارے نه اوړیدلی دی، بلکه په جُرم کښ دومره بے باکه شوی دی چه په دنیا کښ د خلقو د ګمراه کولو د پاره څه تحریک راوچتیږی اکثر په هغے کښ د یهودیانو لاس وی، او حق ته د رابللو د پاره چه څه تحریک شروع کیږی د هغے د ختمولو د پاره اکثر یهودیان مقابلے ته راځی، او حال دا دے چه د دے کمبختو ته د الله کتاب راغلے دے او د پیغمبرانو وارثان دی. د هغوی د ډیرلونه تازه جرم دا اشتراکی تحریک دے چه یهودی دماغو جوړ کړے دے او د یهودیانو په مشرئ کښ ئے ترقی کړی ده. د دے تش په نوم اهلِ کتابو په نصیب کښ دا جُرم هم وو چه د دنیا په تاریخ کښ د ټولونه اول کوم نظام دا جوړ شو چه د خدائے د وجود نه انکار کوی، د خدائے سره دشمنی کوی او د خدا پرستی ختمولو اراده لری نو د هغے جوړونکے او مشر د موسیٰ علیه السلام نوم اخستونکے وو. د اشتراکیت نه روستو د نوے زمانے د ګمراهئ دویم ذریعه د فرائیډ فلسفه وه، او هغه هم د بنی اسرائیلو انسان دے.

[۲۰۰] په تورات کښ په صفا توکی دا حکم موجود دے چه:

"که چرے ته زما په خلقو کښ یو داسے محتاج له قرض ورکړے چه ستا خوا ته وسیږی نو د قرض غوښتونکو په شان سلوک ورسره مکوه او مه تری سود اخله. که چرے ته په څه وخت کښ د خپل ګاونډی جامے د ځان سره ګانړه کیږدے نو د نمر پریوتو نه مخکښ ئے ورته واپس کړه ځکه چه هم دغه یو د هغه اغوستن دے او د غه د بدن جامه ده، هغه به بیا په څه کښ اوده کیږی. نو چه کله بیا هغه فریاد کوی، زه به د هغه خبره اورم ځکه چه زه مهربانه یم." (خروج باب ۲۲: ۲۵-۲۷)

د دے نه علاوه په نورو ډیرو ځایو نو کښے هم تورات کښ د سود حراموالے راغلے دے. لیکن د دے باوجود

وَاَعْتَدْنَا لِلْكٰفِرِيْنَ مِنْهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ﴿۱۶۱﴾ لٰكِنِ الرّٰسِخُوْنَ فِي الْعِلْمِ مِنْهُمْ وَالْمُؤْمِنُوْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِمَآ اُنْزِلَ اِلَيْكَ وَمَآ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلِكَ وَالْمُقِيْمِيْنَ الصَّلٰوةَ وَالْمُؤْتُوْنَ

او کوم خلق چه په دوئ کښې کافران دی د هغوئ د پاره مونږ دردناک عذاب تیار کړے دے.[202] لیکن په دوئ کښې چه کوم خلق پاخه عالمان دی او ایماندار دی هغوئ ټول په هغې تعلیم باندې ایمان راوړی کوم چه په تا نازل کړے شوے دے او کوم چه ستا نه وړاندې نازل کړے شوے وو.[203] د دغسې ایماندارو خلقو له او د مونځ او د زکوٰة په پابندۍ

تن په دُنیا کښې د ټولو نه زیات سُود خواره دے تورات منونکی یهودیان دی چه په شومتیا او په سختیا باندې مشهور دی.

[201] غالبًا دا هغې مضمون طرفته اشاره ده چه وړاندې د سورة انعام په آیت ۱۴۶ کښې راتلونکے دے. یعنی دا چه په بنی اسرائیلو باندې ټول هغه ځناور حرام کړے شو چه د هغوئ نوکان وی او د غوا او د ګېډۍ وازګې هم حرام کړے شوې. د دے نه علاوه دا هم ممکنه ده چه اشاره هغه پابندو او سختو طرفته وی کومې پابندۍ او سختۍ چه په یهودی فقه کښې دی. چه کومه دلے د پاره د ژوند دائره تنګه کړے شی نو دا په حقیقت کښې د هغوئ د پاره یو قسم سزا ده. (د تفصیلی بحث د پاره وګوره سورة انعام حاشیه نمبر ۱۲۲)

[202] یعنی د دے قوم کوم خلق چه د ایمان نه پښادی، بغاوتیان او انکاریان دی د هغوی د پاره د خدائے د طرفنه په دنیا او په آخرت کښې دردناکه سزا تیاره ده. په دُنیا کښې چه ورته کومه د عبرت سزا ملاؤ شوه او لا ملاؤ دیږی ورته هغه چرته یو بل قوم ته نه ده ملاؤ شوې. دوه زره کاله شوی دی چه د زمکې په سر ورته چرته د عزت ځائے ملاؤ شوے نه دے. په دُنیا کښې خوارهٔ وارهٔ کړے شوی دی او په هر ځائے کښې مسافران دی. یو دور داسې نه تیریږی چه په هغې کښې دوئ د دنیا په یو حصه کښې نه ذلیله کیږی. او د ډیره دولت با وجود یو ځائے چرته داسې نشته چه هلته دوئ ته د عزت په نظر کتلے شی. بیا غضب دا دے چه قوموته پیدا کیږی او ختمیږی خو دا قوم ختمیږی هم نه. دوئ ته په دُنیا کښې د لَا یَمُوْتُ فِیْهَا وَلَا یَحْیٰی سزا ورکړے شوی ده چه تر قیامته پورے د دُنیا د قومونو د پاره د عبرت یو نمونه وی، او چه خلق تیر دا سبق واخلی چه د چا سره د خدائے کتاب موجود وی او هغوئ د خدائے په مقابله کښې بغاوت شروع کړی نو د هغوئ به دا انجام وی. پاتے شو آخرت نو انشاء الله چه هلته به ئے عذاب د دے نه هم زیات دردناک وی. (په دے موقع باندې چه د اسرائیلی ریاست د جوړیدلو په وجه کومه شُبه راپیدا کیږی د هغې د ختمولو د پاره وګوره سورة آلِ عمران آیت ۱۱۲)

[203] یعنی په دوئ کښې چه کوم خلق د آسمانی کتابونو د حقیقی تعلیم نه خبردی، او د هر قسمه بدینۍ نه د ضد نه، د پلار نیکه د طریقو او د نفس د بندګۍ نه آزاد دی او د آسمانی کتابونو حقیقت په رښتیا سره منی، نو د هغوئ په طور طریقو کښې او د کافرانو، ظالمانو یهودیانو په طور طریقو کښې ډیر فرق دے.

الزَّكٰوةَ وَالْمُؤْمِنُوْنَ بِاللّٰهِ وَالْيَوْمِ الْاٰخِرِ ؕ اُولٰٓئِكَ سَنُؤْتِيْهِمْ اَجْرًا عَظِيْمًا ﴿۱۶۲﴾ اِنَّآ اَوْحَيْنَآ اِلَيْكَ كَمَآ اَوْحَيْنَآ اِلٰى نُوْحٍ وَّالنَّبِيّٖنَ مِنْۢ بَعْدِهٖ ۚ وَاَوْحَيْنَآ اِلٰٓى اِبْرٰهِيْمَ وَاِسْمٰعِيْلَ وَاِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ وَالْاَسْبَاطِ وَعِيْسٰى وَاَيُّوْبَ وَيُوْنُسَ وَهٰرُوْنَ وَسُلَيْمٰنَ ۚ وَاٰتَيْنَا دَاوٗدَ زَبُوْرًا ﴿۱۶۳﴾

خلقوله، او په الله او په ورځ د آخرت باندې رښتينې عقيده لرونکو خلقوله به موږ ضرور لوئ اجر ورکوو ع

اے محمد ﷺ، موږ ده تا ته هغه شان وحي رالیږلې ده لکه څنګه چه موږ نوح او د هغه نه روستو پیغمبرانو ته رالیږلې وه۔[204] موږ ابراهیمؑ، اسماعیلؑ، اسحقؑ، یعقوبؑ او د هغه اولاد ته، عیسیٰؑ، ایوبؑ، یونسؑ، هارونؑ او سلیمانؑ ته وحي راولیږله۔ موږ داؤدؑ ته زبور ورکړو۔[205]

هغوئ ته په یو نظر پته لګی چه پخوانو پیغمبرانو کوم تعلیم ورکړے وُو هم هغه تعلیم قرآن ورکوی نو څکه په دا ار و باندې په حقه سره ایمان راوړی۔

[204] ددے مقصد دا دے چه محمد صلی الله علیه وسلم څه داسے یو ناآشنا شیز نه دے راوړے چه چرته هنګې دے راغلے۔ هغه دا دعوٰی نه کوی چه زهٔ دنیا ته په اول ځل دیو نوے شیز پیش کوم۔ بلکه هغه ته هم د علم د هغه یو خزانے نه هدایت ملاؤ شوے دے د کومے نه چه پخوانو پیغمبرانو ته هدایت ملاویدو، او هغه هم هغه صداقت او حقیقت پیش کوی کوم چه د دُنیا په مختلفو ځایونو کښې هکینو پیغمبرانو پیش کړو۔

د وحي معنیٰ ده اشاره کول، په زړهٔ کښې خبره اچول، په پټه طریقه خبره کول، پیغام لیږل۔

[205] ن صبا چه په بائیبل کښې د زبور په نوم کوم کتاب دے هغه ټول سرترسره د داؤدٔ زبور نه دے. په هغے کښې د نورو خلقو هم "مزامیر" شامل کړے شوی دی. البته د کومو "مزامیر" سره چه دا لیکلی شوی دی چه دا د حضرت داؤدؑ دی نو په هغے کښې واقعی د حق کلام رڼا ښکاریږی۔ د غه شان چه په بائیبل کښې د "امثالِ سلیمانؑ" نوے کوم کتاب موجود دے په هغے کښې هم ډیرکه ون شوے دے۔ او د آخری دوه بابونه خو ډیر روستو په ښکاره روستو لګولی دی خو بیا هم دے امثالو ډیره حصه صحیح او حقه معلومیږی۔ په بائیبل کښې دے د وُ کتابو لو سره یو بل کتاب هم د حضرت ایوبؑ په نوم درج دے، په دیکښې ډیره د حکمت خبرے هم دی خو لوستلو په دو بان کښې د سړی دا یقین نه راځی چه واقعی دا د حضرت ایوبؑ کتاب دے. ځکه چه په قرآن کښې او څنګله دے کتاب په

وَرُسُلًا قَدْ قَصَصْنٰهُمْ عَلَيْكَ مِنْ قَبْلُ وَرُسُلًا لَّمْ نَقْصُصْهُمْ عَلَيْكَ ۭ وَكَلَّمَ اللّٰهُ مُوْسٰى تَكْلِيْمًا ﴿۱۶۴﴾ رُسُلًا مُّبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ لِئَلَّا يَكُوْنَ لِلنَّاسِ عَلَى اللّٰهِ حُجَّةٌۢ بَعْدَ

موږ په هغه رسولانو هم وحي نازله کړه چه د هغوئ ذکر موږ درته د مخکښې تاته کړے دے او هغه رسولانو هم چه د هغوئ ذکر موږ تاته نه دے کړے. موږ د موسیٰ سره هغه شان خبرې وکړې لکه څنګه چه خبرې کیږي. دا ټول رسولان د زیرې ورکونکو او د یرونکو په حیثیت لیږلے شوي وو د پاره د دې چه هغوئ راتلو نه روستو د خلقو سره د خدائے په مقابله کښې هیڅ عذر

اول کښې حضرت ایوب د کوم لوئ صبر تعریف شوے دے د هغه نه بالکل برخلاف دا کتاب وائي چه حضرت ایوب د خپل مصیبت په زمانه کښې د الله تعالیٰ نه شکایت کولے وُو، ترمے پورے چه خپلو ملګرو به ورله دلاسه ورکوله چه خدائے ظالم نه دے خو دے به نه منله۔

ددے صحیفو نه علاوه په بائیبل کښې د بني اسرائیلو د پیغمبرانو اوولس صحیفې نورے هم درج دي چه زیاته حصه ئے صحیح معلومیږي. خاص طور د یسعیاه، یرمیاه، حزقي ایل عاموس او د ځینو نورو صحیفو اکثر ځایونه داسے دي چه سړے به وائي نو د سړي روح په وجد کښې راځي۔ په هغې کښې الهامي کلام ښکاره ښکاري، د هغوئ اخلاقي تعلیم، د هغوئ د شرک خلاف جهاد، د هغوئ د توحید په حق کښې دلیلونه او د هغوئ د بني اسرائیلو په پرېوتي اخلاقو باندې سختې خبرې چه سړے وائي نو دا ئے ورته معلومیږي چه په انجیلو کښې د حضرت مسیح تقریرونه او د قرآن مجید او دا صحیفې ټولے د یوه خزانے نه راوتلي چینې دي۔

۲۰۶ے په نورو پیغمبرانو باندې به وحي په دے طریقه راتله چه یو آواز به راتلو یا به فرښته پیغام راوړلو او هغوئ به اوریدو. لیکن د موسیٰ علیه السلام سره دا خاص کار وُشو چه الله تعالیٰ ورسره په خپله خبرے وکړے. د بنده او د خدائے په منځ کښې به داسے خبرے کیدلے لکه چه دوه کسان په خپلو کښې خبرے کوي۔ د مثال په طور په سورة طٰه کښې د هغوئ خبرے شوې دي. په بائیبل کښې هم د حضرت موسیٰ په باره کښې دغه شان لیکلي شوي دي چه "لکه څنګه یو سړے د خپل دوست سره خبرے کوي دغه شان به خدائے د موسیٰ سره مخامخ خبرے کولے". (خروج ۳۳ : ۱۱)۔

۲۰۷ے یعني د هغوئ د ټولو لوئي یو کار دا وُو او هغه دا چه کوم خلق د خدائے په رالیږلي شوي تعلیم باندې ایمان راوړي او خپلے ټولے طور طریقے د هغې مطابق ټیک کړي، نو چه هغوئ ته د کامیابۍ او د نیک بختۍ زیرے ورکړي، او څوک چه د فکر او د عمل په غلطو لارو لاړ شي نو چه هغوئ ددے د بد انجام نه خبر کړي۔

الرُّسُلِ ؕ وَ كَانَ اللّٰهُ عَزِيْزًا حَكِيْمًا ﴿۱۶۵﴾ لٰكِنِ اللّٰهُ يَشْهَدُ بِمَاۤ اَنْزَلَ اِلَيْكَ اَنْزَلَهٗ بِعِلْمِهٖ ۚ وَالْمَلٰٓئِكَةُ يَشْهَدُوْنَ ؕ وَكَفٰى بِاللّٰهِ شَهِيْدًا ﴿۱۶۶﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَصَدُّوْا عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ قَدْ ضَلُّوْا ضَلٰلًاۢ بَعِيْدًا ﴿۱۶۷﴾ اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَظَلَمُوْا لَمْ يَكُنِ اللّٰهُ لِيَغْفِرَ لَهُمْ وَلَا لِيَهْدِيَهُمْ طَرِيْقًا ﴿۱۶۸﴾ اِلَّا طَرِيْقَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَاۤ اَبَدًا ؕ وَكَانَ ذٰلِكَ عَلَى اللّٰهِ يَسِيْرًا ﴿۱۶۹﴾

پاتې نشي او الله په هر حالت کښې غالب پاتې کیدونکے او حکیم و دانا دے . (خلق که نه مني نو نه دې مني) خو الله ګواهي کوي چه څه هغه په تا نازل کړي دي هغه ئې په خپل علم سره نازل کړي دي ، او په دے باندې فرښتې هم ګواهانې دي اګر چه د خدائے ګواه کیدل بالکل کافي دي کوم خلق چه د دے د منلو نه پخپله انکار کوي او نور خلق د خدائے د لارے نه منع کوي یقیناً چه هغوئ په ګمراهئ کښې د حق نه ډیر لرے وتلي دي . دغه شان کوم خلقو چه د کفر او د بغاوت طریقه اختیار کړه او ظلمونه ئې شروع کړل الله به هغوئ هیچرے معاف نه کړي او هغوئ ته به د جهنم د لارے نه بغیر بله لاره ونه ښائي چه همیشه به پکښې وسیږي . د الله د پاره دا څه ګران کار نه دے .

۲۰۸ے یعني د هغے رسولو پیغمبرانو د رالیږلو هم یو فرض دا و هغه دا و چه الله تعالیٰ د انسانانو دا عذر ختمول غوښتل چه د آخري عدالت په موقع چرته یو ګمراه مجرم دا ؤ نه وائي چه موږ ته خبر نه وو او تا زموږ د خبرولو د پاره څه انتظام نه وو کړے . د دے فرض د پاره الله تعالیٰ د دنیا مختلفو ځایونو ته پیغمبران ولیږل او کتابونه ئې نازل کړل . دے پیغمبرانو ډیرو انسانانو ته د حقیقت د علم ورسولو او ځان نه روستو ئې کتابونه پریښودل چه د هغے نه په هره زمانه کښې د انسانانو د لارښودنې د پاره څه نه څه کتاب موجود وو . اوس که چرے څوک بے لارے کیږي نو الزام په خدائے باندې او د هغه په پیغمبرانو باندې نه راځي بلکه یا خو پخپله په هغوي باندې الزام راځي چه پیغام ورته ورسید او قبول ئې نه کړو ، او یا په هغه خلقو باندې الزام راځي چه نیغه لار ورته معلومه وه او لیدل ئې چه د خدائے بندګان بے لارے دي خو نیغه لار ئې ورته نه ښودله .

يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَكُمُ الرَّسُوْلُ بِالْحَقِّ مِنْ رَّبِّكُمْ فَاٰمِنُوْا خَيْرًا لَّكُمْ ؕ وَاِنْ تَكْفُرُوْا فَاِنَّ لِلّٰهِ مَا فِى السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ وَكَانَ اللّٰهُ عَلِيْمًا حَكِيْمًا ﴿۱۷۰﴾ يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ لَا تَغْلُوْا فِىْ دِيْنِكُمْ وَلَا تَقُوْلُوْا عَلَى اللّٰهِ اِلَّا الْحَقَّ ؕ اِنَّمَا الْمَسِيْحُ عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ رَسُوْلُ اللّٰهِ وَكَلِمَتُهٗ ۚ اَلْقٰهَاۤ اِلٰى مَرْيَمَ

اے خلقو، دے رسول تاسو ته ستاسو د رب د طرفه حق راوړے دے، ایمان راوړئ دا ستاسو دپاره بهتره ده، او که انکار کوئ نو ځان پوهه کړئ چه په آسمانونو او په زمکه کښې څه دی هغه ټول د الله دی [۲۰۹] او الله په هرڅه پوهه دے او حکمت والا هم دے. [۲۱۰]
اے اهل کتابو، په خپل دین کښې د حد نه بهر مه اُوزئ [۲۱۱] او د حق نه بغیر د بلے خبرے نسبت د الله طرفته مه کوئ. مسیح د مریم ځوئے عیسیٰ دے نه سوا بل هیڅ نه وُ چه د الله یو رسول وُو او یو فرمان وُو چه الله مریم ته ولیږو [۲۱۲]

۲۰۹؎ یعنی د زمکے او د آسمان د مالک نافرمانی چه وُکړے نو د هغه څه نقصان نشے کولے نقصان چه څه وی هغه به ستا خپل نقصان وی.

۲۱۰؎ یعنی ستا خدائے څه بے خبره نه دے چه د هغه په بادشاهئ کښې به ته شرارتونه کوے او هغه ته به معلوم نه وی، او نه هغه نادان دے چه خپلو مخالفینو له د سزا ورکولو په چل نه پوهیږی.

۲۱۱؎ دلته د اهل کتابو نه مُراد عیسایان دی او د غُلُوُ معنیٰ ده د څه شیز په حق کښې د حد نه بهر وتل. د یهودیانو جُرم دا وُو چه هغوئ د مسیح په انکار او په مخالفت کښې د حد نه بهر لاړل، او د عیسایانو جُرم دا دے چه هغوئ د مسیح سره په مینه کښې د حد نه بهر وُتل.

۲۱۲؎ په اصل کښې لفظ "کلمهٔ" استعمال شوے دے. مریم ته د کلمے لیږلو مطلب دا دے چه الله تعالیٰ د حضرت مریم علیها السلام په خیټه باندې دا فرمان نازل کړو چه د سړي د نطفے نه بغیر بچه وُ ساته. عیسایانو ته دا ول نه د مسیح علیه السلام د بے پلاره پیدائیښت دا راز ښودلے شوے وُو خو هغوئ د یونانی فلسفے په وجه گمراه شو او ولے ئے د لفظ کلمے نه "کلام" یا "نطق" یعنی "دینا" مطلب واخستلو. بیا ئے د دے کلام او نطق نه د الله تعالیٰ د کلام ذاتی صفت مراد واخستلو. بیا ئے دا قیاس وُکړو چه دا الله تعالیٰ کا ذاتی صفت د مریم علیها السلام خیټے ته ورداخل شو او د مسیح په جسمانی شکل کښې ظاهر شو. د غه شان په عیسایانو کښې د مسیح علیه السلام د خدائی

وَرُوحٌ مِّنْهُ فَآمِنُوا بِاللَّهِ وَرُسُلِهِ ۖ وَلَا تَقُولُوا ثَلَاثَةٌ ۚ انتَهُوا

او یو روح وو د الله د طرفه[212] (چه د مریم په خیټه کښې ئې د بچی شکل اختیار کړو) نو تاسو په الله او د هغهٔ په رسولانو باندې ایمان راوړئ[213] او مه وایئ چه "دریے" دی.[214] منع شئ

غلطه عقیده پیدا شوه او دا غلط خیال ئې بکښې پوخ شو چه خدائے پخپله په ځان یا د ځان یا د ځپل ازلی صفتونو نه د کلام صفت د مسیح په شکل کښې ظاهر کړے دے.

[213] دلته پخپله مسیح ته رُوحٌ مِّنْهُ (د خدائے د طرفنه یو روح) ویلے شوے دے، او په سورة بقره کښې داخیره په دے طرز ښودلے شوے ده چه اَیَّدْنٰهُ بِرُوحِ الْقُدُسِ (مونږه په پاک روح سره د مسیح مدد وکړو). د دواړو عبارتونو مطلب دا دے چه الله تعالیٰ مسیح علیه السلام ته هغه پاک روح ورکړے وو چه د بدۍ نه نا اشنا وو. ټول حق وو او راست بازی وه، او سرتر پایه ښهٔ اخلاق وو. د مسیح علیه السلام دا تعریف عیسایانو ته هم ښودلے شوے وو. خو هغوی په دے کښې هم دومره دروند زیات کړل او د رُوحٌ مِّنَ اللهِ نه ئې روح الله جوړ کړو او د روح القدس (Holy Ghost) نه ئې مطلب دا واخستو چه هغه د الله تعالیٰ خپل پاک روح وو چه په مسیح کښې ئې د ننه حلول کړے وو. د غه شان د الله او د مسیح سره ئې یو دریم خدائے روح القدس جوړ کړو. دا د عیسایانو دویم ډیر ستر تیر وتل وو چه د هغے په وجه په لاره شو. او مزه خو دا ده چه تر ننه هم د متی په انجیل کښې دا فقره موجوده ده چه "فرښته هغه ته (یعنی یوسف نجار ته) په خوب کښې اُوے چه اے د داؤد ځویه یُوسف، خپله ښځه مریم خپل کور ته د راوستلو نه مه یریږه ځکه چه د هغے په خیټه کښې څهٔ دی هغه د روح القدس په قدرت سره دی" باب ۱- آیت ۲۰).

[214] یعنی الله یو خدائے ومنئ او د ټولو رسولانو پیغمبری ومنئ چه په هغوی کښې یو رسول مسیح هم دے. دا د مسیح علیه السلام اصلی تعلیم وو او دا حقیقت دے چه د مسیح ریښتینی پیروکار ته ومنی.

[215] یعنی د دریو خدایانو عقیده پریږدئ. حقیقت دا دے چه عیسایان په یو وخت یو خدائے هم منی او دریے هم منی. په انجیلونو کښې چه د مسیح علیه السلام کوم قولونه دی د هغے په وجه یو عیسائی هم د دے نه انکار نشی کولے چه خدائے بس یو خدائے دے او د هغه نه بغیر بل خدائے نشته. د هغوی د پاره د دے نه بغیر بله څه لار نشته چه دا ومنی چه اصل دین توحید دے (یعنی خدائے یو منل دی) خو کومه غلطی چه تر په اول کښې شوی وه چه ویل ئې چه د الله کلام د مسیح په شکل کښې ظاهر شو او د الله روح په کښې د ننه حلول وکړو، د دے په وجه هغوی د ټول جهان د بادشاه سره د مسیح او د روح القدس خدائی منل په ځان باندې خامخواه لازم کړه چه او س ورته دا مسئله حل کول ګران دی چه د یو خدائے سره دریے خدایان او د دریو خدایانو سره یو خدائے په څه طریقه ومنی. تقریبًا دا تلسو سوؤ کالو راسے مسیحی عالمان د دے مسئلے په حل کولو کښې خپل مازغه خوری. د مختلفو تشریحاتو په وجه یکښې شل ډلے یعنی ډیرے ډلے جوړے شوی دی او د هم دلیلے پلے ته کافروائي. په دے جګړو کښې

خَيْرًا لَّكُمْ ۚ إِنَّمَا اللَّهُ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ ۖ سُبْحَانَهُ أَن يَكُونَ لَهُ وَلَدٌ ۘ لَّهُ مَا فِي السَّمَاوَاتِ وَمَا فِي الْأَرْضِ ۗ وَكَفَىٰ بِاللَّهِ وَكِيلًا ﴿١٧١﴾

دا ستاسو دپاره بهتره ده. الله خو بس یواځې یو خدائ دے. هغه د دې نه اُوچت دے چه څوک دِ د هغه ځوئے شی[216]. د زمکے او د آسمانونو ټول څیزونه د هغه ملکیت دے. او د هغې د ساتنے او د خبرا غستلو دپاره بس هغه کافی دے[218]. ع

یوه کلیسا دپلے نه جدا شوے ده، د عالمانو د خپل علم ټول زور په دے کښ ختم کړے دے. حالانکه دا مسئله ورته نه خدائے پیدا کړی وه او نه مسیح، او نه دغه مسئلے څه حل ممکن دے، چه درے خدایان یو هم ومنلے شی او بیا د یو خدائے عقیده هم په ځائے وی. دا مسئله صرف د هغوئ د حد نه په تیرو ستلو سره پیدا شوی ده او د دے حل دے چه بس د حد نه تیرے نه ؤکړی، د مسیح او د روح القدس د خدائیۍ خیال پریږدی، یواځے یو خدائے ؤمنی او مسیح صرف د هغه پیغمبر ؤمنی او په خدائیۍ کښ دِ ئے ورسره نه شریک وی.

[219] دا د عیسایانو د څلورم زیاتی جواب دے. په بائیبل کښ چه کومه خبره ده هغه که چرے صحیح هم وی، نو په هغے کښ بس دومره قدر له خبره ثابته ده چه مسیح علیه السلام وائی چه د خدائے او د بندګانو د تعلق مثال داسے دے لکه د پلار او د بچو تعلق چه وی، او د خدائے په ځائے به ئے لفظ "پلار" په مجازی معنیٰ سره استعمالولو. دا یوازے مسیح داسے نه دی ویلی. د پخوا زمانے نه بنی اسرائیلو به د خدائے په ځائے لفظ پلار ویلو او د دے دیر مثالونه د بائیبل په زړه عهد نامه کښ شته دے. مسیح دا لفظ د خپل قوم د وینا مطابق استعمال کړے وو او خدائے ته ئے یوازے خپل پلار نه بلکه د ټولو انسانانو پلار ویلو. لیکن عیسایانو دلته بیا د خپل حد نه تیرو ؤتل او مسیح ته ئے د خدائے یو ځوئے اُووے. په دے باره کښ د هغوئ یوه عجیبه نظریه ده هغوئ وائی چه خدائے د مسیح په شکل کښ ظاهر شوے دے، او د الله کلمه او د الله روح د مسیح بدنی شکل اختیار کړے دے، ځکه هغه د خدائے یو نیازنین ځوئے دے، او خدائے د خپل نیازبین ځوئے ځکه زمکے ته را ؤلیږو چه د ټولو انسانانو ګناه په خپل سر واخلی او په سولئ د خیژی او د انسانانو د ګناه کفاره په خپلے وینے سره ادا کړی. حالانکه دا یوه داسے خبره ده چه عیسایان د دے په ثبوت کښ پخپله د مسیح علیه السلام یو قول هم نشی پیش کولے. دا هغوئ د خپلو خیالاتو نه دغه یوه عقیده جوړه کړی ده او دا عقیده په دوئ کښ د هغے زیاتی په وجه پیدا شوی ده کوم زیاتے چه دوئ د خپل پیغمبر په لوئ شان کښ کړے وو. الله تعالیٰ دلته د کفارے د عقیدے جواب ؤنکړو، ځکه چه په عیسایانو کښ دا څه مستقله عقیده نه وه بلکه دا خو هغوئ د یے د مسیح خبرے یوه ګمانی وجه بیان کړی ده چه څرنګه مسیح د خدائے یو نیازبین ځوئے وو نو په سولئ د یا سے پسے عزتئ سره ولے مړ شو. (یعنی هغوئ وائی چه دا ځکه

لَنْ يَّسْتَنْكِفَ الْمَسِيْحُ اَنْ يَّكُوْنَ عَبْدًا لِّلّٰهِ وَلَا الْمَلٰٓئِكَةُ الْمُقَرَّبُوْنَ ؕ وَمَنْ يَّسْتَنْكِفْ عَنْ عِبَادَتِهٖ وَيَسْتَكْبِرْ فَسَيَحْشُرُهُمْ اِلَيْهِ جَمِيْعًا ﴿۱۷۲﴾ فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَعَمِلُوا الصّٰلِحٰتِ فَيُوَفِّيْهِمْ اُجُوْرَهُمْ وَيَزِيْدُهُمْ مِّنْ فَضْلِهٖ ۚ وَاَمَّا الَّذِيْنَ اسْتَنْكَفُوْا وَاسْتَكْبَرُوْا فَيُعَذِّبُهُمْ عَذَابًا اَلِيْمًا ۙ وَّلَا يَجِدُوْنَ لَهُمْ مِّنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيًّا وَّلَا نَصِيْرًا ﴿۱۷۳﴾ يٰۤاَيُّهَا النَّاسُ قَدْ جَآءَكُمْ بُرْهَانٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ

مسیح هیڅکله دا خبره عار نه ګڼي چې هغه دِ د الله یو بنده شي او نه مقربې فرښتې دا د ځان دپاره عار ګڼي. او که څوک د الله بندګي د خپل ځان دپاره عار ګڼي او تکبر کوي نو یو وخت به راشي چې الله به دا ټول راګیر کړي او ځان ته به ئې حاضر کړي.
په دغه وخت کښې به هغه خلق چې ایمان ئې راوړے دے او نیک عمل ئې اختیار کړے دے خپله بدله پوره پوره بیا مومي او الله به ورله په خپل فضل سره زیات اجر ورکړي، او کومو خلقو چې بندګي عار ګڼلې ده او تکبر ئې کړے دے هغوئ له به الله دردناکه سزا ورکوي او د الله نه بغیر چې د هغوئ د چا په سرپرستۍ او امداد باندې بروسه وي په هغوئ کښې به هیڅوک هلته بیا ونه مومي.
اے خلقو، ستاسو د رب د طرف نه تاسو ته روښانه دلیل راغلے دے

مړ شو چې د انسانانو د ګناه کفاره شي (ادا کوله) ـ نو هر کله چې هغوئ ته دا ووئیلے شو چې مسیح د الله ځوئے نه دے او نه په سُولۍ ځړولے شوے دے نو د هغوئ د کفارے عقیده خپله ختمه شوه ـ
۲۱۷؎ یعنې په زمکه او په آسمانونو کښې چې څه دي د هغه سره د خدائے تعلق د پلار او د ځوئ په شان نه دے بلکه د مالک او د مملوک په شان دے ـ
۲۱۸؎ یعنې خدائے د خپلې خدائۍ د انتظام دپاره خپله کافي دے، د هغه چا ته حاجت نشته چې کښې د امداد دپاره ځان له ځوئے ونیسي ـ

وَاَنْزَلْنَآ اِلَيْكُمْ نُوْرًا مُّبِيْنًا ﴿۱۷۴﴾ فَاَمَّا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا بِاللّٰهِ وَاعْتَصَمُوْا بِهٖ فَسَيُدْخِلُهُمْ فِيْ رَحْمَةٍ مِّنْهُ وَفَضْلٍ ۙ وَّيَهْدِيْهِمْ اِلَيْهِ صِرَاطًا مُّسْتَقِيْمًا ﴿۱۷۵﴾ يَسْتَفْتُوْنَكَ ؕ قُلِ اللّٰهُ يُفْتِيْكُمْ فِي الْكَلٰلَةِ ؕ اِنِ امْرُؤٌا هَلَكَ لَيْسَ لَهٗ وَلَدٌ وَّلَهٗٓ اُخْتٌ فَلَهَا نِصْفُ مَا تَرَكَ ۚ وَهُوَ يَرِثُهَآ اِنْ لَّمْ يَكُنْ

او موږ ته تاسو ته داسې رڼا رالیږلې ده چې تاسو ته صفا صفا لاره ښایي. اوس چه کوم خلق د الله خبره مني او د هغه سره پناه اخلي نو هغوی به الله د خپل رحمت او د خپل فضل وکرم د سورې لاندې راولي او خپل طرفته د راتلونیغه لار به ورته وښایي.

خلق ستا نه د کلاله په حقله د فتوې تپوس کوي.[219] ورته ووایه چه الله تاسو له فتوی درکوي. که چېرې یو داسې سړی مړشي چه اولاده نه وي او یوه خور یې وي نو د هغه په میراث کښې نیمه حصه ده،[220] او که چرې خور مړه شي او اولاد نه وي

[219] دا آیت دې سورة د نازلیدو نه ډیر روستو نازل شوې دې. د بعض روایتونو نه خو دا هم معلومیږي چه دا د قرآن د ټولو نه آخری آیت دې. دا بیان که چرې صحیح هم نه وي خو بیا هم کم از کم دومره خو ثابته ده چه دا آیت په نهمه هجري کښې نازل شوې دې. او سورة نساء دې نه ډیر مخکښې د یو مکمل سورة په حیثیت لوستلې کیدو. د غه وجه ده چه دا آیت د هغه آیتونو په سلسله کښې شامل نه کړې شو کوم چه میراث په باره کښې دې سورة په شروع کښې درج شوي دي، بلکه د سورة په آخره کښې د ضمیمې په طور درج کړې شو.

[220] د کلاله په معنی کښې اختلاف دې. څنې وائي چه کلاله هغه سړې دې چه اولاد هم نه وي او مور او پلار یې هم ژوندي نه وي. او څنې وائي چه بې اولاده سړې مړشي هغه ته کلاله وائي. حضرت عمر رضي الله عنه تر آخره پورې په دې معامله کښې په شک کښې پروت وو. لیکن عام علماء د حضرت ابوبکر دا رائې منلې ده چه کلاله هغه سړي ته وائي چه اولاد یې هم نه وي او مور او پلار یې هم ژوندي نه وي. او پخپله د قرآن نه هم د دې خبرې تائید کیږي، ځکه چه دلته د کلاله خور ته نیم میراث حقدار کړې شوې ده او که چرې د کلاله پلار ژوندې وي نو بیا پکښې د سرنه د خور حصه نه رسي.

[221] دلته د هغه رونړو خویندو ذکر کیږي چه د مړي سره په مور او پلار دواړو کښې شریک وي، یا یوازې په پلار کښې شریک وي، حضرت ابوبکر رضي الله عنه یو ځل په یو خطبه کښې دا معنی کړې ده او په صحابو کښې چا د هغه اختلاف ونکړو، نو په دې وجه دا یوه اجماعي مسئله ده.

لَهَا وَلَدٌ ۚ فَإِنْ كَانَتَا اثْنَتَيْنِ فَلَهُمَا الثُّلُثَانِ مِمَّا تَرَكَ ۚ وَإِنْ
كَانُوا إِخْوَةً رِّجَالًا وَنِسَاءً فَلِلذَّكَرِ مِثْلُ حَظِّ الْأُنثَيَيْنِ ۗ
يُبَيِّنُ اللَّهُ لَكُمْ أَن تَضِلُّوا ۗ وَاللَّهُ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿١٧٦﴾ ع

رُوربه ده هغې وارث وي۲۲۲ اوکه دَ مړي وارثانې دوه خویندې وي نو هغوئ به دَ ټول
میراث نه په دریوکښ دَ دوو حصو حقدارې وي، اوکه ډیر رو نړه خویندې وي نو دَ
ښځو به یوه حصه او دَ سړو به دوه حصې وي. الله ستاسو دپاره حکمونه ځکه واضحه
کوي چه بې لارې نشئ او الله دَ هر څیز علم لري ع

۲۲۲ یعنې که چرې بل څوک میراث خورنه وُ نو بیا به رور دَ هغه دَ ټول مال وارث وي. اوکه چرې
بل وارث موجود وُو، مثلاً خاوند، نو خاوند ته دَ هغه دَ حصې دَ ادا کولو نه روستو به باقي ټول
مال رور ته ملاویږي.
۲۲۳ داحکم دَ دوو نه دَ زیاتو خویندو هم دے.

# المآئدة

## نوم
د دې سورة نوم د پنځلسم رکوع په آیت هَلْ يَسْتَطِيعُ رَبُّكَ أَنْ يُنَزِّلَ عَلَيْنَا مَائِدَةً مِّنَ السَّمَاءِ کښې د لفظ "مائده" نه اخستلے شوے دے. د قرآن د ډیرو سورتونو د نومونو په شان دا نوم هم د سورة د موضوع سره څه خاص تعلق نه لري. صرف د نورو سورتونو نه د پېژندلو دپاره د نښې په طور دا نوم اېښودلے شوے دے.

## د نزول زمانه
د سورة د مضمونونو نه دا ظاهرېږي او د روایتونو نه د هغې تصدیق کېږي چه دا سورة د صلح حدیبیه نه روستو د شپږم هجري په آخره کښې یا د اووم هجري په اول کښې نازل شوے دے. د شپږم هجري د ذي القعدې د میاشتې واقعه ده چه نبي صلی الله علیه وسلم د څوارلس سوو مسلمانانو سره د عمرې ادا کولو دپاره مکې ته لاړو. خو د قریش کافرانو د دشمنۍ د تاوه عمرې کولو ته پرې نښودو او د ډیر بحث کولو نه روستو په دې خبره راضي شو چه تاسو بل کال له زیارت له راتلے شئ. په دې موقع باندې د دې خبرې ضرورت وو چه مسلمانانو ته [illegible] د زیارت دپاره د سفر کولو آداب وښودلے شي څکه چه بل کال له د عمرې سفر پوره په اسلامي شان سره وشي، او بل ورته په دې خبره زور ورکړے شي چه کافرانو تاسو سره کوم زیاتے کړے دے چه عمرې ته ئې نه یئ پرېښودلي نو چه په بدله کښې ورسره تاسو څه ناروا زیاتے ونکړئ، دا څکه چه د کافرانو د ډیرو قبیلو د حج لاره په مسلمانانو باندې ورتلله او مسلمانانو هغوئ د کعبې د زیارت نه منع کولے شو لکه څنګه چه دوئ ئې منع کړي وو. دا سبب دے د هغې اولنۍ تقریر چه د هغې نه د سورة شروع شوې ده. وړاندې په دیارلسم رکوع کښې بیا په دې مسئله بحث شوے دے، د دې نه دا معلومه شوه چه د څوارلسم رکوع پورې دا ټول یو تقریر دے. د دې نه علاوه په دې سورة کښې چه کوم نور مضمونونه دي هغه هم ټول د دغې یوې زمانې معلومیږي.

د دې سورة بیان ټول مسلسل روان دے. نو په دې وجه دا غالب ګمان راځي چه دا ټول سورة به یوه خطبه وي او په یو وخت به نازل شوے وي. کیدے شي چه څه آیتونه ئې ځان له روستو نازل شوي وي او د دې سورة په مختلفو ځایونو کښې په دې وجه اېښودلے شوي وي چه مضمون ئې د دې سره یو شان دے، لیکن د بیان سلسله څه دومره روانه ده چه دا قیاس هډو کیدے نه شي چه دا سورة څه د دوؤ یا د دریو خطبو مجموعه ده.

## شان نزول
د سورة آل عمران او د سورة نساء د نازلیدو د زمانې نه د دې سورة د نازلیدو پورې په حالاتو کښې ډیر فرق راغلے وو. یا خو هغه وخت وو چه د جنګ اُحد د شکست د وجې نه مسلمانانو ته د مدینې خوا وشا علاقه خطرناکه شوې ده، او یا بیا دا هغه وخت راغے

چه په عربو کښې د اسلام د مقابلې کولو څوک په نظر نه راتلو او اسلامي رياست يو طرفته د [illegible]
بل طرفته د شام پورې، دريم طرفته د بحر احمر د غاړې پورې او څلورم طرفته د مکې [illegible]
علاقې پورې خور شوې وُو. د اُحد په جنګ کښې چه کوم نقصان مسلمانانو ته ملاؤ شوې
وُو د هغې په وجه د هغوئ حوصلې او ارادې نورې هم زياتې شولې. هغوئ د زخمي ازمري
پشان په جوش کښې راغلل، راپاسيدل او په دېره کاله کښې دننه دننه ئې ټوله نقشه بدله
کړله. د هغوئ د کوششونو او د قربانو وجه وه چه د مدينې څلورو واړو طرفونو ته
د دوه دوه سوه ميلو پورې د مخالف قبائلو حوصلې خرابې شولې. د يهوديانو د طرفنه
خطره د هميشه دپاره ختمه شوله او په حجاز کښې هم چه په کوم ځائ کښې يهوديان وُو هغه د
مدينې د حکومت متونکي شو. د اسلام د ختمولو دپاره قريشو خپل آخري کوشش په
جنګ خندق کښې وکړو او په هغې کښې ئې سخت شکست وخوړو. د دې نه روستو د عربو يقين
راغې چه اسلام اوس يو نه ختميدونکې تحريک دے. اوس اسلام يوازې يوه داسې
عقيده نه وه چه صرف د خلقو په زړونو کښې وي، بلکه اسلام اوس يو رياست وُو چه د
خپلو ټولو وُسيدونکو په ژوند باندئ حکمراني وه. اوس مسلمانان د داسې طاقت مالکان
شوي وُو چه په کومه عقيده باندئ ئې ايمان وُو نو په آزادئ باندئ ئې د هغې مطابق ژوند
تيرولې شو او بله هره عقيده يا قانون ئې د خپل ژوند د ميدان نه ايستلې شو.

بيا په دې څو کالو کښې دننه د اسلامي اصولو مطابق د مسلمانانو يو نيکلې ژوند جوړ
شوې وُو. په اخلاقو کښې، په استوګنه کښې او په کلي والئ کښې او په هر څه کښې مسلمانان
د کافرانو نه بدل وُو. مسلمانانو چه کوم ځايونه قبضه کړي وُو په هغه ټولو کښې د جماتونو
او د امامتئ د مونځ نظم قايم شوې وُو. په هر کلي او په هره قبيله کښې امامان مقرر شوي
وُو. د عدالت ټول کاروبار د اسلامي قانون لاندې فيصله کيدل. د اخستلو او د خرڅولو نوې
اسلامي طريقه شروع شوې وه. د ميراث قانون جوړ شوې وُو. د نکاح او د طلاق قوانين،
د پردې او د اجازت غوښتلو حکمونه، د زنا او د تور پورې کولو (قذف) سزا گانې
شروع شوې وې. د مسلمانانو د ناستې پاستې، د خبرو اترو، د خوراک څکاک او د وسيدلو
ځان له طريقه جوړه شوې وه. د دې وجه وه چه ټول کافران د دې نه بيخي نا اُميده
شوي وُو چه مسلمانان به کله بيا د وئ خواله کفر ته راشي.

د صلح حديبيه پورې د قريشو کافرانو د مسلمانانو په لار کښې يو لوئ بندېز وُو او مسلمانانو
ته د خپل دعوت خورولو موقع [illegible] نه ورتلله. د صلح حديبيه سره دا بندېز ختم شو. مسلمانان
په خپل رياست کښې په امن هم [illegible] وو او په خوا وشا علاقه کښې ورته د اسلام خورولو موقع
هم په لاس ورغله. نبي صلی الله عليه وسلم د ايران، د روم، د مصر او د عربو بادشاهانو
او سردارانو ته خطونه ليکل شروع کړل او مسلمانانو د الله دين ته د خلقو د بللو دپاره
په مختلفو قومونو او قبيلو کښې خواره شو.

**بحثونه** | د احالات دُوچه سورة مائده نازل شو، په دے سورة کښې درے لوئ مضمونه بيان شوى دى.

(۱) د مسلمانانو د استوګنې په ختلو نو رحکونه، په دے باره کښې د حج د پاره د سفر کولو آداب مقرر کړے شو، د شعائر الله د احترام کولو حکم ؤشو او د احکم ؤشو چه څوک کعبے ته ځى هغوى مه منع کوئ، د خوراک څکاک په څیزونو کښې د حلالو او د حرامو حدونه قائم کړے شو او د جاهلیت د زمانے بندیزونه مات کړے شو، د اهلِ کتابو سره د خوراک څکاک کولو او د هغوى د ښځو سره د نکاح کولو اجازت ؤکړے شو، د اودس د غُسل او د تیمم قاعدے مقرر کړے شوے، د بغاوت او د فساد جوړولو او د غلا کولو سزاګانے مقرر کړے شوے، شراب او جوارى قطعاً حرام کړے شوه، د قسم ماتولو کفاره مقرر شوه او د شهادت په قانون کښې یو څو خبرے زیاتے کړے شوے.

(۲) مسلمانانو ته نصیحت، چونکه د مسلمانانو نه یوه حکمرانه ډله جوړه شوى وه، په لاس کښې ئے طاقت راغلے وُو، او په لاس کښې د طاقت د راتللو وجه نه اکثر قومونه ګمراه کیږى، د مظلومۍ دور په ختمیدو ؤو خو د دے نه زیات په آزمینتى دور کښې مسلمانانو قدم ایښودلو، نو په دے وجه ورته بیا بیا دا نصیحت ؤشو چه په عدل او انصاف باندې قائم ؤسیږئ، د اهلِ کتابو پښان کار مکوئ، د الله د حکم منلو کومه وعده چه مو کړې ده په هغه کلک ؤسئ او د یهودیانو او د عیسایانو پښان ئے مه ماتوئ، د خپلو ټولو کارونو فیصلے د الله د کتاب مطابق کوئ او د منافقت نه ځان ساتئ.

(۳) یهودیانو او عیسایانو ته نصیحت، د یهودیانو زور اوس ختم شوے وُو او د شمالى عرب تقریباً ټول یهودیان کلى د مسلمانانو په قبضه کښې راغلى وُو، هغوى ته یو ځل بیا په خپله غلطئ باندې خبردارے ورکړے شوے دے او نیغ لارے ته د راتللو دعوت ورکړے شوے دے. د غه رنګے د صلح حدیبیه په وجه په عربو او په خوا اُو شا ملکونو کښې مسلمانانو ته د اسلام د خورولو موقع په لاس ورغلى وه، نو ځکه عیسایانو ته هم ښه په تفصیل سره دا ؤوئیلے شو چه ستاسو عقیده غلطه ده او په نبى عربى باندې ایمان راورئ. په ګاونډى ملکونو کښې چه کوم قومونه بُت پرست او مجوسیان وُو هغوى ته نیغ په نیغه خطاب ؤنکړے شو، ځکه چه د هغوى د پاره هغه خطبے کافى وے کوم چه د عربو مشرکانو ته په مکه کښې نازل شوے وے.

آیاتها ١٢٠ — سُوْرَةُ الْمَآئِدَةِ مَدَنِيَّةٌ — رکوعاتها ١٦

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْۤا اَوْفُوْا بِالْعُقُوْدِ ۬ؕ اُحِلَّتْ لَكُمْ بَهِيْمَةُ الْاَنْعَامِ اِلَّا مَا يُتْلٰى عَلَيْكُمْ غَيْرَ مُحِلِّي الصَّيْدِ وَاَنْتُمْ حُرُمٌ ؕ

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، د بندیزونو پوره پابندی کوئ.[1] ستاسو دپاره د څاروو د قسمه ټول څناور حلال کړے شو[2] ماسوا د هغې نه چه وړاندې به تاسو ته وخودلے شی. لیکن د احرام په حالت کښې ښکار د ځان دپاره حلال مه ګڼړئ.[3]

---

[1] یعنی په دے سورة کښې چه په تاسو باندې کوم حدونه لګی د هغې پابندی کوئ، او د هغه حدونو پابندی کوئ چه د خدائے په شریعت کښې په تاسو باندې لګولے شوی دی. په دے وړے جمله پسے هغه حدونه او بندیزونه بیانیږی په کوم باندې چه د پوره پابندئ کولو حکم شوے دے.

[2] "انعام" په عربئ ژبه کښې اوښانو، غویانو، اوګډو وبیزو ته ویلے شی. او "بهیمه" هر څرید ونکی څاروی ته ویلے شی. که الله تعالیٰ صرف دا فرمایلی وے چه انعام ستاسو دپاره حلال کړے شوی دی نو صرف هغه څلور قسمه څاروی به حلال وے چه کوم ته په عربئ کښې "انعام" وائی. لیکن حکم په دے ...... سره شوے دے چه "د څاروو د قسمه ټول څرید ونکی څناور حلال کړے شو" په دے سره حکم عام شو او هغه ټول څرید ونکی څناور پکښې راغلل چه د څاروو د قسمه دی. یعنی چه داړونکی نه دی، کیا خوری او په نورو څناورو باندې کښې معبود "انعام" سره یو شان وی. هم دا رنګے د دے نه خبره ته اشاره کیږی چه کوم څناور داړونکی وی او نور څناور ځان له خوراک جوړوی، هغه حلال نه دی. دا اشاره نبی صلی الله علیه وسلم صفا کړی ده او په حدیث کښې ئے حکم کړے دے چه درندګان ټول حرام دی. د غه شان نبیؐ هغه مرغئ هم حرامے کړے دی چه د هغوئ پنجے وی او د خوراک دپاره نور څناور ښکار کوی یا مُردار ئے خوری. د ابن عباس روایت دے چه نهی رسول الله صلی الله علیه وسلم عن کل ذی ناب من السباع وکل ذی مخلب من الطیر. د نورو ډیرو صحابو نه هم دا سے روایات نقل کړے شوی دی.

[3] "احرام" د فقیرئ هغه جامے ته وائی چه د کعبے د زیارت دپاره اغوستلے کیږی. د کعبے نه چار چاپیره د څو منزلو په فاصله باندې یو حد مقرر کړے شوے دے چه د هغې نه وړاندې د تللو اجازت یو زیارت کوونکی ته ترهغه پورے نشته ترڅو پورے چه هغه خپلے عامے جامے ویستلی نه وی او د احرام جامے ئے نه وی اغوستی. د احرام په جامه کښې صرف یو ...... یو څادر وی چه دپاسه اغوستلے کیږی. دے ته احرام ځکه وئیلے شی چه د احرام د نیت کولو نه روستو په سړی باندې ډیر هغه څیزونه حرام شی چه هغه په عام حالت کښې حلال دی، مثلاً حجامت کول (ږیره پریکول)، خوشبوئی لګول، د هر قسمه ښائست کول، او کوروالے کول وغیره. په دے پابندو کښې یوه

إِنَّ اللَّهَ يَحْكُمُ مَا يُرِيدُ ① يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا لَا تُحِلُّوا شَعَائِرَ اللَّهِ وَلَا الشَّهْرَ الْحَرَامَ وَلَا الْهَدْيَ وَلَا الْقَلَائِدَ

بیشکه چه الله څه غواړي دَ هغه حکم کوي[۴]

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، دَ خُدا پرستئ دَ نښو بے حُرمتی مهٔ کوئ[۵] — په حرامو میاشتو کښ یوه هم حلاله مهٔ کنړئ، دَ قربانئ په څناورو باندِ حمله مهٔ کوئ او مهٔ په هغه څناورو باندِ حمله کوئ چه په غاړه وکښ ئے دَ نذرانې دَ نښے په طور پټے وی،

پابندئ هم ده چه دغه قسمه څناور به نهٔ حلالوے او نه به ئے ښکار کوے او نهٔ به چاته دهغے دَ ښکار پته ورکوے۔

[۴] یعنی الله مطلق حاکم دے، هغه ته دے خبرے پوره اختیار دے چه څهٔ غواړی نو چه دهغے حکم وکړی۔ بندګانو ته دهغه په حکمونو کښ دخبرو کولو هیڅ حق نشته۔ اګرچه دالله تعالیٰ ټول حکمونه دحکمت او دَ ښیګړے نه ډک دی، خو مسلمان دهغه حکم په دے وجه نهٔ منی چه په دے کښ حکمت او ښیګړه ده، بلکه په دے وجه منی چه دا د مالک حکم دے۔ چه کوم شے هغه حرام کړے دے نو دا صرف په دے وجه حرام دے چه هغه حرام کړے دے، او دغه شان چه څه هغه حلال کړی دی هغه هم صرف په دے وجه حلال دی چه الله خپلو بندګانو ته دَ هغے شے د استعمال اجازت ورکړے دے۔ دغه وجه ده چه دشیزونو دحراموالی او دَ حلالوالی په حقله دقرآن دا اصول دی چه دے اصل بنیاد دمالک اجازت او غیراجازت دے یعنی دکوم شی اجازت چه مالک ورکړے دے هغه دَ بنده دپاره جائز دے او دکوم شی اجازت چه مالک نهٔ دے ورکړے هغه دبنده دپاره ناجائزه دے۔ ددے بنیاد نه بغیر بل په هیڅ بنیاد باندِ یو شیز نهٔ حرامیدے شی او نهٔ حلالیدے شی۔

[۵] هر هغه شیز چه هغه یوے طریقے یا یوے عقیدے یا یو فکر او یا یو نظام طرفته اشاره کوی، هغه دهغے دپاره "شعار" وی ځکه چه هغه دهغے نظام یوه نښه وی۔ سرکاری جنډه، دفوج او دپولیس خاص وردی، سکّه، نوټونه او سټامپ دحکومت شعائر دی او هغه دَ خپل رعیت نه، بلکه دهر هغه چانه چه په چا ئے وس رسی، ددے شعائرو د احترام کولو مطالبه کوی۔ ګرجا او د قربانئ ځائے او دَ سُولئ نښه دَ عیسائیت شعار دی۔ سرئ، زنار او مندر د برهمنیت شعار دی۔ اوږده ویښته، کړه او کرپان وغیره دسکه مذهب شعائر دی۔ سټک او لُور داشتراکیت شعائر دی۔ سواستیکا دآریه نسل پرستئ شعار دے۔ دا ټول نظامونه دخپل خپل پیروکارونه ددے شعائرو د احترام کولو مطالبه کوی۔ کهٔ چیرے یو سړے دیو نظام د شعائرو (نښو) نه ډیر یو شعار سپکاوے کوی نو ددے مطلب دا دے چه دے په اصل کښ ددغے نظام دشمن دے، او کهٔ چیرے دے پخپله دهغے نظام سره تعلق لری دکوم د شعائرو چه دے سپکاوے کوی نو مطلب دا دے چه دے د خپل نظام نه مُرتد او باغی دے۔

دَ "شعائرالله" نه مراد هغه ټول نښے دی چه دشرک او دکفر او ددهریت په مقابله کښ خالص دَ خُدا پرستئ طریقے ته اشاره کوی۔ داسے نښے او علامتونه چه هر چرته وی، په هره طریقه او په هر نظام کښ چه وی مسلمانانو ته دا حکم دے چه دهغے احترام او عزت به کوی، ولے هله چه دغه علامے خالص دَ خدائے

وَلَآ آٰمِّيۡنَ الۡبَيۡتَ الۡحَرَامَ يَبۡتَغُوۡنَ فَضۡلًا مِّنۡ رَّبِّهِمۡ وَ رِضۡوَانًا ؕ وَاِذَا حَلَلۡتُمۡ فَاصۡطَادُوۡا ؕ وَلَا يَجۡرِمَنَّكُمۡ شَنَاٰنُ

او مه د هغو خلقو سره چیړ کوئ چه د خپل رب د فضل او د هغه د رضا په تلاش کښ د محترم کور (کعبے) طرف ته روان وی۔ [۱] او چه کله د احرام حالت ختم شی نو ښکار "تاسو کولے شئ" او کوړئ، یو ډلے چه ستاسو دپاره د مسجد حرام لار بنده کړی ده نو په دې تاسو له ـــــ

د عبادت دپاره وی او د کفر او د شرک یو کار ورسره شامل کړے شوے نه وی۔ یو سړے که مسلمان نه هم وی خو چه هغه په خپله عقیده او عمل کښ تر یو حده د بندګئ او د عبادت یو کار کوی، نو د هغه کار د حده پورے به ورسره مسلمان مکړ تیا کوی، او کوم شعائر چه د هغه په مذهب کښ خالص د خدا پرستئ علامت وی د هغے په احترام کښ به ورسره مکړ تیا کوی۔ په خدا پرستئ کښ زمونږه او د هغه جګړه نشته۔ زمونږه د هغه سره جګړه په دے خبره نه ده چه هغه د خدائے بندګی ولے کوی، بلکه جګړه په دے خبره ده چه هغه د خدائے د بندګئ سره د بل چا بندګی ولے شریکوی۔

دا یاد ساتل پکار دی د شعائر الله د احترام ساتلو د احکم په هغه زمانه کښ شوے وو کله چه د مسلمانانو او د عربو د مشرکانو په مینځ کښ جنګ شروع وو، په مکه باندې د مشرکانو قبضه وه، د عربو د هر ځائے نه په د مشرکانو تیا ئل خلق د حج او د زیارت دپاره کعبے ته تلل او د ډیرو قبیلو لاره په مسلمانانو باندې وه الله په دغه وخت کښ د احکم وشو که دا خلق مشرکان هم دی، او که ستاسو او د دوئ په مینځ کښ جنګ هم دے، خو هر کله چه دوئ د خدائے کور له حج نو یا دوئ مه چیړئ، د حج په میاشتو کښ پرے حمله مه کوئ، د خدائے دربار ته چه د نذر دپاره کوم څناور بوځی هغے ته نقصان مه رسوئ، ځکه چه د هغوئ په مات کوږ مذهب کښ د خدا پرستئ څومره حصه پاتے ده د هغے احترام پکار دے نه چه بے احترامی.

[۱] د "شعائر الله" د احترام کولو عام حکم وشو، بیا روستو د یو شو شعائر د نومونه وا خستلے شو او د هغوئ د احترام کولو خاص حکم ځکه وشو چه په هغه وخت کښ دا خطره پیدا شوی وه چه د جنګ په جوش کښ چرته د مسلمانانو نه د هغے سپکاوے ونشی۔ د دے دا مقصد نه دے چه بس هم د دے یو شو شعائر د احترام پکار دے۔

[۲] احرام هم په خپله په شعائر الله کښ شامل دے، او په دے کښ چه کومے پابندئ دی په هغے کښ یوه پابندی ماتول د احرام بے حرمتی ده۔ ځکه خو د شعائر الله په بیان کښ د احرام ذکر هم ذکر شو چه تر څو پورے تاسو په احرام کښ یئ نو ښکار کول د شعائر سپکاوے او توهین دے۔ البته کله چه د شرعی قاعدے مطابق د احرام وخت ختم شی نو بیا د ښکار کولو اجازت دے۔

---

قَوْمٍ اَنْ صَدُّوْكُمْ عَنِ الْمَسْجِدِ الْحَرَامِ اَنْ تَعْتَدُوْا ۘ وَ تَعَاوَنُوْا عَلَى الْبِرِّ وَ التَّقْوٰى ۪ وَ لَا تَعَاوَنُوْا عَلَى الْاِثْمِ وَ الْعُدْوَانِ ۪ وَ اتَّقُوا اللّٰهَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ۝۲ حُرِّمَتْ عَلَيْكُمُ الْمَيْتَةُ وَ الدَّمُ وَ لَحْمُ الْخِنْزِيْرِ وَ مَاۤ اُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهٖ وَ الْمُنْخَنِقَةُ وَ الْمَوْقُوْذَةُ وَ الْمُتَرَدِّيَةُ وَ النَّطِيْحَةُ وَ مَاۤ اَكَلَ السَّبُعُ اِلَّا مَا ذَكَّيْتُمْ ۫ قف

دومره غصه نه درځي چه تاسو هم د هغوئ په مقابله کښې ناروا زياتې شروع کړئ[۸] نه! چه کوم کارونه د نيکۍ او د خدائے د يرې دي په هغې کښې د ټولو سره امداد کوئ او کوم کارونه چه د گناه او د زياتۍ دي په هغې کښې د هيچا سره امداد مه کوئ. د الله نه يره کوئ، د هغه سزا ډيره سخته ده۔

په تاسو باندې حرام کړے شو مردار[۹]، وينه، د خنزير غوښه، هغه ځناور چه د خدائے نه بغير د بل چا په نوم حلال کړے شوے وي[۱۰]، او هغه ځناور چه د مرۍ د خفه کيدو په وجه، يا د وهلو په وجه، يا د وچت ځائے نه د راغورزيدو په وجه او يا د ټکرے خورلو په وجه مړشوے وي، او يا يو درنده مات کړے وي ــــ بغير د هغې نه چه کوم تاسو ژوندے ومومئ او حلال ئے کړئ[۱۱]

[۸] کله چه کافرانو په هغه وخت کښې مسلمانان د کعبے د زيارت نه منع کړي وو، او د عربو د خپل پخوانی دستور نه خلاف ئے د حج کولو نه مسلمانان محرومه کړي وو، د دغه شان د مسلمانانو په زړه کښې هم دا خيال راپيدا شو چه د کومو کافرو لارې په مسلمانانو باندې ورځي چه هغه په کافرانو باندې د حج لاره بنده کړي او کوم قافلے چه په ورځې په هغوئ باندې حملے شروع کړي. خو الله تعالیٰ دے آيت په نازليدو سره مسلمانان دے اراده نه منع کړل۔

[۹] يعنی هغه ځناور چه په خپل مرگ مړ شوے وي۔

[۱۰] يعنی د ذبحه کولو په وخت کښې په د هغه نه بغير د بل چا نوم اخستلے شوے وي، يا د ذبحه کولو نه مخکښې پرې دا نيت شوے وي چه دا به د فلانی بزرگ يا د فلانی بُت نذر دي. (دکوره سورة بقره حاشيه نمبر ۱۷۱)۔

[۱۱] يعنی په کوم ځناور چه په پاسنو حالتونو کښې يو حالت راغلے او هغه لا مړ شوے نه وو سا پکښې وه، او ذبحه کړے شو نو هغه حلال دے۔ د دے نه دا معلومه شوه چه د حلال ځناور غوښه صرف په ذبحه کولو سره حلاليږی، په بله هيڅ يو طريقه د هغې حلالول صحيح نه دي. "ذبح" او "ذکاة" دواړه د اسلام په علمی ژبه کښې استعماليږي ـ د دے مطلب دا دے چه مرۍ د ومخصوص پيکيه شي چه د بدن ټوله وينه په ښه طريقه بهرته ووځي. په جټکے سره يا په مرۍ خفه کولو سره يا په بله څه طريقه سره د ځناور نه د ساه ايستلو دا نقصان دے چه زياته وينه په بدن کښې پاتے شي د هغه ځائے په ځائے

# وَمَا ذُبِحَ عَلَى النُّصُبِ وَأَنْ تَسْتَقْسِمُوا بِالْأَزْلَامِ ۚ

او هغه څاروی چه په درباربانډ ذبح کړے شوے وی[١١] دا ربکے دا هم ستاسو دپاره ناجائز دی چه د نال بنولو په ذريعه خپل قسمتونه معلوم کړئ[١٢]

تينګه شی او د غوښے سره وغلی. د دے نه برخلاف په ذبحه کولو سره د بدن تعلق د دماغو سره د ير ساعته پورے باقی وی چه د هغے په وجه د هر رګ نه وينه بهرته راوځی، او تيوله غوښه د وينے نه بنه صفا شی. د دے وينے په باره کښے اوس دا خبره مخکښے تيره شوی ده چه حرامه ده، نو د غوښے د پاکوالی او د حلال والی دپاره دا ضروری ده چه وينه د غوښے نه بنه جدا شی.

[١١] په اصل کښے لفظ "نُصُب" استعمال شوے دے، د دے نه مطلب هغه ټول ځايونه دی چه هغه خلقو د الله نه بغير د بل چا د نذر او نياز دپاره مقرر کړی وی، اګر که هلته د کانړی يا د لرګی بُت زی او که نه وی. زمونږ په ژبه کښے د دے پشان لفظ دربار دے چه تعلق ئے د يو مشر يا د يو ديوتا سره وی يا ورسره څه خاص مُشرکانه عقيده تړلی شوی وی.

[١٢] دلته په دے خبره ځان بنه پوهه کول پکار دی چه د خوراک څکاک په څيزونو کښے شريعت کوم څيزونه حلال وی يا حراموی نو د هغے وجه د هغے څيزونو خپلے طبی فائدے يا نقصانات نه دی، بلکه د هغے وجه د هغے څيزونو اخلاقی فائدے يا نقصانات وی. طبيعی ټول کارونه الله تعالیٰ د انسان خپلے کوشش او تحقيق ته پريښودلی دی. دا معلومول د انسان خپل کار دے چه کوم څيزونه د هغه د بدن دپاره فائده مند دی او کوم څيزونه نقصان ورکونکی دی. شريعت په دے قسم کارونوکښے ذمه واری په خپل سر نه اخلی. که د شريعت دا ذمه واری وے نو د ټولونه اول به ئے سنکيا حرامه کړی وے. ليکن تاسو وينئ چه په قرآن او په حديث کښے د دے او د دے قسم نورو مهلکو څيزونو هيڅ ذکر نشته. شريعت د خوراک په معامله کښے په دے طرف باندے توجه کوی چه د خوراک د انسان په اخلاقو باندے څه اثر وی، او د نفس د پاکئ دپاره کوم کوم خوراکونه بنه دی او کوم کوم نه دی بنه، او د خوراک حاصلولو په طريقو کښے کومے طريقے د عقيدے او د نظريے په لحاظ سره صحيح دی يا غلطے دی. چونکه د دے خبرے تحقيق کول د انسان د وس کار نه دے، او نه ورسره د دے د معلومولو څه ذريعے شته، او په دے وجه انسان په ډيرو کارونوکښے غلط شوے هم دے، نو دغه وجه ده چه شريعت صرف په دے کارونوکښے انسان ته لار ښائی. کوم څيزونه چه شريعت حرام کړی دی نو د هغے وجه يا خو دا ده چه په اخلاقو خراب اثر کوی، يا د پاکوالی نه خلاف دی يا د هغوی تعلق د خرابے عقيدے سره دے. او کوم څيزونه چه شريعت حلال کړی دی نو د هغے وجه دا ده چه په هغے کښے د دے خرابو نه يوه خرابی هم نشته.

تپوس کيدے چه څه ئے تعالیٰ مونږ ته د دے څيزونو د حراموالی وجه ولے نه ده ښودلے چه مونږ ته پرے پوهه حاصله شوے وے. د دے جواب دا دے چه د څيز د حراموالی په وجه مونږ هيڅ کله نشو پوهيدلے. مثلاً دا خبره شوه چه د وينے، يا د خنزير د غوښے يا د مُردارے د خوړلو په وجه

په مونږ کښې کومې اخلاقي خرابئ پیدا کیږی، په څومره مقدار کښې پیدا کیږی او په کومه طریقه پیدا کیږی، دا پته مونږ په هیڅ شان نشو لګولے ځکه چه د اخلاقو د ناپ کولو ذریعے مونږ سره نشته. فرض کړه که هغه ټولے خرابئ بیان کړے شوے هم وے خود شک کونکی شک به نۀ ختمیدو ځکه چه هغه ته به دا پته آخر په څه خبره لګیده چه دا بیان صحیح دے یا غیر صحیح. نو دے وجه نه الله تعالیٰ د حرامو او د حلالو د پابندئ خبره په ایمان باندې پریښودلے ده. څوک چه په دے خبره باندې مطمئن شی چه قرآن د الله کتاب دے او محمدؐ د الله رسول دے، او الله په هر څه پوهه او حکمت والا دے، نو هغه به د الله د مقرر کړے شوی حدونو پابندی کوی، خواه که د هغې فائدے تے په عقل کښې راځی او که نه راځی. او څوک چه په دے بنیادی عقیده باندې مطمئن نۀ وی نو هغه به صرف د هغې څیزونو نه ځان بچ ساتی چه د کوم څیزونو خرابوالے د انسان په علم کښې راغلے دے او پاتے شو هغه څیزونه چه د هغې په نقصاناتو باندې لا انسان نۀ دے پوه نو هغه به سره د نقصاناتو استعمالوی.

[۱] په دے آیت کښې چه کوم څیز حرام کړے شوے دے د هغې په دنیا کښې درے لوئ قسمونه دی او د دے آیت په حکم کښې هغه درے واړه قسمونه راځی.

(۱) مُشرکانه فالونه نیول، په دے کښې د "دیوتا"، نه خپل قسمت تپوسی، یا تر د غیبو څه خبره معلوموی، یا پرے د خپلو جګړو فیصلے کوی. (هندوان "دیوتا" هغه بزرګ انسان ته وائی چه "هغه په باره کښې د هغوئ دا عقیده وی چه خدائے دده انسان په شکل کښې دُنیا ته د اصلاح کولو په غرض راغلے دے). د مکے مشرکانو په کعبه کښې دننه د هُبَل نومے دیوتا یو بُت ایښودلے وَو. دده بُت په دربار کښې ئے اووه غشی ایښودلی وُو چه په هغې باندې ئے مختلفې خبرے لیکلے وے. چه د چا به د څه کار کولو یا د نۀ کولو راده، یا به ئے ورک شوے څیز معلومولو، یا به ئے د مړی د مقدمے فیصله کوله، غرض دا چه د هر کار د پاره به د هُبَل هغه منجور (صاحب القداح) له راغے چه فالونه به ئے راایستل، نذرانه به ئے ورکړه او د هُبَل نه به ئے د خپلے فیصلے دُعاګانې غوښتله. بیا به ورله هغه فالونو والا د غشی په ذریعه فال راوُ ایستلو، چه په فال کښې به کوم غشے راوُوتلو په هغې غشی به چه څۀ لیکلی وُو هغه به د هُبَل فیصله وه.

(۲) کمانی او وهمی فالونه نیول. په دے کښې د معاملاتو فیصلے د عقل په ځائے د یو وهمی څیز یا د څۀ اتفاقی کار په ذریعه کیږی. یا پکښې د قسمت حال په داسے ذریعه معلومیږی چه هغه په هیڅ علمي طریقه ثابته نۀ وی. د نجوم علم، د غیبو خبرے کول، بد شګون یا په ښۀ نیول او د هر قسمه فالونه نیول په دیکښې شامل دی.

(۳) د جوارئ هغه ټولے لوبے او کارونه چه په هغې کښې فیصلے د حق، د خدمت او د عقل په ځائے صرف په یو اتفاقی کار باندې کیږی. مثلاً په لاټرئ کښې چه د چا نوم راوُختلو نو صرف د نوم راختلو په وجه د د ټولو خلقو پیسے دده حبیب ته لاړے شی. یا د چا د معمے حل اتفاقی طور د هغې معمے سره سمون وُخوری کوم چه معمے والو په صندق کښې بند کړے دے، او صرف دده اتفاق برابریدو په وجه د انعام هغه ته ملاؤ شی، اګرچه نور حلونه هم صحیح کیدے شی.

دا درے واړه قسمونه حرام دی. صرف داسے قُرعه اندازی (څنډه) په اسلام کښې جائز ده، چه د دوؤ جائزو کارونو په منځ کښې یا د دوؤ برابر حقونو په منځ کښې فیصله کول وی. مثلاً په یو څیز باندې د دوؤ

ذٰلِكُمْ فِسْقٌ ؕ اَلْيَوْمَ يَئِسَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْ دِيْنِكُمْ فَلَا تَخْشَوْهُمْ وَاخْشَوْنِ ؕ اَلْيَوْمَ اَكْمَلْتُ لَكُمْ دِيْنَكُمْ وَاَتْمَمْتُ عَلَيْكُمْ نِعْمَتِيْ وَرَضِيْتُ لَكُمُ الْاِسْلَامَ دِيْنًا ؕ فَمَنِ

دا ټول کارونه فسق دے. نن کافران ستاسو د دین د غاړے نه بلکل پوره نا امیده شوی دی نو د هغوی نه تاسو مه یریږئ بلکه زما نه یریږئ.[15] نن ما ستاسو دین ستاسو د پاره مکمل کړے او خپل نعمت ما په تاسو تمام کړے دے او ستاسو د پاره ما اسلام ستاسو د دین په حیثیت سره قبول کړے دے (نو په دے وجه د حلالو او د حرامو کومے پابندئ چه په تاسو کښې لګولے شوی دی د هغے پابند وسئ).[16] البته چه څوک

کانو حق په هر حیثیت سره برابر دے او فیصلے کولو والا یو له په بل باندې ترجیح نشي ورکولے او هغه د دواړه پخپله هم یو بل نه خپل حق نه پریږدی. نو په داسے معامله کښې د دواړو په رضا باندې په پخنړی فیصله کول جائز دی. یا په مثال کښې دده کار دنه یوشان مجبور دی او سره په کښې حیران شي چه کوم یو وکړی، نو که ضرورت وی نو پخنړے کولے شي. نبی صلی الله علیه وسلم به په داسے مرتبو کښې چه د دوؤ حقدارانو په منځ کښې به یو له د ترجیح ورکړو ضرورت راغے او که څه به پړاۀ ترجیح ورکوله نو بل به خفه کیدو، نو په داسے فیصلو کښې به به د پخنړی طریقه اختیار وله.

[15] د "نن" نه مطلب څه خاص ورځ یا تاریخ نه دے. بلکه ددے نه مراد هغه زمانه ده چه په هغے کښې دا آیتونه نازل شوی وو. زمونږ په ژبه کښې هم د "نن" لفظ د موجوده زمانے د پاره استعمالیږی.

"کافران ستاسو د دین د غاړے نه بلکل پوره نا امیده شوی دی" یعنی اوس ستاسو دین یو مستقل نظام د ژوند جوړ شو او خپل حکومت پخپله چلوی. د دوی سره پوره چه کافران ستاسو دین په لاره کښې یو خنډ وو هغوی اوس د دے خبرے نه نا امیده شوی دی چه کښې ستاسو دین به ختم کړی او تاسو به بیا جاهلیت ته واپس وی. "نو د هغوی نه تاسو مه یریږئ" یعنی اوس ددے دین په حکمونو باندې د عمل کولو په لاره کښې د کافرانو د طرفه هیڅ خطره پاتے شوی نه ده. اوس د انسانانو د طرفه د یرے کولو هیڅ وجه نشته. اوس تاسو له په کار دی چه د خدائے نه ویریږئ، که د هغه په حکمونو منلو کښې تاسو څه سستی وکړه نو هیڅ داسے عذر نشته چه د هغے په وجه تاسو سره نرمی وکړے شي. اوس که تاسو د شریعت نه خلاف کوئ نو د هغے مطلب به دا نه وی چه تاسو د نورو نه مجبور وئ بلکه د هغے به دا مطلب وی چه تاسو د خدائے حکم منل نه غواړئ.

[16] د دین د مکمل کولو نه مراد دا دے چه دا د فکر او د عمل یو مستقل نظام دے او د ژوند ټیرولو یو داسے مکمل نظام دے چه د ژوند ټولے مسئلے په کښې حل کیږی او د رهنمائئ حاصلولو د پاره په هیڅ حال کښې ددے نه د بهر تللو ضرورت نه راځی. د نعمت تمامولو نه مطلب د هدایت نعمت تمامول دی. او اسلام د دین د حیثیت نه د قبلولو مطلب دا دے چه تاسو زما د حکم منلو او د بندګئ کولو کوم اقرار کړے دو

اضْطُرَّ فِىْ مَخْمَصَةٍ غَيْرَ مُتَجَانِفٍ لِّاِثْمٍ ۙ فَاِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۳﴾ يَسْـَٔلُوْنَكَ مَاذَآ اُحِلَّ لَهُمْ ؕ قُلْ اُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبٰتُ ۙ

دَ لوږې دَ لاسه مجبوره شي او په زړه کښې ئې ګناه طرفته څه میلان نه وي او دَ دغه څیزونو نه څه وُخوري، نو بیشکه الله معاف کونکے او رحم کونکے دے[۱۷]۔

خلق تپوس کوي چه دَ دوئ دپاره څه څیزونه حلال کړے شوي دي، ورته اُووایه چه ستاسو دپاره ټول پاک څیزونه حلال کړے شوي[۱۸] دي۔

هغه تاسو دَ خپل عمل او د اخلاص په وجه صحیح ثابت کړے دے، نو ځکه هغه ما قبول کړے دے او تاسو م دے حالت ته را رسولي يئ چه او س به په حقیقت کښې زما نه بغیر دَ بل چا اطاعت او بندګي نه کوئ. او س چه لکه څنګه تاسو په عقیده کښې زما منونکي يئ دغه شان په عملي ژوند کښې زما نه بغیر د بل چا د منلو مجبوري په تاسو باندې نه ده پاتې شوي. ددے احساناتو د ذکر کولو نه روستو الله تعالیٰ خاموشي اختیار کړې ده خو دَ انداز نه ښکاره دا خبره معلومیږي چه هر کله ما په تاسو باندې دا دومره احسانات وُکړل نو پکار دي چه تاسو هم زما د قانون پابندي وُکړئ.

دَ مستند روایتونو نه معلومیږي چه دا آیت دَ حجة الوداع په موقع باندې په لسمه هجري کښې نازل شوے وُو لیکن او س چه دا آیت دَ کلام په کومه سلسله کښې دے هغه دَ صلح حدیبیه نه روستو زمانه (شپږمه هجري) ده- او په روان عبارت کښې دا په فقرے داسے جوخته معلومیږي چه څوک دا ګمان هم نشي کولے چه کیګې په اول کښې په دے تقریر کښې دا فقره نه وه او بیا روستو چه کله نازله شوه نو ددے تقریر په منځ کښې کیښودے شوه. زما قیاس دا دے، او اصلي علم دا الله سره دے، چه په اول کښې دا آیت هم ددے کلام سره نازل شوے وُو خو خلق ددے په حقیقي اهمیت باندې پوهه نه شو. روستو چه کله ټول عرب دَ مسلمانانو تابع شو او دَ اسلام طاقت زیات شو نو الله تعالیٰ دوباره دا فقره په خپل نبي نازله کړه او ددے دَ اعلان کولو حکم ئې وُکړو۔

[۱۷] وګوره سورة بقره، حاشیه نمبر ۱۷۲۔

[۱۸] په دے جواب کښې یوه باریکه خبره پټه پرته ده- دَ مذهبي قسمه خلقو اکثر دا خیال وي چه دَ دنیا هر څیز حرام دے تر څو پورے چه دهغے د حلالوالي ښه صفا بیان نه وي شوے. ددے خیال په وجه په خلقو باندې دَ وهم او د قانون غلبه وي- هغوئ دَ ژوند په هره څانګه کښې دَ حلالو څیزونو او دَ جائز کارونو شماره غواړي. او په هر کار او په هر څیز کښې ئې دا شک وي چه چرته حرام خو به نه وي. دلته قرآن ددے خیال اصلاح کوي. دتپوس کونکو خلقو دا مقصد وو چه هغوئ ته دِ ټول حلال څیزونه وُښودلے شي چه هغوئ بیا دَ هغے نه بغیر بل هر څیز حرام وُګڼي. په جواب کښې ورته الله تعالیٰ حرام څیزونه وُښودل او دَ هغے نه روستو ئې ورته دا عام حکم وُکړو چه ټول پاک څیزونه حلال دي- په دے طریقه سره پخوانئ مذهبي نظریه بالکل اُلټا شوه. پخوانئ نظریه دا وه چه هر څه حرام دي

وَمَا عَلَّمْتُمْ مِّنَ الْجَوَارِحِ مُكَلِّبِيْنَ تُعَلِّمُوْنَهُنَّ مِمَّا عَلَّمَكُمُ اللّٰهُ ۫ فَكُلُوْا مِمَّآ اَمْسَكْنَ عَلَيْكُمْ وَاذْكُرُوا اسْمَ اللّٰهِ

او کوم ښکاري ځناور چه تاسو عادت کړي وي — چه تاسو درله د هغې علم په وجه کوم چه خدائے تاسوله درکړے دے د ښکار تعليم ورکوئ — هغوئ چه کوم ځناور ستاسو دپاره ونيسي هغه هم تاسو خوړے شئ[۱۹] البته په هغه باندې (د ميږنيولو په وخت کښې) د الله نوم

بغير هغې شيزونو نه چه کوم ونه حلال اُوويلے شي. قرآن د دے نه برعکس دا اصول مقرر کړل چه هرڅه حلال دي بغير د هغه شيزونو نه چه په کوموصفاد حراموالي حکم وشي، دا يوه ډيره لويه اصلاح ده د دے په وجه دا انسانانو ډرونده قيدونو نه آزاد شوا و د دُنيا د فراخئ دروانے ورته پرانستے شوے. اول د يوڅوشيزونو نه علاوه د دُنيا نور ټول شيزونه حرام وُو. اوس صرف يوڅوشيزونه حرام شوا و باقي د ټولے دُنيا شيزه نه ورته حلال شو.

د حلالوشيزونو سره ئے د پاکوالي شرط ځکه لګولے دے چه څيے نه څوک چرته د دے دليل نه ځنا پاک شيزونه حلال نهٔ کړي. پاتے شوه دا خبره چه د شيز پاکوالے به څنګه معلوميږي نو د دے جواب دا دے، چه کوم شيزونه د شريعت د اصولو لاندې ناپاکه ګرزولے شوي دي، يا کوم شيزو نه چه پاک طبيعت والا انسان نهٔ خوښه وي، د هغې نه بغير نور ټول شيزونه پاک دي.

[۱۹] د ښکاري ځناورو نه مُراد سپے، پړانګ، باز، شکره او هغه ټول ځناور او مارغان دي چه انسان ترېنه د ښکار خدمت اخلي. د عادت کړے شوي ځناورو دا خاصيت وي چه هغه ښکار د عامو درندګانو پشان ځان له نهٔ خوري بلکه د خپل مالک دپاره ئے نيسي. په دے وجه د عامو درندګانو نيولے شوے ښکار حرام دے او د عادت شوي درندګانو ښکار حلال دے.

په دے مسئله کښې د فقهاؤ په منځ کښې اختلاف دے. يوه ډله وائي که ښکاري ځناور که هغه درندګان دي او که مارغه وي، خو چه د ښکار نه ئے څه وُخوړل نو هغه حرام دي ځکه چه د هغه د خوراک مطلب دا دے چه هغه ښکار د مالک دپاره نهٔ دے نيولے بلکه د ځان دپاره ئے نيولے وُو. دا د امام شافعيؒ مسلک دے. دويمه ډله وائي که د ښکار نه ئے څه وُخوړل نو بيا هم نهٔ حراميږي، که دريمه حصه ئے ترې وُخوره نو هغه باقي دوه حصے هم حلال دي، او په دے معامله کښې درندګان او مارغه يوشان دي. دا مسلک د امام مالکؒ دے. دريمه ډله وائي که ښکاري ځناور د ښکار نه څه وُخوړل نو هغه به حرامه وي، او که ښکاري مارغه ترې څه وُخوړل نو نهٔ حراميږي. ځکه چه ښکاري ځناور له داسے عادت ورکړے کيدے شي چه هغه ښکار د مالک دپاره ونيسي او خپله ترې څه ونهٔ خوري ليکن دا خبره په تجربه سره ثابته ده چه ښکاري مارغه داسے نشي عادتيدلے. دا مسلک د امام ابو حنيفه او د هغه د ملګرو دے. د دے نه برخلاف حضرت علي رضي الله عنه فرمائي چه د ښکاري مارغه ښکار هډو جائز نهٔ دے، ځکه چه هغه ته دا ښه درزده کيدے نشي چه ښکار د مالک دپاره نيسي او خپله ئے نهٔ خوري.

عَلَيْهِ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۭ اِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ④ اَلْيَوْمَ اُحِلَّ لَكُمُ الطَّيِّبٰتُ ۭ وَطَعَامُ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ حِلٌّ لَّكُمْ ۠ وَطَعَامُكُمْ حِلٌّ لَّهُمْ ۡ وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الْمُؤْمِنٰتِ

اخلئ[۱۰] او د خدائے د قانون ماتولو نه یره کوئ، د الله په حساب اخستلو وخت نه لېرې.

نن تاسو د پاره ټول پاک څیزونه حلال کړے شوی دی. د اهلِ کتابو خوراک تاسو د پاره حلال دے او ستاسو خوراک د هغوئ د پاره.[۱۱] او محفوظې ښځې هم ستاسو د پاره حلالے دی خواه که هغه د مومنانو د ډلے نه وی

[۱۰] یعنی ښکاری څناور په ښکار پاندې د پرېښودلو په وخت کښې بسم الله وائئ. په حدیث کښې راځی چه حضرت عدی بن حاتم د نبی صلی الله علیه وسلم نه تپوس وکړو چه زه په سپی ښکار کولے شم؟ نبیؐ وفرمایل چه "که د پرېښودلو په وخت کښې د الله نوم د اخستلو نو بیائے ښکار خوره او که نې نومه ئے خوره. او که د ښکار نه ئے څه وخوړل نو بیائے هم مه خوره ځکه چه هغه ښکار د ځان د پاره نیولے دے" هغه بیا تپوس وکړو که زه په ښکار پاندې خپل سپے در پرېږدم او روستو هلته اوینم چه بل سپے موجود دے؟ نبیؐ جواب ورکړو "دا ښکار مه خوره ځکه چه تا د خدائے نوم په خپل سپی اخستے وو د بل په سپی دِ نه وو اخستے"

دے آیت نه دا مسئله معلومه شوه چه په ښکار پاندې د پرېښودلو په وخت کښې په ښکاری څناور باندې د خدائے نوم اخستل ضروری دی. د دے نه روستو که ښکار ژوندے وموندلے شو نو پکار دی چه بیا پرې د خدائے نوم واخلی او ذبحه ئے کړی، او که ژوندے نه وو نو بغیر د ذبحے نه حلال دے ځکه چه د پرېښودلو په وخت کښې په ښکاری څناور پاندې د الله نوم اخستلے شوے وو. دا حکم د غشی هم دے.

[۱۱] د اهلِ کتابو په خوراک کښې د هغوئ د لاس ذبحه هم شامله ده. زمونږ د پاره د هغوئ د خوراک او د هغوئ د پاره زمونږ د خوراک د حلالیدو مطلب دا دے چه زمونږ او د هغوئ په مینځ کښې د خوراک څکاک په څیزونو کښې هیڅ بندیز او څه پلیتی وغیره نشته. مونږ د هغوئ سره خوراک کولے شو او هغوئ زمونږ سره خوراک کولے شی. لیکن د دے عام اجازت ورکولو وړاندې دا خبره دو باره وکړے شوه چه "تاسو د پاره پاک څیزونه حلال کړے شوی دی." د دے نه معلومه شوه چه که چرے اهلِ کتاب د پاکوالی د هغه قانون پابندی نه کوی کوم چه د شریعت په نظر کښې ضروری دے، یا که چرے د هغوئ په خوراک کښې حرام څیزونه شامل وی، نو بیا د هغے نه پرهیز بعنی ځان ساتنه پکار ده. مثلاً که چرے هغوئ یو څناور بغیر د خدائے د نوم اخستلو نه ذبح کړی، یا په هغه باندې د خدائے د نوم نه علاوه د بل چا نوم واخلی، نو د هغے خوراک زمونږ د پاره جائز نه دے. دغه شان که د هغوئ په خوراک کښې شراب یا د خنزیر غوښه یا بل یو حرام څیز وو نو بیا ورسره زمونږه شریک والے نشی کیدے.

د اهلِ کتابو نه علاوه د نورو غیر مسلمو خلقو هم دا حکم دے. فرق صرف دا دے چه د اهلِ کتابو د لاس ذبحه جائز ده ولے هله چه د خدائے نوم ئے پرے اخستلے دی، باقی شو د اهلِ کتابو نه علاوه نور غیر مسلمه خلق،

وَالْمُحْصَنٰتُ مِنَ الَّذِیْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ اِذَاۤ اٰتَیْتُمُوْهُنَّ اُجُوْرَهُنَّ مُحْصِنِیْنَ غَیْرَ مُسٰفِحِیْنَ وَلَا مُتَّخِذِیْۤ اَخْدَانٍ ؕ وَمَنْ یَّكْفُرْ بِالْاِیْمَانِ فَقَدْ حَبِطَ عَمَلُهٗ ؗ وَهُوَ فِی الْاٰخِرَةِ مِنَ الْخٰسِرِیْنَ ۟۠ ۵

یا دَ هغې قومونو وی چه ستاسو نه مخکښ ورته کتاب ورکړے شوے وُو.[22] خو شرط پکښ دا دے چه تاسو هغوئ ته خپل مهرونه ورکړئ او دَ نکاح په قلعه کښ دَ هغوئ محافظ جوړ شئ، نه دا چه تش خپل شهوت پوره کوئ یا پټ پناه یارانے کوئ. او چا چه دَ ایمان په لاره باندې دَ تللو نه انکار وکړو نو دَ هغه ژوند ټول عملونه به ضائع شی او په آخرة کښ به تاوانی وی.[23] ع

نو هغوئ چه کوم ګناه ورته لیکلی شوی هغه مونږ نشو خوړلے.

[22] دَ دے نه مُراد یهودیان او عیسایان دی. صرف دَ هغوئ دَ زنانو سره دَ نکاح کولو اجازت شوے دے او ورسره دا شرط هم لګیدلے دے چه هغه دِ مُحصَنَات (محفوظے ښځے) دی. دَ دے حکم په تشریح کښ دَ عالمانو اختلاف دے. ابن عباسؓ دا خیال دے چه دلته دَ اهل کتابو نه مُراد هغه اهلِ کتاب دی چه دَ اسلامی حکومت رعیت وی. دَ دارالحرب او دَ دارالکفر دَ یهودیانو او دَ عیسایانو دَ زنانو سره نکاح کول صحیح نه دی. حنفیان دَ دے نه لږ اختلاف کوی. هغوئ وائی چه دَ بهرِ وطن دا اهلِ کتابو دَ زنانو سره نکاح کول حرام خو نه دی، خو مکروه ضرور دی. دَ دے نه برخلاف سعید بن المُسَیَّبؒ او حَسَن بصریؒ دَ دے خبرے قایل دی چه دَ آیت حکم عام دے، په دے کښ دَ ذمی او دَ غیر ذمی فرق کولو ته ضرورت نشته. بیا دَ مُحصَنَات ټکی په معنا کښ هم دَ فقهاؤ (عالمانو) اختلاف دے. دَ حضرت عمرؓ په نیز باندې دَ دے نه مراد پاک لمنے حیادارے زنانه دی، او په دے وجه هغه دَ اهلِ کتابو آزاد طبیعته زنانو سره دَ نکاح کولو اجازت نه ورکوی. دا رائے دَ حسن بصریؒ، شعبیؒ او دَ ابراهیم نخعیؒ ده. او حنفیانو هم دا رائے خوښه کړی ده. دَ امام شافعیؒ دا رائے ده چه دلته دا لفظ دَ وینځو په مقابله کښ استعمال شوے دے. یعنی دَ دے نه مُراد دَ اهلِ کتابو هغه زنانه دی چه وینځے نه وی.

[23] دَ اهلِ کتابو دَ زنانو سره دَ نکاح دَ اجازت کولو نه روستو دا فقره دَ خبردارئ په طور فرمائیلی شوی ده، چه څوک دَ دے اجازت نه فائده واخلی هغه دِ دَ خپل ایمان او دَ خپلو اخلاقو حفاظت په بیدارئ سره کوی. هسے نه چه دَ کافرے ښځے په عشق کښ دَ خپله عقیدے او دَ خپل ایمان نه لاس اُووینځی، یا دا بیان نه خلاف کافرانه اشتوکه شروع کړی.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا إِذَا قُمْتُمْ إِلَى الصَّلَاةِ فَاغْسِلُوا وُجُوهَكُمْ وَأَيْدِيَكُمْ إِلَى الْمَرَافِقِ وَامْسَحُوا بِرُءُوسِكُمْ وَأَرْجُلَكُمْ إِلَى الْكَعْبَيْنِ ۚ وَإِنْ كُنْتُمْ جُنُبًا فَاطَّهَّرُوا ۚ وَإِنْ كُنْتُمْ مَرْضَىٰ أَوْ عَلَىٰ سَفَرٍ أَوْ جَاءَ أَحَدٌ مِنْكُمْ مِنَ الْغَائِطِ أَوْ لَامَسْتُمُ النِّسَاءَ فَلَمْ تَجِدُوا مَاءً فَتَيَمَّمُوا صَعِيدًا طَيِّبًا فَامْسَحُوا بِوُجُوهِكُمْ وَأَيْدِيكُمْ مِنْهُ ۚ مَا يُرِيدُ اللَّهُ لِيَجْعَلَ عَلَيْكُمْ مِنْ حَرَجٍ وَلَٰكِنْ يُرِيدُ

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، کله چه تاسو د مانځه د پاره پاسئ نو پکار دي چه تاسو خپل مخونه او د څنګلو پورے خپل لاسونه اُووینځئ، په سرونو باندې لاس را کاږدئ او د ګیټو پورے خپے اُووینځئ.[24] او که په جنابت کښې یئ نو په لمبلو سره پاکی حاصل کړئ.[25] او که ناجوړه یئ یا په سفر کښې یئ یا په تاسو کښې څوک د اودس ماتی نه راشی یا تاسو خپلو ښځوله ورشئ، او اُوبه درته ملاؤ نشی، نو د پاکے خاورے نه کار واخلئ، بس څو په هغے باندې لاسونه اُووهئ او په خپلو مخونو او لاسونو باندې ئے را کاږدئ.[26] الله په تاسو باندې ژوند تنګول نه غواړی، خو هغه دا غواړی چه

[24] نبی صلی الله علیه وسلم چه د دے حکم کومه تشریح کړی ده د هغے نه معلومیږی چه په مخ اینځلو کښې خوله، تره اُو پوزه اچول او پوره پاکول هم شامل دی، بغیر د دے نه مخ اینځل نه پوره کیږی. او غوږونه خو د سر یو حصه ده، نو په دے وجه د سر په مسح کښې د غوږو د نو بهرا و دننه مسح کول هم شامل دی. د اودس شروع کولو نه روبے لاسونه اینځل پکار دی ځکه چه په کومو لاسونو سره اودس کوی چه هغه خو بخپله اول پاک وی.

[25] جنابت که د ښځے سره د کورولی په وجه وی او که د خوب لیدلو په وجه وی، په دواړو حالتونو کښې غسل واجبیږی. د جنابت په حالت کښې مونځ کول یا قرآن له ګوته وړل جائز نه دی. (د زیاتے تشریح د پاره وګورئ سورة نساء حاشیه نمبر ۶۷، ۶۸، ۶۹).

[26] د تشریح د پاره وګورئ سورة نساء حاشیه نمبر ۶۹.

لِيُطَهِّرَكُمْ وَلِيُتِمَّ نِعْمَتَهُ عَلَيْكُمْ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُونَ ﴿٦﴾ وَاذْكُرُوا نِعْمَةَ اللَّهِ عَلَيْكُمْ وَمِيثَاقَهُ الَّذِي وَاثَقَكُم بِهِ إِذْ قُلْتُمْ سَمِعْنَا وَأَطَعْنَا ۖ وَاتَّقُوا اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ﴿٧﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُونُوا قَوَّامِينَ لِلَّهِ شُهَدَاءَ بِالْقِسْطِ ۖ وَلَا يَجْرِمَنَّكُمْ شَنَآنُ قَوْمٍ عَلَىٰ أَلَّا تَعْدِلُوا ۚ اعْدِلُوا هُوَ أَقْرَبُ لِلتَّقْوَىٰ ۖ وَاتَّقُوا اللَّهَ ۚ إِنَّ اللَّهَ خَبِيرٌ بِمَا تَعْمَلُونَ ﴿٨﴾ وَعَدَ اللَّهُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ ۙ

تاسو پاک کړي او خپل نعمت په تاسو باندې تمام کړي[27] چه تاسو شکر ګزاره جوړ شئ۔
الله چه تاسوله کوم نعمت درکړے دے[28] دَ هغې خیال ساتئ او هغه پخه وعده مه هیره وئ کومه چه هغه ستاسو نه اخستے ده، یعنی ستاسو دا وینا چه "مونږه واوریدل او اطاعت مو قبول کړو" دَ الله نه ویریږئ، الله دَ زړونو په راز هم پوهیږي۔ اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، دَ الله دپاره په حق باندې قایم وسیدونکي او دَ انصاف ګواهي ورکونکي جوړ شئ[29]۔ دَ یوے ډلے دُشمني دِ تاسوله دومره غصه نه درولي چه دَ انصاف نه واوړئ۔ تل انصاف کوئ دا دَ خدائ نه دَ یریدُ دپاره زیاته مناسبه ده۔ او په هر کار کښې دَ الله نه یره کوئ، تاسو چه څه کوئ الله دَ هغې نه ښه خبر دے۔ کوم خلق چه ایمان راوړي او نیک عمل وکړي،

[27] ځکه چه دَ نفس پاکي یو نعمت دے دغه شان دَ بدن پاکي هم یو نعمت دے۔ په انسان باندې دَ الله نعمت هله مکمل کیدے شي کله چه انسان ته دنفس او دبدن دَ پاکئ دپاره پوره هدایت ملاؤ شي۔
[28] یعني دا نعمت چه دَ ژوند نیغه لار تاسو ته ښکاره کړے شوه او دُنیا ته دَ ښیځ لاره ښودلو منصب تاسو ته حواله کړے شو۔
[29] وَ ګوره سورة نسآء، حاشیه نمبر ۱۶۴، ۱۶۵ ۔

لَهُمْ مَّغْفِرَةٌ وَّاَجْرٌ عَظِيْمٌ ۝٩ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰٓئِكَ اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ ۝١٠ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اذْكُرُوْا نِعْمَتَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اِذْ هَمَّ قَوْمٌ اَنْ يَّبْسُطُوْٓا اِلَيْكُمْ اَيْدِيَهُمْ فَكَفَّ اَيْدِيَهُمْ عَنْكُمْ ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ ۭ وَعَلَى اللّٰهِ فَلْيَتَوَكَّلِ الْمُؤْمِنُوْنَ ۝١١ ع

الله دَ هغوئ سره وعده کړې ده چه دَ هغوئ خطاګانے به معاف کوی او هغوئ له به لویه بدله ورکوی. پاتی شو هغه خلق چه کفرئے وکړو او دَ الله آیتونو ته ئے دروغ اُووے، نو هغوئ دوزخ ته تلونکی خلق دی.

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، دَ الله هغه احسان رایاد کړئ چه هغه (اوس اوس) په تاسو کړے دے، کله چه یوے ډلے په تاسو باندِ دَ حملے کولو اراده کړې وه خو الله تعالیٰ دَ هغوئ لاسونه په تاسو باندِ دَ حملے کولو نه منع کړل[۳۰]. په هر کار کښ دَ الله نه یره کوئ. ایمان والو له پکار دی چه خاص په الله باندِ بروسه کوی. ع

---

۳۰ـه دَ کومے واقعے چه حضرت عبدالله بن عباس روایت کړے دے، هغے واقعے ته اشاره ده. هغه وائی چه په یهودیانو کښ یوے ډلے نبی صلی الله علیه وسلم او دَ هغه خاص خاص صحابو ته دَ ډوډئ دعوت ورکړے وو او پټ ئے دا سازش کړے وو چه ناساپه به پرحمله کوو او په دے طریقه به دَ اسلام جرړه ختموو. لیکن دَ الله په فضل سره نبی صلی الله علیه وسلم ته ددے سازش حال بالکل په وخت باندِ معلوم شو او دعوت له لا نړو. چونکه دمے ځائے نه خطاب بنی اسرائیلو ته شروع کیږی نو ځکه ئے په اول کښ دا واقعه ذکر کړله.

ددے ځائے نه چه کوم تقریر شروع کیږی دَ هغے دوه مقصدونه دی. اول مقصد ئے دا دے چه مسلمانان په هغے لاره باندِ دَ تللو نه منع کړے شی په کومه لاره باندِ چه دَ دوئ نه وړاندِ اهل کتاب تلل. په دے سلسله کښ مسلمانانو ته وُوئیلے شو چه نن څنګه ستاسو نه وعده واخستے شوه دغه شان پرون هم دغه رنګ وعده دَ بنی اسرائیلو او دَ مسیح علیه السلام دَ اُمت نه اخستلے شوی وه. هسے نه چه څنګه هغوئ خپله وعده ماته کړله او په ګمراهئ کښ اخته شو، تاسو هم دَ هغوئ پشان دغه وعده ماته کړئ او ګمراه شئ. بل مقصد ئے دا دے چه یهودیان او عیسایان دواړه په خپلو غلطو باندِ خبردار کړے شی او دَ حق دین طرف ته ورله دعوت ورکړے شی.

وَلَقَدْ اَخَذَ اللّٰهُ مِيْثَاقَ بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ ۚ وَبَعَثْنَا مِنْهُمُ اثْنَيْ عَشَرَ نَقِيْبًا ؕ وَقَالَ اللّٰهُ اِنِّيْ مَعَكُمْ ؕ لَئِنْ اَقَمْتُمُ الصَّلٰوةَ وَاٰتَيْتُمُ الزَّكٰوةَ وَاٰمَنْتُمْ بِرُسُلِيْ وَعَزَّرْتُمُوْهُمْ وَاَقْرَضْتُمُ اللّٰهَ قَرْضًا حَسَنًا لَّاُكَفِّرَنَّ عَنْكُمْ سَيِّاٰتِكُمْ

الله د بنی اسرائیلو نه پخه وعده اغستلې وه او په هغوئ کښې ئې دولس مشران[۳۱] مقرر کړي وو او ورته ئې وئيلي وُو چه "زۀ ستاسو سره يم، که تاسو مونځ قايم وساتلو او زکوٰة مو ورکړو او زما په رسولانو باندې مو ايمان راوړو او د هغوئ مدد مو وکړو[۳۲] او خپل خدائې له مو قرضِ حسن[۳۳] ورکوؤ نو يقين لرئ چه زۀ به ستاسو بدئ[۳۴] ستاسو نه لرې کړم

۳۱ — د نقيب معنیٰ "خبر اغستونکے او د حالاتو پته لګونکے" ده - د بنی اسرائيلو دولس قبيلې وې او الله تعالیٰ په هغوئ کښې په هره قبيله باندې د يو يو نګران مقررولو حکم کړے وو چه د هغوئ په حالاتو باندې نظر ساتي او د هغوئ د بے دينئ او د بد اخلاقئ د مخې کولو کوشش کوي - د بائيبل په ګنتي نومې کتاب کښې د دولسو "سردارانو" ذکر موجود دے، خو بائيبل ورته تش سرداران وئيلي دي او قرآن وائي چه هغوئ د خپلې خپلې قبيلې اخلاقي او ديني نګرانان وُو -

۳۲ — يعنې هر رسول چه زما د طرف نه راشي، تاسو د هغه دعوت ومنو او د هغه امداد مو وکړو -

۳۳ — يعنې د خدائے په لار کښې مو خپل مال خرچ کوؤ - چونکه الله دا وعده کوي چه که انسان د الله په لار کښې يوه پيسه هم خرچ کړي، هغه به ورله الله تعالیٰ په څو څو چنده زياته ورکوي، نو دے وجے نه په قرآن کښې ځائے په ځائے د الله په لار کښې خرچ کولو ته قرض وائي - خو شرط پکښې دا دے چه هغه قرضِ حسن وي، يعنې په جائزه طريقه ګټلے شوے مال خرچ کړي، د خدائے د قانون مطابق ئې خرچ کړي او د ښه په اخلاص او په ښه نيت سره ئې خرچ کړي -

۳۴ — د بدئ لرے کولو دوه مطلبونه دي. يو دا چه سړے ښيګړه لار اختيار کړي او د خدائے د حکمونو مطابق فکر او عمل ؤ کړي نو دا ضروري ده چه د سړي زړۀ به د ډيرو بدو نه پاک شي او ورو ورو به ئې د ډيرو خرابو نه صفا شي. دوئم دا چه که سړے د اصلاح سره سره کامله مرتبے ته ونۀ رسيدے شي او کشته نه شه بدئ پکښې پاتې شي نو الله به په خپل فضل سره په هغې ګرفت نه کوي او هغه به د حساب نه لرې کړي، ځکه چه چا بنيادي حکمونه قبول کړي وي او د ځان بنيادي اصلاح ئې کړې وي نو د داسې وړو وړو ګناهونو په حساب کښې به ورسره الله تعالیٰ سختي نۀ کوي.

وَلَاُدۡخِلَنَّكُمۡ جَنّٰتٍ تَجۡرِىۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ‌ۚ فَمَنۡ كَفَرَ بَعۡدَ ذٰلِكَ مِنۡكُمۡ فَقَدۡ ضَلَّ سَوَآءَ السَّبِيۡلِ ﴿۱۲﴾ فَبِمَا

او تاسو به داسے باغونو ته ورداخل کړم چه لاندې به ئے نهرونه بهیږي، خو که دے نه روستو چا په تاسو کښې د کفر لار اختیار کړه نو په حقیقت کښې هغه سواء السّبیل ورکه کړه[۳۵]" بیا دا د هغوئ

۳۵ یعنې هغه "سواء السبیل" د مونډلو نه روستو یې ورکه کړه او د تباهۍ په لار ولګېدو. د "سواء السبیل" ترجمه "میانه‌لار او د انصاف لویه لار" کېدے شي خو په دے سره پوره مطلب نه ادا کیږي. د دے وجے نه مونږ په ترجمه کښې هم د عربۍ هغه لفظ استعمال کړے دے.

په دے لفظ باندې د پوهېدو د پاره اول ځان په دے پوهه کول پکار دي چه انسان ځپله یوه دره دُنیا ده په دے کښې بې شمېره مختلف قوتونه، قابلیتونه دي، خواهشات، جذبات او میلانات دي، نفس او بدن، روح او طبیعت ځان له ځان له ځیزونه غواړي. بیا دیو یو انسان د یو ځائے جمع کېدو نه چه کوم شریک ژوند جوړیږي په هغے کښې هم بے حسابه پېچیدګئ وي او د انسان د ترقۍ سره دغه پېچیدګئ نورے هم زیاتیږي. بیا په دُنیا کښې د انسان نه چارچاپېره د ژوند تېرولو ډېر سامان موجود دے، او انسان چه دغه سامان په خپل استعمال کښې راولي او د هغے نه کار واخلي، نو د هغے نه نورے ډېرے مسئلے پیدا کیږي. انسان ډېر کمزورے دے او د دے خپلے کمزورۍ په وجه هغه په خپل ټول ژوند باندې په یو وخت یو شان برابر نظر نشي اچولے. دغه وجه ده چه انسان د خپل ځان د پاره د ژوند تېرولو یوه داسے لار نشي جوړولے چه په هغے کښې د انسان د ټولو قوتونو سره انصاف وُشي، چه د انسان د هر خواهش تیک تیک حق ادا شي، چه د انسان په هر جذبه او په هر میلان کښې برابرے راشي. چه د انسان ټول اُمید او نه یو شان پوره شي چه د انسان اجتماعي ژوند د هرے مسئلے لحاظ وُساتلے شي، او چه د دُنیا ټول ځیزونه په انصاف سره استعمال شي. هرکله چه انسان ځپله د خپل ځان مشر شي او ځان له د ژوند تېرولو لار جوړه وي نو د حقیقت د مختلفو اړخونو نه صرف یو اړخ، د ژوند د ضرورتونو نه صرف یو ضرورت، او د ډېرو ضروري مسئلو نه صرف یوه مسئله راواخلي او نور ټول اړخونه، ضرورتونه او مسئلے په اراده باندې یا بغیر د اراده نه په غلطۍ پرېږدي. او کله چه انسان د خپل خیال په زور جاري کول شروع کړي نو د هغے په وجه د ژوند برابرے خراب شي او ټول ژوند په بے انصافۍ سره یو انتها طرفته کوږ روان شي. بیا چه کله د ژوند دا کوږ رفتار آخري حد ته ورسیږي او انسان نور نشي برداشت کولے نو هغه مسئلے او ضرورتونه چه انسان ورسره مخکښې بے انصافي کړې وه او په ځائے پرېښودلي وُو، بغاوت شروع کړي او دا زور لګوي چه د هغوئ سره دِ انصاف وُشي. خو انصاف بیا هم نه کیږي. ځکه چه بیا هغسے کار شروع شي، په ضرورتونو کښې هغه یو ضرورت چه مخکښې ورسره ډېر زیاتے او بے انصافي شوې وه، انسان هغه راواخلي او د خپله رضا مطابق ئے په یو خاص طرف روان کړي او نورے ټولے مسئلے او ضرورتونه ځائے پرېږدي.

په دے طریقے سره انسان ته چیرے هم نیغ او سیده تلل نه نصیب کیږی، همیشه تالئ وهی او د تباهئ دیوه غاړه نه بلے غاړے ته په تند کونږی راځی. انسان چه ځان له د خپل ژوند د پاره کوم لاره جوړه کړے دی هغه تو لے کږے کږے دی، په غلطه طرف ځی، او په غلطه طرف خمیږی او بیا د بل غلط طرفته شروع کیږی.
دد ے ټولو کږو او غلطو لارو ترمنځه یوه داسے لاره چه بالکل د ټولو په منځ کښ وی، چه په هغه کښ انسان د ټولو قوتونو او خواهشاتو سره، د انسان د ټولو جذباتو او میلاناتو سره، د انسان د روح او د بدن د ټولو مطالبو سره او د انسان د ژوند د هرے مسئلے سره پوره پوره انصاف شوے وی، چه په هغه کښ هیڅ کوږوالے نه وی، دیو اړخ سره ډیره نری او د بل اړخ سره ظلم او بے انصافی پکښ نه وی، نو داسے لاره د انسان د ژوند د ترقئ او د کامیابئ د پاره ډیره ضروری ده. انسان په حقیقت کښ د داسے لاره طلب کوی، د هغه اصل وجه دا ده چه هغه ځان له دا نیغه ده، او انسان چه دا مختلفو کږو لارو نه بیا بیا بغاوت کوی، د هغے اصل وجه دا ده چه هغه ځان له دا نیغه لاره غواړی. خو د انسان دومره قدرت نشته چه هغه ځان له دا لاره پخپله معلومه کړی. دا لاره صرف خدائے انسان ته ښودلے شی او خدائے خپل رسولان د همے د پاره رالیږلی دی چه انسان ته دا نیغه لاره وښائی.
قرآن د همے لارے ته سَوَاءَ السَّبِیل او صراط مستقیم وائی. دا لویه لاره د دُنیا د همے ژوند نه واخله د آخرت د ژوند د پورے د یے تمیره کړو لارو په منځ کښ سیده نیغه تیریږی. څوک چه په دغه نیغه لاره روان شو هغه په دُنیا کښ صحیح دے او په آخرت کښ کامیاب دے، او څوک چه د دغے لارے نه بے لارے شو هغه په دُنیا کښ په غلطه دے او په آخرت کښ به خامخا دوزخ ته ځی، ځکه چه د ژوند تو لے کږے لارے دوزخ طرفته ځی.




د موجوده زمانے بعضے ناپوهه فلسفیانو ته چه دا معلومه شوه چه د انسان ژوند پرلپسے د یوے انتهانه بلے انتها ته روکے وهی روان دے، نو هغوئ ترد ا غلطه نتیجه واخستله چه "جنگی عمل" (Dialectical Process) د انسان د ژوند د ترقئ خپله فطری طریقه ده. هغوئ په خپله ناپوهئ دا ګمان کړ چه د انسان د "ترقئ" هم دا لار ده چه اول یوه انتها پسندانه دعوی (Thesis). انسان یو طرفته بوځی، بیا د هغے په مقابله کښ هم هغسے یوه بله انتها پسندانه دعوی (Antithesis). انسان بلے انتها طرفته راکاږی، او بیا د دواړو د یو ځائے کیدو او امتزاج ← (Synthesis). نه د ژوند د ترقئ لاره جوړه شی. حالانکه دا په اصل کښ د ترقئ لار نه ده بلکه دا د بدنصیبئ هغه دیکے دی چه د انسان ژوند صحیح ترقئ ته نه پریږدی، ځکه یوه انتها پسندانه دعوی ټول ژوند د ژوندیو اړخ ته راتاوکړی او په ځان پسے ئے راکاږی. تر دے پورے چه کله دغه ژوند

نَقْضِهِمْ مِّيْثَاقَهُمْ لَعَنّٰهُمْ وَجَعَلْنَا قُلُوْبَهُمْ قٰسِيَةً ۚ يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ عَنْ مَّوَاضِعِهٖ ۙ وَنَسُوْا حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوْا بِهٖ ۚ وَلَا تَزَالُ تَطَّلِعُ عَلٰى خَآئِنَةٍ مِّنْهُمْ اِلَّا قَلِيْلًا مِّنْهُمْ

د خپلې وعدې د ماتولو وجه وه چه موږ هغوئ د خپل رحمت نه لرې کړل او زړونه مو ورله سخت کړل. اوس د هغوئ دا حال دے چه د الفاظو پهیر لولو سره خبره د یو ځائے نه بل ځائے ته وړي، او کوم تعلیم چه ورکړے شوے وو د هغې ډیره حصه ترې هیره شوې ده، او همیشه به تا ته د دوئ د څه نه څه د خیانت پته لږي. په هغوئ کښ ډیر کم خلق داسې دي چه عیب نه پاک دي. (چه مه حال ته هغوئ را رسیدلي دي نو اوس چه هغوئ څه شرارتونه کوي نو ګیله ترې نشته)

---

د سواء السبیل نه د یولرے لارے نوعیت دا دے چه د ژوند څخه نور حقیقتونه، چه ورسره بے انصافي شوې دي، د هغې نه خلاف بغاوت شروع کړي او دا بغاوت د هغې سره مقابله کوي او ژوند مخالف طرفته روان کړي. ړو ړو چه ورله سواء السبیل (سیده لار) نژدے راځي نو د جګړے د دواړو طرفونو په منځ کښ صلح شروع شي او د دواړو دعوو د یو ځائے کیدو نه داسے خبرے منځ ته راشي چه د انسان د پاره فایده مندې وي. لیکن دلته چه ورسره د سیده لارے د لیدلو د پاره د نظر نه وي او نه ورسره هغه پوخ ایمان وي چه په سواء السبیل باندې مضبوط پاتے شي، نو دغه مقابله کونکي دعوې ژوند په دے ځائے باندې ودریدو ته نه پریږدي بلکه په زور باندې ئې بلے انتها طرفته روان کړي، آن تردے پورے چه بیا د ژوند څخه نور حقیقتونه انکار شروع کړي او یو بل بغاوت سر راپورته کړي. که چرے دے ناپوهه فلسفیانو ته د قرآن رڼا رسیدلي وے او هغوئ سواء السبیل (سیده لار) لیدلي وے نو هغوئ ته به معلومه شوې وه چه د انسان د پاره د ارتقا او د کامیابۍ صحیح لار هم دا سواء السبیل ده، او په کږو لارو باندې د یو انتها نه بلے انتها ته د غوټے خوړل صحیح لار نه ده.

---

فَاعْفُ عَنْهُمْ وَاصْفَحْ ۭ اِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۳﴾ وَمِنَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّا نَصٰرٰٓى اَخَذْنَا مِيْثَاقَهُمْ فَنَسُوْا حَظًّا مِّمَّا ذُكِّرُوْا بِهٖ ۠ فَاَغْرَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاۗءَ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ ۭ وَسَوْفَ يُنَبِّئُهُمُ اللّٰهُ بِمَا كَانُوْا يَصْنَعُوْنَ ﴿۱۴﴾ يٰٓاَهْلَ الْكِتٰبِ قَدْ جَاۗءَكُمْ رَسُوْلُنَا يُبَيِّنُ لَكُمْ كَثِيْرًا مِّمَّا كُنْتُمْ تُخْفُوْنَ مِنَ الْكِتٰبِ وَيَعْفُوْا عَنْ كَثِيْرٍ ڛ

نو په دے وجه هغوئ معاف کړه او د هغوئ په حرکتو نو باندې ځان ناغرضه کوه، الله هغه خلق خوښوی چه د احسان کاروِنه کوی.

دغه شان مونږه د هغه خلقو نه هم پخه وعده اغستې ده چه هغوئ وئیلی وُو چه مونږه "نصاری" یُو[۳۶]، خو هغوئ ته هم چه کوم سبق وریاد کړے شوے وُو د هغې یوه لویه برخه هغوئ هیره کړه، آخر دا چه مونږه د قیامته پورے د هغوئ په منځ کښې د دُشمنۍ او د بُغض و عناد تخم وکرلو، او ضرور به یو وخت په راشی چه الله به ورته وښائی هر هغه څه چه دوئ په دُنیا کښې کړی دی.

اے اهلِ کتابو، زمونږه رسول تاسو ته راغلے دے چه د کتاب الٰهی د ډیرے هغه خبرے تاسو ته رابرسیره کوی په کومو چه به تاسو پردے اچولے، او ډیرے خبرے درته معاف کوی هم[۳۷].

[۳۶] د خلقو دا خیال غلط دے چه لفظ "نصاری" د "ناصره" نه اغستلے شوے دے چه د مسیح علیه السلام د وطن نوم وُو. په اصل کښې دا د "نصرت" لفظ نه اغستلے شوے دے، او د دے بنیاد د حواریانو هغه قول دے چه هغوئ د مسیح علیه السلام د دے سوال په جواب کښې وئیلے وُو چه مَنْ اَنْصَارِیْٓ اِلَی اللّٰهِ (د خدائے په لار کښې زما څوک مددګار دے؟) نو په جواب کښې ورته حواریانو اُووے چه نَحْنُ اَنْصَارُ اللّٰهِ (مونږ د الله په کار کښې مددګاریو). عیسائی لیکوالان په ظاهره په دے دوکه شوی دی چه د عیسائیت په اولنی تاریخ کښې د ناصریه (Nazaranes). په نوم کومه فرقه وه او چه خلقو ورته د سپکاوی نه ناصری او ایبونی وئیل، چه قرآن کښې هم دا نوم د ټولو عیسایانو د پاره استعمال کړے دے. لیکن قرآن د لته دا صفا وائی چه هغوئ پخپله وئیلی وُو چه مونږه "نصاری" یُو، او دا هر چا ته پته ده چه عیسایانو ځان له ناصری نوم نه وُو ایښودے. (په دے مسئله باندې د زیاتے تشریح د پاره په صفحه نمبر ۱۰۵ باندې ځان له یوه ضمیمه درج ده.)

[۳۷] یعنی ستاسو څه غلا کلئے او خیانتونه خلقو ته ښائی چه د هغے ښودل د دینِ حق قائمولو د پاره ضروری دی، او د کومو ښودلو چه څه حقیقی ضرورت نشته هغه نه ښکاره کوی، په هغے چشم پوشی کوی.

قَدْ جَآءَكُمْ مِّنَ اللّٰهِ نُوْرٌ وَّكِتٰبٌ مُّبِيْنٌ ﴿۱۵﴾ يَّهْدِيْ بِهِ اللّٰهُ مَنِ اتَّبَعَ رِضْوَانَهٗ سُبُلَ السَّلٰمِ وَيُخْرِجُهُمْ مِّنَ الظُّلُمٰتِ اِلَى النُّوْرِ بِاِذْنِهٖ وَيَهْدِيْهِمْ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿۱۶﴾ لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ ؕ قُلْ

تاسو ته د الله د طرفه رڼا راغلې ده او يو داسې حق ښودونکی کتاب راغلی دے چه د هغې په ذريعه الله تعالىٰ هغه خلقو ته چه د الله د رضا طلبګار دی، د سلامتيا لارې ښايي[38] او په خپل حکم سره هغوئ د تيرو نه رڼا ته را وباسي او نيغه لار ورته ښايي۔

يقيناً هغه خلقو کفر وکړو چه وائي چه مسيح ځوئے د مريم خدائے دے.[39] اے محمد، دوئ ته ووايه

[38] د "سلامتيا" مطلب د غلط فکر او د غلط سوچ او د غلط کار نه بچ کيدل او د هغې د خرابو نتيجو نه محفوظه کيدل دی. څوک چه د الله د کتاب نه او د هغه د رسول د ژوند نه رڼا حاصلوی نو هغه ته په هر سوچ او عمل کښې د دے غلطيانو نه د ځان ساتلو معلومات کيږی.

[39] عيسايانو په اول کښې مسيح ته هم انسان او هم خدائے وئيلو، او دا هغه غلطی وه چه د دے په وجه د مسيح حقيقت د هغوئ د پاره يوه معمه جوړه شوه، او د دے معمے د حل کولو د پاره چه د هغوئ عالمانو څومره کوشش کولو نو هغومره دا معمه نوره ګرانيدله. په هغوئ کښې چا وئيل چه مسيح انسان هم دے نو هغوئ په دے خبره ډير زور ورکړو چه مسيح د الله ځوئ هم دے او په دريمه مستقل خدايانو کښې يو خدائے هم دے. او د چا په ذهن کښې چه د مسيح د الٰهيت اثر زيات وو نو هغوئ اودوئيل چه مسيح حقيقي خدائے دے خو په انساني شکل کښې ظاهر شوے دے، او د دے وجے نه د مسيح عبادت کولو. او چا چه وئيل چه نه، خبره د دے په منځ منځ کښې ده نو هغوئ په دا سے تشريح کولو کښې خپل ټول زور ولګوو چه مسيح ته انسان هم ووئيلے شي او ورسره خدائے هم وګڼلے شي، چه خدائے تعالىٰ او مسيح ځان له هم وی او د بيا دوا ره يو هم وی۔ (وګوره سوره نساء حاشيه نمبر ۲۱۲، ۲۱۳، ۲۱۵)

فَمَنْ يَّمْلِكُ مِنَ اللّٰهِ شَيْـًٔا اِنْ اَرَادَ اَنْ يُّهْلِكَ الْمَسِيْحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَاُمَّهٗ وَمَنْ فِي الْاَرْضِ جَمِيْعًا ؕ وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ؕ يَخْلُقُ مَا يَشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿۱۷﴾ وَقَالَتِ الْيَهُوْدُ وَالنَّصٰرٰى نَحْنُ اَبْنٰٓؤُا اللّٰهِ وَاَحِبَّآؤُهٗ ؕ قُلْ فَلِمَ يُعَذِّبُكُمْ بِذُنُوْبِكُمْ ؕ بَلْ اَنْتُمْ بَشَرٌ مِّمَّنْ خَلَقَ ؕ يَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ ؕ

---

چه که چېرې الله وغواړي چه مسیح ځوئې د مریم او د هغه مور او د زمکې ټول مخلوق هلاک کړي نو د چا طاقت شته چه هغه د دې ارادې نه منع کړې شي؟ الله خو د زمکې او د آسمانونو او د هغې ټولو څیزونو مالک دې چه د زمکې او د آسمانونو په منځ کښې دي، چه څه غواړي هغه پیدا کوي او د هغه په قدرت کښې هر څیز راښند دې.

یهودیان او عیسایان وایي چه مونږ د الله ځامن او د هغه نیازبین یو. د هغوی نه تپوس وکړه چه بیا ولې تاسو له ستاسو په ګناهونو باندې سزا کافه درکوي؟ په حقیقت کښې تاسو هم هغه انسانان یئ لکه څنګه چه خدائې نور انسانان پیدا کړي دي. خدائې چه څوک معاف کول غواړي هغه معاف کوي او چه چاله سزا ورکول غواړي هغه له سزا ورکوي

---

په دې فقره کښې یو نرۍ اشاره ده خبره ته دا چه څوک د مسیح د معجزانه پیدائش د وجه نه او د هغه د اخلاقو او معجزو د وجه نه په دې دوکه شوي دي چه مسیح حقیقي خدائې دې، نو په حقیقت کښې هغوی ډیر ناپوهان دي. مسیح خو د الله تعالی د بې شمېره عجیبه عجیبه پیدا وخت نه صرف یو نمونه ده چه په لید وسره ئې د دې کمزوري نظر والا خلقو سترګې وبریښیدلې، که چېرې دوی د خلق نظر په شان فراخه وې نو دوی ته به معلومه شوې وه چه الله تعالی په خپل پیدا وخت کښې د دې نه هم زیات د حیرانتیا کارونه کړي دي او د هغه قدرت بې شانه فراخه دې. خو دا ډېره لویه بې عقلي ده چه څوک د مخلوق کمالات اُووینی او په هغه باندې د خالق ګمان وکړي. عقلمند هغه خلق دي چه د مخلوق په کمالاتو کښې د خالق عظیم الشان قدرت وینی او د هغه نه د ایمان رڼا حاصلوي.

وَلِلّٰهِ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۚ وَاِلَيْهِ الْمَصِيْرُ ﴿١٨﴾ يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ قَدْ جَآءَكُمْ رَسُوْلُنَا يُبَيِّنُ لَكُمْ عَلٰى فَتْرَةٍ مِّنَ الرُّسُلِ اَنْ تَقُوْلُوْا مَا جَآءَنَا مِنْ ۢ بَشِيْرٍ وَّلَا نَذِيْرٍ ۫ فَقَدْ جَآءَكُمْ بَشِيْرٌ وَّنَذِيْرٌ ۗ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿١٩﴾ ع وَاِذْ قَالَ مُوْسٰى لِقَوْمِهٖ يٰقَوْمِ اذْكُرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ اِذْ جَعَلَ فِيْكُمْ اَنْۢبِيَآءَ وَجَعَلَكُمْ مُّلُوْكًا ۖۗ وَّاٰتٰىكُمْ مَّا لَمْ يُؤْتِ اَحَدًا مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ﴿٢٠﴾ يٰقَوْمِ ادْخُلُوا الْاَرْضَ الْمُقَدَّسَةَ

زمکا او آسمانونا او ددے په منځ کښ هرڅه د الله ملکیت دے، او هم هغه طرفته د ټولو تګ دے۔

اے اهل کتابو، زمونږه دا رسول تاسو ته په داسے وخت کښ راغلے دے او تاسو ته په داسے وخت کښ د دین واضحه تعلیم درکوی چه د پیغمبرانو د راتلو سلسله د یو مودے راسے بنده وه، د دے د پاره دے چه تاسو بیا او نه وایئ چه مونږ ته څوک زیری والا او یروونکے نه دے راغلے۔ نو کوری، اوس هغه زیری والا او یروونکے راغے ـــــــ او الله په هر څیز باندے قادر دے[41]۔

رایاد کړئ کله چه موسیٰ خپل قوم ته ویلی وو چه اے زما د قوم خلقو، د الله د هغه نعمت خیال ساتئ چه هغه تاسو له درکړے وو۔ هغه په تاسو کښ پیغمبران پیدا کړل، تاسو ئے بادشاهان کړئ، او تاسو له ئے هر هغه څه درکړل چه په دنیا کښ ئے چا ته نه وو درکړی[42]۔ اے زما د قوم روڼړو، د پاکے زمکے ته ورداخل شئ

[41] په دے موقع باندے دا فقره ډیره د مطلب او ډیره باریکه ده۔ د دے مطلب دا هم دے چه کوم خدائے اول د زیری والا او د یروونکی په رالیږلو قادر وو هم هغه محمد صلی الله علیه وسلم ته دا خدمت حواله کړے دے او هغه په داسے کولو قادر وو۔ دوئم مطلب ئے دا دے چه که چرے تاسو د دے بشیر و نذیر خبره و نه منله نو یاد لرئ چه الله قادر دے او قدرت والا دے، هر قسمه سزا چه تاسو له درکول و غواړی نو هغه له ئے څوک نشی راتلے۔

[42] دا د بنی اسرائیلو هغه لوئی شان شوکت طرفته اشاره ده چه د حضرت موسیٰ علیه السلام نه دیر مخکښ هغوئ ته حاصل وو۔ یو طرفته د هغوئ په قوم کښ د حضرت ابراهیمؑ، د حضرت اسحٰقؑ د حضرت یعقوبؑ او د حضرت یوسفؑ غوندے لوئی لوئی ته رمن پیغمبران پیدا شول۔ او بل طرفته د حضرت یوسف علیه السلام په زمانه کښ او د هغه نه روستو په مصر کښ هغوئ ته لوئی اقتدار نصیب شو۔ د ډیره مودے

الَّتِیْ كَتَبَ اللّٰهُ لَكُمْ وَلَا تَرْتَدُّوْا عَلٰۤى اَدْبَارِكُمْ فَتَنْقَلِبُوْا خٰسِرِیْنَ ﴿۲۱﴾ قَالُوْا یٰمُوْسٰۤى اِنَّ فِیْهَا قَوْمًا جَبَّارِیْنَ ۖۗ وَاِنَّا لَنْ نَّدْخُلَهَا حَتّٰى یَخْرُجُوْا مِنْهَا ۚ فَاِنْ یَّخْرُجُوْا مِنْهَا فَاِنَّا دٰخِلُوْنَ ﴿۲۲﴾ قَالَ رَجُلٰنِ مِنَ الَّذِیْنَ یَخَافُوْنَ اَنْعَمَ اللّٰهُ عَلَیْهِمَا

کومه چه الله ستاسو دپاره لیکلی ده[۴۳]، په شا کیږئ مه ګنځ نو نا کامه او نا مراده به واپس کیږئ"۔ هغوئ جواب ورکړو" اے موسیٰ، هلته خو ډیر زبردست خلق اوسیږی، موږ به هلته هرګز نه ځو ترڅو چه د هغه ځائے نه هغوئ نه وی وتلی۔ هو، که چرے هغوئ تر ووتل نو موږ بیا ورداخلیدو ته تیار یو"۔ په دغه یریدونکو خلقو کښ دوه کسان داسے هم وو چه[۴۵] خدائے پرخپل نعمت کړے وو۔ هغوئ اووے چه

پورے دوئ په دغه زمانه کښ په ټوله دنیا کښ د ټولو نه لوئ حکمرانان وو او هم د دوی قانون په مصر او په خواؤ شا علاقه کښ چلیدو۔ عام طور خلق د بنی اسرائیلو د ترقئ تاریخ د حضرت موسیٰؑ نه شروع کوی، لیکن دلته قرآن دا صفا وائی چه د بنی اسرائیلو د ترقئ اصل زمانه د حضرت موسیٰؑ نه وړاندې تیره شوې ده، او موسیٰؑ خپل قوم ته پخپله تیر شوے شاندار وخت وریاده وی۔

[۴۳] دے نه مراد د فلسطین زمکه ده چه د حضرت ابراهیمؑ، د حضرت اسحقؑ او د حضرت یعقوبؑ د اوسیدو ځائے وو۔ بنی اسرائیل چه کله د مصر نه راووتل نو الله تعالیٰ ورته دا زمکه وښودله او حکم ئے ورته وکړو چه لاړشئ او دغه زمکه ځان له فتح کړئ۔

[۴۴] حضرت موسیٰؑ دا تقریر په هغه موقع کړے وو کله چه هغوئ د مصر د راتلو نه تقریبًا دوه کاله روستو د فاران په صحرا کښ د خپل قوم سره په خیمو کښ اوسیدو۔ دا صحرا په سینا نومے ځائے کښ د عربو د قطبی سرحد سره او د فلسطین د سویلی سرحد سره یو ځائے متصله ده۔

[۴۵] د "قَالَ رَجُلٰنِ مِنَ الَّذِیْنَ یَخَافُوْنَ" دوه مطلبونه کیدے شی۔ یو دا چه کوم خلق د جبارانو خلقو نه یریدل نو په هغوئ کښ دوه کسانو اووے۔ بل دا چه کوم خلق د خدائے نه یریدل په هغے کښ دوو کسانو دا خبره وکړه۔

ادْخُلُوا عَلَيْهِمُ الْبَابَ ۚ فَإِذَا دَخَلْتُمُوهُ فَإِنَّكُمْ غَالِبُونَ ۚ وَعَلَى
اللَّهِ فَتَوَكَّلُوا إِن كُنتُم مُّؤْمِنِينَ ﴿٢٣﴾ قَالُوا يَا مُوسَىٰ إِنَّا
لَن نَّدْخُلَهَا أَبَدًا مَّا دَامُوا فِيهَا ۖ فَاذْهَبْ أَنتَ وَرَبُّكَ
فَقَاتِلَا إِنَّا هَاهُنَا قَاعِدُونَ ﴿٢٤﴾ قَالَ رَبِّ إِنِّي لَا أَمْلِكُ إِلَّا
نَفْسِي وَأَخِي ۖ فَافْرُقْ بَيْنَنَا وَبَيْنَ الْقَوْمِ الْفَاسِقِينَ ﴿٢٥﴾ قَالَ
فَإِنَّهَا مُحَرَّمَةٌ عَلَيْهِمْ ۛ أَرْبَعِينَ سَنَةً ۛ يَتِيهُونَ فِي الْأَرْضِ ۚ

"د دې جبارانو په مقابله کښې (د ښار) دروازې ته ورننوځئ، نو کله چه تاسو دننه ورورسیدئ
نو تاسو به غالب کیږئ. په خدائے بروسه ساتئ که تاسو مؤمنان یئ" لیکن هغوئ بیا هم اووے
چه "اے موسیٰ، موږ خو هلته هیڅکله نه ځو ترڅو چه هغوئ هلته موجود وی. بس ته او ستا
رب دواړه لاړ شئ او جنګ وکړئ، موږ دلته ناست یو" په دې باندې موسیٰ اووے "اے زما ربه
زما په اختیار کښې هیڅوک نشته خو یا زما خپل ځان دے او یا زما ورور، اوس ته موږ د دې نافرمانه
خلقو نه جدا کړه" الله جواب ورکړو "ښه ده نو دغه ملک د څلویښتو کالو پورې په دوئ باندې
حرام دے. دوئ به په زمکه کښې سرګردانه دربدر ګرځي[46]

۴۶ که دا قیصه د بائبل په کتب، استثناء، او یشوع نومے کتابونو کښې مطالعه کړئ. د هغے خلاصه دا ده چه حضرت
موسیٰ د ناران د صحرا نه د بنی اسرائیلو دولس سرداران فلسطین ته د هغه ځائے د حالاتو معلومولو دپاره
ولیږل. دے خلقو څلویښت ورځے دوره وکړه او بیا د هغه ځائے نه واپس راغلل او په عام مجلس کښې
ئے اووے چه واقعي هلته د پیو او د شهدو ویالے بهیږی، "لیکن کوم خلق چه هلته اوسیږی
هغه زورور دی .... موږ د دے مناسب نه یو چه په هغوئ باندې حمله وکړو .... هلته چه موږ
څومره خلق اولیدل هغه ټول دنګ دی او موږ هلته بنی عناق هم اولیدل چه زبردست دی
او د زبردستو نسل نه دی، موږ ته ځان په خپله هم داسے ښکاریدو لکه مولخان او هم د هغوئ
هغوئ په نظر کښې موږ ښکاریدو" چه دا خبره ئے واوریده نو ټول جماعت په چغو شو چه افسوس
موږ په مصر کښې مړه شوی وے! یا افسوس چه موږ په دے بیابان کښې مړه وے! خدائے ولے موږ
دے ملک ته بوځی او ولے موږ په توره تیتول غواړی؟ بیا خو به زموږ ښځے او بال بچ د لوټ سامان
شی. آیا زموږ دپاره بهتره نه دی چه موږ مصر ته واپس لاړ شو" بیائے په خپلو کښې یو بل ته
اووے چه راځئ څوک به ځان له سردار کړو او مصر ته به واپس لاړ شو. په دے خبره باندې په هغه ولسو



وقف لازم

فَلَا تَأْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْفٰسِقِيْنَ ﴿۲۶﴾ ع وَاتْلُ عَلَيْهِمْ نَبَاَ ابْنَيْ اٰدَمَ بِالْحَقِّ ۘ اِذْ قَرَّبَا قُرْبَانًا فَتُقُبِّلَ مِنْ اَحَدِهِمَا وَلَمْ يُتَقَبَّلْ مِنَ الْاٰخَرِ ؕ قَالَ لَاَقْتُلَنَّكَ ؕ قَالَ اِنَّمَا يَتَقَبَّلُ اللّٰهُ مِنَ الْمُتَّقِيْنَ ﴿۲۷﴾ لَئِنْ بَسَطْتَّ اِلَيَّ يَدَكَ

دَ دے نافرمانو خلقو په حالت باندِ هـيـڅ کله ترس مه کوه"![47] ع
او لږ ه شان دا آدم ؑ د دوه ځامنو قصه هم دوی ته پوره پوره صحيح واوروه ـ کله چه هغوی دواړو قربانی وکړه نو د يو قربانی قبوله کړے شوه او د بل هغه قبوله نه کړے شوه ـ هغه ورته اُووے "زۀ به تا ووژنم". هغه جواب ورکړو "الله خو د متقيانو نذرانے قبلوی[48]. که ته په ما باندِ د قتلو لپاره

سردارانو کښ، کوم چه د فلسطين په دوره ليږلی شوی وُو، دوه سرداران. يوشع او کالب پاسيدل او په دے بزدلئ باندِ ئے خپل قوم ملامته کړو. کالب اووے "ځئ چه مونږه په يو دم لاړ شو او په هغه ملک باندِ قبضه وکړو، ځکه چه مونږه په هغوی باندِ د قبضے کولو قابل يُو". بيا دواړو ورته په زړا اووے که چرے خدائے زمونږ نه راضی شو نو هغه به مونږه د غه ملک ته ورسوی.... صرف دومره ده چه تاسو د خدائے نه بغاوت مه کوئ او مه د دے ملک د خلقو نه يريږئ...... او زمونږ سره خدائے دے نو د هغوی نه مه يريږئ." خو قوم هغوی له دا جواب ورکړو چه "دوئ سنګسار کړئ"! آخر دا چه الله په غضب شو او دا فيصله ئے وکړه چه اوس به د يوشع او د کالب نه علاوه د دے قوم مشران د غه زمکے ته ور داخل نشی. دا قوم به د څلويښتو کالو پورے بے کوره دربه در ګرځی، تر دے پورے چه کله په دوئ کښ د شلو کالو نه د پورته عمره پورے ټول خلق مړۀ شی او نوے نسل ځوانان شی، پس د هغے نه به د غه ځوانانو ته د فلسطين د فتح کولو موقع ورکړے شی. د غه وجه وه چه بنی اسرائيل د فاران د صحرا نه شرقِ اردن ته رسيدل نو پوره اتۀ ديرش کاله پريشانه شو. په دے دوران کښ هغه ټول خلق مړۀ شو چه د ځوانئ په عمر کښ د مصر نه راوتلی وُو. د شرقِ اُردن فتح کولو نه روستو د حضرت موسیٰ ؑ انتقال وشو. د دے نه روستو د حضرت يوشع بن نون د خلافت په زمانه کښ بنی اسرائيل د فلسطين فتح کولو قابل شو.

[47] دلته د دے واقعے د ذکر کولو مطلب دا دے چه بنی اسرائيلو ته د تنبيه په طور دا ورياده وی چه د موسیٰ ؑ په زمانه کښ تاسو کومه نافرمانی کړی وه، د حق نه اوړيدلی وئ، او بے همته شوی وئ، او د هغے په وجه درته سزا ملاؤ شوه نو اوس به درته د هغے نه زيانه سزا ملاؤ شی که د محمد صلی الله عليه وسلم په مقابله کښ مو د بغاوت لار اختيار کړله.

[48] يعنی ستا قربانی که قبوله نۀ شوه نو دا زما څه قصور دے نه دے بلکه د دے وجه دا ده چه په تا کښ تقویٰ نشته، نو تا له پکار دی چه زما د مرګ په ځائے په ځان کښ د تقویٰ پيدا کولو کوشش وکړے.

لِتَقْتُلَنِیْ مَاۤ اَنَا بِبَاسِطٍ یَّدِیَ اِلَیْكَ لِاَقْتُلَكَ ۚ اِنِّیْۤ اَخَافُ اللّٰهَ رَبَّ الْعٰلَمِیْنَ ﴿۲۸﴾ اِنِّیْۤ اُرِیْدُ اَنْ تَبُوْٓاَ بِاِثْمِیْ وَ اِثْمِكَ فَتَكُوْنَ مِنْ اَصْحٰبِ النَّارِ ۚ وَ ذٰلِكَ جَزٰٓؤُا الظّٰلِمِیْنَ ﴿۲۹﴾ فَطَوَّعَتْ لَهٗ نَفْسُهٗ قَتْلَ اَخِیْهِ فَقَتَلَهٗ فَاَصْبَحَ مِنَ الْخٰسِرِیْنَ ﴿۳۰﴾

لاس پورته کړو نو زهٔ به په تا باندې د قتلولو دپاره لاس نهٔ پورته کوم،[49] زهٔ د الله رب العلمین نه یریږم. زهٔ غواړم چه ته زما او خپله ګناه په خپل سر واخلې[50] او دوزخی شې. د ظالمانو د ظلم هم دا صحیح بدله ده؟ آخر دا چه خپل نفس د هٔ ته د خپل رور وژل آسان کړل او هغهٔ قتل کړو او په هغه خلقو کښې شامل شو چه نقصانیان دی.

[49] د دے دا مطلب نهٔ دے چه که چرے ته زما د قتلولو دپاره راغلې نو زهٔ به لاس ترېلے تاته ناست یم او د خپل ځان د بچ کولو کوشش به نه کوم. بلکه د دے مطلب دا دے که ته زما په مرګ پسے راپسے کیږے نو راپسے شه، زهٔ ستا په مرګ پسے نهٔ در پسے کیږم. که ته زما د قتل کولو بندوبست کول غواړے نو ستا خپل اختیار دے، لیکن که چه ماته دا معلومه شوه چه ته زما د قتلولو تیارے کوے، نو دے نه پس به زهٔ دا کوشش نهٔ کوم چه زهٔ اول تا قتل کړم. دلته په دے خبره ځان پوهه کول پکار دی چه قاتل ته خپل ځان د قتل دپاره وړاندې کول او د ظالمانه حملے نه ځان نهٔ بچ کول څه نیکی نهٔ ده. البته نیکی دا ده چه که چرے څوک زما په وژلو پسے راپسے شی او ماته پته ولږی چه هغه زما د وژلو دپاره وخت ګوری، نو بیا به هم زهٔ د هغهٔ د وژلو فکر نهٔ کوم او دا خبره به غوره ګنړم چه د ظلم د هغهٔ د طرفنه وشی نهٔ چه زما د طرفنه. دا مطلب وُو د آدم د هغه نیک بچي د خبرے.

[50] یعنی په ځانهٔ د دے چه دیو بل د وژلو په کوشش کښې موږه دواړه ګنهګار شو، زما دا خبره خوښه ده چه د دواړو ګناه یوځائے ستا په سر باندې واشی، چه زما د قتلولو ګناه هم په تا واشی او زهٔ چه د خپل ځان د بچ کولو څه کوشش کوم او په هغے کښې زما د لاسه تاته څه نقصان دررسی، چه د هغه ګناه هم په تا واشی.

فَبَعَثَ اللّٰهُ غُرَابًا يَّبْحَثُ فِي الْاَرْضِ لِيُرِيَهٗ كَيْفَ يُوَارِيْ سَوْءَةَ اَخِيْهِ ؕ قَالَ يٰوَيْلَتٰٓى اَعَجَزْتُ اَنْ اَكُوْنَ مِثْلَ هٰذَا الْغُرَابِ فَاُوَارِيَ سَوْءَةَ اَخِيْ ۚ فَاَصْبَحَ مِنَ النّٰدِمِيْنَ ﴿۳۱﴾ ۛ مِنْ اَجْلِ ذٰلِكَ ۛ ۚ كَتَبْنَا عَلٰى بَنِيْٓ اِسْرَآءِيْلَ اَنَّهٗ مَنْ قَتَلَ نَفْسًا ۢ بِغَيْرِ

وقف النبی صلی اللہ علیہ وسلم

بیا اللہ یو کارغه رالیږلو چه زمکه کنستل ئې شروع کړل د پاره د دے چه دهٔ ته ئې وښائي چه د خپل رور مړۍ څنګه پټه کړي. د دے په لیدو دے دا ووے چه په ما باندې افسوس دے! چه زهٔ د دے کارغه پشان هم نهٔ شوم چه د خپل رور د مړي د پټولو بندوبست مې کړے وے[51]. د دے نه پس هغه په خپلو کړو باندې د پرستو مانه شو[52].

د دے وجے نه مونږ په بني اسرائیلو باندې دا حکم لیکلے وو[53] چه چا یو انسان د وینې د بدلے نه

---

[51] په دے طریقه الله تعالیٰ د یو کارغه په ذریعه د آدم د دے غلط کاره ځوئ ته خبردارے ورکړو چه دا د وېرې د جهالت او د ناپوهیا کار کړے دے، او هرکله چه یو ځلے د هغهٔ خپل ځان ته فکر شو نو هغهٔ یوازې په دے خبره باندې شرمنده نهٔ وو چه زهٔ د مړي په پټولو کښې د کارغه نه ولے ناپوهه شوم، بلکه هغه په دے هم خفه وو چه ما د خپل رور د قتل دا کار د ډیرې ناپوهیا کار کړے دے. د دے روستني نقرے نه چه "هغه په خپلو کړو باندې پښېمانه شو" هم دا مطلب دے.

[52] د دے واقعے د ذکر کولو مقصد دا دے چه په یو نرمه طریقه سره یهودیان په خپل هغے کار باندې ملامته کړي کوم چه هغوئ د نبي صلی الله علیه وسلم او د هغه د قدرمنو صحابو د قتلولو د پاره کړے وو. (ذکور ه د دے سورة حاشیه نمبر ۳۰) په دواړو دا تعوکښې یو شان والے صفا معلومیږي. الله تعالیٰ چه د عربو امیان قبول کړل او هغه پخوانی اهل کتاب ئې رد کړل، نو د دے اصلي بنیاد دا وو چه یو طرف ته تقوٰی وه او بل طرف ته تقوٰی نه وه. نو پکار خو دا وه چه کوم خلق رد کړے شوي وو نو چه هغوئ د خپلے رد کیدو په وجه باندې غور کړے وے او خپل کمی پوره کولو کوشش ئې کړے وے. لیکن د دے په ځائے په هغوئ باندې د جهالت دوره راغلله لکه څنګه چه د آدم په هغه غلط کاره ځوئ باندې د جهالت دوره راغلې وه، او د هغهٔ پشان دوئ هم د هغه خلقو په قتل پسے ورپسے شو کوم چه الله تعالیٰ قبول کړي وو. حالانکه دا ښکاره خبره وه چه په داسے جاهلانه کارونو باندې هغوئ د خدائے تعالیٰ قبول شوي مخلوق نشو جوړیدلے، بلکه نور هم د خدائے زیات ناخوښه کیدل.

[53] یعنې په بني اسرائیلو کښې د آدم د ظالم ځوئ پشان صفتونه پیدا شوي وو نو په دے وجه الله تعالیٰ هغوئ ته د نفس د نهٔ قتلولو سخت تاکید کړے وو او په خپل حکم کښې ئې ورته دا الفاظ لیکلي وو. افسوس دے چه نن کوم بائیبل موجود دے په هغے کښې د خدائے د دے حکم دا قیمتي لفظونه نشته. البته په تلمود کتاب کښې

نَفْسٍ اَوْ فَسَادٍ فِي الْاَرْضِ فَكَاَنَّمَا قَتَلَ النَّاسَ جَمِيعًا ؕ وَ مَنْ اَحْيَاهَا فَكَاَنَّمَآ اَحْيَا النَّاسَ جَمِيعًا ؕ وَ لَقَدْ جَآءَتْهُمْ رُسُلُنَا بِالْبَيِّنٰتِ ثُمَّ اِنَّ كَثِيرًا مِّنْهُمْ بَعْدَ ذٰلِكَ فِي الْاَرْضِ لَمُسْرِفُوْنَ ﴿۳۲﴾ اِنَّمَا جَزٰٓؤُا الَّذِيْنَ يُحَارِبُوْنَ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَيَسْعَوْنَ فِي الْاَرْضِ

علاوه یا په زمکه کښې د فساد خورولو نه علاوه، په بله څه وجه سره قتل کړو نو لکه چه ټول انسانان ئے قتل کړل او چاچه د یو نفس بچ کړو نو لکه چه هغه ټولو انسانانو له ژوند ورکړو.[۵۴] خو د هغوئ دا حال دے چه زمونږ رسولانو هغوئ ته صفا صفا حکمونه راوړل خو بیاهم په هغوئ کښې ډیر خلق په زمکه کښې زیاتی کونکی دی.

کوم خلق چه د الله او د هغه د رسول سره جنګ کوی او په زمکه کښې د دے د پاره منډے ترړے وهی

---

دا خبره په دے طریقه بیان شوی ده. "چاچه د اسرائیلو یو سړے مړ کړو، نو د الله د کتاب په رڼا کښې لکه چه هغه ټوله دُنیا هلاکه کړه، او چاچه د اسرائیلو یو سړے محفوظ وساتلو، نو د الله د کتاب مطابق لکه چه هغه د ټولے دُنیا حفاظت وکړو." د غه شان په تلمود کښې دا بیان هم شوے دے چه د قتل په مقدموکښې به د بنی اسرائیلو قاضیانو ګواهانو ته وئیل: "چاچه یو انسان هلاک کړو نو د هغه نه به په دا سے طریقه تپوس کیږی لکه چه هغه د ټولے دُنیا انسانان قتل کړی وی."

[۵۴] مطلب دا دے چه په دُنیا کښې انسان هله ژوند تیرولے شی کله چه د هر انسان په زړه کښې د بل انسان د روح احترام موجود وی او د هر سړي په زړه کښې دا جذبه وی چه د بل د ژوند حفاظت وکړی. څوک چه په ناحقه بل وژنی نو هغه یواځے په یو انسان ظلم نه کوی، بلکه د هغه دے کار نه دا ښا بنیږی چه د هغه په زړه کښې د انسان د ژوند احترام نشته او نه ئے د انسان سره د همدردئ جذبه شته، نو په دے وجه هغه د ټولو انسانانو دشمن دے، ځکه چه په ده کښې دا سے صفت دے که چرے دا صفت په ټولو انسانانو کښې راپیدا شی نو ټول انسانان به ختم شی. د دے برعکس څوک چه د انسان د ژوند په بچ کولو کښې امداد کوی نو هغه په حقیقت کښې د ټولو انسانانو مددګار دے، ځکه چه په ده کښې دا سے صفت دے چه د هغے په وجه انسانان باقی پاتے کیدے شی.

---

فَسَادًا اَنْ يُّقَتَّلُوْٓا اَوْ يُصَلَّبُوْٓا اَوْ تُقَطَّعَ اَيْدِيْهِمْ وَاَرْجُلُهُمْ

مِّنْ خِلَافٍ اَوْ يُنْفَوْا مِنَ الْاَرْضِ ۭ ذٰلِكَ لَهُمْ خِزْيٌ فِي

ش نه و سپړے شي۔ ۱۰

ه او په آخرت کښ ورله دمه

ے نه چه تاسو په هغوئ

معلومه وی چه

یاد دَ هغوئ لاسونه او پښے ادے بدے پرېکړے شی، یاد د و

ذلت او شرمندګی خود هغوئ دپاره په دُنیا کښ د

نه لویه سزاده. خوکوم خلق چه توبه وُباسی پرد ښے دد

بانډ قابو بیا مومئي ——— نو تاسو ته د

د امن قایمولو او د انتظام چلولو

ر، د جنګ کولو مطلب دادے چه کوم

لاف شوک جنګ کوی. د الله تعالی مرضا

د دے صالح نظام قایم شی چه انسان

ظام لانډ انسان خپل کمال ته وُرسیږی

انسان ترقی کیږی نه چه د انسان

وشش کول په اصل کښ دَ خدائے

بانډ وی یعنی کر قتل، لوټ، لاړ

ظام ختمول او دَ هغې په ځائے فاسد

ثال دا دے دے لکه چه دَ هند په

ږ دلو کوشش ؤکړی هغه به دَ

کونکے مجرم دی، اګر که هغه دیو

قاضی یا دَ وخت امام په خپل اجتهاد

ئے دا خیره بنکاره کول دی چه شوک

شش ؤکړی، نو دا دیرلوئ مجرم دے

۵۵ د زمکے نه مراد دلته هغه وطن یا هغه علاقه ده، چه په هغې کښ د

ذمه واری د اسلامی حکومت په سر بانډ وی، او دَ خدائے او دَ رسول س

نیک او صالح نظام اسلامی حکومت په ملک کښ قایم کړے دی، د هغې خ

داده، اوهم ددے دپاره هغه خپل رسول رالیږلے وُو، چه په زمکه بانډ یو

ته ګنا ورو او وُ نوته، او دَ زمکے هر شیز ته امن ورکړی، چه دَ هغه نظ

او دَ زمکے ټول شیزونه په دا سے طریقه استعمال کړی چه په هغې د

تباهی. دا سے نظام چه کله په زمکه بانډ قایم شی نو دَ هغې دخرابولو کو

او دَ رسول خلاف جنګ دے. دخرابولو دا کوشش که په وړه پیمانه

شوکول او دا که اچول، او که په لویه پیمانه بانډ وی یعنی دا صالح نظ

نظام قایمول، خو دا دَ خدائے او دَ رسول خلاف جنګ دے. ددے م

سزا کانو کښ هغه سړے چه شوک دهندوستان دانګریزی حکومت د ا

"بادشاه خلاف جنګ" (Waging War against the King).

معمولی سپاهی خلاف وی او د بادشاه نه دیرلرے وی۔

۵۶ دا سزا کانے مختصر طور ددے دپاره بیان کړے شوی دی چه

سړه هر مجرم ته دَ هغه دَ خپل جرم مطابق سزا ورکړی. اصل مقصد

په اسلامی حکومت کښ د ته دَ سیرې او هغه دَ اسلامی نظام اړولو کو

او په دے سختو سزا کانو کښ هغه ته هره سزا ورکیدے شی۔

اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ ﴿۳۴﴾ ع یٰٓاَیُّهَا الَّذِیْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوا اللّٰهَ وَابْتَغُوْٓا اِلَیْهِ الْوَسِیْلَةَ وَجَاهِدُوْا فِیْ سَبِیْلِهٖ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۳۵﴾

الله معاف کوونکے او رحم کوونکے دے.[56] ع

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، د الله نه ووېرېږئ او د هغه دربار ته د رسېدو ذريعه[57] ولټوئ او د هغه په لاره کښې محنت او کوشش وکړئ،[58] شايد چه تاسو ته کاميابي نصيب شي.

[56] يعني که چرے هغوئ د فساد راپورته کولو نه منع شوی وی، او د صالح نظام د خرابولو يا د اړولو کوشش ئے پرېښودلے وی، او د هغوئ د روستنی عمل نه دا ثابته شي چه هغوئ امن خوښوونکی او قانون منونکی او نيکوکاره انسانان جوړ شوی دی، او بيا پس د دے نه د هغوئ د مخکنی جرمونو پته ولږی نو په هغے سزا کانو کښې به يوه سزا هم هغوئ له نه ورکولے کيږی کومه چه بره بيان شوی دی. البته که د انسانانو حقونو پرې بانديتے وی نو د هغے د ذمه وارئ نه نه خلاصيږی. مثلاً که چرے څوک ئے قتل کړے وی او يا د چا مال ئے اخستلے وی يا بل څه داسے جرم ئے کړے وی نو د دغه جرم په باره کښې به پرې مقدمه چلولے کيږی، ليکن د بغاوت او د فساد او د خدائے او د رسول خلاف د جنګ کولو څه مقدمه به پرې نه چلولے کيږی.

[57] يعني د هر هغه ذريعه طلب کوونکی او تلاش کوونکی شئ چه تاسو پرے خدائے ته نزدے شئ او د هغه رضا درته حاصله شي.

[58] په اصل کښې لفظ جَاهِدُوْا استعمال شوے دے چه د هغه مطلب صرف په "محنت او کوشش" سره پوره نه ادا کيږی. د مجاهده په لفظ کښې د مقابلے معنیٰ شامله ده او د دے صحيح مطلب دا دے چه کوم طاقتونه د الله په لاره کښې بنديز راولی، او يا تاسو د الله د رضا مطابق تللو ته نه پرېږدی او د الله د لارے نه اړولو کوشش نه کوی، او يا دا چه تاسو دے ته نه پرېږدی چه تاسو پوره د خدائے بندګان شئ او يا تاسو په دے مجبوروی چه تاسو د هغوئ ياد الله نه بغير د بل چا بندګان جوړ شئ، نو تاسو د هغوئ خلاف په خپلو ټولو طاقتونو سره د بحث و تکرار او د جنګ جګړے ټينګ پوره کوشش وکړئ، په دے کوشش باندے به تاسو ته د خدائے نزديکت او کاميابي حاصليږی.

په دے آيت کښې مومن انسان ته دا حکم دے چه په هر محاذ کښې د شلورو اړو طرفو نه جنګيږی. يو طرفته ابليس لعين دے او د هغه لښکر دے. بل طرفته د انسان خپل نفس او د هغه خراب خواهشات دی. دريم طرفته د خدائے نه پښا هغه ډير انسانان دی چه د هغوئ سره د سري دنياوی پاستے او د تعلقو خرشولو هر قسمه تعلقات جوړ شوی دی. څلورم طرفته هغه غلط مذهبی نظام او کلتوری هغه غلط رسمونه رواجونه او د وطن هغه غلط سياسی نظام دے چه بنياد ئے د خدائے نه په بغاوت باندے قايم شوے دے او انسان د حق د بندګئ په ځائے د باطل په بندګئ باندے مجبوره کوی. د دے ټولو مختلف مختلف طريقے دی خو د ټولو دا يو کوشش دے چه سړے د خدائے په ځائے د هغوئ تابع کړی. د دے نه برخلاف د انسان ترقی او د خدائے ته نزديکت په دے خبره باندے ده چه هغه د

إِنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا لَوْ أَنَّ لَهُم مَّا فِي الْأَرْضِ جَمِيعًا وَمِثْلَهُ مَعَهُ لِيَفْتَدُوا بِهِ مِنْ عَذَابِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ مَا تُقُبِّلَ مِنْهُمْ ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٣٦﴾ يُرِيدُونَ أَن يَخْرُجُوا مِنَ النَّارِ وَمَا هُم بِخَارِجِينَ مِنْهَا ۖ وَلَهُمْ عَذَابٌ مُّقِيمٌ ﴿٣٧﴾ وَالسَّارِقُ وَالسَّارِقَةُ فَاقْطَعُوا أَيْدِيَهُمَا جَزَاءً بِمَا كَسَبَا

بنه پوه شئ چه کومو خلقو د کفر لار اختیار کړې ده، که چرې د هغوئ سره د زمکے ټول دولت وی او دومره ورسره نور هم وی، او هغوئ دا وغواړی چه دا په فدیه کښې ورکړی او د قیامت د ورځے د عذاب نه بچ شی، بیا به هم دا فدیه د هغوئ نه قبوله نه کړے شی او هغوئ له به ضرور دردناکه سزا ورکولے کیږی. هغوئ به غواړی چه د دوزخ د اور نه بهر و تښتی خو بهر به وتلے نشی او هغوئ له به همیشه عذاب ورکولے کیږی.

او غل که نارینه وی او که زنانه وی، د دواړو نه لاسونه پریکړئ،[۶۰] دا د هغوئ د عمل بدله ده

خدائے فرمان منونکے او پټ په ظاهره خالص د خدائے بندہ شی. دغه وجه ده چه انسان خپل مقصد ته ترهغه نه شی رسیدلے ترڅو چه هغه د خپلو ټولو مخه بندو نکو طاقتونو خلاف جنګ و نکړی، او په هر وخت او په هر حالت کښې ورسره بحث و تکرار ته تیار نشی. انسان به هله خپل مقصد ته رسی چه دا ټول خنډونه هوار کړی او د خدائے په لاره باندې آزاد روان شی.

[۶۰] د واړه لاسونه نه بلکه یو لاس. او د ټول اُمت په دے باندې اتفاق دے چه په اول ځل غلا کولو باندې به ښئ لاس پریکولے کیږی.

نبی صلی الله علیه وسلم صفا ویلی دی چه لا قطع علی خائن. د دے نه دا معلومه شوه چه خیانت وغیره ته غلا نشی ویلے بلکه غلا صرف دے ته ویلے شی چه سړے د چا مال د هغه د حفاظت نه پټ کړی او خپله پرے قبضه وکړی.

نبی صلی الله علیه وسلم دا حکم هم کړے دے چه د یو مال د قیمت نه د کم قیمت والا څیز څوک پټ کړی نو په هغه د غل لاس نه پریکوی. د عبدالله ابن عباسؓ د روایت مطابق د نبی صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې د یو مال قیمت لس درهمه وو، او د ابن عمرؓ د روایت مطابق دریے درهمه وو، او د انس بن مالکؓ د روایت مطابق پنځه درهمه وو. او د حضرت عائشےؓ د روایت مطابق د یو دینار څلورمه حصه برابر وو. په دے وجه د فقهاؤ په منځ کښې د غلا په کم نصاب مقرر ولو کښې اختلاف دے. د امام ابوحنیفهؒ په نزد باندې د غلا د کم نه کم نصاب لس درهمه دے، او د امام مالکؒ، شافعیؒ او احمدؒ په نزد باندې د دینار څلورمه حصه ده (د هغه زمانے په درهم کښې به د یوے ماشے یوه رتی او د یوے رتی پنځمه حصه سپین زر وو. او د

نَكَالًا مِّنَ اللّٰهِ ؕ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ حَكِيْمٌ ﴿۳۸﴾ فَمَنْ تَابَ مِنْۢ بَعْدِ ظُلْمِهٖ وَاَصْلَحَ فَاِنَّ اللّٰهَ يَتُوْبُ عَلَيْهِ ؕ اِنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ

او د الله د طرفنه عبرتناکه سزا ده۔ د الله قدرت په ټولو باندې غالب دے او هغه حکمت والا دے۔ بیا چه څوک د ظلم کولو نه روستو توبه وباسي او خپله اصلاح وکړي نو د الله د مهربانۍ نظر به بیا په هغه باندې وشي[۶۱]، الله ډیر معاف کونکے

دینار څلورمه حصه وه دریو درهمو برابره)۔

نورهم داسې ډیر څیزونه دي چه د هغې په غلا باندې به د لاس پریکولو سزا نه ورکړے کیږي. مثلاً د نبي صلی الله علیه وسلم حکم دے چه لاقطع فی ثمرة ولا کثر (د میوه او د سبزۍ ترکارۍ په غلا باندې به لاس نه پریکولے کیږي)۔ لاقطع فی طعام (د خوراک (ډوډۍ) په غلا باندې لاس پریکول نشته)۔ او د حضرت عائشه رضی الله عنها حدیث دے چه لم یکن قطع السارق علی عهد رسول الله صلی الله علیه وسلم فی الشئ التافه۔ (د معمولي څیزونو په غلا باندې به د نبي صلی الله علیه وسلم په زمانه کښې لاس نه پریکیدو)۔ د حضرت علی رض او د حضرت عثمان رض فیصله ده او په صحابه کرامو کښې چا د دې نه اختلاف نه دے کړے چه لاقطع فی الطیر (د مرغۍ په غلا باندې د لاس پریکولو سزا نشته)۔ دغه رنګې سیدنا عمر رض او علی رض د دارو د بیت المال نه د غلا کونکي نه لاس نه دے پریکړے، او په صحابو کرامو کښې چا هم اعتراض نه دے کړے. د دې بنیاد په وجه باندې د فقهې مختلفو امامانو مختلف څیزونه د لاس پریکولو د حکم نه بهر کړي دي۔ د امام ابوحنیفه رح په نزد باندې د ترکارۍ، د میوه، د غوښه، د پوخ خوراک، د نا غوبل کړے غلې، د لوبو او د ټنګ ټکور د سامانونو په غلا باندې د لاس پریکولو سزا نشته. د غه رنګې په ځنګل کښې د څریدو د کوځنا و رو په غلا باندې او د بیت المال نه په غلا کولو باندې امام ابوحنیفه رح د لاس پریکولو قایل نه دے۔ دغه شان نورو امامانو هم څه څیزونه د دې حکم نه بهر کړي دي. لیکن د دې مطلب دا نه دے چه په دې غلا کانو باندې به د سر نه هډو سزا نه ورکولے کیږي۔ سزا به ضرور ورکولے کیږي خو صرف لاس به ترې نه پریکولے کیږي۔

[۶۱] د دې مطلب دا نه دے چه لاس د ترې نه پریکړے کیږي، بلکه د دې مطلب دا دے چه د لاس پریکولو نه روستو څوک توبه وباسي او ځان د غلا د نیت نه پاک کړي او د خدائے صالح او نیک بنده جوړ شي هغه به د الله د غضب نه بچ شي، او الله به د هغه د لمن نه دا داغ لرې کړي۔ لیکن که چرې یو سړي د لاس پریکیدو نه روستو هم خپل نیت سم نه کړو او په زړه کښې ئے هغه شان هغه گنده خیالات او جذبات ساتل چه د هغې په وجه ترې لاس پریکړے شو، نو د دې مطلب دا دے چه لاس خو ئے د بدن نه جدا شو خو د غلا نیت ئے په زړه کښې هغه شان پاتے شو، نو په دې وجه هغه د خدائے د غضب هغه شان مستحق دے لکه څنګه چه د لاس پریکیدو نه مخکښې وو۔ یعنې په سزا هم د خدائے د غضب نه خلاص نشو. د دې وجې د قرآن مجید قل ته دا حکم کوي چه د الله نه معافي غواړه او د خپل ځان اصلاح کوه۔ ځکه چه لاس پریکول خو په ټولنيز کښې د فسید و د انتظام د پاره دي. په دې سزا سره زړه نه پاکیږي۔ د نفس پاکوالے صرف په توبه او د الله طرفته په رجوع کولو سره حاصلیږي. په احادیثو کښې د نبي صلی الله علیه وسلم په متعلق راغلي دي چه یو ځلې د رسول[۳] د حکم

رَّحِيْمٌ ﴿٣٩﴾ اَلَمْ تَعْلَمْ اَنَّ اللّٰهَ لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ؕ يُعَذِّبُ مَنْ يَّشَآءُ وَيَغْفِرُ لِمَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿٤٠﴾ يٰۤاَيُّهَا الرَّسُوْلُ لَا يَحْزُنْكَ الَّذِيْنَ يُسَارِعُوْنَ فِى الْكُفْرِ

او رحم کوونکے دے. ولے تاته معلومه نه ده چه الله د زمکے او د آسمانونو د بادشاهئ مالک دے؟ چه چالره سزا ورکول غواړي هغه له سزا ورکوي او چه څوک معاف کول غواړي هغه معاف کوي، هغه د هر څیز اختیار لري.

اے پیغمبره! ستا د پاره دِ هغه کسان د خفګان باعث نه وي چه د کفر په لاره کښ ډیره تیزي ښکاره کوي[٦٣]

مطابق د یو غل لاس پریکړے شو نو نبی ؐ هغه را وغوښتلو او ورته ئے وفرمائیل "قُلْ استغفر الله واتوب الیه" او وایه چه زه د خدائے نه معافي غواړم او د هغه طرفته رجوع کوم. هغه د نبی ؐ د وینا مطابق دا الفاظ او وے. بیا نبی ؐ د هغه په حق کښ دعا وکړه چه "اَللّٰهُمَّ تُبْ عَلَيْهِ" "اے خدایه دے معاف کړه"

[٦٣] یعنی چه د هغوئ پوهه او تهولے منډے ترړے او کوششونه د دے د پاره وي چه دا ولنه د جاهلیت کوم حالت را روان دے هغه په خپل ځائے برقرار پاتے شي او د اسلام تول دا صلاح کوششونه کامیاب نشي. د دے خلقو بیړو نبی صلی الله علیه وسلم خلاف د بد اخلاقئ هر قسمه ذلیله او سپک کارونه کول. قصداً به ئے د حق نه سترګے پټولے. نبی صلی الله علیه وسلم چه به کوم کار د عامو انسانانو د فائدے د پاره او خپله د دوئ د فائدے د پاره بالکل په بے غرضئ سره کولو، نو دوئ به هغے د ناکام کولو د پاره د هر قسمه دروغ، دوکے درکے او مکرونه او چالبازي کوله. د هغوئ دا حرکتونه چه به نبی صلی الله علیه وسلم ولیدل نو زړه به ئے خفه کیدو، او د هغه دا خفګان بالکل فطري خبره ده. کله چه د یو پاکیزه انسان معامله د بد اخلاقو خلقو سره راشي او هغوئ د هغه نا پوهتیا او د خود غرضئ په وجه د دغه نیک انسان د خیر ښیګړے هر کار په خرابه طریقه سره بنده وي نو خامخا به د هغه زړه درد یږي. نو د الله تعالی د وینا دا مطلب نه دے چه د کافرانو په دے حرکتونو باندے کوم خفګان ستا زړه له راځي هغه نه را تلل پکار دي بلکه د الله دا ارشاد په اصل کښ مطلب دا دے چه په دے سره زړه ماتے نشي، همت حوصله و نه بائیلے، بلکه په صبر سره د خدائے د مخلوق د اصلاح د پاره کار کوه. پاتے شو دا خلق، نو کومه بد اخلاقي چه دوئ په ځان کښ را پیدا کړي ده د هغے په وجه د هغوئ سره دا خپل کارونه مناسب ښکاري. یو کار هم د هغوئ په کارونو کښ د ګیلے نه دے.

مِنَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اٰمَنَّا بِاَفْوَاهِهِمْ وَلَمْ تُؤْمِنْ قُلُوْبُهُمْ ۛ وَمِنَ الَّذِيْنَ هَادُوْا ۛ سَمّٰعُوْنَ لِلْكَذِبِ سَمّٰعُوْنَ لِقَوْمٍ اٰخَرِيْنَ ۙ لَمْ يَاْتُوْكَ ۭ يُحَرِّفُوْنَ الْكَلِمَ مِنْۢ بَعْدِ مَوَاضِعِهٖ ۚ يَقُوْلُوْنَ اِنْ اُوْتِيْتُمْ هٰذَا فَخُذُوْهُ وَاِنْ لَّمْ تُؤْتَوْهُ فَاحْذَرُوْا ۭ وَمَنْ يُّرِدِ اللّٰهُ

خواه که هغوئ ډ هغه کسانو نه وي چه ځسے په خوله وائي چه مونږه ایمان راوړے دے لیکن ډ هغوئ زړونو ایمان نۀ وي راوړے، اویا که هغوئ ډ هغه کسانو نه وي چه یهودیان شوي دي، چه دائے حال دے چه ډ دروغو د پاره غوږونه ږدي[63]، او ډ نورو داسے خلقو د پاره چه ستا خواله هیڅرے نۀ وي راغلي، پټ پټ رازونه اوړي[64]، او ډ کتاب الله الفاظ، باوجود ددے چه ډ هغوئ ځپل صحیح ځائے مقرر شوے وي، ډ اصلي معنو نه اړه وي[65] او خلقو ته وائي که چرے تاسو ته دا حکم درکړے شو نو وے منئ اوکه دا نۀ وو نو مۀ ئے منئ[66] - الله چه چا له په فتنه

[63] ددے دوه مطلبونه دي: یو دا چه دا خلق ډ خپلو خواهشاتو بندګان جوړ شوي دي نو ددے وجے نه ډ رښتیا سره ډ دوئ هیڅ مینه نشته - دروغ ډ دوئ خوښ دي او هم هغه شئ ډ زړۀ په مینه اوري ځکه چه ډ زړۀ تندہ ئے په هغے مړه کیږي. دویم مطلب ئے دا دے چه ډ نبي صلی الله علیه وسلم او ډ مسلمانانو په مجلسونو کښے دوئ ډ دروغو د پاره کښیناستل. مطلب ئے دا و چه دلته څۀ اوویني او څۀ واوري نو چه هغه په غلط رنګ کښے تعلقو کښے خواره کړي او یا ورسره ډ خپل ځان نه غلطے خبرے شاملے کړي او ډ نبي او ډ مسلمانانو د بدنامولو د پاره ئے په خلقو کښے خورے کړي.

[64] ددے هم دوه مطلبونه دي: یو دا چه ډ مخبرئ د پاره راځي او ډ نبي صلی الله علیه وسلم او ډ مسلمانانو په مجلسونو کښے ددے د پاره اوړي راوړي چه څۀ رازخبره واوري او ډ هغوئ ډ ښمنانو ته ئے ورسوي. دویم دا چه ډ دروغو الزامونو لګولو د پاره څۀ خبرے راجمع کوي. او بیا ددے په ذریعه په هغه خلقو کښے بدګمانئ خورے کړي چه ډ هغوئ ډ نبي صلی الله علیه وسلم او ډ مسلمانانو سره هیڅ واقع ملاقات نۀ وي شوے.

[65] یعني ډ توراة کوم حکمونه چه ډ هغوئ ډ خواهشاتو مطابق نۀ وي، په هغے کښے به په قصد بانډے ردوبدل کوي، او ډ الفاظو معنے بدلے کړي او ډ خپلے خوښے حکمونه ترے راوباسي.

[66] یعني ناپوهه عوامو نه وائي چه کوم حکم درته مونږ ښایو که محمد صلی الله علیه وسلم درته هم دغه حکم ښودلو نو قبول ئے کړئ او که نۀ بل څۀ حکم ئے درته ښودلو نو بیائے مۀ قبلوئ.

---

فِتْنَتَهُ فَلَنْ تَمْلِكَ لَهُ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا ۚ أُولٰٓئِكَ الَّذِينَ لَمْ يُرِدِ اللّٰهُ أَنْ يُطَهِّرَ قُلُوبَهُمْ ۚ لَهُمْ فِي الدُّنْيَا خِزْيٌ ۖ وَلَهُمْ فِي الْاٰخِرَةِ عَذَابٌ عَظِيمٌ ﴿۴۱﴾ سَمّٰعُونَ لِلْكَذِبِ أَكّٰلُونَ لِلسُّحْتِ ۚ فَإِنْ جَآءُوكَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ أَوْ أَعْرِضْ عَنْهُمْ ۚ

کښې د اچولو اراده کړې وي نو د الله د گرفت نه هيڅ کولو د پاره د هغه سره ته هيڅ نه شې کولے.[67] دا هغه خلق دي چه د هغوئ زړونه پاکول الله و نه غوښتل[68]، د دوئ د پاره په دنيا کښې شرمندګي ده او په آخرت کښې سخته سزا ده۔

دوئ دروغ اوريدونکي دي او د حرامو مال خوړونکي دي،[69] نو که دوئ تا ته (خپلے مقدمے راوړي او) حاضريږي نو ستا اختيار دے که فيصله ورله کوے نو وکړه کنې نو انکار ترې وکړه۔

[67] د الله تعالیٰ د طرف نه څوک په فتنه کښې د اچولو مطلب دا دے چه په کوم سړي کښې الله تعالیٰ د څه قسمه غلط ميلانات په زيا تيدو ويني نو مخے له ورله داسے موقعه راولي چه په هغه کښې دده سخت ازمينت وي. که چرے هغه لا په بدئ کښې پوره نه وي اخته شوے نو په دے آزمينتو نو سره ځان ټينګ کړي او د بدئ سره د مقابلے کولو د پاره په ښکې د نيکئ طاقتونه راپيدا شي. ليکن که هغه په بدئ کښې پوره اخته شوے وي او په نيکئ باندے بدي غالبه شوې وي نو بيا په هر آزمينت سره به په بدئ کښې ننوځي. دا د الله تعالیٰ هغه فتنه ده چه څوک په مے کښې پو ځل پريوتو نو بيا ئے د الله يو نيک بنده هم د هغے نه نشي بچ کولے. او په مے فتنه کښې نه يوازے افراد اچولے کيږي بلکه قومونه په ښکې هم اچولے کيږي.

[68] په دے وجه چه هغوئ خپله ځان پاکول نه غوښتل. څوک چه د پاکوالي خواهش مند وي او د هغې د پاکئ د پاره کوشش کوي نو دا د الله دستور نه دے چه هغه د پاکوالي نه محرومه کړي. الله خو هغه انسان پاکول نه غواړي څوک چه خپله ځان پاکول نه غواړي.

[69] دلته خاص طور هغه فتوي ورکونکو او قاضيانو طرفته اشاره ده چه د دروغو گواهئ اخلي او د مدعيانو نه اوري او د هغه خلقو په حق کښې د انصاف نه خلاف فيصلے کوي چه څوک ورله رشوتونه ورکوي يا ترې دوئ ته څه نورے نا جائزه فائدے رسيږي.

وَإِنْ تُعْرِضْ عَنْهُمْ فَلَنْ يَضُرُّوكَ شَيْئًا ۖ وَإِنْ حَكَمْتَ فَاحْكُمْ بَيْنَهُمْ بِالْقِسْطِ ۚ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ الْمُقْسِطِينَ ﴿٤٢﴾ وَكَيْفَ يُحَكِّمُونَكَ وَعِنْدَهُمُ التَّوْرَاةُ فِيهَا حُكْمُ اللَّهِ ثُمَّ يَتَوَلَّوْنَ مِنْ بَعْدِ ذَٰلِكَ ۚ وَمَا أُولَٰئِكَ بِالْمُؤْمِنِينَ ﴿٤٣﴾

که انکار دِ ترې وکړو نو دوی ستا هیڅ نقصان نشي کولے، او که فیصله ئې کوې نو بیائې تیک ټیک په انصاف سره کوه ځکه چه الله انصاف کونکی کسان خوښوی[۷۱] ——— او دوی تا ځنګه منصف جوړ وي، د دوی سره خو توراة موجود دے چه پکښ د الله حکم لیکلے شوے دے او بیا هم دوی د هغې نه مخ اړوي[۷۲]؟ اصل خبره داده چه په دے خلقو کښ هډو ایمان نشته.

[۷۱] یهودیان لا دے وخته پورے د اسلامي حکومت باقاعده رعیت نه وو بلکه د اسلامي حکومت سره د هغوی د تعلقاتو بنیاد په معاهدو باندې وو. د دے معاهدو په وجه یهودیانو ته په خپلو کورنو معاملاتو کښ آزادي حاصله وه او د هغوی د مقدمو فیصلے به د هغوی د قانون مطابق د هغوی خپلو جیانو (قاضیانو) کولے. په قانون کښ هغوی په دے مجبوره نه وو چه خپلے فیصلے نبي صلی الله علیه وسلم له یا د هغه مقرر کړے شوی قاضیانو له راوړي. لیکن دے خلقو چه به په کومو معاملاتو کښ د خپل مذهبي قانون مطابق فیصله نه کول غوښتل نو د هغه معاملو فیصلے به ئې نبي صلی الله علیه وسلم له راوړے او په دے کښ به ئې دا امید لرلو چه کیدے شي چه د هغه په شریعت کښ بل څه حکم وي او موږ د خپل مذهبي قانون نه بچ شو.

[۷۲] دلته په خاص طور کوم مقدمے طرفته اشاره ده، هغه داده چه په خیبر کښ د یهودیانو د یوے درنه کورنۍ د یوے ښځے او د یو سړي په منځ کښ ناجائزه تعلقات وو. په تورات کښ د هغوی سزا سنګسار کول وو (استثناء باب ۲۲- آیت ۲۳، ۲۴). لیکن یهودیانو نه غوښتل چه دا سزا هغوی له ورکړي. په دے وجه هغوی په خپلو کښ مشوره وکړه چه په دے مقدمه کښ به محمد صلی الله علیه وسلم منصف جوړ کړو، که د سنګسار کولو نه بغیر بل څه حکم ئې وکړو نو قبول به ئې کړو او که د سنګسار کولو حکم ئې وکړو نو نه به ئې قبلوو. نو مقدمه ئې نبي له راوړه. نبي په سنګسارولو حکم وکړو. هغوی د دے حکم منلو نه انکار وکړو. نبي ترې تپوس وکړو چه ستاسو په مذهب کښ د دے څه سزا ده؟ هغوی ورته او وے چه د دے سزا په کوړو وهل، او مخ تورول او بیا په خر سوره ول دی. نبي صلی الله علیه وسلم د هغوی علمانو له قسم ورکړو او تپوس ئې ترې وکړو، چه په توراة کښ د واده کړي زناکارو دا سزا ده؟ هغوی ورله بیا هغه دروغ جواب ورکړو. لیکن په هغوی کښ یو سړے چه نوم ئې ابن صوریا وو او د توراة غټ عالم وو، چپ ناست وو. نبي هغه ته مخ کړو او ورته ئې فرمایل چه زه تاله په هغه خدائې قسم درکوم چه تاسو ئې د فرعون نه آزاد کړي او په کوه طور کښ ئې تاسو له شریعت درکوو، آیا واقعي په توراة کښ د زناکارو دا سزا ده؟

إِنَّآ أَنزَلْنَا ٱلتَّوْرَىٰةَ فِيهَا هُدًى وَنُورٌ ۚ يَحْكُمُ بِهَا ٱلنَّبِيُّونَ ٱلَّذِينَ أَسْلَمُوا۟ لِلَّذِينَ هَادُوا۟ وَٱلرَّبَّـٰنِيُّونَ وَٱلْأَحْبَارُ بِمَا ٱسْتُحْفِظُوا۟ مِن كِتَـٰبِ ٱللَّهِ وَكَانُوا۟ عَلَيْهِ

مونږ توراة نازل کړو چه په هغه کښ هدایت وُو او رڼا وه، ټول پیغمبران چه مسلمانان وُو، هغوی به د دے کتاب مطابق د دے یهودیانو[۲] د معاملو فیصلے کولے او دغه شان ربانیانو او احبارو[۳] هم (په دے کتاب باندے فیصلے کولے) ځکه چه هغوی د کتاب الله د حفاظت ذمه وارکړے شوی وُو او هغوی په دے باندے

هغه جواب ورکړو چه "کرچه تا ماله دا عذر مه غټ قسم نه وے راکړے نو ما ځبره نه کوله. حقیقت دا دے چه د زنا سزا خو هم دغه سنګسارى ده خو کله چه په مونږ کښ زنا زیاته شوه نو زمونږه حاکمانو دا طریقه اختیار کړه چه لویو خلقو به زنا کوله نو هغوی به پرینبودل او وړو خلقو به چه زنا کوله نو هغوی له به ئے د سنګسارولو سزا ورکوله. بیا چه د دے نه په عوامو کښ خفګان پیدا شو نو مونږه د توراة قانون بدل کړو او دا قانون مو جوړ کړو چه زناکارو ته به کوړے ورکولے کیږی، مخ به ئے ورله تور کړی او په خر باندے به ئے په شا سور کړی". د دے نه روستو بیا یهودیانو هیڅ نشو ویلے او د نبی صلی الله علیه وسلم د حکم مطابق ئے زناکار سنګسار کړل.

[۱] په دے آیت کښ الله تعالی د دے خلقو خباثت کړی او په ایمانی بنکاره کړی ده. د دے "مذهبی خلقو" چه په ټول عرب کښ ئے د خپلے دینداری او د خپل علم بورجونه قایم ساتلی وُو، دا حال وُو چه کوم کتاب ته ئے د الله کتاب ویلو او ویل به ئے چه زمونږه په دے باندے ایمان دے نو په هغه کتاب کښ ئے فیصله نه کوله او د خپله متقدمه ئے نبی صلی الله علیه وسلم له راوړله او حال دا دے چه د هغه د پیغمبرۍ نه ئے انکار کولو. د دے خبرے نه دا راز معلوم شو چه په هیڅ شی باندے د دوی د "بنتیخ ایمان نشسته"، په اصل کښ د دوی ایمان په خپل نفس او خواهشاتو باندے دے، کوم کتاب ته چه دوی د الله کتاب وائی د هغه د حکم منلو نه صرف په دے وجه اره وی چه هغه حکم د دوی خوښ نه دے، او معاذ الله کوم نبی ته چه د دروغو نبی وائی هغه له صرف په دے امید باندے ځی چه کیدے شی هلته فیصله د دوی د خواهشاتو مطابق ولشی.

[۲] دلته د دے حقیقت ته هم اشاره شوی ده چه پیغمبران ټول "مسلمانان" وُو، او دا یهودیان د اسلام نه اوړیدلی وُو. او په ډلبازۍ کښ اخته شوی وُو او صرف "یهودیان" پاتے شوی وُو.

[۳] ربانی: عالمان. احبار: فقهاء، د دین پوهان.

---

شُهَدَآءَ ۚ فَلَا تَخْشَوُا النَّاسَ وَاخْشَوْنِ وَلَا تَشْتَرُوْا بِاٰيٰتِيْ ثَمَنًا قَلِيْلًا ۭ وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰۗىِٕكَ هُمُ الْكٰفِرُوْنَ ﴿۴۴﴾ وَكَتَبْنَا عَلَيْهِمْ فِيْهَآ اَنَّ النَّفْسَ بِالنَّفْسِ ۙ وَالْعَيْنَ بِالْعَيْنِ وَالْاَنْفَ بِالْاَنْفِ وَالْاُذُنَ بِالْاُذُنِ وَالسِّنَّ بِالسِّنِّ ۙ وَالْجُرُوْحَ قِصَاصٌ ۭ فَمَنْ تَصَدَّقَ بِهٖ فَهُوَ كَفَّارَةٌ لَّهٗ ۭ وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰۗىِٕكَ هُمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۴۵﴾ وَقَفَّيْنَا عَلٰٓي اٰثَارِهِمْ بِعِيْسَى ابْنِ مَرْيَمَ مُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرٰىةِ ۠ وَاٰتَيْنٰهُ الْاِنْجِيْلَ فِيْهِ

گواهان وُو (نو اے د یهودو علماو) تاسو د خلقو نه مهٔ یریږئ بلکه زما نه یریږئ او زما آیتونه په لږ قیمت خرڅول پریږدئ. څوک چه د الله د نازل کړے شوی قانون مطابق فیصله وُنه کړی هغوئ کافران دی.

په توراة کښ موږ په یهودو باندې دا حکم لیکلے وُو چه د انسان په بدل کښ انسان د سترګے په بدل کښ سترګه، د پوزے په بدل کښ پوزه، د غوږ په بدل کښ غوږ، د غاښ په بدل کښ غاښ او د ټولو زخمونو دپاره د برابرئ بدله ده[۴۳] او بیا چا چه خپله بدله وُبخښله نو دا بخښنه ورله کفاره ده[۴۴]. او کوم خلق چه د الله د نازل کړے شوی قانون مطابق فیصله وُنه کړی هغوئ ظالمان دی.

بیا موږه د دغے پیغمبرانو نه روستو د مریم ځوے عیسیٰؑ راولیږو. په توراة کښ چه څه د هغه د وړاندې موجود وُو هغه د هغے تصدیق کوونکے وُو. او موږه هغه له انجیل ورکړو چه

[۴۳] د تصدیق دپاره د ستلو دپاره وُګورئ د توراة خروج نومے کتاب باب ۲۱ - آیت ۲۳ - ۲۵.

[۴۴] څوک چه د صدقے په نیت سره خپله بدله معاف کړی نو دا نیکی به دهٔ د ډیرو ګناهونو دپاره کفاره شی د نبی صلی الله علیه وسلم ارشاد دے چه "من جرح فی جسده جراحة فتصدق بها کفر عنه ذنوبه بمثل ما تصدق به". یعنی د چا بدن چه زخمی کړے شو او هغه د هغے معافی وُکړه نو چه په څومره حد به هغه معافی کړی وی هم هغومره ګناه به د هغه معاف کړے شی.

هُدًى وَّنُوْرٌ ۙ وَّمُصَدِّقًا لِّمَا بَيْنَ يَدَيْهِ مِنَ التَّوْرٰىةِ وَهُدًى وَّمَوْعِظَةً لِّلْمُتَّقِيْنَ ﴿٤٦﴾ وَلْيَحْكُمْ اَهْلُ الْاِنْجِيْلِ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فِيْهِ ۭ وَمَنْ لَّمْ يَحْكُمْ بِمَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ فَاُولٰۗىِٕكَ هُمُ الْفٰسِقُوْنَ ﴿٤٧﴾

په هغې کښې رهنمائي او رڼا وه، او د تورات نه چې څه په هغه وخت کښې موجود وو هغه هم د هغې تصدیق کونکې وه او د خدائے نه ویره لرونکو خلقو د پاره سراسر هدایت او نصیحت وو. زمونږ حکم وو چې د انجیل منونکي و د هغې قانون مطابق فیصله کوي کوم قانون چې الله په انجیل کښې نازل کړے دے او کوم خلق چې د الله د نازل کړے شوي قانون مطابق فیصله نه کوي هغوي فاسقان دي ۷۷

۷۶ یعنې مسیح علیه السلام څه نوے مذهب نه وو راوړے بلکه هغه یو دین، چې د پخوانو ټولو پیغمبرانو دین وو، د مسیح دین هم وو او هم دغے دین طرفته ئے خلق رابلل. د تورات د اصلي تعلیماتو نه چې څه د هغه په زمانه کښې محفوظ وو هغه مسیح پخپله هم منل او انجیل هم د هغې تصدیق کوو (وګوره متي باب ۵، آیت ۱۷، ۱۸) قرآن دوه حقیقت بیا بیا ذکر کوي چې د خدائے د طرفنه څومره پیغمبران د دُنیا په هر ځائے کښې راغلي دي په هغوي کښې یو هم د دے د پاره نه دے راغلے چې د خپل ځان نه د مخکیني پیغمبر د کار د ختمولو اعلان وکړي او خپل نوے مذهب شروع کړي، بلکه هر پیغمبر به د خپل ځان نه د مخکیني پیغمبر تصدیق کولو او هم هغه کار له به ئے په وړاندې ترقي ورکوله کوم چې به مخکیني پیغمبر د یو پاک میراث په حیثیت پرینبودلے وو. دغه رنګ الله تعالیٰ هیڅکله خپل یو کتاب د وړاندي کتاب د تردید د پاره نه دے رالیږلے بلکه هر کتاب به د وړاندي کتاب تصدیق کونکے وو۔

۷۷ دلته الله تعالیٰ د هغه خلقو په حق کښې درے حکمونه کړي دي څوک چې د الله تعالیٰ د نازل کړے شوي قانون مطابق فیصلے نه کوي. یو دا چې هغوي کافران دي، دویم دا چې هغوي ظالمان دي، دریم دا چې هغوي فاسقان دي. د دے نه دا صفا معلومه شوه چې څوک د خدائے حکم او د هغه نازل کړے شوے قانون پرینږدي او د دے په ځائے باندې په خپل قانون یا د نورو انسانانو په جوړ کړے شوي قانون باندې فیصلے کوي، نو هغه په اصل کښې درے جرمونه کوي. اول دا چې د هغه دے کار مطلب دا دے چې هغه د خدائے د حکم نه انکار کوي او دا کفر دے. دویم دا چې د هغه دا کار د انصاف نه خلاف دے، ځکه چې د خدائے حکم ټیک ټیک د انصاف مطابق دے، او کله چې هغه د خدائے د حکم نه بغیر په بل څه فیصله وکړه نو هغه ظلم وکړو. دریم دا چې انسان د خدائے بنده دے او هر کله چې هغه د خپل مالک د قانون نه مخ واړه وو، او خپل یا د بل چا قانون ئے جاري کړو نو هغه په حقیقت کښې د بندګئ د حد نه بهر قدم کیښود او دا فسق دے. دا کفر او ظلم او فسق په حقیقت کښې د خدائے د حکم نه مخ اړول او انکار کول دي. چرته چې د خدائے د حکم نه مخ اړولے شوے دے هلته دا درے واړه خبرے ضرور موجود دي. خو که څنګه چې ددې لاره کید وپه درجو و مرتبو کښې فرق دے دغه شان د دے دریو خبرو په مرتبو کښې هم فرق دے. څوک چې د الله د حکم نه خلاف په دے وجه فیصلے کوي چې هغه د الله حکم نه غلط وائي او خپل حکم نه یا د بل انسان حکم نه صحیح وائي نو هغه مکمل کافر

وَاَنۡزَلۡنَاۤ اِلَیۡكَ الۡكِتٰبَ بِالۡحَقِّ مُصَدِّقًا لِّمَا بَیۡنَ یَدَیۡهِ مِنَ الۡكِتٰبِ وَمُهَیۡمِنًا عَلَیۡهِ فَاحۡكُمۡ بَیۡنَهُمۡ بِمَاۤ اَنۡزَلَ اللّٰهُ وَلَا

بیا اے محمدؐ، مونږه تا ته دا کتاب را ولیږو چه د حق سره راغلے دے او د الکتاب نه چه څه د ده په وړاندې موجود دی د هغې تصدیق کونکے دے او د هغې حفاظت کونکے او ساتونکے دے.[۷۹] نو ته په دے وجه ته د خدائے د نازل کړے شوی قانون مطابق د خلقو د معاملو فیصلے کوه او کوم حق

او ظالم او فاسق دے. او د چا چه دا عقیده وی چه د الله حکم حق دے خو عمل پرې نه کوی او د هغې نه خلاف په بل څه فیصلے کوی نو اګرچه د ملت نه خو وتلے نه دے خو خپل ایمان د کفر او د ظلم او د فسق سره غلط کوی. د غه شان چه په خپله هره معامله کښې د الله د حکم نه بد لالار اختیار کړی دے نو هغه په خپلو ټولو معاملو کښې کافر او ظالم او فاسق دے. او څوک چه په څو معاملو کښې د الله حکم منی او په څو کښې نه منی نو د هغه منلو او نه منلو مطابق د هغه په ژوند کښې ایمان او اسلام او کفر او ظلم او فسق شریک دی. څو مفسرینو او ویلی دی چه دا آیتونه د اهل کتابو سره خاص دی. خو د الله د کلام په الفاظو کښې د دے قسم د معنی کولو هیڅ ځائے نشته. د دے تسره د معنی کولو بهترین جواب هغه دے کوم چه حضرت حذیفه رضی الله عنه کړے دے. هغوی ته چا اُووے چه د دریو واړو آیتونو خو د بنی اسرائیلو په حق کښې دی. د هغه د ویونکی دا مطلب وو چه که یهودیانو کښې چا د خدائے د نازل کړے شوی حکم خلاف فیصله وکړه، هغه به کافر او هغه به ظالم او هغه به فاسق وی. نو حضرت حذیفهؓ وفرمائیل: نعم الاخوة لکم بنو اسرائیل ان کانت لهم کل مُرّة ولکم کل حلوة کلا و الله لتسلکن طریقهم قد رالشراک "څومره ښه ورونړه دی ستاسو د پاره دا بنی اسرائیل چه ترخه ترخه ټول د هغوی د پاره دی او خواږه خواږه ټول ستاسو د پاره دی، نه، هیڅ هم داسے نه ده، په خدائے مې د قسم دی چه تاسو به د هغوی په طریقه باندې هو بهو عمل کوئ۔"

[۷۹] دلته یو لوئی حقیقت طرف ته اشاره شوی ده. اګرچه دا خبره په دے طرز هم کیدے شوه چه "پخوانی کتابونو" نه څه په اصلی او صحیح شکل کښې باقی دی، "قرآن د هغې تصدیق کوی"، لیکن الله تعالیٰ د "پخوانو کتابونو" په ځائے باندې "الکتاب" استعمال کړو. د دے نه دا ښه د نکیدله چه "قرآن" او ټول هغه کتابونه چه په مختلفو زمانو او په مختلفو ژبو کښې د الله تعالیٰ د طرف نه نازل شوی دی، هغه ټول په اصل کښې یو کتاب دے. یو مُصنف دے، د ټولو یو مدعا او یو مقصد دے، یو تعلیم او یو علم دے چه د دے کتابونو په ذریعه انسان ته ورکړے شوے دے. فرق که چرې دے نو هغه صرف د عبارت فرق دے چه د یو مقصد د پاره د مختلفو مخاطبو په لحاظ سره په مختلفو مختلفو ژبو کښې لیکلے شوے دے. پس دا یو حقیقت دے چه دا ټول کتابونه د یو بل مخالف نه دی، بلکه د یو بل تائید کونکی او تصدیق کونکی دی. بلکه اصلی

تَتَّبِعْ أَهْوَآءَهُمْ عَمَّا جَآءَكَ مِنَ الْحَقِّ ۚ لِكُلٍّ جَعَلْنَا مِنكُمْ شِرْعَةً وَّمِنْهَاجًا ۚ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَجَعَلَكُمْ أُمَّةً وَّاحِدَةً وَّلٰكِن لِّيَبْلُوَكُمْ

چه تا ته راغلے دے د هغې نه د دوی د خواهشاتو پیروی مه کوه ——— مونږ[۲۶] په تاسو کښې د هر یو دپاره یو شریعت او د عمل یوه لار مقرر کړه. که ستاسو خدائے غوښتلے نو تاسو ټول ئے یو اُمّت هم جوړولے شولے، لیکن هغه دا د دے دپاره وکړل چه څه هغه تاسو له درکړی

حقیقی خبر خود اوه چه دا ټول کتابونه دی یو "الکتاب" په مختلف رنګ کښې شائع شوی کتابونه دی.

[۲۵] په اصل کښې لفظ "مُهَیْمِنٌ" استعمال شوے دے. په عربۍ ژبه کښې د هیمن یهیمن هیمنة معنیٰ ده حفاظت کول، نګرانی کول، شهادت، امانت، تائید او مرسته کول. هیمن الرجل الشیئ، یعنی یو سړی د فلانی څیز حفاظت وکړو. هیمن الطائر علیٰ فراخه، یعنی مرغۍ خپل بچے په وزرو کښې محفوظ کړو. حضرت عمرؓ یو ځل خلقو ته اُووے، انی داع فهیمنوا، یعنی زه دُعا کوم تاسو په تائید کښې آمین وایئ. د دے نه لفظ همیان وتلے دے چه په پښتو کښې ورته همیانئ وائی، یعنی هغه تیلۍ چه په هغې کښې سړے خپل مال محفوظ ساتی. پس د قرآن په باره کښې چه دا ارشاد شوے دے چه قرآن په "الکتاب" باندې مُهَیمِن دے نو د دے دا مطلب دے چه په هغه ټولو آسمانی کتابونو کښې چه کوم حق تعلیمات دو هغه ټول په قرآن کښې محفوظ دی. قرآن د هغې ساتونکے دے په دے معنیٰ سره چه اوس به د حق د تعلیماتو څه حصه نه ضائع کیږی. قرآن د هغې تائید کونکے دے په دے معنیٰ سره چه په هغه کتابونو کښې د خدائے کلام کوم حد پورے موجود دے قرآن د هغې تصدیق کوی. او قرآن په هغه کتابونو باندې ګواه دے په دے معنیٰ سره چه په هغې کښې د خدائے د کلام سره د خلقو کوم کلام شریک شوے دے د قرآن په ګواهۍ سره هغه بیلیدے شی، څه چه په هغې کښې د قرآن مطابق دی هغه د خدائے کلام دے او څه چه د قرآن خلاف دی هغه د خلقو کلام دے.

[۲۶] دا په منځ کښې یوه بله خبره ده. د اپاسنے تقریر چه څوک و اوری نو په زړه کښې ئے یو سوال راپیدا کیږی دا هغې سوال تشریح ده. سوال دا دے چه هرکله د ټولو پیغمبرانو او د ټولو کتابونو دین یو دے او هغوی یو بل تصدیق او تائید کوی، نو هر یو شریعت دیل نه بدل وے دے؟ څه وجه ده چه د مختلفو پیغمبرانو او د آسمانی کتابونو په شریعتونو کښې د عبادت طریقے، د حلالو او د حرامو حدونه او د استوګنے طریقے بدلے بدلے دی؟

فِيْ مَآ اٰتٰىكُمْ فَاسْتَبِقُوا الْخَيْرٰتِ ؕ اِلَى اللّٰهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيْعًا فَيُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ فِيْهِ تَخْتَلِفُوْنَ ﴿۴۸﴾ وَاَنِ احْكُمْ بَيْنَهُمْ

چه په هغې کښې ستاسو آزمينت وکړي. نو په نيکو کښې د يو بل نه د وړاندې کيدلو کوشش وکړئ. آخر ستاسو ټولو الله طرفته واپس تلل دي، بيا هغه تاسو په څه کښې اختلاف کوئ نو د هغې اصلي حقيقت به درته وښائي [۸۱] ـــــ پس اے محمد ﷺ، ته د الله د نازل کړے شوي قانون

[۸۱] دا د پاسني سوال پوره جواب دے. ددے جواب تفصيل دا دے:

(۱) صرف په دے وجه چه د هر پيغمبر شريعت د بل نه بدل دے، دا خبره کول بالکل غلط دي چه د دے شريعتونو ماخذ او اصلي زيرے هم مختلف مختلف دے. په اصل کښې هم دغه يو الله دے چه د مختلفو قومونو د پاره ئے په مختلفو زمانو او په مختلفو حالاتو کښې ځان له ځان له قاعدے ضابطے مقرر کړي دي.

(۲) په دې کښې هيڅ شک نشته چه دا خبره ممکنه وه چه دا ول نه د ټولو انسانانو د پاره يو قانون مقرر شوے وے او ټول اُمت يو وے. ليکن الله تعالىٰ چه د مختلفو پيغمبرانو په شريعتونو کښې کوم فرق کړے دے په هغې کښې د نورو ډيرو حکمتونو سره يو لوئ حکمت دا هم ؤ چه الله تعالىٰ په دے طريقه د خلقو آزمينت کول غوښتل. کوم خلق چه په اصلي دين باندې او د دين په حقيقت باندې پوهيږي، او په دين کښې ورته د دے قاعدو ضابطو حقيقي حيثيت معلوم دے، او په زړه کښې ئے د څه قسم بدنيتي نشته، نو هغوئ ته چه حق په کوم شکل کښې راشي نو پيژني ئے هم او قبلوي ئے هم. هغوئ د مخوا نو حکمونو په ځائے باندې د روستنو حکمونو په منلو کښې څه شک نه کوي. ددے نه برخلاف کوم خلق چه د دين د روح نه نا آشناوي او د دين دغه قاعدے ضابطے او د هغې تشريحات ئے اصل دين گنړلے وي، او د خدائے تعالىٰ د دين سره ئے خپله خبره شامله کړي وي او په هغې تينګ ولاړ وي، نو بيا روستو چه د خدائے د طرفنه څه حکم او هدايت راشي هغه هغوئ رد کوي. ددے دواړو قسمو خلقو د بيلولو د پاره دا آزمينت ضروري ؤ، نو په دے وجه الله تعالىٰ شريعتونه مختلف کړل.

(۳) د ټولو شريعتونو اصلي مقصد د نيکو او د ښيګړے لاره موندل دي، او دا په دے طريقه موندلے شي چه په څه وخت کښې ورته د خدائے حکم وُشي په هغه وخت کښې ئے وُمني. د غه وجه ده چه کوم خلقو ته اصلي مقصد معلوم دے نو د هغوئ د پاره د شريعتونو په مختلف کيدو کښې د جګړے کولو په ځائے د عمل کولو صحيح طريقه دا ده چه خپل مقصد ته په هغه لار روان شي چه کومه الله منظوره کړې وي.

(۴) کوم اختلافات چه انسانانو د خپل ضد، بدنيتي، طرفدارۍ او د خپل ذهن د نوؤ نوؤ خبرو د وجې نه پيدا کړي دي د هغې آخري فيصله نه د مناظرے په مجلس کښې کيدے شي او نه په ميدان جنګ

بِمَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ وَلَا تَتَّبِعْ أَهْوَآءَهُمْ وَٱحْذَرْهُمْ أَن يَفْتِنُوكَ عَنۢ بَعْضِ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ إِلَيْكَ ۖ فَإِن تَوَلَّوْا۟ فَٱعْلَمْ أَنَّمَا يُرِيدُ ٱللَّهُ أَن يُصِيبَهُم بِبَعْضِ ذُنُوبِهِمْ ۗ وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ ٱلنَّاسِ لَفَٰسِقُونَ ﴿۴۹﴾ أَفَحُكْمَ ٱلْجَٰهِلِيَّةِ يَبْغُونَ ۚ وَمَنْ أَحْسَنُ مِنَ ٱللَّهِ حُكْمًا لِّقَوْمٍ يُوقِنُونَ ﴿۵۰﴾ ع

مطابق دَ دے خلقو دَ معاملو فیصلے کوه او دَ دوئ په خواهشاتو پسے مه ځه. هوښیار وسه چه دا خلق تا په فتنه کښ وانهٔ چوی او دَ هغه هدایت نه دِ یوه ذرهٔ وانهٔ ړوی کوم چه خدائے تا ته نازل کړے دے. بیا که چرے دوئ دَ دے نه مخ واړوی نو پوهه شه چه الله تعالیٰ دا اراده کړی ده چه دَ دوئ دَ ځنے ګناهو نو په وجه دوئ په مصیبت کښ اَچوی، او دا حقیقت دے چه په دے خلقو کښ زیات فاسقان دی. (دوئ چه دَ خدائے دَ قانون نه مخ اړوی) نو آیا بیا دَ جاهلیت[۸۳] فیصلے غواړی؟ حالانکه چه څوک په الله باندِ یقین لری دَ هغوئ په نزد الله نه بهتر فیصله کوونکے بل هیڅوک نشته. ع

[۸۲] دَ دے ځایه نه بیا هغه تقریر شروع شو کوم چه دَ مخکښ نه راروان وُو.

[۸۳] دَ جاهلیت لفظ دَ اسلام په مقابله کښ استعمالیږی. دَ اسلام طریقه سراسر علم دے ځکه چه ددے ښود نه دا الله دَ طرفه ده او الله دَ ټولو حقیقتونو علم لری. دَ دے نه برعکس هر هغه طریقه چه دَ اسلام نه مختلفه ده، هغه دَ جاهلیت طریقه ده. دَ اسلام دَ راتللو نه مخکښ دَ عربو حالت ته دَ جاهلیت زمانه ځکه وائی چه په دغه زمانه کښ خلقو دَ خپل ژوند ښیوولو دپاره داسے طریقے مقرر کړے وے چه دَ علم نه بغیر صرف دَ وهم یا دَ قیاس او دَ ګمان یا دَ خواهشاتو په بنیاد بانډِ وے. دَ عمل دا طریقه چه په کوم ځائے کښ او په کوم دور کښ انسانانو ځان له اختیار کړه نو هغے ته به دَ جاهلیت طریقے ویلے کیږی. په سکولونو او په یونیورسټو کښ چه ټن صباځه خودلے کیږی هغه صرف یو جزوی علم دے او هیڅکله هم دَ انسان دَ رهنمائیٔ دپاره کافی نهٔ دے. دغه وجه ده چه دَ خدائے تعالیٰ دَ نازل کړے شوی علم نه بغیر دَ ژوند کوم نظام ددے جزوی علم سره شریک دَ ګمانونو او دَ قیاسونو او دَ خواهشاتو نه جوړ شی هغه هم هغه شان "جاهلیت" دے لکه څنګه چه دَ پخوانئ زمانے جاهلی طریقے وے.

وقف لازم

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَتَّخِذُوا۟ ٱلْيَهُودَ وَٱلنَّصَٰرَىٰٓ أَوْلِيَآءَ ۘ بَعْضُهُمْ أَوْلِيَآءُ بَعْضٍ ۚ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُۥ مِنْهُمْ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴿٥١﴾ فَتَرَى ٱلَّذِينَ فِى قُلُوبِهِم مَّرَضٌ يُسَٰرِعُونَ فِيهِمْ يَقُولُونَ نَخْشَىٰٓ أَن تُصِيبَنَا دَآئِرَةٌ ۚ فَعَسَى ٱللَّهُ أَن يَأْتِىَ بِٱلْفَتْحِ أَوْ أَمْرٍ مِّنْ

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، یهودیان او عیسایان ځان له دوستان مه جوړه وئ، دوئ په خپلو کښ د یو بل دوستان دی. او که چرے په تاسو کښ څوک هغوئ ځان له دوستان کوی نو هغه بیا هم بیا د هغوئ نه شمیرلے شی، دا یقینی ده چه الله تعالیٰ ظالمان د خپلے رهنمائی نه محرومه کوی.

تاسو وینئ چه د کومو خلقو په زړونو کښ د منافقت بیماری ده هغوئ هم په هغوئ کښ د منډے تړلے کوشش کوی. وائی چه "مونږه یریږو چه چرته د مصیبت په چکر کښ راګیر نه شو" خو لرے نه ده، چه کله الله تاسو له کامیابه فتح درکړی یا د خپل طرفه څه

سلام ۸۳ دغه وخته پورے لا د کفر او د اسلام د جګړے فیصله نه وه شوی. اګرچه اسلام د مسلمانانو د قربانو په وجه یو طاقت جوړ شوے وو لیکن په مقابله کښ ورسره نور طاقتونه هم مضبوط وو. څنګه چه د اسلام د فتحے امکان وو دغه شان د کفر د فتحے امکان هم وو. دغه وجه ده چه په مسلمانانو کښ کوم خلق منافقان وو نو هغوئ په اسلامی جماعت کښ د وسید لو سره سره د یهودیانو او د عیسایانو سره راښ باز ساتل غوښتل. غرض ئے دا وو چه که چرے اسلام شکست وخوری نو بیا چه د هغوئ د پاره د پناه ځائے وی. د دے نه علاوه په هغه وخت کښ په عربو کښ د عیسایانو او د یهودیانو مالی حالت د ټولو نه زیات بهتره وو. تجارت او سوداګری زیات تر د هغوئ په لاس کښ وه. د عربو زرخیزے علاقے د هغوئ په لاس کښ وے. د هغوئ د سودونو جال هر طرفته خور وو. نو د مالی اسبابو په وجه هم د دے منافقانو خلقو ا خواهش وو چه د دوئ سره خپل د اړه تعلقات په ځائے برقرار وساتی. د هغوئ دا ګمان وو چه که چرے د اسلام او د کفر په دے جګړه کښ مونږه پوره پوره وګډو او د هغه ټولو قومونو سره خپل تعلقات ختم کړو د کوم سره چه او س اسلام جنګیږی، نو زمونږ دا کار به زمونږ د پاره د سیاسی او معاشی هر لحاظ نه خطرناک وی.

---

عِنْدِهٖ فَيُصْبِحُوْا عَلٰى مَآ اَسَرُّوْا فِيْٓ اَنْفُسِهِمْ نٰدِمِيْنَ ﴿۵۲﴾ وَ يَقُوْلُ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اَهٰٓؤُلَآءِ الَّذِيْنَ اَقْسَمُوْا بِاللّٰهِ جَهْدَ اَيْمَانِهِمْ ۙ اِنَّهُمْ لَمَعَكُمْ ؕ حَبِطَتْ اَعْمَالُهُمْ فَاَصْبَحُوْا خٰسِرِيْنَ ﴿۵۳﴾ يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا مَنْ يَّرْتَدَّ مِنْكُمْ عَنْ دِيْنِهٖ فَسَوْفَ يَاْتِي اللّٰهُ بِقَوْمٍ يُّحِبُّهُمْ وَيُحِبُّوْنَهٗٓ ۙ اَذِلَّةٍ عَلَى الْمُؤْمِنِيْنَ اَعِزَّةٍ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ يُجَاهِدُوْنَ فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ وَ

بله خبره ظاهره کړي نو دا خلق به په خپل هغه منافقت باندې چه په زړونو کښې ئې پټ ساتلے دے، شرمنده وي. او په هغے وخت کښې به مومنان وائي چه "بس دا هغه خلق دي چه د باور ورکولو د پاره به ئې د الله په نوم باندې غټ غټ قسمونه خوړل چه موږ ره ستاسو سره یو؟" —— د دوئ ټول عملونه عبث لاړل او آخر دا چه ناکام او نامراد پاتې شو۔[86]

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، که په تاسو کښې څوک د خپل دین نه اوړي (نو اوړي دې) الله بنور داسے خلق پیدا کړي چه هغوئ به د خدائ ته خوښ وي او الله به د هغوئ خوښ وي؛ به مؤمنانو باندې نرم وي او په کافرانو به سخت وي،[87] د الله په لار کښې به کوشش کوي او

[85] یعني د کامیابۍ فتحے نه د کومه دریځ نه شر بل ځیز چه د هغے به عامو منافقو ته دا یقین راشي چه د کټه بیلات آخري فیصله به د اسلام په حق کښې وي۔

[86] یعني څه چه هغوئ د اسلام په پیروۍ کښې کړي دي، مونځونه ئې کړي دي، روژے ئې نیولي دي، زکوٰتونه ئې ورکړي دي، په جهاد کښې شریک شوي دي، یا د اسلامي قانون ترئے غاړه ایښودلے ده، نو دا ټول په دے وجه عبث شول چه د هغوئ په زړونو کښې د اسلام د پاره خلوص نه وو، او هغوئ د هر څه نه بے تعلقه شوي او د یو خدائ ئے شوي نه وو، بلکه د دنیا د پاره هغوئ خپل ځان د خدائ او د خدائ اے د باغیانو په منځ کښې لږ لږ تقسیم کړے وو۔

[87] "په مؤمنانو باندې نرمیدلو" مطلب دا دے چه یو مؤمن به د مؤمنانو په مقابله کښې خپل طاقت چیرے هم استعمال نه کړي. د مؤمن قابلیت، هوښیارتیا، اثر رسوخ، او د هغه مال او د هغه بدني طاقت او د هغه هیڅ ځیز به هم د مسلمانانو د تنګولو د پاره او مسلمانانو ته د نقصان رسولو د پاره استعمال نه شي. مسلمانانو ته به هغه همیشه نرم خویه، رحم دله، همدرد او صبرناک وي۔

لَا يَخَافُوْنَ لَوْمَةَ لَآئِمٍ ؕ ذٰلِكَ فَضْلُ اللّٰهِ يُؤْتِيْهِ مَنْ يَّشَآءُ ؕ وَاللّٰهُ وَاسِعٌ عَلِيْمٌ ﴿۵۴﴾ اِنَّمَا وَلِيُّكُمُ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهٗ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوا الَّذِيْنَ يُقِيْمُوْنَ الصَّلٰوةَ وَيُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَهُمْ رٰكِعُوْنَ ﴿۵۵﴾ وَمَنْ يَّتَوَلَّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهٗ وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فَاِنَّ حِزْبَ اللّٰهِ هُمُ الْغٰلِبُوْنَ ﴿۵۶﴾ ع

ع ۸ ۱۲

دَ هيڅ يو ملامتوونکي دَ ملامتيا نه به نه يريږي۔[۸۶] دا دَ الله فضل دے چه چا له ئے خوښه شي هغه له ئے ورکوي۔ الله دَ فراښه ذريعو مالک دے او په هرڅه باندې علم مے۔

ستاسو دوست خو په حقيقت کښې صرف الله، او دَ الله رسول او هغه مؤمنان دي چه مونځ قايموي، زکوٰة ورکوي او الله ته رابنکته کيدونکي دي۔ او څوک چه الله او دَ هغه رسول او مؤمنان ځان له خپل دوستان کړي نو هغه ته دِ معلومه وي چه دَ الله جماعت غالب پاتې کيدونکے دے۔ ع

---

په "کافرانو باندې سخت لو" مطلب دا دے چه مؤمن به دَ خپل ايمان دَ پوخوالي په وجه، په دين داري کښې دَ اخلاص په وجه، دَ اُصولو دَ مضبوطيا په وجه او دَ خپل کردار او ايماني طاقت په وجه دَ کافرانو په مقابله کښې دَ کاڼي دَ کټ پشان وي چه په هيڅ شان سره به دَ خپل ځائے نه دَ خوزيدو نه وي۔ کافر ته دِ مومن هيچرے يو کوچنے او نرمه پسته حلوا نه ښکاري۔ دَ کافرانو چه کله دَ مومنانو سره څه واسطه راشي نو چه هغوئ ته دا خبره ثابته شي چه دا دَ الله بنده به مرشي خو په هيڅ قيمت به خرڅ نه شي او دَ چا په دباؤ لو به دباؤ نه شي۔

۸۶ يعني دَ الله په دين او دَ الله په حکمونو باندې په عمل کولو کښے به هيڅ قسم شرم نه کوي، او دَ دين تر مخه چه څه حق دي هغے ته په حق وئيلو کښ او چه څه باطل دي هغے ته په باطل وئيلو کښ به هيڅ باک نه کوي۔ دَ چا دَ مخالفت، دَ چا دَ پيغور دو، دَ چا دَ اعتراضونو او دَ بد وردو وينا هغا نو هيڅ پروا نه کوي۔ که چرے عام خلق دَ اسلام مخالف وي او دَ اسلام په طريقو باندې تلل ځان بد نامول وي، خو بيا به هم دے په هغه لار باندې ځي چه کومه ورته دَ زړه نه حقه ښکاري۔

يٰۤاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَتَّخِذُوا الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَكُمْ هُزُوًا وَّ لَعِبًا مِّنَ الَّذِيْنَ اُوْتُوا الْكِتٰبَ مِنْ قَبْلِكُمْ وَالْكُفَّارَ اَوْلِيَآءَ ۚ وَاتَّقُوا اللّٰهَ اِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِيْنَ ﴿۵۷﴾ وَاِذَا نَادَيْتُمْ اِلَى الصَّلٰوةِ اتَّخَذُوْهَا هُزُوًا وَّلَعِبًا ؕ ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ قَوْمٌ لَّا يَعْقِلُوْنَ ﴿۵۸﴾ قُلْ يٰۤاَهْلَ الْكِتٰبِ هَلْ تَنْقِمُوْنَ مِنَّاۤ اِلَّاۤ اَنْ اٰمَنَّا بِاللّٰهِ وَمَاۤ اُنْزِلَ اِلَيْنَا وَمَاۤ اُنْزِلَ مِنْ قَبْلُ ۙ وَاَنَّ اَكْثَرَكُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿۵۹﴾ قُلْ هَلْ اُنَبِّئُكُمْ بِشَرٍّ مِّنْ ذٰلِكَ مَثُوْبَةً عِنْدَ اللّٰهِ ؕ

اے هغه خلقو چه ایمان موراوړے دے، ستاسو نه وړاندې په اهلِ کتابو کښې چه کوم خلق ستاسو دَ دین نه دَ لوبو ټوقو سامان جوړ کړے دے، هغوئ او نور کافران ځان له دوستان مه جوړه وئ. دَ الله نه ډیر ویریږئ که تاسو مومنان یئ. کله چه تاسو دَ مونځ دپاره آذان کوئ نو دوئ په هغې پورے ټوقے ټوقے کوی[۸۹]. ددے وجه دا ده چه دوئ عقل نه لری[۹۰]. دوئ ته اُووایه "اے اهلِ کتابو، ستاسو چه په کومه خبره زمونږ سره لګ لری هغه دَ دے نه بغیر بله څه ده چه مونږه په الله باندې او دَ دین په هغه تعلیم باندې ایمان راوړے کوم چه مونږ ته نازل شوے دے او زمونږ نه مخکښ هم نازل شوے وو، او په تاسو کښې زیات خلق فاسقان دی." بیا ورته اُووایه "آیا زهٔ درته دَ هغه خلقو نښه اُوښایم چه دَ هغوئ انجام دَ خدائے په نیز دَ فاسقانو دَ انجام نه هم خراب دے؟

[۸۹] یعنی دَ آذان آواز چه واوری نو دَ هغې پیښه کوی، دَ ټوقو دپاره دَ آذان الفاظ بدلوی او مسخرے ورپورے کوی.

[۹۰] یعنی دَ هغوئ ددے کارونو وجه صرف بے عقلی ده. که چرے دوئ ناپوهه نه وے نو دَ مسلمانانو سره مذهبی اختلاف به ئے وُو، خو داسے سپک سپک حرکتونه به ئے نه کول. آخر کوم عقلمند سړے دا خوښولے شی چه هر کله یوه ډله دَ خدائے دَ عبادت دپاره آواز شروع کړی او په هغې پورے دِ ټوقے کیږی.

مَنْ لَّعَنَهُ اللّٰهُ وَغَضِبَ عَلَیْهِ وَجَعَلَ مِنْهُمُ الْقِرَدَةَ وَالْخَنَازِیْرَ وَعَبَدَ الطَّاغُوْتَ ؕ اُولٰٓئِكَ شَرٌّ مَّكَانًا وَّاَضَلُّ عَنْ سَوَآءِ السَّبِیْلِ ﴿۶۰﴾ وَاِذَا جَآءُوْكُمْ قَالُوْٓا اٰمَنَّا وَقَدْ دَّخَلُوْا بِالْكُفْرِ وَهُمْ قَدْ خَرَجُوْا بِهٖ ؕ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِمَا كَانُوْا یَكْتُمُوْنَ ﴿۶۱﴾ وَتَرٰى كَثِیْرًا مِّنْهُمْ یُسَارِعُوْنَ فِی الْاِثْمِ وَالْعُدْوَانِ وَاَكْلِهِمُ السُّحْتَ ؕ لَبِئْسَ مَا كَانُوْا یَعْمَلُوْنَ ﴿۶۲﴾ لَوْلَا یَنْهٰىهُمُ الرَّبّٰنِیُّوْنَ وَالْاَحْبَارُ عَنْ قَوْلِهِمُ الْاِثْمَ وَ

هغه ( هغه خلق دی) چه په هغوی باندې خدائے لعنت کړے دے، چه په هغوی باندې الله غضب کړے دے، او چه په هغوی کښې ئے ځینې شادوګان او خنزیران جوړ کړی دی او هغوی د طاغوت بندګی کړې ده. د هغوی درجه نوره هم زیاته خرابه ده او هغوی د سَوَآءِ السبیل (نیغې لارې) نه په غلطه لاره ډیر لرې تلی دی[91]

کله چه دوی ستاسو خوا ته راځی نو وائی چه مونږه ایمان راوړے دے، حالانکه کفر ئے د ځان سره راوړے وُو او هم کفر ئے د ځان سره واپس ویوړو، او خدائے ته ښه معلوم دی څه چه دوی په زړونو کښې پټ ساتی. ته وینې چه په دوی کښې زیات خلق د ګناه په کارونو کښې او د ظلم زیاتی په کارونو کښې منډې تړې وهی او د حرامو مالونه خوری. ډیر خراب حرکتونه دی چه دا دوی ئے کوی. د دوی عالمان او دینی بزرګان دوی ولې د ګناه د خبرو کولو نه او د

[91] دا پخپله د یهودیانو طرف ته یوه نرئ اشاره ده، د هغوی په خپل تاریخ کښې دا دی چه ډیر کرته هغوی د خدائے په غضب او لعنت کښې راغلل، د سبت په قانون ماتولو باندې د هغوی په قوم کښې د ډیره خلقو شکلونه بدل شول، او دومره د غورزیدل چه د طاغوت بندګی ئے شروع کړه. مطلب دا دے چه آخر ستاسو د بے حیائی او په ګناه کښې د بے شرمئ څه حد شته! او که نه چه پخپله خو د فسق او فجور او د بد اخلاقئ په کارونو کښې اخته یئ خو چه بل څوک په خدائے ایمان راوړی او د رښتینې دینداری طریقه اختیار کړی نو په هغوی پسې ورپسې شئ او تنګوئ ئے.

أَكۡلِهِمُ السُّحۡتَ ۚ لَبِئۡسَ مَا كَانُوۡا يَصۡنَعُوۡنَ ﴿٦٣﴾ وَقَالَتِ الۡيَهُوۡدُ يَدُ اللّٰهِ مَغۡلُوۡلَةٌ ؕ غُلَّتۡ اَيۡدِيۡهِمۡ وَلُعِنُوۡا بِمَا قَالُوۡا ۘ بَلۡ يَدٰهُ مَبۡسُوۡطَتٰنِ ۙ يُنۡفِقُ كَيۡفَ يَشَآءُ ؕ وَلَيَزِيۡدَنَّ كَثِيۡرًا مِّنۡهُمۡ مَّاۤ اُنۡزِلَ اِلَيۡكَ مِنۡ رَّبِّكَ طُغۡيَانًا وَّكُفۡرًا ؕ وَ

حراموخوړلو نه نه منع کوی؟ واقعی ډیرخراب دَ ژوند سامان دے کوم چه دوئ تیار وی.

یهودیان وائي چه دَ الله لاس تړلے شوی دی[۹۲] ——— تړلے شوی دَ دوئ لاسونه دی[۹۳]، او لعنت دے په دوئ باندِ ددے بکواس په وجه چه دوئ ئے کوی[۹۴] ——— دَ الله لاس خو فراخه دی، څنګه چه غواړی هغسے خرچ کوی.

حقیقت دادے چه کوم کلام تا ته ستا دَ رب دَ طرفه نازل شوے دے هغه په دوئ کښ دَ ډیرو خلقو دَپاره دَ زیاتے سرکشئ او دَ باطل پرستئ سبب جوړ شوے دے[۹۵]، او (ددے په سزا کښ)

[۹۲] په عربئ ژبه کښ دَ تړلو شوو لاسونو مطلب دا دے چه هغه شوم دے د لاس نه ئے ورکړه او بخښنه نه کیږی. نو دَ یهودیانو ددے وینا مطلب دا نه دے چه واقعی کښ دَ الله لاسونه تړلی شوی دی، بلکه دائے مطلب دے چه الله شوم دے. چونکه دَ ډیرو موده راسے یهودیان په ذلت کښ اخته وُو او دهغوئ دَ تیر شوی شان شوکت نه هسے یوه ذره قیصه جوړه شوی ده او دَ بیا ورځے دَ واپس راتلو امید ئے نه وُو پاتے شوے، نو په دغه وجه به هغوئ دَ خپلو بدو ورځو په خفگان کښ دا ویئل چه (معاذالله) خدائے شوم شوے دے، دَ هغه دَ خزانو دروازے بندے دی، او س ورسره دا آفتونو او دَ مصیبتونو نه علاوه نور هیڅ نشته چه مونږ له ئے راکړی. دا خبره یوازے یهودیانو نه کوله دَ نورو قومونو دَ جاهلانو هم دا حال دے چه کله پرِ سخت وخت راشی، نو بجائے ددے چه خدائے ته رجوع وکړی، هغوئ دَ زړه دتاوه دا قسمه دَ بے ادبئ او دَ بے شرمئ خبرے کوی.

[۹۳] یعنی شومان خو دوئ دی. په ټوله دُنیا کښ په خپله شومتیا او په زړه تنګئ باندِ مشهور دی.

[۹۴] یعنی دوئ ددے قسمه دَ بے ادبئ او دَ پیغورونو نه ډکے خبرے هم کوی او بیائے دا هم خیال دے چه خدائے به پرِ مهربانه شی او دا هیڅکله نشی کیدے. بلکه ددے خبرو اُلټا نتیجه داده چه دوئ دَ خدائے دَ مهربانئ او دَ رحمت نه زیات لرے شو.

أَلْقَيْنَا بَيْنَهُمُ الْعَدَاوَةَ وَالْبَغْضَاءَ إِلَىٰ يَوْمِ الْقِيَامَةِ ۚ كُلَّمَا
أَوْقَدُوا نَارًا لِّلْحَرْبِ أَطْفَأَهَا اللَّهُ ۚ وَيَسْعَوْنَ فِي الْأَرْضِ
فَسَادًا ۚ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُفْسِدِينَ ﴿٦٤﴾ وَلَوْ أَنَّ أَهْلَ الْكِتَابِ
آمَنُوا وَاتَّقَوْا لَكَفَّرْنَا عَنْهُمْ سَيِّئَاتِهِمْ وَلَأَدْخَلْنَاهُمْ جَنَّاتِ
النَّعِيمِ ﴿٦٥﴾ وَلَوْ أَنَّهُمْ أَقَامُوا التَّوْرَاةَ وَالْإِنجِيلَ وَمَا
أُنزِلَ إِلَيْهِم مِّن رَّبِّهِمْ لَأَكَلُوا مِن فَوْقِهِمْ وَمِن تَحْتِ

---

مونږ د دوی په منځ کښې تر قيامته پورې عداوت او دښمنی اچولی ده. هر کله چه دوی د جنګ اور تيزوی الله هغه سړه وی. دوی په زمکه کښې د فساد خورولو کوشش کوی خو الله فساد راپورته کونکی خلق هرګز نه خوښوی.

که چرې (د دې سرکشۍ په ځائے بانديے) دا اهلِ کتاب و ايمان راوړې وې او د خدائے نه ئې ويره اختيار کړې وې نو مونږ به د دوی ګناهونه د دوی نه لرې کړی وو او د نعمتونو نه ډک جنتونو ته به مو رسولی وو. کاش که دوی تورات او انجيل او نور هغه کتابونه قائم کړې وې چه دوی ته د خپل رب د طرفه رالېږلی شوی وو نو د دوی د پاره به رزق د بره نه راوريدو او د لاندې نه

---

۹۵ يعنی پکار خو دا وه چه د دې کلام په اوريدو سره هغوی به سبق حاصل کړې وې، د خپلو غلطو کارونو نه منع شوی وې، او د خپل خراب حالت اصلاح ئې کړې وې، خو د دې ځائے په هغوی باندې الټا اثر دا وشو چه په ضد کښې راغلل او د حق مخالفتې شروع کړو. کله چه دوی د خير او د نيکۍ هغه هير شوې سبق و اوريدو نو د دې په اوريدو سره ځنيله په نيغه لار باندې راتلل خو پرېږده، هغوی الټا دا کوشش شروع کړو چه څوک دا سبق خلقو ته و ياد نه دی چه هغه دې کړی او نو څوک ئې هم وانوری -

أَرْجُلِهِمْ ۚ مِنْهُمْ أُمَّةٌ مُقْتَصِدَةٌ ۖ وَكَثِيرٌ مِنْهُمْ سَاءَ مَا يَعْمَلُونَ ﴿٦٦﴾ ع
يَا أَيُّهَا الرَّسُولُ بَلِّغْ مَا أُنْزِلَ إِلَيْكَ مِنْ رَبِّكَ ۖ وَإِنْ لَمْ تَفْعَلْ
فَمَا بَلَّغْتَ رِسَالَتَهُ ۚ وَاللَّهُ يَعْصِمُكَ مِنَ النَّاسِ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَا
يَهْدِي الْقَوْمَ الْكَافِرِينَ ﴿٦٧﴾ قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لَسْتُمْ عَلَىٰ شَيْءٍ
حَتَّىٰ تُقِيمُوا التَّوْرَاةَ وَالْإِنْجِيلَ وَمَا أُنْزِلَ إِلَيْكُمْ مِنْ رَبِّكُمْ ۗ

به ئې توکیدو.[96] اګر چه په دوی کښې څه خلق په نیغه لار هم دي لیکن د دوی زیات خلق سخت بد عمله دي. ع
اے پیغمبره، ستا د رب د طرفه چه په تا باندې څه نازل شوي دي هغه خلقو ته ورسوه.
که چرې دا دې ونکړل نو د هغه د پیغمبرۍ حق دې ادا نه کړو. او الله ستا بچ کولو والا
دے د خلقو د شر نه. یقین لره چه هغه به کافرانو ته (ستا په مقابله کښې) د کامیابۍ
لار هیچرې نه ښائي. صفا ورته اووایه چه "اے اهلِ کتابو، تاسو به هیڅ بنیاد باندې
ولاړ نشئ ترڅو چه توراة او انجیل او هغه نور کتابونه
قائم نه کړئ کوم چه تاسو ته ستاسو د رب د طرفه نازل کړے شوي دي.[97]"

[96] د بائبل په کتاب احبار (باب ۲۶) او کتاب استثناء (باب ۲۸) کښې د حضرت موسیٰ علیه السلام یو تقریر نقل کړے شوے دے چه په هغې کښې هغه په تفصیل سره بنی اسرائیلو ته وئیلي دي چه که تاسو د الله په حکمونو باندې ټیک ټیک عمل وکړو نو په تاسو باندې به د الله رحمتونه او برکتونه راورېږي، او که د الله کتاب مو شاته غورزاو کړو او نافرماني مو وکړه نو د هر طرفه به په مصیبتونو او تباهو کښې اخته شئ. د حضرت موسیٰ د هغه تقریر د قرآن د دے وړې فقرې ښکلې تفسیر دے.

[97] د توراة او د انجیل د قائمولو نه مراد دا دے چه په رښتیا سره د هغې پیروي وکړئ او د هغې مطابق خپل ژوند تیر کړئ. په دے موقع باندې ځان په دے خبره باندې پوهه کول پکار دي چه د بائبل د مقدس کتابونو په مجموعه کښې یو قسم عبارت هغه دے چه یهودیانو او عیسایانو په خپله د خپل طرفه لیکلې دے. او بل قسم عبارت هغه دے چه هغه د الله ارشادات، یا د حضرت موسیٰ، عیسیٰ او د نورو پیغمبرانو قولونه دي د هغې سره دا لیکلي شوي دي چه الله داسې ووئیل یا فلانی پیغمبر داسې اُووئیل. په دے کښې چه اول قسم عبارت جدا کړے شي او یوائې د دویم قسمه عبارت په غور سره وکتلے شي نو په آسانه دا معلومیږي چه په هغه تعلیم کښې او د قرآن په تعلیم کښې څه خاص فرق نشته. اګر چه د ترجمه کونکو او د تشریح کونکو د لاسه او د راویانو د غلطۍ د مخه نه، د دویم

وَلَيَزِيدَنَّ كَثِيرًا مِّنْهُم مَّا أُنزِلَ إِلَيْكَ مِن رَّبِّكَ طُغْيَانًا وَكُفْرًا ۖ فَلَا تَأْسَ عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ ﴿٦٨﴾ إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَالَّذِينَ هَادُوا وَالصَّابِئُونَ وَالنَّصَارَىٰ مَنْ آمَنَ بِاللَّهِ وَالْيَوْمِ الْآخِرِ وَعَمِلَ صَالِحًا فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٦٩﴾

کوم فرمان چه په تا باندې د خپل رب د طرفنه نازل کړې شوې دے هغه یقیناً په دوی کښې د ډېرو خلقو سرکشی او انکار نور هم زیات کړی.[98] خو د انکار کونکو خلقو په حال باندې افسوس مه کوه. (یقین لره چه دلته اجاره داری د هیچا نشته) مسلمان وی که یهودی وی، صابی وی که عیسائی وی هر چا چه په الله او په ورځ د آخرت باندې ایمان راوړو او نیک عمل ئې وکړو بیشکه چه د هغه د پاره نه د څه یرے مقام شته او نه د غم.[99]

قسمه عبارت هم پوره محفوظ نه دے پاتے شوے، لیکن بیا هم سره دا هسو سوی چه په دے کښې هم هغه خالص توحید دے کوم چه په قرآن کښې دے، په دے کښې هغه عقیده بیان کړے شوی دی کوم چه قرآن پیش کوی او په دیکښې د ژوند تیرولو هغه طریقه ښودلے شوی دی کوم طریقه چه قرآن ښائی. حقیقت دا دے چه که یهودیان او عیسایان په هغه تعلیم باندې قایم ولاړ وے کوم چه په دے کتابونو کښې د خدا ئے او د پیغمبرانو د طرفه نقل کړے شوے دے نو د نبی صلی الله علیه وسلم په وخت کښې به هغوی یو حق پرسته ولے وے، او په قرآن کښې به ورته هغه رڼا په نظر راتلله کومه چه په پخوانو کتابونو کښې وه. که دا هسے وے نو بیا به هغوی د نبی صلی الله علیه وسلم په پیروی کولو کښې د مذهب د بدلید لو خبره هم وکړې نه وه، بلکه په یوه نیغه لار باندې به د اول نه برابر راروان وُو، او په آخر کښې به ئې د نبی صلی الله علیه وسلم پیروی اختیار کړې وه او سیدا به تلل.

[98] یعنی د دے خبرے په اوریدلو سره به هغوی د غور کولو او په حقیقت باندې د ګمان پوهه کولو پځائے په ضد کښې راشی او نور زیات سخت مخالفت به شروع کړی.

[99] وګورئ سورة بقره، آیت ۶۲، او حاشیه نمبر ۸۰.

لَقَدْ اَخَذْنَا مِیْثَاقَ بَنِیْٓ اِسْرَآءِیْلَ وَ اَرْسَلْنَآ اِلَیْهِمْ رُسُلًا ؕ كُلَّمَا جَآءَهُمْ رَسُوْلٌۢ بِمَا لَا تَهْوٰۤی اَنْفُسُهُمْ ۙ فَرِیْقًا كَذَّبُوْا وَ فَرِیْقًا یَّقْتُلُوْنَ ۟ۗ ﴿۷۰﴾ وَ حَسِبُوْۤا اَلَّا تَكُوْنَ فِتْنَةٌ فَعَمُوْا وَ صَمُّوْا ثُمَّ تَابَ اللّٰهُ عَلَیْهِمْ ثُمَّ عَمُوْا وَ صَمُّوْا كَثِیْرٌ مِّنْهُمْ ؕ وَ اللّٰهُ بَصِیْرٌۢ بِمَا یَعْمَلُوْنَ ﴿۷۱﴾ لَقَدْ كَفَرَ الَّذِیْنَ قَالُوْۤا اِنَّ اللّٰهَ هُوَ الْمَسِیْحُ ابْنُ مَرْیَمَ ؕ وَ قَالَ الْمَسِیْحُ یٰبَنِیْۤ اِسْرَآءِیْلَ اعْبُدُوا اللّٰهَ رَبِّیْ وَ رَبَّكُمْ ؕ اِنَّهٗ مَنْ یُّشْرِكْ بِاللّٰهِ فَقَدْ حَرَّمَ اللّٰهُ عَلَیْهِ الْجَنَّةَ وَ مَاْوٰىهُ النَّارُ ؕ وَ مَا لِلظّٰلِمِیْنَ مِنْ اَنْصَارٍ ﴿۷۲﴾

---

مونږ د بنی اسرائیلو نه پخه وعده واخستله او هغوی ته مو ډیر رسولان راولیږل، خو چه هر کله هغوی ته یو رسول د هغوی د نفس د خواهشاتو نه خلاف څه راوړل نو څوک ئې دروغژن کړل او څوک ئې قتل کړل، او دا ئې وګڼړله چه هیڅ فتنه به نه واقع کیږی، نو په دے وجه هغوی ړانده او کاڼه شول. بیا الله هغوی معاف کړل خو د هغوی نه ډیر خلق نور هم زیات ړانده او کاڼه جوړ شول شو الله د هغوی دا ټول حرکتونه وینی.

یقیناً چه هغه خلقو کفر وکړو چا چه اُووے چه الله خو هم د غه مسیح ابن مریم دے. او حال دا دے چه مسیح ویلی وُو چه "اے بنی اسرائیلو، د الله بندګی کوئ چه زما هم رب دے او ستاسو هم رب دے." چا چه د الله سره څوک شریک کړل په هغوی باندے الله جنت حرام کړو، او د هغه ځائے جهنم دے او د داسے ظالمانو هیڅوک مددګار نشته.

لَقَدْ كَفَرَ الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّ اللّٰهَ ثَالِثُ ثَلٰثَةٍ ۘ وَمَا مِنْ اِلٰهٍ اِلَّآ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ ؕ وَاِنْ لَّمْ يَنْتَهُوْا عَمَّا يَقُوْلُوْنَ لَيَمَسَّنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا مِنْهُمْ عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿٧٣﴾ اَفَلَا يَتُوْبُوْنَ اِلَى اللّٰهِ وَيَسْتَغْفِرُوْنَهٗ ؕ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿٧٤﴾ مَا الْمَسِيْحُ ابْنُ مَرْيَمَ اِلَّا رَسُوْلٌ ۚ قَدْ خَلَتْ مِنْ قَبْلِهِ الرُّسُلُ ؕ وَاُمُّهٗ صِدِّيْقَةٌ ؕ كَانَا يَاْكُلٰنِ الطَّعَامَ ؕ اُنْظُرْ كَيْفَ نُبَيِّنُ لَهُمُ الْاٰيٰتِ ثُمَّ انْظُرْ اَنّٰى يُؤْفَكُوْنَ ﴿٧٥﴾

یقیناً چه هغه خلقو کفر وکړو چه داسې اُووے چه الله په دریو کښې یو دے، حالانکه دیو خدائے نه بغیر بل خدائے نشته. که دا خلق د دے خپلو خبرو نه منع نهٔ شو نو په دوئ کښې چه کومو خلقو کفر کړے دے هغوئ له به دردناکه سزا ورکړے کیږی. نو آیا دوئ به الله ته توبه نهٔ وباسی او د هغهٔ نه به معافی نهٔ غواړی؟ الله ډیر معاف کونکے او رحم کونکے دے.

مسیحؑ د مریمؑ ځوئے بل هیڅ نهٔ وو، بس یو رسول وو، د هغهٔ نه مخکښې نور هم ډیر رسولان تیر شوی وو، د هغهٔ مور یوه رښتینې ښځه وه، او هغوئ دواړو به ډوډۍ خوړله. وګوره چه مونږ دوئ ته څنګه د حقیقت نښے ښیا نوو، خو بیا دوئ ته وګوره چه کوم خوا اړولی روان کړے شوی دی.[101]

[101] په دې یو څو لفظونو کښې د مسیح د خدائۍ په باره کښې د عیسایانو د عقیدې ډیر صفا تردید شوے دے چه د دے نه زیات صفائی کیدے. د مسیح په باره کښې که څوک دا معلومول غواړی چه په حقیقت کښې هغهٔ څهٔ ؤ نو د دے نښونه دا معلومولے شی چه هغه بس یو انسان ؤ. دا خو ښکاره خبره ده چه څوک د یوے ښځې د خېټې نه پیدا شوے وی، چه نسب ئې معلوم وی، چه انسانی جسم لری، او ټول صفتونه پکښې د انسان پشان دی، چه ویده کیږی، خوراک کوی، ګرمی او یخنی محسوسه وی، آن تر دے پورے چه د شیطان په ذریعه په آزمیښت کښې هم اچولے شوے وی، نو داسے انسان په باره کښې څوک دا تصور کولے شی چه دے په خپله خدائے دے یا د خدائے سره په خدائی کښې شریک او ملګرے دے.

قُلْ أَتَعْبُدُونَ مِن دُونِ اللَّهِ مَا لَا يَمْلِكُ لَكُمْ ضَرًّا وَلَا نَفْعًا ۚ وَاللَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْعَلِيمُ ﴿٧٦﴾ قُلْ يَا أَهْلَ الْكِتَابِ لَا تَغْلُوا فِي دِينِكُمْ غَيْرَ الْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعُوا أَهْوَاءَ قَوْمٍ قَدْ ضَلُّوا مِن قَبْلُ وَأَضَلُّوا كَثِيرًا وَضَلُّوا عَن سَوَاءِ السَّبِيلِ ﴿٧٧﴾ ع

دوئ ته اُووایه چه آیا تاسو خدائے پریږدئ او د هغه چا عبادت کوئ چه نه تاسو له نقصان درکولے شی او نه نفع؟ حالانکه د هر چا خبره اورېدونکے او په هرڅه پوهېدونکے خو یوا الله دے. ورته اُووایه، اے اهل کتابو، په خپل دین کښې ناحق زیاتے مه کوئ او د هغه خلقو په خیالاتو پسے مه ځئ چه ستاسو نه مخکښې هغوئ په خپله گمراه شوی دی او نور ډیر خلق ئے گمراه کړی دی او د "سَوَآءَ السَّبِیْلِ" نه بے لارے شوی دی.[۱۰۱] ع

لیکن دا د انسان د گمراهئ یوه عجیبه کارنامه ده چه عیسایان په خپله په خپل مذهبی کتابونو کښې ویني چه د مسیح ژوند خالص د یو انسان ژوند دے، او بیا هم په دے خبره باندے زور ورکوی چه په هغه کښې د خدائی صفات شته دے. حقیقت دا دے چه دا خلق د هغه تاریخی مسیح قائل نه دی کوم چه په حقیقت کښې واقعی ظاهر شوے وو، بلکه دوئ په خپل گمان کښې یو خیالی مسیح جوړ کړے دے او هغه ته خدائے وائی.

[۱۰۱] دا اشاره ده هغه گمراه قومونو ته چه د هغوئ نه عیسایانو غلط عقیدے او باطل طریقے خپلے کړی دی. خصوصاً اشاره د یونان فلسفیانو طرف ته ده چه د هغوئ د خیالاتو نه عیسایان متأثره شوی وو او د صراط مستقیم نه بے لارے شوی وو. د مسیح د اولنو منکرو عقیده د خپل رهنما د تعلیم مطابق وه. خو روستو عیسایانو یو طرف ته د مسیح سره په مینه کولو کښې او د هغه په قدر عزت کولو کښې د حد نه ډیر زیاتے وکړو، او بل طرف ته د گاونډی قومونو د خیالاتو نه متأثره شو او یو داسے نوے مذهب ئے جوړ کړو چه د هغه د مسیح د اصلی تعلیماتو سره هیڅ واسطه پاتے نه شوه. په دے باره کښې په خپله د یو مسیحی عالم دینیات (ریورینډ چارلس اینډرسن اسکاټ) بیان د کتلو قابل دے. د انسائیکلو پیډیا برټانیکا په څوارلسم اشاعت کښې د "یسوع مسیح" (Jesus Christ). په عنوان باندے هغه یو اُوږد مضمون لیکلے دے، په هغه کښې وائی:

"په اولنی دریو انجیلونو (متی، مرقس، لوقا) کښې څو هیڅ داسے خبره نشته چه د هغے نه دا گمان پیدا شی چه د دغه انجیلونو لیکوالو یسوع د انسان نه بغیر بل څه گنړلو. د هغوئ په نظر کښې هغه یو انسان وو، داسے انسان چه خاص طور د خدائے د روح نه فائده مونده کړے وه او د خدائے سره ئے داسے یو خاص تعلق وو چه که هغے په وجه هغه ته د خدائے ځوئے او ویلے شی نو مناسب ده.
په خپله متی د مسیح ذکر د یو ترکانړه ځوئے په حیثیت کوی، او په یو ځائے کښې وائی چه پطرس

ؤمنلے چې دے "مسيح" دے، خو دَ منلو نه روستو ئے هغه "ځان له يو ځائے ته بوتلو او ملامته ئے کړو" (متي ۲۲/۱۶) - په لوقا کښې مونږه دا ګورو چه کله دَ سُولئ خيژو لو واقعه ؤشوه نو دَ هغے نه روستو دَ يُسوع دوه شاګردان اماؤس طرفته تلل او دَ هغه ذکر ئے په دا سے حيثيت سره کوؤ چه "هغه دَ خدائے او دَ ټول اُمّت په نيز باندې په کار او په کلام کښې قدرت لرونکے نبي وُو" (لوقا ۲۴/۱۹) - دا خبره خاص طور دَ توجه قابله ده چه اګرچه دَ "مرقس" دَ ليکلو نه مخکښې په عيسايانو کښې دَ يُسوع دپاره دَ "خداوند" لفظ استعماليدو، ليکن نه دَ مرقس په انجيل کښې يُسوع ته چرته دا لفظ وئيلے شوے دے او نه دَ متي په انجيل کښې. البته په دواړو کتابونو کښې دا لفظ دَ الله دپاره زيات استعمال شوے دے. په دريمه واړو انجيلونو کښې دَ يُسوع دَ آزميښت ذکر ښه په مناسبه طريقه سره شوے دے، خو دَ مرقس دَ "نديه" والا عبارت نه علاوه (مرقس ۱۰، ۴۵) او آخرى قسم په موقعه باندې دَ يو څو الفاظو نه علاوه په دے کتابونو کښې دا واقعه په هغه طرز نه ده بيان شوې لکه څنګه چه بيا روستو په کومه طريقه بيان کړے شوې ده - تر دے پورے چه دے خبرے ته پکښې هډو اشاره نه ده شوے چه دَ يُسوع دَ مرګ دَ انسان دَ ګناه او دَ هغے دَ کفارے سره کښې څه تعلق وُو"

## وراندې هغه بيا ليکي:

" دا خبره دَ انجيلونو دَ ډيرو عبارتونو نه معلوميږي چه يُسوع به خپل ځان دَ يو نبي په حيثيت سره پيش کولو. مثلاً دا چه "زه به نن او صبا او بل صبا په خپله لار باندې ضرور ځم، ځکه چه داکيدے نشي چه نبي دَ يروشلم نه بهر هلاک شي" (لوقا ۱۳، ۲۳). هغه اکثر خپل ذکر دَ "ابن آدم" دَ نوم نه کوي....... يُسوع په هيڅ ځائے کښې ځان ته "ابن الله" نه دے وئيلے - دَ هغه دَ زمانے نور مکګري چه کله دا لفظ دَ هغه متعلق استعمالوي نو غالباً چه دَ هغوئ مطلب هم بس دا وي چه هغه دَ خدائے مسُوح (مسح کړے شوے) دے - البته ځان ته مطلقاً دَ "خوی" لفظ وائي.... او دَ خدائے سره دَ خپل تعلق بيانولو دپاره لفظ "پلار" هم استعمالوي ..... ود تعلق په باره کښې هغه خپل ځان يوائے نه ګڼړي، بلکه دا ول نه نور انسانان هم دَ خدائے سره په دے خاص تعلق کښې خپل مکګري شميري - البته دَ خپلے تجربے او دَ عامو انسانانو دَ طبيعتونو معلومولو نه روستو هغه په دے خيال کولو مجبوره شو چه بس په دے معامله کښې زه يوائے يم"

## دا مُصنّف بيا ليکي:

دَ عيدِ پنتِکُسٹ په موقعه باندې دَ پطرس دا الفاظ چه "يو انسان چه دَ خدائے دَ طرفته وُو" دَ يُسوع هغه حيثيت ښکاره کوي په کوم حيثيت سره چه هغه دَ خپلے زمانے مکګرو پيژندلو...... دَ انجيلونو نه مونږ ته معلوميږي چه يُسوع دَ وړکوالي نه دَ ځوانئ پورے دَ عامو انسانانو په شان لوئ شوے دے - هغه به وږے کيدو تږے کيدو، هغه به ستړے کيدو او ؤده کيدو، په هغه به حيرانتيا راتلله، دَ حالاتو معلومولو دپاره محتاجه وُو، ډير تکليفونه ورته ورسيدل او مړ شو....

که د ادعوی وکړے شی چه هغه حاضر ناظر دے نو په حقیقت کښ به دا خبره د هغے تصور نه بالکل
خلاف وی کوم تصور چه مونږ ته د انجیلونو نه حاصل شوے دے۔ بلکه د دے دعوے سره
د آزمینت واقعه او د گتسمنی او د کهوپړی په مقام باندې چه کوم واقعات تیر شوی دی
په هغے کښ یوه واقعه هم مطابقت نه شی خوړلے۔ ترڅو پورے چه دے واقعاتو
ته ناحقه نه وی وئیلے شوی، نو دا به ضرور منو چه هر کله په مسیح باندې دا ټول حالات
راتلل نو د هغه د عام انسانانو پشان محدود علم وو، او که څه ئے ډیر معلومات ورته وو
نو هغه صرف دومره وو څومره چه د پیغمبرئ په وجه او په خدائے باندې د پوخ یقین
په وجه وی. بیا دا خبره چه مسیح قادر مطلق دے نو دا په انجیلونو کښ نوره هم
ډیره کمه ذکر شوی ده- چرته دے خبرے ته پکښ یوه نرئ اشاره هم نشته چه هغه
د خدائے نه په بے پروائئ سره په خپل اختیار باندې کار کوو. بلکه د هغه هر وخت
دُعا غوښتل او دا قسمه الفاظ وئیل چه "دا خیزونه د انه بغیر په بل څه نشی لرے
کیدے" د دے خبرے صفا اقرار دے چه د هغه تول بروسه په خدائے باندې وه. حقیقت
دا دے چه د انجیل دا کتابونه په تاریخی حیثیت سره معتبر کتابونه دی، ځکه چه دا
کتابونه لا په هغه وخت کښ نه وو مکمل شوی کله چه مسیحی کلیسا مسیح ته خدائے
وئیل شروع کړی وو، خو بیا هم په دے کښ دا شهادت محفوظ دے چه مسیح په حقیقت کښ
انسان وو او هغه هیچرے هم خپل ځان خدائے نه وو گڼړلے۔

د دے نه روستو دے بیالیکی؛

"هغه سینټ پال وو چه دا اعلان ئے وکړو چه آسمان ته د پورته کیدو په وخت کښ یسوع
ته د پوره اختیاراتو سره د "ابن الله" مرتبه وسپارلے شوه ..... د ابن الله په دے لفظ
کښ ذاتی طور څوی والئ ته یوه اشاره نشته، ځکه چه بل ځائے کښ پال یسوع ته د
"خدائے خپل څوے" وئیلی دی. د دے خبرے فیصله اوس نشی کیدے چه آیا هغه د
عیسایانو اولنئ ډله وه او که "پال" وو چه د مسیح د پاره ئے د "خداوند" لفظ په
اصلی مذهبی معنیٰ کښ استعمال کړو. کیدے شی چه دا کار اولنئ ډلے کړے وی. لیکن په
دے کښ هیڅ شک نشته چه پال دا لفظ په پوره معنیٰ سره استعمالول شروع کړل. او
بیا ئے خپله مدعا په دے طریقے سره نوره هم زیاته واضحه کړله چه "خداوند یسوع مسیح"
طرفته ئے زیات هغه خیالات او الفاظ منتقل کړل کوم چه په پخوانو مقدسو کتابونو
کښ د خداوند یهوه (الله تعالیٰ) د پاره مخصوص وو. د دے سره سره هغه مسیح د
خدائے د علم او د خدائے د لوئیئ سره برابر کړو او مطلق ئے ورته د خدائے څوے اُووئے
خو د دے باوجود بیا هم هغه مسیح ته قطعی طور الله نه دے وئیلے"

د انسائیکلوپیډیا برټانیکا په یو بل مضمون "مسیحیت" (Christinnity). کښ
ریورنډ جارج ولیم ناکس د مسیحی کلیسا په بنیادی عقیدے باندې بحث کوی او لیکی؛

" دَ دریوخدایانو دَ عقیدے فکری ساخچه یُونانی ده او یهودی تعلیمات پکښ اچولے شوی دی. په دے وجه دا زمونږ د پاره یو عجیبه شان مرکب دے. مذهبی خیالات دَ بائیبل دی او اچولے شوی په یوه ناآشنا فلسفه کښ دی.
پلار، ځوے او روحُ القدس دا ټکی دَ یهودی ذریعو نه را رسیدلی دی. دا آخری ټکے اګرچه یسُوع هم کله ناکله استعمال کړے وُو، او پال هم چه دا ټکے استعمال کړے وُو نو معنیٔ ئے واضحه نه وه، خو بیا هم په یهودی کتابونو کښ دا ټکے شخصیت اختیارولو ته نزدے شوے وُو. پس د دے عقیدے سامان یهودی دے (اګرچه د دے نه مخکښ دا هم دَ یونانی اثراتو نه متأثر وُو) او مسئله خالص یونانی ده. اصلی سوال چه په هغے باندې دا عقیده جوړه شوه نه اخلاق سوال وُو او نه مذهبی، بلکه یو فلسفیانه سوال وُو، یعنی دا چه د دے دریو اقانیمو (پلار، ځوے او رُوح) په منځ کښ دَ تعلق څه حقیقت دے؟ کلیسا چه د دے کوم جواب ورکړو هغه په هغه عقیده کښ درج دے کوم چه دَ نیقایه کونسل کښ مقرر کړے شوی وه، او هغه چه څوک ګوری نو صفا معلومیږی چه دا بالکل دَ یونانی فکر نمونه ده."
په دے سلسله کښ دَ انسائیکلوپیډیا برټانیکا یو بل مضمون دَ کلیسا تاریخ (Church History) دا عبارت هم دَ کتلو قابل دے:
" دَ دریمے عیسوی صدیٔ دَ ختمیدو نه مخکښ مسیح په دے حیثیت سره منلے شوے وُو چه دے دَ " کلام " بدنی ظهور دے، خو بیا هم ډیر عیسایان دا سے وُو چه دَ مسیحؑ دَ خدایئ قائل نه وُو. په څلورمه صدیٔ کښ په دے مسئله باندې سخت بحثونه شوی وُو. آخر دا چه په ۳۲۵ء کښ دَ نیقا کونسل سرکاری طور باندې دَ مسیحؑ دَ خدایئ عقیده اصلی عیسائی عقیده وګرځوله او په خاصو الفاظو کښ ئے ولیکله. اګرچه د دے نه روستو هم د څه موده پورے جګړه روانه وه. لیکن په آخر کښ هم دَ غه دَ نیقا فیصله ومنلے شوه او دَ مشرق نه تر مغربه پورے دا فیصله وَشوه چه دَ مسیح عقیدے والا عیسایان به په دے باندې ایمان راوړی. دَ ځوئ دَ خدائیٔ سره دَ رُوح خدائیٔ هم ومنلے شوه او دَ رُوح عقیدے دَ اصطباغ (یعنی دَ غسل ورکولو) دَ کلمے سره او دَ هغے په شعائرو کښ ئے دَ پلار او دَ ځوئ سره یو ځائے کړو. دَ غه شان په نیقا کښ چه دَ مسیحؑ کوم تصور قائم کړے شو هغه دا نتیجه راوُ تله چه دَ دریوخدایانو عقیده دا صلی مسیحؑ مذهب یوه ضروری حصه جوړه شوه.
بیا په دے خبره باندې چه " دَ ځوئ خدائی دَ مسیحؑ دَ ذات په شکل کښ وه" یوه بله مسئله جوړه شوه چه په هغے باندې په څلورمه صدیٔ کښ او د دے نه روستو دَ ډیرے موده پورے بحث چلیدو. مسئله دا وه چه په مسیحؑ کښ دَ خدائے والی او دَ انسان والی په منځ کښ څه تعلق دے؟ په ۴۵۱ء کښ دَ کالسیډن کونسل دا فیصله وکړه چه دَ مسیح په ذات کښ دوه مکمل طبیعتونه، یو الٰهی طبیعت او بل انسانی طبیعت، یو ځائے

شنوی دی، او دَ یو ځائے کیدو نه روستو هم دَ دوی خپل ځان له ځان له خاصیتونه بے دَ څه
تغیر نه برقرار دی. په ۶۸۰ء کښ په قسطنطنیه کښ دریم کونسل وُ شو، په هغے کښ خبره
دومره نوره زیاته شوه چه: د دواړه طبیعتو نه ځان له ځان له ځانګړے اراده مشیّت) هم وی
یعنی په مسیح کښ په یو وخت باندِ دوه مختلفے ارادے دی...... په دغه دوران کښ مغربی
کلیسا دَ ګناه او دَ فضل په مسئله باندِ خاص توجه وُکړه او په دے سوال دَ ډیرے موده پورے
بحث وُشو چه دَ نجات په معامله کښ دَ خدائے کار څهٔ دے او دَ انسان کار څه دے؟ آخر
دا نچه په ۵۲۹ء کښ او دَ ینج په دوئم کونسل کښ..... دا نظریه اختیار کړے شوه چه
دَ آدم دَ راکوزیدو دَ وجے نه هر انسان په دے حالت کښ مبتلا دے چه هغه نجات طرفته
تر هغے قدم نشی اخستلے ترڅو چه هغه دَ خدائے دَ فضل په وجه، چه په اصطباغ کښ
ورکړے کیږی، نوے ژوند نه وی حاصل کړے، او دا دَ خدائے فضل هُ همیشه مددګار
نه وی. او دَ خدائے دَ فضل دا همیشه امداد انسان ته صرف دَ کیتهولک کلیسا په ذریعه
حاصلیدے شی؟

دَ مسیحی عالمانو دَ دے بیاناتو نه دا خبره بالکل واضح کیږی چه په اول اول کښ
دَ کوم څیز دَ وجے نه مسیحیان بے لارے شو هغه بے ځایه عقیدت او بے ځایه مینه محبت وُو.
دَ دے زیاتے مینے په وجه دَ مسیح علیه السلام دپاره دَ "خداوند" او دَ "ابن الله" الفاظ
استعمال کړے شو، دَ خدائی صفتونو نسبت ورته وُکړے شو، دَ کفارے عقیده جوړه شوه،
حالانکه دَ مسیح په تعلیماتو کښ دَ دے خبرو هیڅ نوم نه وُو. بیا چه کله عیسایانو ته
دَ فلسفے هَوا ورسیدله نو هغوی له دا کوشش پکار وُو چه دَ ګمراهئ نه ځان بچ
کړے وے، خو دَ دے په ځائے هغوی دَ خپلو مشرانو دَ غلطیانو دپاره وجے کټل شروع کړل
او دَ مسیح اصلی تعلیماتو ته ئے رجوع وُنه کړه او دَ منطق او دَ فلسفے په مدد سره ئے دَ عقیدے
دپاسه بله عقیده جوړول شروع کړل. دا هغه ګمراهی او ضلالت دے چه په دے باندِ قرآن
په دے آیتونو کښ عیسایان خبردار کړل.

---

لُعِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِن بَنِي إِسْرَائِيلَ عَلَىٰ لِسَانِ دَاوُودَ وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ ۚ ذَٰلِكَ بِمَا عَصَوا وَّكَانُوا يَعْتَدُونَ ﴿۷۸﴾ كَانُوا لَا يَتَنَاهَوْنَ عَن مُّنكَرٍ فَعَلُوهُ ۚ لَبِئْسَ مَا كَانُوا يَفْعَلُونَ ﴿۷۹﴾ تَرَىٰ كَثِيرًا مِّنْهُمْ يَتَوَلَّوْنَ الَّذِينَ كَفَرُوا ۚ لَبِئْسَ مَا قَدَّمَتْ لَهُمْ أَنفُسُهُمْ أَن سَخِطَ اللَّهُ عَلَيْهِمْ وَفِي الْعَذَابِ هُمْ خَالِدُونَ ﴿۸۰﴾ وَلَوْ كَانُوا يُؤْمِنُونَ بِاللَّهِ وَالنَّبِيِّ وَمَا أُنزِلَ إِلَيْهِ مَا اتَّخَذُوهُمْ أَوْلِيَاءَ

په بني اسرائيلو کښې چه کومو خلقو د کفر لار اختيار کړه، په هغوئ باندې د داؤد او د عيسى ابن مريم په ژبه لعنت اُو وئيلے شو ځکه چه هغوئ سرکشه شوي وُو او زياتے کول ئے شروع کړي وُو، هغوئ يو بل د بدو کارونو نه منع کول پريښودي وُو[۱۰۲]، د عمل ډيره خرابه طريقه هغوئ اختيار کړې وه. ن ته په هغوئ کښې ډير داسے خلق وينې چه (د مومنانو په مقابله کښې) د کافرانو مرسته او ملګرتيا کوي. يقيناً چه ډير خراب دے هغه انجام کوم چه د دوئ نفسونو د خپل ځان د پاره تيار کړے دے، خدائے ورته په غضب شوے دے او هميشه به په عذاب کښې پراته وي. که چرې واقعي دا خلق د الله او د پيغمبر او د هغه څيز منونکي وے، کوم چه په پيغمبر باندې نازل شوے وُو نو هيچرے به ئے (د مومنانو په مقابله کښې) کافران ځان له دوستان نه جوړ ولے[۱۰۳].

[۱۰۲] د هر قوم خرابتيا په اول کښې د يو څو کسانو نه شروع کيږي. که چرے قوم بيدار وي نو دغه خراب خلق دباؤ ساتلي او ټول د خرابيدو نه بچ پاتې شي. ليکن که قوم د دغے خلقو په باره کښې سستي وکړه او هغوئ ئے په غلطو کارونو ملامته نه کړل بلکه په خلقو کښې ئے د غلط کارئ د پاره آزاد پريښودل، نو بيا د غه خرابي چه اول په يو څو کسانو کښې وي رو رو په ټول قوم کښې خوره شي. هم دا څيز وُو چه د بني اسرائيلو د خرابتيا سبب وګرزيد.

د حضرت داؤدؑ او د حضرت عيسىؑ په ژبه باندې چه کوم لعنت په بني اسرائيلو باندې وئيلے شوے دے، د هغے د پاره وګوره زبور ۱۰، ۵۰ او متى ۲۳ –

وَلٰكِنَّ كَثِيْرًا مِّنْهُمْ فٰسِقُوْنَ ﴿۸۱﴾ لَتَجِدَنَّ اَشَدَّ النَّاسِ عَدَاوَةً
لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا الْيَهُوْدَ وَالَّذِيْنَ اَشْرَكُوْا ۚ وَلَتَجِدَنَّ اَقْرَبَهُمْ
مَّوَدَّةً لِّلَّذِيْنَ اٰمَنُوا الَّذِيْنَ قَالُوْٓا اِنَّا نَصٰرٰى ۭ ذٰلِكَ
بِاَنَّ مِنْهُمْ قِسِّيْسِيْنَ وَرُهْبَانًا وَّاَنَّهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿۸۲﴾

**وَاِذَا سَمِعُوْا مَآ اُنْزِلَ اِلَى الرَّسُوْلِ تَرٰٓى اَعْيُنَهُمْ**

تَفِيْضُ مِنَ الدَّمْعِ مِمَّا عَرَفُوْا مِنَ الْحَقِّ ۚ يَقُوْلُوْنَ رَبَّنَآ اٰمَنَّا
فَاكْتُبْنَا مَعَ الشّٰهِدِيْنَ ﴿۸۳﴾ وَمَا لَنَا لَا نُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَمَا جَآءَنَا

خو په دوئ کښې ډیر خلق د خدائے د اطاعت نه وتلی دی۔
ته به د مومنانو سره په دُشمنئ کولو کښې د ټولو نه زیاتے سخت یهودیان او مشرکان بیا موے، او د ایمان والو سره به په دوستئ کولو کښې د ټولو نه زیات نزدے هغه خلق بیا موے چه وئیلی ئے وُو چه مونږه نصارای یُو۔ دا په دے وجه چه په دوئ کښې عبادت گزاره عالمان او دنیا پریښودونکی فقیران (درویشان) دی او په هغوئ کښې د نفس غرور نشته۔ کله چه هغوئ هغه کلام اَوری کوم چه په رسول باندِ نازل کړے شوے دے نو ته وینے چه د حق د پیژندلو په وجه د هغوئ سترګے د اُوښکو نه ډکے شی۔ او وائی چه "پروردګاره، مونږه ایمان راوړے دے، زمونږه نوم په ګواهی کونکوکښې ولیکه۔" او وائی چه "آخر ولے به مونږه په الله ایمان نه راوړو او ولے به هغه حق نه منو کوم چه مونږ ته راغلے دے،

۱۴۳ مطلب دا دے چه کوم خلق خدائے او نبی او کتاب منونکی وی د هغوئ قدرتی طور د مشرکانو په مقابله کښې د هغه خلقو سره زیات همدردی وی ځکه چه د هغوئ پشان د خدائے او د وحی او د رسالت سلسله منی، اګرچه په مذهب کښې د هغوئ نه مختلف وی۔ لیکن دا یهودیان عجیبه قسم اهلِ کتاب دی چه د توحید او د شرک په جنګ کښې ښکاره د مشرکانو ملګرتیا کوی، د نبوت منلو او نه منلو په جنګ کښې د هغوئ همدردئ ښکاره د نبوت د نه منونکو سره وی، او بیا هم بغیر د شرمئ او په بے حیائئ سره دا دعوٰی کوی چه مونږه خدائے او پیغمبران او کتابونه منو۔

مِنَ الْحَقِّ ۙ وَنَطْمَعُ اَنْ يُّدْخِلَنَا رَبُّنَا مَعَ الْقَوْمِ الصّٰلِحِيْنَ ﴿۸۴﴾

فَاَثَابَهُمُ اللّٰهُ بِمَا قَالُوْا جَنّٰتٍ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ

خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۭ وَذٰلِكَ جَزَاۗءُ الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۸۵﴾ وَالَّذِيْنَ كَفَرُوْا

وَكَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَآ اُولٰۗىِٕكَ اَصْحٰبُ الْجَحِيْمِ ﴿۸۶﴾ ع

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تُحَرِّمُوْا طَيِّبٰتِ مَآ اَحَلَّ اللّٰهُ لَكُمْ وَ

---

هرکله چه مونږه دا خواهش لرو چه زمونږه رب دې مونږه د صالحانو خلقو سره شامل کړي؟ د هغوئ د دے وینا د وجے نه الله هغوئ له داسے جنتونه ورکړل چه لاندې ترې ویالے بهیږي او په هغې کښې به همیشه اوسیږي. دا بدله ده د نیکانو خلقو د پاره. او چا چه زمونږه د آیاتو نه منلو نه انکار وکړو او هغه ئے دروغ وګڼل نو هغوئ د جهنم مستحق دي.[۱۰۴] ع

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے، کوم پاک څیزونه چه الله ستاسو د پاره حلال کړي دي هغه مه حراموئ او

---

[۱۰۴] په دے آیت کښې دوه خبرے شوي دي. یوه دا چه پخپله د حلالو او د حرامو اختیارمند کیږئ مه. هغه څیزونه حلال دي کوم چه الله حلال کړي دي او حرام هغه دي کوم چه الله حرام کړي دي. که په خپل اختیار مو حلال څیز حرام کړو نو د خدائے د قانون پځائے به د خپل نفس د قانون پیروي وکړئ. دویمه دا چه د عیسایانو د دُنیا پریښودونکو (راهبانو) پشان، د هندوانو د عبادت گذارو (جوګیانو) پشان، د بُده مذهب د خیرات غوښتونکو (بهکشا) پشان او د اشراقیانو د صوفیانو پشان د دُنیا نه تیښته مه کوئ او د دُنیا خوند ونه پځان مه بندوئ. د مذهبي او نیک مزاجه خلقو همیشه دا خیال وي چه څوک که نفس او د بدن حقونه پوره پوره اداکوي نو هغوئ روحاني ترقي نشي حاصلولے، د هغوئ دا ګمان وي چه څوک څومره ځان په تکلیف کښې واچوي، او ځان څومره د دُنیا د مزونه را بند کړي، او د دُنیا د سامانونو سره تعلق ختم کړي، نو دا پخپله یو نیکي ده او خدائے ته نزدیکت بغیر د دے نه حاصلیدے نشي. په صحابه کرامو کښې هم څنے خلق داسے وو چه دا قسمه خیال ئے لرلو. یو ځل نبي صلی الله علیه وسلم ته معلومه شوه چه څنے صحابو وعده کړي ده چه همیشه به روژے نیسي، د شپے به خوب نه کوي او په عبادت کښې به شپه په ویخه تیره وي، غوښه او غوړي به نه استعمالوي، او د ښځو سره به ئے تعلق نه لري. په دے باندې نبي په یوه خطبه کښې دا فرمایل چه "ماته د دے قسم خبرو حکم نه دے شوے. ستاسو د نفس هم په تاسو حقونه دي. روژه هم نیسئ او خوراک څکاک هم کوئ، د شپے عبادت هم کوئ او ویده کیږئ هم. ماته ګورئ، زه ویده کیږم

لَا تَعْتَدُوْا اِنَّ اللّٰهَ لَا يُحِبُّ الْمُعْتَدِيْنَ ﴿۸۷﴾ وَكُلُوْا مِمَّا رَزَقَكُمُ
اللّٰهُ حَلٰلًا طَيِّبًا وَّ اتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْٓ اَنْتُمْ بِهٖ مُؤْمِنُوْنَ ﴿۸۸﴾
لَا يُؤَاخِذُكُمُ اللّٰهُ بِاللَّغْوِ فِيْٓ اَيْمَانِكُمْ وَلٰكِنْ يُّؤَاخِذُكُمْ

دَ حد نه زياتے مه کوئ [۱۰۵] زياتی کونکی خلق دَ الله د پريدی شی. کوم حلال او پاک رزق چه الله تاسوله درکړے دے هغه خورئ څکئ او دَ هغه خدائے دَ نافرمانئ نه ځان ساتئ چه تاسو پر ايمان راوړے دے.

تاسو چه کوم بے مطلبه قسمونه خورئ په هغے بانديٰ الله تاسو نه نيسی، خو کوم قسمونه چه قصدًا خورئ

هم او عبادت نه وه پريږم هم - روژے هم نيسم او نه نيسم هم - غوښه هم خورم او غوړی هم. نو څوک چه زما طريقه نه خوښوی هغه زما نه نه دے"، بيائے وفرمائيل "دا په دے خلقو څه شوی دی چه دوئ ښځے، ښه خوراک، خوشبوئ، خوب او دَ دُنيا خوند ونه په ځان حرام کړی دی! ما خو تاسو له دا تعليم نه دے درکړے چه تاسو راهبان او پادريان شئ. زما په دين کښ دا نشته چه دَ ښځو نه او دَ غوښے نه ځان ساتئ او نه پکښ دا شته چه دَ خلقو نه ځان له په يو کوټ کښ کينئ. دَ خپل نفس دَ قابو کولو دپاره زما سره روژه ده، دَ رهبانيت ټول فائدے دلته په جهاد کښ حاصليږی. دَ الله بندگی کوئ، دَ هغه سره څوک مه شريکوئ، حج او عمره کوئ، مونځ قائموئ او زکوٰة ورکوئ او دَ رمضان روژے نيسئ. ستاسو نه وړاندے چه کوم خلق هلاک شو هغه په دے وجه هلاک شو چه هغوئ په خپل ځان باندے سختی کوله، او کله چه هغوئ په خپل ځان باندے سختی وکړه نو الله پرِهم سختی وکړه. دا صوامع (گرجے) او خانقاګانے (درويش خانے) چه تاسو وينئ دا دَ هغوئ پاتے شوی اثرات دی". په دے سلسله کښ دَ ځنو روايا تونه دا خبره ترد ے پورے معلومه شوه چه دَ يو صحابی په باره کښ نبی صلی الله عليه وسلم دا واوريدل چه هغه دَ ډيرے مودے راسے خپلے ښځے له نه دے ورغلے او شپه او ورځ په عبادت کښ مشغول دی، نو نبی ؐ راوغوښتو او حکم ئے ورته وکړو چه اوس خپلے ښځے له لاړ شه. هغه ورته او وے چه زما روژه ده. نبی ؐ ورته وفرمائيل چه روژه ماته کړه او لاړ شه. دَ حضرت عمرؓ په زمانه کښ يوے ښځے شکايت وکړو چه زما خاوند دَ ورځے روژه نيسی او ټوله شپه عبادت کوی او زما سره هيڅ تعلق نه ساتی، حضرت عمرؓ مشهور تابعی بزرگ، کعبؓ بن سور الازدی دَ دے مقدمے دپاره مقرر کړو، او هغه دا فيصله وکړه چه ددے ښځے خاوند ته دَ درے شپو پورے اختيار دے چه څومره عبادت غواړی کوی دے، خو څلورمه شپه خامخا ددهٔ دَ ښځے حق دے.

[۱۰۵] "دَ حد نه زياتے کول" دوه معنے لری. حلال څيزونه حرام ول او خدائے چه کوم څيزونه تاسو له پاک ګرځولی دی دَ هغے نه داسے ځان ساتل لکه دا چه ناپاک وی، دا هم يو زياتے دے - بيا دَ پاک څيزونو په استعمال کښ اسراف او زياتے کول هم زياتے دے. بيا دَ حلالو نه حرامو ته اوړيدل هم زياتے دے. دا دريواړه خبرے دَ الله خوښے نه دی.

بِمَا عَقَّدْتُّمُ الْاَيْمَانَ ۚ فَكَفَّارَتُهٗۤ اِطْعَامُ عَشَرَةِ مَسٰكِيْنَ مِنْ اَوْسَطِ مَا تُطْعِمُوْنَ اَهْلِيْكُمْ اَوْ كِسْوَتُهُمْ اَوْ تَحْرِيْرُ رَقَبَةٍ ؕ فَمَنْ لَّمْ يَجِدْ فَصِيَامُ ثَلٰثَةِ اَيَّامٍ ؕ ذٰلِكَ كَفَّارَةُ اَيْمَانِكُمْ اِذَا حَلَفْتُمْ ؕ وَاحْفَظُوْۤا اَيْمَانَكُمْ ؕ كَذٰلِكَ يُبَيِّنُ اللّٰهُ لَكُمْ اٰيٰتِهٖ لَعَلَّكُمْ تَشْكُرُوْنَ ﴿۸۹﴾

په هغې به ضرور الله تاسو نیسي. (د داسې قسم ماتولو) کفاره داده چه په لسو مسکینانو د اوسط درجې هغه ډوډئ اوخوروئ کوم چه په خپل بال بچ باندې تاسو خوروئ، یا هغوئ په جامه پټ کړئ، یایو غلام آزاد کړئ، او څوک چه د دې طاقت نه لري هغه دې درې ورځې روژې ونیسي. دا ستاسو د قسمو نو کفاره ده کله چه تاسو قسمونه وخورئ او بیا ئې مات کړئ.[۱۰۶] د خپلو قسمو نو حفاظت کوئ.[۱۰۷] دغه شان الله ستاسو د پاره خپل حکمونه واضحه کوي بنا شي بړي چه تاسو شکر ادا کړئ.

---

[۱۰۶] څه خلقو حلال څیزونه پځان باندې حرام کړي وو او قسم ئې ورته خوړلے وو، نو په دے وجه الله تعالیٰ په دے سلسله کښ د قسم حکم هم بیان کړو. که چرې د چا د خولے نه بې اراده د قسم لفظونه وتلي وی نو د هغے د پابندئ هیڅ ضرورت نشته، ځکه چه په داسے قسم باندې څه گرفت نشته. او که چرې چا په اراده سره قصداً قسم خوړلے وُو نو هغه دِ خپل قسم مات کړي او کفاره دِ ورکړي، ځکه چه چا د څه گناه کولو قسم خوړلے وی نو هغه له پکار دی چه په قسم باندې ټینگ نشي. (وگوره سورة بقره، حاشیه نمبر ۲۴۳، ۲۴۴، دارنگے د کفارے د تشریح د پاره وگوره سورة نساء حاشیه نمبر ۱۲۵-)

[۱۰۷] د قسم د حفاظت کولو ډیر مطلبونه دی. یو دا مطلب دے چه قسم په صحیح ځائے کښ استعمالوئ په فضول خبرو او د گناه په کارونو کښ ئې مه استعمالوئ. دوئیم مطلب ئې دا دے چه څوک یو ځل خبره ته قسم وخوری نو بیا دِ هغه یاده لري، هسې نه چه د بې پروائي د وجې نه د دهٔ نه هیره شي او د هغے خلاف ورزي وکړي. دریم مطلب ئې دا دے چه څوک په یو صحیح معامله کښ بنهٔ په اراده سره قسم وخوری نو هغه دِ پوره کړي او که خلاف ورزي ئې وکړه نو کفاره دِ ورکړي.

يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْٓا اِنَّمَا الْخَمْرُ وَالْمَيْسِرُ وَالْاَنْصَابُ وَالْاَزْلَامُ رِجْسٌ مِّنْ عَمَلِ الشَّيْطٰنِ فَاجْتَنِبُوْهُ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿۹۰﴾

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، دا شراب او جواری او دا دربارونه او فالونه[۱۰۸]، دا ټول ګند شیطانی کارونه دی، د دے نه ځان ساتئ، امید دے چه تاسو ته به کامیابی نصیب شی.[۱۰۹]

۱۰۸ د دربارونو او د فالونو تشریح د پاره وګوره سورة مائدة حاشیه نمبر ۱۲، ۱۴. د جوارئ تشریح هم په حاشیه نمبر ۱۴ کښ ده. فالونه (ازلام) هم د جوارئ (میسر) یو قسم دے. لیکن د دواړو په منځ کښے فرق دا دے چه په عربئ ژبه کښ ازلام هغه فالونو او هغه قرعه اندازئ ته وائی چه په هغه کښ ورسره مشرکانه عقیدے او وهمونه شریک وی. او میسر هغه لوبو او کارونو ته وائی چه په هغه کښ اتفاق او اټکل کارونه د ګټے او د قسمت او د مالونو د تقسیمولو ذریعه وی.

۱۰۹ په دے آیت کښ څلور شیزونه قطعی حرام کړے شوی دی. یو شراب - دویم جواری. دریم هغه ځایونه چه د خدائے نه بغیر د بل چا د عبادت د پاره مقرر وی او یا د خدائے نه بغیر د بل چا په نوم باندے د قربانئ کولو او د نذر کولو د پاره مخصوص وی. څلورم فالونه. د دے روستنو دریوارو تشریح مخکښ شوی ده. د شرابو په خقله حکمونه لاندے دی.

د دے نه مخکښ د شرابو د حراموالی په سلسله کښ دوه حکمونه راغلی وُو، چه د سورة بقره په آیت ۲۱۹ او د سورة نساء په آیت ۴۳ کښ تیر شوی دی. د دے آخری حکم د راتلو نه مخکښ نبی صلی الله علیه وسلم په یوه خطبه کښ خلقو ته وئیلی وُو چه شراب د الله تعالیٰ ډیر سخت بد دی، ډیر زر به د دے د قطعی حراموالی حکم راشی، د چا سره چه شراب موجود وی هغه دِ خرڅ کړی. د دے نه لږه موده روستو دا آیت نازل شو او نبیؐ اعلان وکړو چه اوس د چا سره شراب وی هغه دِ نه څکی او نه دِ خرڅوی بلکه هغه دِ ورنه او ضائع دِ کړی. د دے خبر سره د مدینے په کوڅو کښ شراب وارولے شو. څو خلقو تپوس وکړو چه یهودیانو له ئے په تحفه کښ ولے نه ورکوو؟ نبیؐ وفرمائیل "چا چه دا شیز حرام کړے دے هغه دا په تحفه کښ ورکول هم منع کړی دی." څو خلقو تپوس وکړو چه د شرابو نه سرکه ولے نه جوړه وُو؟ نبیؐ د هغے نه هم منع کړل او حکم ئے وکړو چه "نه، دا وارِ دئ". یو صاحب بیا بیا تپوس کوو چه د دوا په طور د استعمالولو خو اجازت دے؟ نبیؐ وفرمائیل چه "نه، دا دوائی نه ده، بلکه بیماری ده." یو بل صاحب عرض وکړو چه اے رسول الله زمونږه علاقه ډیره یخه ده او مونږه محنت هم ډیر کوو. مونږ په شرابو ستړے والے لرے کوو او د یخنئ مقابله پرے کوو. نبیؐ ترے تپوس وکړو کوم شیز چه تاسو څکئ هغه نشه راولی؟ هغوئ او وئے آو. نبیؐ وفرمائیل د هغے نه ځان ساتئ. هغوئ عرض وکړو چه زمونږ د علاقے خلق خو به ئے و نه منی. نبیؐ وفرمائیل "که هغوئ ئے و نه منله نو جنګ ورسره وکړئ."

د ابن عمرؓ نه روایت دے چه نبیؐ وفرمائیل لعن الله الخمر و شاربها و ساقیها و بائعها و مبتاعها

"و عاصرها و معتصرها و حاملها والمحمولة اليه۔" لعنت ويلے دے الله تعالی په شرابو
باندې او د شرابو په څکونکي باندې او په څکوونکي باندې او په خرڅوونکي باندې او په اخستونکي
باندې او د شرابو په څورونکي باندې او چه څوک ئے په چا څوره وي په هغه باندې
او د شرابو په وړونکي باندې او په هغه شري باندې چه د چا د پاره وړے کيږي۔

په يو بل حديث کښ دي چه نبي صلى الله عليه وسلم په هغه دسترخوان باندې د ډوډۍ
خوړلو نه منع کړي ده چه په هغے کښ شراب څکلے کيږي۔ په اول کښ خو نبي صلى الله عليه
وسلم د شرابو د لوخو د استعمالولو نه منع کړي وه خو روستو چه کله د شرابو د حراموالي حکم
بنه جاري شو نو بيا دا پابندي ختمه کړے شوه۔

د خمر لفظ په عربو کښ د انګورو د شراب د پاره استعماليدو، او هسے په د غنمو،
د وربشو، د وَ سکو، د کجورو او د شهد و شرابو ته هم دا لفظ ويلے کيدو، خو نبي صلى
الله عليه وسلم د حراموالي دا حکم په هغه ټولو څيزونو باندې ولږو وچه نشه راوستونکي
دي. په حديث کښ دا الفاظ دي چه كل مسكر خمر وكل مسكر حرام" هر نشه راوستونکے
څيز خمر دے او هر نشه راوستونکے څيز حرام دے" كل شراب
اسكر فهو حرام" د څکلو هغه څيز چه نشه راولي حرام دے" و انا انهى عن
كل مسكر" او زه د هر نشه راوستونکي څيز نه منع کوم" حضرت عمر رض د جمعے په خطبه
کښ د شرابو دا تعريف بيان کړے ؤ چه الخمر ما خامر العقل." د خمر نه مراد هر هغه
څيز دے چه هغه عقل پټ کړي"

دا نګے نبي صلى الله عليه وسلم دا اصول هم بيان کړي دي چه ما اسكر كثيره فقليله حرام
"د کوم څيز چه ډير مقدار نشه راولي د هغه لږ مقدار هم حرام دے" او ما اسكر الفرق منه
فملأ الكف منه حرام" د کوم څيز چه پوره ګړابه (صُراحي) نشه راولي د هغه يو کوټ
څکل هم حرام دي."

د نبي صلى الله عليه وسلم په زمانه کښ د شراب خوړ د پاره څه سزا مقرره نه وه. کوم
سړے چه به په دے جُرم کښ ونيولے شو هغه به د څپلو، لتو، مُکو، د تاؤ کړي څادر په
وهلو او د کجورو په لاټو باندې وهلے کيدو. د نبي په زمانه کښ په دے جرم باندې زيات
نه زيات څلويښت ګذارونه په مجرمانو لګيدلي شوي دي. د حضرت ابوبکر رض په زمانه کښ
به څلويښت کوړے ؤ. د حضرت عمر رض په زمانه کښ هم په اول کښ څلويښت کوړے
سزا وه. خو چه کله هغه وکتل چه خلق د دے جُرم نه نه منع کيږي نو هغه د صحابه کرامو
په مشوره باندې اتيا کوړے سزا مقرره کړه. هم دا سزا امام مالک رح او امام ابوحنيفه رح
او د يو روايت مطابق امام شافعي رح هم، د شرابو حد ګرزولے دے.
خو امام احمد بن حنبل او د يو بل روايت مطابق امام شافعي د څلويښتو کوړو قائل دي. او حضرت علي رض

إِنَّمَا يُرِيدُ الشَّيْطَٰنُ أَن يُوقِعَ بَيْنَكُمُ الْعَدَٰوَةَ وَالْبَغْضَاءَ فِي الْخَمْرِ وَالْمَيْسِرِ وَيَصُدَّكُمْ عَن ذِكْرِ اللَّهِ وَعَنِ الصَّلَوٰةِ ۖ فَهَلْ أَنتُم مُّنتَهُونَ ﴿٩١﴾ وَأَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَاحْذَرُوا ۚ فَإِن تَوَلَّيْتُمْ فَاعْلَمُوا أَنَّمَا عَلَىٰ رَسُولِنَا الْبَلَٰغُ الْمُبِينُ ﴿٩٢﴾ لَيْسَ عَلَى الَّذِينَ ءَامَنُوا وَعَمِلُوا الصَّٰلِحَٰتِ جُنَاحٌ فِيمَا طَعِمُوا إِذَا مَا اتَّقَوا وَّءَامَنُوا وَعَمِلُوا الصَّٰلِحَٰتِ ثُمَّ اتَّقَوا وَّءَامَنُوا ثُمَّ اتَّقَوا وَّأَحْسَنُوا ۗ وَاللَّهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ ﴿٩٣﴾



يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوا لَيَبْلُوَنَّكُمُ اللَّهُ بِشَيْءٍ مِّنَ الصَّيْدِ

شیطان خو دا غواړي چه دَ شرابو او دَ جوارۍ په ذریعه ستاسو په مینځ کښ دُشمني او بغض واچوي او تاسو دَ خدائے دَ ذکر او دَ مانځه نه منع کړي. نو آیا تاسو به دَ دے څیزونو نه منع شئ؟ دَ الله او دَ هغهٔ دَ رسول خبره وَمنئ او منع شئ، لیکن که تاسو دَ حکم نه مخ واړوؤ نو پوهه شئ چه زمونږه په رسول باندِ صرف دَ صفا صفا حکم رسولو ذمه واری وه.

کومو خلقو چه ایمان راوړو او نیک عمل ئے شروع کړو نو هغوئ چه مخکښ څه خوړلي څکلي وُو په هغے باندِ به هیڅ گرفت نهٔ وی خو په دے شرط چه آئینده دَ هغے څیزونو نه ځان وُساتي کوم چه حرام کړے شوی دی او په ایمان باندِ تینګ پاتي شي او نیک کارونه کوی، بیا چه دَ کوم کوم څیزنه دوئ منع کړے شي دَ هغے نه منع شي او دَ الله چه څه فرمان وی هغه وَمني، بیا دَ خدائے دَ ویرے سره نیکه لاره اختیار کړي. الله نیک عمله خلق خوښوي.

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، الله به تاسو دَ هغے ښکار په ذریعه په سخت ازمیښت کښ اچوی

رضی الله عنهم دا سزا خوښه کړي وه.

دَ شریعت ترنحه دا خبره دَ حکومتِ اسلامی په فرائضو کښ شامله ده چه دَ شرابو بندولو دَ پاره دِ دا حکم په زور باندِ جاری کړي. دَ حضرت عمرؓ په زمانه کښ دَ بنی ثقیف قبیلے دَ رُویشد نومے سړي دوکان په دے وجه سوزولے شوے وو چه هغه به پټ پټ شراب خرڅول. او په یوه بله موقع باندِ پوره یو کلے دَ حضرت ؓ په حکم په دے وجه وُسوزولے شو چه هلته به په پټه شراب جوړیدل او خرڅیدل به.

تَنَالُهُۥٓ أَيْدِيكُمْ وَرِمَاحُكُمْ لِيَعْلَمَ ٱللَّهُ مَن يَخَافُهُۥ بِٱلْغَيْبِ ۚ فَمَنِ ٱعْتَدَىٰ بَعْدَ ذَٰلِكَ فَلَهُۥ عَذَابٌ أَلِيمٌ ﴿٩٤﴾ يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا۟ لَا تَقْتُلُوا۟ ٱلصَّيْدَ وَأَنتُمْ حُرُمٌ ۚ وَمَن قَتَلَهُۥ مِنكُم مُّتَعَمِّدًا فَجَزَآءٌ مِّثْلُ مَا قَتَلَ مِنَ ٱلنَّعَمِ يَحْكُمُ بِهِۦ ذَوَا عَدْلٍ مِّنكُمْ هَدْيًۢا بَٰلِغَ ٱلْكَعْبَةِ أَوْ كَفَّٰرَةٌ طَعَامُ مَسَٰكِينَ أَوْ عَدْلُ ذَٰلِكَ صِيَامًا لِّيَذُوقَ وَبَالَ أَمْرِهِۦ ۗ عَفَا ٱللَّهُ عَمَّا سَلَفَ ۚ وَمَنْ عَادَ

چه بالکل ستاسو لاسونه او نیزې به ورته رسي، د دې معلومولو د پاره چه په تاسو کښې څوک د هغهٔ نه غائبانه یریږي، بیا چه څوک د دې خبردارۍ نه روستو د الله د مقرر کړې شوي حدونو نه واوړیږي نو د هغه د پاره دردناکه سزا ده. اے خلقو چه ایمان مو راوړے دے، د احرام په حالت کښې ښکار مهٔ وژنئ،[110] او که چرې په تاسو کښې څوک قصدًا دا کار وکړي نو کوم څناور چه هغه وژلے وي د هغې برابر یو څناور به د څارویو نه نذر کوي، چه فیصله به ئې په تاسو کښې دوه عادلان سړي کوي، او دا نذرانه به کعبې ته رسولے کیږي، یا که دا نهٔ وي نو د دې ګناه په کفاره کښې به په یو څو مسکینانو باندې ډوډۍ خوړولې وي، یا به د هغې په اندازه روژې نیول وي،[111] دا ځکه چه د خپل عمل مزه وڅکي. مخکښې چه څهٔ شوي دي هغه الله معاف کړل. لیکن اوس که چرې چا دا حرکت دوباره وکړو

[110] ښکار که سړے پخپله وکړي، یا د بل چا سره په ښکار کښې په څهٔ طریقه امداد وکړي، دواړه کارونه د احرام په حالت کښې منع دي. که چرې د احرام والا سړي له بل چا ښکار وژلے وي نو بیا هم د هغې خوراک د احرام والا سړي د پاره جائز نهٔ دي. البته که چرې یو سړي د خپل ځان د پاره ښکار کړے وي او بیا د هغې نه د احرام والا سړي له د تحفې په طور څه ورکړي نو د هغې خوراک ورله جائز دے. په دې عام حکم کښې ضرر رسونکي څناور شامل نهٔ دي. مار، لړم، لیونے سپے او نور داسې څناور چه انسان ته نقصان رسونکي وي، د احرام په حالت کښې د هغې وژل جائز دي.

[111] دا فیصله به هم دوه عادلان سړي کوي چه د کوم څناور په وژلو باندې به سړے څومره مسکینانو ته ډوډۍ ورکوي، یا به څومره روژې نیسي.

فَيَنْتَقِمُ اللّٰهُ مِنْهُ ؕ وَاللّٰهُ عَزِيْزٌ ذُو انْتِقَامٍ ﴿۹۵﴾ اُحِلَّ لَكُمْ صَيْدُ الْبَحْرِ وَطَعَامُهٗ مَتَاعًا لَّكُمْ وَلِلسَّيَّارَةِ ۚ وَحُرِّمَ عَلَيْكُمْ صَيْدُ الْبَرِّ مَا دُمْتُمْ حُرُمًا ؕ وَاتَّقُوا اللّٰهَ الَّذِيْٓ اِلَيْهِ تُحْشَرُوْنَ ﴿۹۶﴾ جَعَلَ اللّٰهُ الْكَعْبَةَ الْبَيْتَ الْحَرَامَ قِيٰمًا لِّلنَّاسِ وَالشَّهْرَ الْحَرَامَ وَالْهَدْيَ وَالْقَلَآئِدَ ؕ ذٰلِكَ لِتَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَعْلَمُ مَا فِي السَّمٰوٰتِ وَمَا فِي الْاَرْضِ

نو دَ هغه نه به الله بدله اخلی، الله په ټولو باندې غالب دے او دَ بدلے اخستلو طاقت لری.

ستاسو دَ پاره دَ سمندر ښکار او دَ هغے خوړل حلال کړے شو[۱۱۲] کوم ځائے کښې چه تاسو ودریږئ هلته هم دا خورے شئ او دَ قافلے دَ پاره تړه لارے توښه هم جوړولے شئ. البته دَ وچے ښکار په تاسو باندې حرام کړے شوے دے ترڅو چه تاسو دَ احرام په حالت کښې یئ. نو دَ هغه خدائے دَ نافرمانئ نه ځان ساتئ چه دَ هغه مخے ته به تاسو ټول ګیرکړی حاضر کړے شئ.

الله تعالیٰ کعبه، چه محترم مکان دے، دَ خلقو دَ پاره (دَ اجتماعی ژوند) دَ قیام ذریعه جوړه کړه، او دَ حرم میاشت، او دَ قربانئ څاروی او پټے هم (په دے کار کښې دَ امداد دَ پاره[۱۱۳] شامل کړل) دا ځکه چه تاسو ته معلومه شی چه الله تعالیٰ دَ آسمانونو او دَ زمکے دَ ټولو حالاتو نه خبر دے

[۱۱۲] دیرمځه دا سے وشو چه دَ سمندر په سفر کښې دَ لارے توښه خلاصه شی او دَ خوراک دپاره دَ سمندر دَ ځناورو نه بغیر بل څه ممکن نه وی نو دغه وجه نه سمندری ښکار حلال کړے شو.

[۱۱۳] په عربو کښې کعبه یوائے دَ عبادت یو پاک ځائے نه وو بلکه دا یو داسے مقدس او مرکزی ځائے وو چه دَ دے په وجه دَ ټول ملک مالی حالت هم ښه وو او دَ خلقو ژوند هم په آرام تیریده. دَ حج او دَ عمرے دپاره به دَ ملک دَ هر طرف نه خلق کعبے ته راتلل او په یو ځائے کښې به راجمع کیدل او دَ دے په وجه به دَ عربو په خورو ورو قوم کښې اتحاد راپیدا شو، دَ شاعرانو مقابلے به کیدلے او دَ دے په وجه به عربئ ژبه نوره هم ترقی کوله، دَ یو بل سره به تجارت کیده او په دَ هغے په وجه به دَ ملک مالی حالت بهتر شو. په حرمتونو میاشتو کښې به دَ عربو مسافرو نو ته امن نصیب شو. په ټول کال کښې دا یو وخت داسے وو چه دَ عربو قافلے به دَ ملک دَ یو سر نه دَ بل سره پورے په آسانه تلے راتلے شوے. دَ قربانئ دَ څاروو او دَ هغوی په غاړو کښې دَ پټو په وجه به په تلو راتلو کښې نوره هم آسانتیا شوه، ځکه چه کله به عربیانو دَ څاروو په غاړو کښې دَ نذر پټئ ولیدلے نو دَ هغوی به ئے ډیر احترام کولو او په هیڅ تیبله به هم په هغه باندې دَ حملے کولو جراًت نه کوو.

وَاَنَّ اللّٰهَ بِكُلِّ شَیْءٍ عَلِیْمٌ ﴿۹۷﴾ اِعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ شَدِیْدُ الْعِقَابِ وَاَنَّ اللّٰهَ غَفُوْرٌ رَّحِیْمٌ ﴿۹۸﴾ مَا عَلَى الرَّسُوْلِ اِلَّا الْبَلٰغُ ؕ وَاللّٰهُ یَعْلَمُ مَا تُبْدُوْنَ وَمَا تَكْتُمُوْنَ ﴿۹۹﴾ قُلْ لَّا یَسْتَوِی الْخَبِیْثُ وَالطَّیِّبُ وَلَوْ اَعْجَبَكَ كَثْرَةُ الْخَبِیْثِ ۚ فَاتَّقُوا

او هغه ته د هر څيز علم دے۔[۱۱۳] خبردار شئ چه الله په سزا ورکولو کښې هم سخت دے او دے سره ډیر معافی کونکے او رحم کونکے هم دے۔ په رسول باندې خو صرف د پیغام رسولو ذمه واری ده، ورانديز ستاسو ښکاره او پټ حالات الله ته معلوم دی۔ اے پیغمبره! دوی ته اُووایه چه پاک او ناپاک یو برابر نۀ دی[۱۱۵] اګر که د ناپاکو څیزونو ډیر والے هر څو مره ستا زړۀ له خوشحالی دروَلی، نو اے د عقل خاوندانو

[۱۱۴] یعنی که تاسو په دے انتظام باندې غور وُکړو نو تاته به پخپله د دے ملک په ژوند او په مالی حالت کښې د دے خبرے پته ولږی چه الله تعالیٰ د خپل مخلوق د فایدے او د مخلوق د ضرورتونو څو مره مکمل او ژور علم لری او بیا د یو یو حکم په ذریعه د ژوند څو مره څو مره ډیرو شانګو ته فایده رسوی۔ د بدامنئ دا په سوو نو کلونه چه د محمد عربی د راتلو نه مخکښې تیر شوی دی، په دے کښې تاسو د خپلو تاریخو نه نا خبره وئ او بخپلے تباهئ په ګیډلی وئ، خو الله تعالیٰ ته ستاسو د ضرورتونو علم ؤ او هغه صرف د کعبے نه یو مرکز جوړ کړو او ستاسو د پاره ئے دا سے انتظام وُکړو چه د هغے په وجه ستاسو قومی ژوند ښه پاتے شو۔ چه نورے ټولے خبرے پریږدئ او صرف په دے یوه خبره غور وُکړئ نو تاسو به یقین راشی چه د الله د حکمونو په پابندئ کښې ستاسو څو مره خیر دے او په دے حکمونو کښې هغه فایدے ستاسو د پاره پټے پرتے دی چه نۀ پرتاسو بخپله پوهیږئ او نۀ هغه بخپلو تدبیرونو سره پوره کولے شئ۔

[۱۱۵] دا آیت د قدر و قیمت یو بل قسم معیار پیش کوی چه په ظاهره د انسان د معیار نه بالکل مختلف دے په ظاهره چه کوم سړے نوسل روپئ د پنځو روپو په مقابله کښې زیاتے دی ځکه چه هغه سل دی او دا پنځه۔ لیکن په دے آیت کښې دا ارشاد دے چه سل روپئ که د په ناجائزه حاصلے کړی وی نو هغه ناپاکے دی او پنځه روپئ که د په جائزه ګټلی وی هغه پاکے دی، او ناپاک که هر څو مره زیات وی خو د پاکو برابریدے په هیڅ شان نشی۔ د ګندګئ د ډیرئ نه د عطر یو څاڅکے زیات قدر لری او د متیازو د یو ډک ځائک په مقابله کښې د پاکو اوبو یوه لپه زیات وزن لری۔ نو په دے وجه پکار دی چه یو هوښیار انسان په حلالو باندې صبر وُکړی اګر که په ظاهره هغه حلال لږ وی او بے قدره وی، او د غه شان پکار دی چه

اللّٰهَ يٰٓاُولِي الْاَلْبَابِ لَعَلَّكُمْ تُفْلِحُوْنَ ﴿١٠٠﴾ ع يٰٓاَيُّهَا الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا لَا تَسْـَٔلُوْا عَنْ اَشْيَاۗءَ اِنْ تُبْدَ لَكُمْ تَسُؤْكُمْ ۚ وَاِنْ تَسْـَٔلُوْا عَنْهَا حِيْنَ يُنَزَّلُ الْقُرْاٰنُ تُبْدَ لَكُمْ ۭ عَفَا اللّٰهُ عَنْهَا ۭ وَاللّٰهُ غَفُوْرٌ حَلِيْمٌ ﴿١٠١﴾

دَ الله دَ نافرمانئ نه ځان ساتئ، اُمید دے چه ستاسو به کامیابی نصیب شي ع

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، داسے خبرو تپوس مه کوئ چه که هغه درته ظاهرے کړے شي نو بیا به مو خوښے نه وي،[112] لیکن که تاسو هغے په داسے وخت کښ تپوس وکړو چه کله قرآن نازلیږي نو هغه به درته ضرور څرګند ولے کیږي. د اوسه پورے چه تاسو څه کړي دي هغه درته الله معاف کړل هغه معاف کونکے او بُرد بار دے۔

حرام وي نو په هیڅ حال کښ لاس نه کړئ اګر که په ظاهره هغه هرڅومره په زړه پورې او ښائسته ښکاري.

[112] خلقو به د نبي صلی الله علیه وسلم نه عجیبه عجیبه فضول سوالونه تپوسل چه نه به د دین په څه معامله کښ ضرورت وو او نه به د دُنیا په څه معامله کښ ضرورت وو. مثلاً یو ځلے یو سړي په یوه مجلس کښ د نبي نه دا تپوس وکړو چه "زما اصلي پلار څوک دے؟" او دغه شان ځنے خلقو به د شرعي حکمونو په باره کښ غیر ضروري تپوسونه کول او خواه مخواه به ئے په تپوسونو تپوسونو خبره داسے ځائے له ورورسوله چه هغه به په شریعت کښ د څه مصلحت د وجے نه نه وه مقرر کړے شوې. مثلاً په قرآن کښ دا حکم شوے وو چه حج په تاسو باندې فرض کړے شوے دے. یو صاحب چه دا حکم واوریدو نو د نبي صلی الله علیه وسلم نه ئے تپوس وکړو چه "آیا هر کال فرض کړے شوے دے؟" هغوی جواب ورنه کړو. هغه بیا تپوس وکړو. هغوی بیا خاموش پاتے شو. چه په دریم ځل تپوس ئے وکړو نو هغوی وفرمائیل "تاله افسوس دے. که زما د خولے نه "او" ووځي نو حج به هر کال فرض شي. بیا به په تاسو عمل نشئ کولے. او نافرماني به شروع کړئ." د داسے بے مطلبه او غیر ضروري تپوسونو کولو نه په دے آیت کښ منع شوې ده.

نبي صلی الله علیه وسلم به په خپله هم خلق د ډیرو تپوسونو کولو نه او خواه مخواه د هرے خبرے د لټونې کولو نه منع کول. په حدیث کښ دي ان اعظم المسلمين في المسلمين جرما من سأل عن شيء لم يحرم على الناس فحرم من اجل مسألته. "د مسلمانانو په حق کښ د ټولو نه لوئ مجرم هغه سړے دے چه هغه د داسے څیز په باره کښ تپوس وکړو چه په خلقو باندې حرام نه وُو خو صرف د دهٔ د تپوس په وجه هغه څیز حرام کړے شو." په یو بل حدیث کښ دي ان الله فرض فرائض فلا تضيعوها وحرم حرمات فلا تنتهكوها وحد حدودا فلا تعتدوها وسكت عن اشياء من غير نسيان فلا تبحثوا عنها. "الله څه فرائض په تاسو مقرر کړي دي، هغه مه ضائع کوئ. څه څیزونه ئے حرام کړي دي هغے ته نزدے هم مه ورځئ. څه حدونه ئے مقرر کړي دي د هغے نه مه اړوئ. او د څه څیزونو په باره کښ ئے خاموشي اختیار کړې ده او نه چه هیر شوي دي نو

قَدْ سَاَلَهَا قَوْمٌ مِّنْ قَبْلِكُمْ ثُمَّ اَصْبَحُوْا بِهَا كٰفِرِيْنَ ﴿۱۰۲﴾ مَا جَعَلَ اللّٰهُ مِنْۢ بَحِيْرَةٍ وَّلَا سَآئِبَةٍ وَّلَا وَصِيْلَةٍ وَّلَا حَامٍ ۙ وَّ لٰكِنَّ

ستاسو نه مخکښې یوې ډلې دې قِسمه تپوسونه کړی وُو، بیا هغوئ دَ دغې خبرو په وجه په کفر کښې مبتلا شو[۱۱۷]

الله نه څه بَحِیره مقرر کړې ده نه سائبَه او نه وَصِیله او نه حام.[۱۱۸] خو

دَ هغې لټون مه کوئ" په دې دوارو حدیثونو کښې یو لوئ حقیقت طرفته اشاره شوې ده. کومې خبرې چه الله مجملې بیان کړې دی او دَ هغې تفصیل ئې نه دے ښودلے، او یا کوم حکمونه چه ئې لنډ بیان کړې دی او په هغې کښې ئې څه مقدار یا تعداد یا نور مقرر تیا نه ده کړې، نو دَ هغې دا وجه نه ده چه ګنې دَ هغه نه هیر شوې دی، تفصیل ښودل پکار وُو خو هغه نه ښودهٔ، بلکه ددې اصل وجه دا ده چه هغه دا نه غواړي چه دَ دې خبرو تفصیلات دې مقرر وشي څو په دې حکمونو کښې دَ خلقو دپاره فراخي سائل غواړي او هغوئ هم په دې لاره لاړ شي او کښې چه یو سړے خامخا تپوسونه کوي او خبرو یو خاص شکل ته دَ رسولو کوشش کوي، او که دَ الله او دَ رسولٌ دَ کلام نه یو خبره په هیڅ طریقه نه راوځي او دے په قیاس او دَ استنباط په ذریعه سره دَ مجمل نه مفصل، دَ مطلق نه مقید او دَ غیرمعیّن نه معیّن جوړه وي، نو په حقیقت کښې دا سړے مسلمانان په لوئې خطره کښې اچوي. دا ځکه چه کومې خبرې دَ انسان دَ عقل نه پورته دي په هغې کښې چه څومره زیاتې خبرې کوې نو هغومره به زیات پریشانه کیږې، او په حکمونو کښې چه څومره زیات بندیزونه وي نو هغومره دَ خلاف ورزئ زیات امکانات وي.

[۱۱۷] یعنی اول هغوئ ځنیله په عقیدو او حکمونو کښې باریکي لټول شروع کړل او دَ یو یو شیز په باره کښې ئې په تپوسونو تپوسونو دَ بندیزونو یو جال ځان له تیار کړو، بیا په ځنیله په هغې کښې ولګتل او په غلطو عقیدو او بدعملونو کښې مبتلا شو ——— ددې ډلې نه مُراد یهودیان دي، قرآن او محمد صلی الله علیه وسلم ټول مسلمانان خبردار کړې دی چه ددې خلقو په نقش قدم باندې مه ځئ، خو سره ددې مسلمانانو دَ یهودو په پیروئ کښې څه کمے نه دے پرېښودے.

[۱۱۸] لکه څنګه چه زمونږه په ملک کښې غوا، غویئ او چیلئ دَ خدائے په نوم یا دَ یو بُت یا دَ قبر یا دَ دیوتا یا دَ یو پیر په نوم پرېښوده کیږي، او دَ هغې نه خدمت اخستل یا هغه ذبح کول یا دَ هغې نه څه فائده اخستل حرام ګڼلے کیږي، هم دغه شان دَ جاهلیت په زمانه کښې به عربیانو په مختلفو طریقو څناور صدقه کړل او بیا به ئې پرېښودل او ځان له به نومونه به ئې ورله کیښودل.

بَحِیره هغې اوښې ته وائي چه پنځه ځله ئې بچی زیږولي وي او په آخره کښې ئې نر بچے شوے وي. نو دَ هغې غوږ به ئې څیرې کړو او آزاده به ئې پرېښوده. بیا به پرې نه څوک سوریدل، نه به دَ

الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يَفْتَرُوْنَ عَلَى اللّٰهِ الْكَذِبَ ؕ وَاَكْثَرُهُمْ لَا يَعْقِلُوْنَ ﴿۱۰۳﴾ وَاِذَا قِيْلَ لَهُمْ تَعَالَوْا اِلٰى مَاۤ اَنْزَلَ اللّٰهُ وَاِلَى الرَّسُوْلِ قَالُوْا حَسْبُنَا مَا وَجَدْنَا عَلَيْهِ اٰبَآءَنَا ؕ اَوَلَوْ كَانَ اٰبَآؤُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ شَيْـًٔا وَّلَا يَهْتَدُوْنَ ﴿۱۰۴﴾

دا کافران په الله باندې د دروغو تهمت لګوي او په دوی کښې اکثر بې عقله دي (چه دا ټپه وهمیات منی) ـ او هر کله چه ورته اُوویلے شي چه راشئ دے قانون ته کوم چه الله نازل کړے دے او د پیغمبر طرفته راشئ نو په جواب کښې وائي چه زمونږ د پاره خو هغه طریقه کافی ده چه په کومه باندې مونږ خپل پلار نیکونه موندلی دي. آیا دوئ به په پلار نیکه پسے ځي اګر که هغوئ په هیڅ نه پوهیدل او د صحیح لارے نه هم وخبر نه وو؟

هغه پښې چا شکل، نه به چا ذبح کوله او نه به تې چا د ترئ شکولو له. د هغې به خو ښه وه چه په کوم پټي او باغ کښې به څریدله او چه د کوم کوه رنه به هغه اُوبه څښلے.

سائبه هغه اُوښ یا اُوښے ته وائي چه هغه به د څه مُراد په پوره کیدو باندې یا به د څه بیماری نه په شفا موندلو باندې یا به د څه خطرے نه په بچ کیدو باندې د شکرانې په طور خیرات کړے شوه. دغه رنګې چه د کومے اُوښے به لس ښځے بچې پیدا شوے نو هغه به هم آزاده پریښودله.

وصیله. که د چیلئ به اولنے نر بچے پیدا شو نو هغه به ئے د خدایانو په نوم ذبحه کوو. او که په اول ځل به ښځه بچئ پیدا شوه نو هغه به ئے ځان له پریښوده ـ لیکن که نر او ښځه به دواړه یو ځائے پیدا شو نو بیا به ئے نر د ذبح کولو پځائے باندې هم دغسے د خدایانو په نوم آزاد پریښودو او د هغه نوم به وصیله وُو.

حام. که د یو اُوښ نوسے به د سورلئ کولو قابل شونو دغه بوډا اُوښ به ئے آزاد پریښودو. دغه رنګے چه د کوم اُوښ د نطفے نه به لس بچي پیدا شو نو هغه به ئے هم آزاد پریښودو.

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا عَلَيْكُمْ أَنفُسَكُمْ ۖ لَا يَضُرُّكُم مَّن ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ ۚ إِلَى اللَّهِ مَرْجِعُكُمْ جَمِيعًا فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿١٠٥﴾ يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا شَهَادَةُ بَيْنِكُمْ إِذَا حَضَرَ أَحَدَكُمُ الْمَوْتُ حِينَ الْوَصِيَّةِ اثْنَانِ ذَوَا عَدْلٍ مِّنكُمْ أَوْ آخَرَانِ مِنْ غَيْرِكُمْ إِنْ أَنتُمْ ضَرَبْتُمْ فِي الْأَرْضِ فَأَصَابَتْكُم مُّصِيبَةُ

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، د خپل ځان فکر کوئ، چه تاسو پخپله په نیغه لار باندې یئ نو د بل د ګمراهئ نه تاسو ته هیڅ نقصان نه رسی.[119] تاسو ټولو تګ الله طرف ته دے، بیا هغه به درته وښائی چه تاسو څه کول.

اے هغه خلقو چه ایمان مو راوړے دے، هر کله چه په تاسو کښې چا د مرګ وخت راشی او هغه وصیت کوی نو د دے دپاره د شهادت نصاب دا دے چه ستاسو د ملے نه دوه تنه عادلان سړی ګواهان مقرر کړے شی، یا که چرته تاسو د سفر په حالت کښې یئ او هلته درته د مرګ مصیبت پیښ شی نو د غیر مسلمو نه دوه تنه

[119] یعنی مطلب دا دے چه سړے هر وخت دے ته ګوری چه فلانے څه کوی او د فلانی په عقیده کښې څه خرابی ده او د فلانی په عمل کښې څه کمے دے، هغه له دا پکار دی چه دا ګوری چه دے پخپله څه کوی. هغه له دا فکر کول پکار دی چه چرته دده خپل خیالات، خپل اخلاق او خپل اعمال خراب خو نه دی. چه سړے پخپله د خدائے حکمونه منی، د خدائے د مخلوق چه کوم حقونه په دهٔ باندې راځی هغه ادا کوی، او د صحیح ژوند تیرولو کوشش کوی چه په کښې امر بالمعروف او نهی عن المنکر هم شامل دی، نو یقیناً چه د بل چا د ګمراهئ نه دهٔ ته هیڅ نقصان نشی رسیدے.

د دے آیت دا مطلب هرګز نه دے چه سړے دې بس د خپلے کامیابئ فکر کوی او د بل چا د اصلاح فکر دې نه کوی. حضرت ابوبکر صدیقؓ په خپله یوه خطبه کښې دا غلطی درسته کړی ده او فرمائی چه: "اے خلقو تاسو دا آیت لولئ او د دے غلطه معنیٰ کوئ. ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه دا اوریدلی دی چه فرمائیلے ئے چه هر کله د خلقو دا حال شی چه هغوئ بدی وینی او د هغے د لرے کولو کوشش نه کوی، ظالم وینی چه ظلم کوی او منع کوی ئے نه، نو دا خبره لرے نه ده چه خدائے به په ټولو عذاب راولی. په خدائے مې د قسم وی چه په تاسو باندې لازم ده چه د نیکئ حکم کوئ او د بدئ نه خلق منع کوئ، کنه نو الله به په تاسو باندې داسے خلق مسلط کړی چه په تاسو کښې به د ټولو نه زیات خراب خلق وی او هغوئ به تاسو ته سخت تکلیفونه دررسوی، بیا به ستاسو نیکان خلق د خدائے نه دُعاګانے غواړی خو قبلیږی به نه.

الْمَوْتِ ۚ تَحْبِسُونَهُمَا مِنْ بَعْدِ الصَّلٰوةِ فَيُقْسِمٰنِ بِاللّٰهِ إِنِ ارْتَبْتُمْ لَا نَشْتَرِي بِهٖ ثَمَنًا وَّلَوْ كَانَ ذَا قُرْبٰى ۙ وَلَا نَكْتُمُ شَهَادَةَ ۙ اللّٰهِ إِنَّا إِذًا لَّمِنَ الْاٰثِمِينَ ﴿١٠٦﴾ فَإِنْ عُثِرَ عَلٰى أَنَّهُمَا اسْتَحَقَّا إِثْمًا فَاٰخَرٰنِ يَقُومٰنِ مَقَامَهُمَا مِنَ الَّذِينَ اسْتَحَقَّ عَلَيْهِمُ الْأَوْلَيٰنِ فَيُقْسِمٰنِ بِاللّٰهِ لَشَهَادَتُنَا أَحَقُّ مِنْ شَهَادَتِهِمَا وَمَا اعْتَدَيْنَا ۖ إِنَّا إِذًا لَّمِنَ الظّٰلِمِينَ ﴿١٠٧﴾ ذٰلِكَ أَدْنٰى

کواهان[121] واخلے شی. بیا موکه څه شک راشی نو دَ مانځه نه روستو دِ دواړه کواهان (په جومات کښ) حصار کړے شی او هغوی دِ په خدائے قسم وخوری او وُ دِ وائی چه "موږ ه دَ څپلے فائدے دَ پاره کواهی نهٔ خرڅوو اګرچه زموږه څوک رشته دار وی (خو موږه دَ هغوی رعایت نهٔ کوُو)، او نهٔ موږه دَ هغے کواهی پټوُونکی یُو چه هغه دَ خدائے دَ پاره وی، که موږه داسے وکړه نو په ګنهګارانو کښ به شمار شو." لیکن که دا پته ولګی چه دے دواړو په ګناه کښ ځان را ښکلے دے نو بیا دِ دَ دوی ځائے دوه نور سړی، چه دَ دوی په نسبت دَ کواهئ دَ پاره زیات مناسب وی، دَ هغه خلقو نه ودریږی چه دَ چا حق وهلے شوے وی، او هغوی دِ په خدائے قسم وخوری او وُ دِ وائی چه " زموږه شهادت دَ هغوی دَ شهادت نه زیات په حقه دے او موږه په خپله کواهئ کښ هیڅ زیاتے نهٔ دے کړے، او که موږه داسے وکړه نو ظالمان به یُو." په دے طریقے سره زیات امید کیږی چه شی

[121] یعنی دیندار، ریښتینی او با اعتماده مسلمانان.

[122] دے نه معلومه شوه چه دَ مسلمانانو په معاملو کښ صرف په هغه حالت کښ غیر مسلمه خلق کواهان نیول دُرست دی کله چه مسلمان دَ کواهئ دَ پاره موجود نهٔ وی.

أَنْ يَأْتُوا بِالشَّهَادَةِ عَلَىٰ وَجْهِهَا أَوْ يَخَافُوا أَنْ تُرَدَّ أَيْمَانٌ بَعْدَ أَيْمَانِهِمْ ۗ وَاتَّقُوا اللَّهَ وَاسْمَعُوا ۗ وَاللَّهُ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الْفَاسِقِينَ ﴿١٠٨﴾ يَوْمَ يَجْمَعُ اللَّهُ الرُّسُلَ فَيَقُولُ مَاذَا أُجِبْتُمْ ۖ قَالُوا لَا عِلْمَ لَنَا ۖ إِنَّكَ أَنْتَ عَلَّامُ الْغُيُوبِ ﴿١٠٩﴾ إِذْ قَالَ اللَّهُ يَا عِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ اذْكُرْ نِعْمَتِي عَلَيْكَ وَعَلَىٰ وَالِدَتِكَ إِذْ أَيَّدْتُكَ بِرُوحِ الْقُدُسِ تُكَلِّمُ النَّاسَ فِي الْمَهْدِ وَكَهْلًا ۖ وَ



چه خلق به ټیک ټیک شهادت کوی، یاکم از کم دَ دے خبرے نه به یریږی چه زمونږ دَ قسمونو نه روستو چرته دَ نورو په قسمونو باندِ زمونږ تردید ونهٔ شی. دَ الله نه ویریږئ او واورئ، چه الله نافرمانه خلقوته هدایت (لاره ښودنه) نهٔ کوی.

په کومه ورځ[122] چه به الله ټول رسولان راجمع کړی او تپوس به ترې وکړی چه تاسو[123] له څه جواب درکړے شو، نوهغوئ به عرض وکړی چه مونږ ته هیڅ علم[124] نشته، ټول پټ حقیقتونه هم تاته معلوم دی. بیا هغه وخت په خیال کښ راولئ چه څه وخت به الله تعالیٰ عیسیٰ ابن مریم ته فرمائی[125] چه اے دَ مریم ځویه عیسیٰ، را یاد کړه زما هغه نعمت چه ما په تا او ستا په مور باندِ کړے وُو، ما په روح پاک سره ستا مدد وکړو، تا به په زانګو کښ هم دَ خلقو سره خبرے کولے او چه د برهمرته ورسیدے، نو هم، ما تا ته

[122] یعنی دَ قیامت په ورځ.

[123] یعنی چه تاسو په دنیا کښ خلقوته دَ اسلام دعوت ورکولو نو هغوئ تاسو له څه جواب درکړو.

[124] یعنی مونږ ته خو صرف هغه لږ ظاهری جواب معلوم دے کوم چه زمونږ په ژوند کښ مونږ ته راکړے شوے وُو. باقی پاتے شوه دا خبره چه په حقیقت کښ زمونږ دعوت اثر څومره وُو، دَ کوم خلقو پورے وُو او په څه شکل کښ وُو، نو ددے صحیح علم ستا نه بغیر بل چاته نشی کیدے.

[125] اول نے تپوس به دَ ټولو رسولانو نه په جمع کیږی. بیا به دَ یو یو رسول نه ځان له ځان له شهادت اخستلے کیږی لکه څنګه چه په قرآن کښ په ډیرو ځایونو کښ دا ارشاد شوے دے. په دے سلسله کښ چه به دَ حضرت عیسیٰ علیه السلام نه کوم تپوس کیږی هغه دَ خاص طور دلته ذکر کړے دے.

إِذْ عَلَّمْتُكَ الْكِتٰبَ وَالْحِكْمَةَ وَالتَّوْرٰىةَ وَالْإِنْجِيلَ ۚ وَإِذْ تَخْلُقُ مِنَ الطِّينِ كَهَيْـَٔةِ الطَّيْرِ بِإِذْنِي فَتَنْفُخُ فِيهَا فَتَكُونُ طَيْرًا بِإِذْنِي ۖ وَتُبْرِئُ الْأَكْمَهَ وَالْأَبْرَصَ بِإِذْنِي ۖ وَإِذْ تُخْرِجُ الْمَوْتٰى بِإِذْنِي ۖ وَإِذْ كَفَفْتُ بَنِيٓ إِسْرَآءِيلَ عَنْكَ إِذْ جِئْتَهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِنْهُمْ إِنْ هٰذَآ إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴿١١٠﴾ وَإِذْ أَوْحَيْتُ إِلَى الْحَوَارِيِّينَ أَنْ اٰمِنُوا بِي وَبِرَسُولِي ۚ قَالُوٓا اٰمَنَّا وَاشْهَدْ بِأَنَّنَا مُسْلِمُونَ ﴿١١١﴾ إِذْ قَالَ

دَ کتاب او دَ حکمت، دَ تورات او دَ انجیل تعلیم درکړو، تا به زما په حکم دَ خټې نه دَ مرغۍ شکل جوړولو او په هغې کښې به دې پوکي کولو او دَ هغې نه به زما په حکم مرغۍ جوړیدله، تا به مورزادي ړوند او جذامي مریض (برګې یا پیس کوټې ړیړی) زما په حکم ښه کولو، تا به مړي زما په حکم را ایستل[۱۲۶] بیا چه تا کله بنی اسرائیلو ته ښکاره نښې ویوړې او په هغوئ کښې چه څوک دَ حق نه منکر وو هغوئ اُووې چه دا نښې خو دَ جادو نه سِوا بل هیڅ نه دی نو ته ما دَ هغوئ نه بچ کړې، او کله چه ما حواریانو ته اشاره وُکړه چه په ما باندې او زما په رسول باندې ایمان راوړئ نو هغوئ اُووې چه موږه ایمان راوړو او ته ګواه اوسه چه موږ مُسلمانان یُو"[۱۲۷] ـــــــــــــ (دَ حواریانو[۱۲۸] په سلسله کښې) دا واقعه

۱۲۶ یعنی دَ مرګ دَ حالت نه به دِ دَ ژوند حالت ته را ایستل ـ

۱۲۷ یعنی حواریانو چه په تا باندې ایمان راوړے دُو هغه هم زموږ دَ فضل وجه وه او موږ ورله توفیق ورکړے وُو، کنې نو په تاکښې خو دومره طاقت نه وُو چه په دغه قوله آبادۍ کښې دِ یو تصدیق کوونکے په خپل طاقت پیدا کړے وے ـــــــــــ په اشاره کښې دا هم ووښودله چه دَ حواریانو اصلی دین اسلام وُو عیسائیت نه وُو ـ

۱۲۸ چونکه دَ حواریانو ذکر راغے نو په دے وجه دَ روان تقریر په مینځ کښې دَ حواریانو په حقله دَ یوے بلې واقعې طرف ته اشاره وُکړے شوه ـ دَ دے واقعې نه دا خبره صفا ظاهریږي چه کوم شاګردانو دَ مسیح نه مخامخ تعلیم حاصل کړے وُو هغوئ دَ مسیح یو انسان او صرف یو بنده ښکاریدو او دَ هغوئ په خاطر کښې هم دَ خپل مرشد (لارښوونکي) په حقله دا خیال نه وُو چه دے یا خو خدائے دے یا په خدائی کښې شریک

الْحَوَارِيُّونَ يٰعِيسَى ابْنَ مَرْيَمَ هَلْ يَسْتَطِيعُ رَبُّكَ أَنْ يُّنَزِّلَ عَلَيْنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ ۖ قَالَ اتَّقُوا اللّٰهَ إِنْ كُنْتُمْ مُّؤْمِنِينَ ﴿۱۱۲﴾ قَالُوا نُرِيدُ أَنْ نَّأْكُلَ مِنْهَا وَتَطْمَئِنَّ قُلُوبُنَا وَنَعْلَمَ أَنْ قَدْ صَدَقْتَنَا وَنَكُونَ عَلَيْهَا مِنَ الشّٰهِدِينَ ﴿۱۱۳﴾ قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ اللّٰهُمَّ رَبَّنَآ أَنْزِلْ عَلَيْنَا مَآئِدَةً مِّنَ السَّمَآءِ تَكُونُ لَنَا عِيدًا لِّأَوَّلِنَا وَاٰخِرِنَا وَاٰيَةً مِّنْكَ ۚ وَارْزُقْنَا وَأَنْتَ خَيْرُ

هم یاده ساتئ چه هرکله حواریانو اووے "اے عیسیٰ ابن مریم، آیا ستا رب په مونږ باندِ دَ آسمان نه دَ خوراک یوه خوانچه نازلولے شی؟" نو عیسیٰ ورته اُووئیل دَ الله نه وُیریږئ که تاسو مومنان یئ. هغوئ ورته اُووے "مونږه خو بس دا غواړو چه دَ دغے خوانچے نه خوراک وُخورو او زمونږه زړونه مطمئن شی او مونږ ته معلومه شی چه تا مونږ ته څه وئیلی دی هغه رښتیا دی او مونږه په هغه باندِ گواهان شو." نو عیسیٰ ابن مریم دُعا وُکړه "اے خدایا! زمونږه ربه، په مونږ باندِ دَ آسمان نه یوه خوانچه نازله کړے چه هغه زمونږ دَ پاره او زمونږه دَ مخکینو او روستنو خلقو دَ پاره دَ خوشحالئ یوه موقع وُگرزی او ستا دَ طرفه یوه نښه وی، مونږ له روزی راکه او ته بهترین

دے او یا دَ خدائے خوښه ده. او دا منگے میم چنیله هم هغوئ ته پل ځان دَ یو بے اختیاره بنده په شان پیش کړے وُو.

دلته دا سوال راپیدا کیږی چه کومے خبرے اترے به دَ قیامت په ورځ کیږی، په هغه کښ به دا دے خبرے کولو څه موقع وی؟ دَ دے جواب دا دے چه دا دے خبرے دَ هغه خبرو سره هیڅ تعلق نشته کوم چه به دَ قیامت په ورځ کیږی بلکه د قیامت دَ ورځے کوم حالات چه په دُنیا کښ دَ عبرت دپاره بیانیږی دا دے تعلق دَ هغه سره دے. کومے خبرے چه به په قیامت کښ کیږی دَ هغه ذکر دلته په دُنیا کښ دے دَ پاره کیږی چه عیسایان ترے عبرت واخلی او نیغ لارے ته راشی. دا وجه ده چه دَ قیامت په دے خبرو کښ دَ حواریانو دَ دے واقعے ذکر منځ کښ راوستل په هیڅ شان سره بے تعلقه نه دے.



الرّٰزِقِيْنَ ﴿۱۱۴﴾ قَالَ اللّٰهُ اِنِّيْ مُنَزِّلُهَا عَلَيْكُمْ ۚ فَمَنْ يَّكْفُرْ بَعْدُ مِنْكُمْ فَاِنِّيْٓ اُعَذِّبُهٗ عَذَابًا لَّآ اُعَذِّبُهٗٓ اَحَدًا مِّنَ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۱۱۵﴾ وَاِذْ قَالَ اللّٰهُ يٰعِيْسَى ابْنَ مَرْيَمَ ءَاَنْتَ قُلْتَ لِلنَّاسِ اتَّخِذُوْنِيْ وَاُمِّيَ اِلٰهَيْنِ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ۭ قَالَ سُبْحٰنَكَ مَا يَكُوْنُ لِيْٓ اَنْ

روزي ورکونکے يې." خدا ئے جواب ورکړو" زۀ دا په تاسو باندې نازلونکے يم[۱۲۹] خو دے نه روستو چې چا په تاسو کښې کفر وکړو هغه له به زۀ داسے سزا ورکوم چې په دُنيا کښې به م چا له نۀ وي ورکړې." ـــــ غرض دا چې کله (دے احسانا تو يادو لو نه پس) الله وٰ فرمائي چې "اے عيسٰیٰ ابن مريم، آيا تا خلقو ته ويلي وُو چې د خدا ئے نه سوا ماته او زما مور ته هم خدا ئے[۱۳۰] وايئ؟" نو هغه به په جواب کښې وَوائي چې "سبحان الله، زما دا کار نۀ وُو چې

[۱۲۹] قرآن په دے باره کښې خاموش دے چې دا خوانچه په حقيقت کښې نازله شوه او که نه. د بل څه معتبره ذريعے نه هم د دے سوال جواب نۀ ملا ويږي. دا ممکنه ده چې دا خوانچه نازله شوې وي او دا هم ممکنه ده چې دے تنبيه و هکئي نه روستو حواريانو خپل درخواست واپس اخستے وي.

[۱۳۰] عيسايانو د الله سره صرف مسيح او روح القدس په خدائي کښې نۀ وُو شريک کړي، بلکه د مسيح د مور حضرت مريمٍ نه ئے هم معبود جوړ کړے وُو. د حضرت مريم عليها السلام د خدائي يا د هغې د قدوسيت متعلق اشاره قدر له هم په بائيبل کښې نشته. د مسيحٍ نه روستو د دريو سوؤ کالو پورے عيسايان د دے خيال نه بالکل نا اشنا وُو. د دريمے عيسوي صدئ په آخر کښې د سکندريے د دينيا تو څښتو عالمانو په اول ځل د حضرت مريم دپاره د "اُمّ الله" يا "د خدا ئے مور" الفاظ استعمال کړل. د دے نه روستو رُو رُو د مريم د خدائي عقيده او د مريم د عبادت طريقه په عيسايانو کښې شروع شوه. ليکن په اول ځل کښې چرچ (CHURCH) د دے مسئلو ته تيار نۀ وُو، بلکه د مريم عبادت کوونکو ته به ئے د خرابے عقيدے والا وئيل. د نسطوريس دا عقيده وه چې د مسيح په يو ذات کښې دوه ځان له ځان له مستقل شخصيتونه راجمع شوي دي. کله چې عيسايانو د نسطوريس په دے عقيده باندې گرم گرم بحثونه شروع کړل، نو د صفائي کولو دپاره په ۴۳۱ء کښې په ښار افسوس کښې يوه غونډه مقرر شوه، په دے غونډه کښې په اول ځل د کليسا په سرکاري ژبه کښې د حضرت مريم دپاره "د خدا ئے مور" لقب استعمال کړے شو. نتيجه ئے دا ووته چې د مريم د عبادت کوم مرض د کليسا نه بهر خوريدو اوس په کليسا کښې دننه په تيزئ سره خوريدل شروع شو، او د قرآن د نازليدو پورے خبره دے ته ورسيده چې د حضرت مريمٍ نه يوه دومره لويه "ديوی" جوړه شوه چې د هغې د وړاندې پلار، ځوئے او روح القدس هيڅ پاتے نۀ شو. د هغې بُت ځائے په ځائے په کليسا کانو کښې اېښودے شوے وُو. د هغې وړاندې به د عبادت تړلے

أَقُولَ مَا لَيْسَ لِي بِحَقٍّ ۚ إِن كُنتُ قُلْتُهُ فَقَدْ عَلِمْتَهُ ۚ تَعْلَمُ مَا فِي نَفْسِي وَلَا أَعْلَمُ مَا فِي نَفْسِكَ ۚ إِنَّكَ أَنتَ عَلَّامُ الْغُيُوبِ ﴿١١٦﴾ مَا قُلْتُ لَهُمْ إِلَّا مَا أَمَرْتَنِي بِهِ أَنِ اعْبُدُوا اللَّهَ رَبِّي وَرَبَّكُمْ ۚ وَكُنتُ عَلَيْهِمْ شَهِيدًا مَّا دُمْتُ فِيهِمْ ۖ فَلَمَّا تَوَفَّيْتَنِي كُنتَ أَنتَ الرَّقِيبَ عَلَيْهِمْ ۚ وَأَنتَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ شَهِيدٌ ﴿١١٧﴾ إِن

هغه خبره م کړې وه چه د هغې د کولو ما ته حق نه وو، که چرې ما دا سې خبره کړې وې نو تا ته به ضرور معلومه وه، تا ته بنه معلوم دی هر هغه څه چه زما په زړه کښ دی او ما ته هغه نه دی معلوم څه چه ستا په زړه کښ دی، ته خو په ټولو پټو حقیقتونو عالم ئې. ما هغوئ ته د هغې نه سوا هیڅ نه دی وئیلی کوم چه تا ما ته حکم کړے وُو، یعنی دا چه د الله بندګی وکړئ چه زما هم رب دے او ستا سو هم رب دے. تر هغې وخته پورې زهٔ د هغوئ نګران وُوم ترڅو چه زهٔ د هغوئ په مینځ کښ موجود وُوم. کله چه تا زهٔ واپس راؤغوختلم نو بیا په هغوئ باندې ته نګران وې او ته خو په ټولو څیزونو باندې نګران یې - او س

طریقه ادا کیدله، هم د هغې نه به دُعاګانې غوښتلې کیدې، هم هغه فریاد اوریدونکې، حاجت پوره کونکې، مشکل آسانه ونکې او د غریبو مددګاره وه، او د عیسایانو د بروسه او د اعتماد لویه ذریعه د "خدائے مُور" حمایت او مرسته حاصلول وُو. د جسټینین قیصر د چیل یو قانون په سرکښ دا لیکلی دی چه زما د سلطنت مددګار حضرت مریمٔ ده. د هغه مشهور نرسیس نومے جرنیل په میدانِ جنګ کښ د حضرت مریمٔ هدایت او رهنمائي غوښتې. د نبی صلی الله علیه وسلم په زمانه کښ هرَقل نومے قیصر په خپله جنډه باندې د "خدائے د مور" تصویر جوړ کړے وُو او که هغهٔ دا پوره یقین وُو چه د دے تصویر په برکت به دا جنډه نه ښکته کیږی. اګرچه په روستنو صدو کښ د تحریک اصلاح د اثر د چه د ه د پروټسټنټ عیسایانو د مریمٔ د عبادت خلاف آواز بنه په زوره سره ؤچت کړو، لیکن رومن کیتهولک کلیسا د نن ورځ پورې په دے طریقه باندې روان دے.

تُعَذِّبْهُمْ فَإِنَّهُمْ عِبَادُكَ ۚ وَإِنْ تَغْفِرْ لَهُمْ فَإِنَّكَ أَنْتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿١١٨﴾ قَالَ اللَّهُ هَٰذَا يَوْمُ يَنْفَعُ الصَّادِقِينَ صِدْقُهُمْ ۚ لَهُمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِنْ تَحْتِهَا الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ۚ رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ ۚ ذَٰلِكَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴿١١٩﴾ لِلَّهِ مُلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا فِيهِنَّ ۚ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ ﴿١٢٠﴾



که ته هغوئ له سزا ورکړے نو ستا بندګان دی او که معاف ئے کړے نو ته غالب او حکمت والا یې.» نو بیا به الله وفرمائی «دا هغه ورځ ده چه پکښ رښتونو خلقو ته خپله رښتیا وینا فائده ورکوی، د هغوئ د پاره داسے باغونه دی چه لاندے ترے ویالے بهیږی، د لته به هغوئ همیشه وسی، الله د هغوئ نه راضی شو او هغوئ د الله نه، دا لویه کامیابی ده.»

د زمکے او د آسمانونو او د ټولو څیزونو بادشاهی خاص د الله ده او هغه په هر څیز باندے قدرت لری۔ ع

# ضمیمه

(د حاشیے نمبر ۳۶ په سلسله کښ تشریح)

په دے سلسله کښ دا خبره د ذکر قابله ده چه حضرت عیسیٰ علیه السلام هیڅکله د خپل پیرو کارانو نوم "عیسائی" یا "مسیحی" نه وو ایښودلے. ځکه چه هغه په خپل نوم باندے یو نوی مذهب جوړولو د پاره نه وو راغلے. د عیسیٰ دعوت د هغے دین تازه کولو د پاره وو کوم چه حضرت موسیٰ علیه السلام او د هغه نه مخکښ روستو پیغمبرانو راوړے وو. په دے وجه هغه د عام بنی اسرائیلو نه او څوک چه د موسیٰ په شریعت باندے وو د هغوئ نه ئے نه یو جدا ګروه جوړه کړه او نه ئے د هغوئ نه یو مستقل نوم کیښودو. د عیسیٰ اولنی پیروکارانو نه خپل ځان د اسرائیلی ملت نه جدا ګڼړلو، نه یو مستقله ډله وه او نه ئے ځان له یو خاص نوم یا نښه جوړه کړی وه. هغوئ به د عبادت د پاره د عامو یهودیانو سره د بیت المقدس عبادت خانے ته تلل او خپل ځانونه ئے د موسیٰ د شریعت پابند ګڼړو. (وګوره کتاب اعمال ۳: ۱ - ۱۰ - ۱۴: ۱۵ : ۱، ۵ - ۲۱ : ۲۱).

روستو بیا د جدائی عمل د دوه اړخونه شروع شو. یو طرف ته د حضرت عیسیٰ په پیروکارانو کښ پولوس

(سینټ پال) د شریعت پابندي ختمه کړه او دا اعلان ئې وکړو چې د نجات دپاره صرف په مسیحؑ باندې ایمان راوړل کافي دي. او بل طرفته د یهودیانو عالمانو د مسیحؑ منکرو ته یوه ګمراهه فرقه اُووئیله او د عامو بني اسرائیلو نه ئې بیل کړل. لیکن سره د دے ځدا ئې په اول کښ د دے نوے فرقے څه خاص نوم نه وُو. چنیله د مسیحؑ منکرو به کله د خپل ځان دپاره د "شاګرد" لفظ استعمالولو، اوکله به ئې د خپلو منکرو ذکر د "رونړو" (اخوان)، "ایمان دارو" (مؤمنین)، "چه ایمان ئې راوړے" (اَلَّذِیْنَ اٰمَنُوْا) او د "مقدسیانو" په الفاظو سره کولو. (کتاب اعمال ۲ : ۴۴ - ۴ : ۳۲ - ۹ : ۲۶ - ۱۱ : ۲۹ - ۱۳ : ۵۲ - ۱۵ : ۱-۲۳ رومیون ۱۵ : ۲۵ - کلسیون ۱ : ۲). د دے برخلاف یهودیانو به د دے خلقو ته کله "ګلیلي" وئیل او کله به ئې ورته "د ناصریانو بدعتي فرقه" وئیل (اعمال ۲۴ : ۵ . لوقا ۱۳ : ۲). دا نوم هغوئ د هغوئ د مسخرے په طور څکه ایښودو چې د عیسیٰؑ د وطن نوم ناصره وُو او د فلسطین په ضلع ګلیل کښ وُو. لیکن دا د توقو نومونه دومره مشهور نه شو چې د مسیح د منکرو نوم شوے وے.

د دے دپاره موجوده نوم مسیحي (CHRISTIAN) اول ځل په ۴۳ء یا ۴۴ء کښ د انطاکیه مشرکانو ایښوده وُو، اوکله چې سینټ پال او برنباس هلته ورسیدل نو د خپل مذهب عام تبلیغ ئې شروع کړو. (اعمال ۱۱ : ۲۶). دا نوم هم په اصل کښ د توقے مسخرے په طور مخالفینو ایښودلے وُو، او د مسیح منکري په ځان باندې د دے نوم ایښودلو ته تیار نه وُو. لیکن هر کله چې ورته دُشمنانو هم دا نوم وئیلو نو د هغوئ لیډرانو مشرانو اُووئیل چې ستاسو نسبت مسیح ته کوي او "مسیحیان" درته وائي نو تاسو له پرشرم نه دے پکار. (۱. پطرس ۴ : ۱۶) دغه شان دوئ هم ځان ته هغه نوم وئیل شروع کړل کوم چې پر دُشمنانو د توقے په طور ایښودلے وُو، ان تر دے پورے چې په آخر کښ د هغوئ نه دا خبره هېره شوه چې دا په اصل کښ یو خراب نوم وُو.

دغه وجه ده چې قرآن مجید د مسیح منکري په مسیحي یا عیسائي نوم سره نه دي یاد کړي. بلکه هغوئ ته ئې دا خبره وریاده کړه چې تاسو په اصل کښ د هغه خلقو یئ چې عیسیٰؑ ورته آواز کړے وُو چې مَنْ اَنْصَارِیْٓ اِلَى اللّٰهِ، "څوک دے چې د الله په لار کښ زما مدد وکړي" او هغوئ ورته جواب ورکړے وُو چې نَحْنُ اَنْصَارُ اللّٰهِ "مونږه د الله په لار کښ مددګار یُو" په دے وجه تاسو په حقیقت کښ انصار یا نصارٰی یئ. لیکن ن عیسائي تبلیغیان بجائے د دے چې د قرآن شکریه ادا کړي، هغوئ اُلټا دا شکایت کوي چې قرآن مونږ ته د مسیحي بجائے نصارٰی ولے اُووے.

# الانعام

## نوم

دده سورة په رکوع شپاړسم او وَلَسِّمَ کښ دَ څینې هغه شاروُو ( انعام ) دَحرامولی او دَ حلالولی تردید شوے دے کوم چه دَ اهل عربو په خیال کښ حرام او حلال وُو. په دے مناسبت سره دد ے نوم "الانعام" ایښودلے شوے دے.

## د نازلیدو زمانه

دَ ابن عباسؓ روایت دے چه دا ټول سورة په یو وخت په مکه کښ نازل شوے وُو. دَ حضرت مُعاذ بن جَبَل دَ تره لور اَسماء بنت یزید وائی چه" کله دا سورة په نبی صلی الله علیه وسلم باندې نازلیدو نو هغه په اُوښه باندې سور وُو، ما ئې پرے نیولے وُو او دَ زیات بوج دَ وجے نه دا اُوښه داسے ښکاریده لکه چه هډوکی ئې ماتیږی." په دوایا توکښ دا هم راځی چه په کومه شپه دا سورة نازل شو نو په هغے شپه نبی صلی الله علیه وسلم په چا وُلیکلو.

ددے سورة دَ مضمونونو نه دا صفا معلومیږی چه دا به دَ مکی دور په آخر وخت کښ نازل شوے وی. دَ حضرت اسماء بنت یزید روایت هم ددے خبرے تصدیق کوی. ځکه چه هغه دَ انصارو نه وه او دَ هجرت نه روستو ئې ایمان راوړے وُو. که چرے هغه دَ مسلمانیدو نه مخکښ صرف دَ عقیدت په وجه دَ نبی صلی الله علیه وسلم په خدمت کښ مکے ته حاضره شوی وی نو یقیناً چه دا به دَ مکی دور په آخری کال کښ راغلی وی. دَ دے نه روستو دَ یثرب والو (مدینے والو) سره دَ مکے والو تعلقات دومره نهٔ وُو زیات شوی چه دَ هغه ښځه نبیؐ له دَ یوے ښځے راتلل ممکن وُو.

## شانِ نزول

چه دَ نزول زمانه مقرر شوه نو موږ ته اوس په آسانه باندې هغه حالات معلومولے شو په کوموحالاتوکښ چه دا خطبه ارشاد شوی وه. په دغه وخت کښ دَ اسلام په دعوت دولسو کاله تیر شوی وُو. دَ قریشو ظلم زیاتے انتها ته رسیدلے وُو. ډیرو مسلمانانو دَ هغوئ دَ ظلم زیاتی دَ وجے نه وطن پریښودلے وُو او حبش ته تلی وُو. دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ مرستے دَ پاره په دغه وخت کښ نهٔ ابوطالبؓ ژوندے وُو او نهٔ حضرت خدیجهؓ او دغه شان بغیر دَ څه دُنیوی سهارے نبیؐ په سخت وخت کښ دَ رسالت کار کولو. دَ هغهؐ دَ تبلیغ دَ وجے په مکه کښ او په خواؤ شا ټبا ټیلوکښ نیکان صالحان خلق مسلمانیدل، لیکن دَ قوم زیات خلقو انکار ته ملا تړلی وه. چرته چه به چا د اسلام طرفته لږ شان خواهش ظاهر کړو نو هغه به خلقو ملامته کوُو، پیغورونه به ئې ورکول، وَهو به ئې او دَ کلی هلت نه به ئې ایستلو. دَ مُصیبت په دے سخت وخت کښ صرف دَ اُمید یوه نرئی شان رڼا دَ یثرب دَ طرفنه ښکاریده، ځکه چه دَ هغه ځائے دَ اَوس او دَ خَزرَج قبیلے بااثره خلقو دَ نبی صلی الله علیه وسلم په لاس باندې بیعت کړے وُو او هلته بهٔ په آزادئ سره اسلام خوریدو. خو په دغه نرئ رڼا کښ چه کوم امکانات پټ پراته وُو هغه به ظاهره نهٔ ښکاریدل. په ظاهره خو دا معلومیده چه اسلام یو کمزورے تحریک دے، دَ مال دولت زور ورپسه نشته،

دَ مشرکانو دَ خپلوانو دَ مرستې نه علاوه نور څه زور نشته، او کوم لږ و، بې وَسو، او هغه د غه خلقو چه اسلام قبول کړے دے، هغوئ هم دَ خپل قوم دَ دین نه او رېدلی دی او دَ خپل اُولس دَ خلقو نه داسے جُدا شوی دی لکه چه پا نړے دَ وُنے نه را پرېوزی او په زمکه باندِ خورے ورے شی۔

**بحثونه** | په دے حالاتو کښ دا خطبه ارشاد شوی ده او ددے مضمونو نه په اُ دونو یو لویو عنوانونو کښ تقسیمیدے شی۔

(۱) شرک ختمول او دَ توحید عقیدے ته دعوت ورکول۔

(۲) دَ آخرت دَ عقیدے تبلیغ او ددے خیال تردید چه دَ دُنیا دَ ژوند نه روستو بیل ژوند نشته۔

(۳) دَ جاهلیتّ دَ توهماتو تردید۔

(۴) دَ اخلاقو هغه لوئ لوئ اصول ښودل چه اسلام په هغے باندِ دَ خلقو ژوند جوړول غواړی۔

(۵) دَ نبی صلی الله علیه وسلم او دَ اسلام خلاف دَ خلقو دَ اعتراضونو جوابونه۔

(۶) دو یر کوشش باوجود چه دَ دعوت څه فائده نیکاره نهٔ شوه نو دَ هغے دَ وجے نه چه دَ نبی صلی الله علیه وسلم او دَ عامو مسلمانانو په زړونو کښ کومه پریشانی پیدا شوی وه، په هغے باندِ تسلی ورکول۔

(۷) انکار کونکو او مخالفینو ته دَ هغوئ په غفلت او ناپوهتیا باندِ نصیحت، خبر دارے او یره۔

لیکن خطبه په داسے انداز نهٔ ده چه په یو یو عنوان باندِ ځان له ځان له بحث شوے دے. بلکه خطبه دَ دریاب پشان روانه ده او دا عنوانات پکښ په مختلفو طریقو سره په نوی نوی انداز کښ بیا بیا راځی او هر ځل په په نوی انداز کښ خبرے کیږی۔

**دَ مکے دَ ژوند حصے** | دَ قرآن نو ستونکی ته په اول ځل یو مکی سورة مخے له راغے نو ځکه دا مناسب ده چه مونږ دلته دَ مکی سورتونو تاریخی حالات بنه په تفصیل سره بیان کړو چه بیا مونږ دَ مکی سورتونو کوم تفسیر کوُو چه په هغے پوهیدل آسان شی۔

په مدنی سورتونو کښ خو دَ هر یو سورة دَ نازلیدو زمانه معلومه ده یا کنئ نو په لږ شان محنت سره معلومیدے شی. بلکه دَ مدنی سورتونو داکثرو آیتونو ځان له ځان له شان نزول په معتبرو روایاتو کښ ملاویږی. لیکن دَ مکی سورتونو په باره کښ زمونږ سره هغومره دَ معلوماتو تفصیلی ذرائع نشته. ډیر کم سورتونه یا آیتونه داسے دی چه دَ هغے دَ نازلیدو دَ زمانے په باره کښ صحیح او معتبر روایت ملاویږی. ځکه چه دَ هغه زمانے تاریخ دومره په تفصیلاتو سره نهٔ دے لیکلے شوے لکه څنګه چه دَ مدنی دور تاریخ لیکلے شوے دے. په دے وجه دَ مکی سورتونو په باره کښ مونږه دَ تاریخ په ځائے زیات ترا عتماد په هغے اشاراتو باندِ کوُو چه دَ سورة دَ موضوع، دَ مضمون، دَ انداز بیان او دَ مختلف روستو حالاتو نه معلومیږی. او دا ظاهره خبره ده چه دَ دے قسم دَ حالاتو په مدد سره دَ یو یو سورة او دَ یو یو آیت تاریخ، کال، یا دَ نازلیدو موقع معلومول ګران دی. دَ زیاتو نه زیات چه څه صحیح کیدے شی هغه صرف دا دی چه یو طرفته دَ مکی سورتونو دننه حالات، او بل طرفته دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ مکی ژوند تاریخ یو بل ته مخامخ کیدو او بیا دَ دواړو مقابله وکړوو

دا رائے قایم کړو چه کوم سورة دَکوم دور سره تعلق لري.

کله چه د دے تحقیق مطابق موږ د نبی صلی الله علیه وسلم په مکی ژوند باندِ نظر وکړو نو هغه په څلورو لویو لویو حصو کښ تقسیم شوے دے:

اولنۍ حصه، دَ پیغمبرۍ دَ شروع نه دَ نبوت دَ اعلان پورے، تقریباً درے کاله، چه په پټه پټه به پکښ خاصو خاصو خلقو ته دعوت ورکړے کیدو او دَ مکے عامو خلقو ته دَ هغے پته نه وه.

دویمه حصه، دَ نبوت دَ اعلان نه راواخله ترَ ظلم زیاتۍ او دَ فتنے (Persecution). دَ شروع کیدو پورے، تقریباً دوه کاله، چه پکښ اول مخالفت شروع شو، بیائے مخه بندول شروع کړل، بیا خبره خندا کانو، تهمتونو، مسخرو، الزامونو، کنځلو، دَ دروغو پروپیګنډے او مخالفه ډلے جوړولو ته ورسیده، او په آخر کښ په هغے مسلمانانو باندِ زیاتے شروع شو چه زیات غریبانان، کمزوری او بے تپوسه خلق وُو.

دریمه حصه، دَ فتنے دَ شروع (۵ سنه نبوی) نه راواخله ترَ ابوطالب او دَ حضرت خدیجه رضی دَ وفات (۱۰ سنه نبوی) پورے تقریباً پنځه شپږ کاله. په دے کښ مخالفت انتهائی سخت شو، ډیر مسلمانان دَ مکے دَ کافرانو دَ ظلم نه تنګ شوا و حبشے ته ئے هجرت وُکړو، دَ نبی صلی الله علیه وسلم او دَ هغه دَ خاندان او باقی مسلمانانو سره ئے پریکون دین او راشه درشه باندِ پابندی وُلګوله او په شعب ابی طالب کښ نبی سره دَ خپلو ملګرو راګیر کړے شو.

څلورمه حصه، دَ ۱۰ سنه نبوی نه راواخله ترو ۱۳ سنه نبوی پورے تقریباً درے کاله. دا انتهائی سخته زمانه وه. دَ نبی دَ پاره په مکه کښ ژوند تیرول مشکل وُو، طائف ته لاړو هلته ورته هم پناه ملاؤ نه شوه، دَ حج په موقع باندِ به ئے دَ عربو یو یو قبیلے ته دا اپیل کولو چه دَ اسلام دعوت قبول کړي او زما ملګري شي خو دَ هر طرفنه به ورته سخت جواب ملاویدو. دیخوا به دَ مکے والو دَ هغوئ دَ قتل یا دَ قید یا دَ وطن نه دَ شړلو مشورے کولے. آخر چه دَ الله په فضل سره انصارو اسلام قبول کړو او دَ هغوئ په دعوت باندِ هغه مدینے ته هجرت وُکړو.

په دے هر دور کښ چه کوم سورتونه نازل شوی دی دَ هغے مضمونونه او انداز بیان دَ بل دَور دَ سورتونو نه مختلف دے. په هغے کښ اکثر داسے اشارے وی چه دَ هغے نه دَ حالاتو پته لګیدے شي. دَ هر دور دَ حالاتو اثر دَ هغے دور په کلام کښ دَ ډیره حده پورے ښکاره معلومیږی. په دے علاماتو باندِ دَ اعتماد دَ وجه نه موږ به دَ هر مکی سورة په اول کښ دا وایو چه دا دَ مکے په کوم دور کښ نازل شوے دے.

---

# سُوۡرَةُ الۡاَنۡعَامِ مَكِّيَّةٌ

آیاتها ۱۶۵ — رکوعاتها ۲۰

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِیۡمِ

اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ الَّذِیۡ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالۡاَرۡضَ وَجَعَلَ الظُّلُمٰتِ وَالنُّوۡرَ ؕ ثُمَّ الَّذِیۡنَ كَفَرُوۡا بِرَبِّهِمۡ یَعۡدِلُوۡنَ ﴿۱﴾ هُوَ الَّذِیۡ خَلَقَكُمۡ مِّنۡ طِیۡنٍ ثُمَّ قَضٰۤی اَجَلًا ؕ وَاَجَلٌ مُّسَمًّی عِنۡدَهٗ

تعریف دَ هغه الله دَپاره دے چه زمکه او آسمانونه ئے جوړ کړی دی، رڼا او تیارے ئے پیدا کړی دی۔[1] بیا هم هغه خلق چه دَ دعوتِ حق نه انکاریان دی هغوی نور څوک دَ خپل رب سره برابره وی۔ داخو هم هغه دے چه تاسو ئے دَ خاورے نه پیدا کړئ[2]، بیائے ستاسو دَپاره دَ ژوند یوه موده مقرر کړه او یوه دویمه موده بل هم ده چه دَ هغه سره مقرره پرته[3] ده۔

[1] یادلرئ چه دا خبره دَ عربو هغه مشرکانو ته ده چه دا به ئے منله چه دَ زمکے او آسمانونو خالق الله دے، ورځ او شپه هغه راولی، او نمر او سپوږمئ هغه پیدا کړی دی۔ په هغوی کښ دَ هیچا دا عقیده نه وه چه دا کار دَ لات یا دَ هبل یا دَ عزّی یا دَ بل دیوتا دے۔ په دے وجه هغوی ته وائی چه اے ناپوهه خلقو، چه تاسو پخپله دا منئ چه زمکه او آسمانونه الله پیدا کړی دی او ورځ او شپه الله راولی نو دا نور څوک دی چه تاسو ورته سجدے کوئ، نذر ورته منئ، دعاگانے ترے غواړئ او خپل حاجتونه ورته اوړئ۔ (اوگوره سورة فاتحه حاشیه نمبر۲۔ سورة بقره حاشیه نمبر ۱۶۳)۔

دَ رڼا په مقابله کښ دَ تیرے دَپاره دَ جمع صیغه بیان کړے شوے ده، داځکه چه تیاره نوم دے دَ غیر رڼا او دَ غیر رڼا بے شمیره درجے دی۔ نو ځکه رڼا یوه ده او تیرے ډیرے دی۔

[2] دَ انسان دَ بدن ټول اجزاء دَ زمکے نه حاصلیږی، یو ذره پکښ هم بے دَ زمکے نه دَ بل څیز نشته، په دے وجه ئے وفرمائیل چه تاسو دَ خاورے نه پیدا کړے شوی یئ۔

[3] یعنی دَ قیامت وخت، چه دا مکښ روستو ټول انسانان به بیا ژوندی کیږی او دَ حساب دَپاره به دَ خپل رب په مخکښ وداریږی۔

ثُمَّ أَنتُمْ تَمْتَرُونَ ② وَهُوَ اللَّهُ فِي السَّمَاوَاتِ وَفِي الْأَرْضِ ۖ يَعْلَمُ سِرَّكُمْ وَجَهْرَكُمْ وَيَعْلَمُ مَا تَكْسِبُونَ ③ وَمَا تَأْتِيهِم مِّنْ آيَةٍ مِّنْ آيَاتِ رَبِّهِمْ إِلَّا كَانُوا عَنْهَا مُعْرِضِينَ ④ فَقَدْ كَذَّبُوا بِالْحَقِّ لَمَّا جَاءَهُمْ ۖ فَسَوْفَ يَأْتِيهِمْ أَنبَاءُ مَا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ⑤ أَلَمْ يَرَوْا كَمْ أَهْلَكْنَا مِن قَبْلِهِم مِّن قَرْنٍ مَّكَّنَّاهُمْ فِي الْأَرْضِ مَا لَمْ نُمَكِّن لَّكُمْ وَأَرْسَلْنَا السَّمَاءَ عَلَيْهِم مِّدْرَارًا وَجَعَلْنَا الْأَنْهَارَ تَجْرِي مِن تَحْتِهِمْ

---

خو بیا تاسو خلق یئ چه په شک کښې پراته یئ. دغه یو خدائے په آسمانونو کښې هم دے او په زمکه کښې هم، ستاسو پټ ښکاره هر حال ورته معلوم دے او کومه بدي یا نیکي چه ځان له ګټئ د هغې نه خبر دے.

د خلقو دا حال دے چه د خپل رب د نښو نه څه نښه کله دوئ ته راغلې ده نو دوئ ترې اړولې دے. او س چه ورته کوم حق راغے نو هغې ته ئے هم دروغ اُووے. ښه ده، په کوم شیز پورے چه دوئ د اوسه پورے ټوکې ټوقې کوي ډیر زر به د هغې په حقله څه خبرُونه دوئ ته راورسي[۴]. دوئ نه ګوري چه د دوئ نه مخکښې څومره داسې قومونه مونږه هلاک کړي دي چه د هغوئ په خپله خپله زمانه کښې د ورد وران وُو؟ هغوئ ته مونږه په زمکه کښې هغه اقتدار ورکړے وُو چه تاسو ته مونږ دے درکړے، په هغوئ باندې مونږه د آسمان نه ښهٔ بارانونه وَ ورول او لاندې مونږ وَلے وُ بهَولے،

---

[۴] دا هجرت طرف ته اشاره ده او د هجرت نه روستو چه کومے کامیابیانې اسلام ته په لاس حاصلیدونکې وې هغې ته اشاره ده. په کوم وخت کښې چه دا اشاره شوې وه په هغه وخت کښې نهٔ کافرانو دا ګمان کولے شو چه د څه قسم خبرونه به هغوئ ته رسي او نهٔ د مسلمانانو په ذهن کښې د دے خبرے څه خیال وُو. بلکه نبي صلی الله علیه وسلم په خپله هم د دے راتلونکو امکاناتو نه ناخبره وُو.

فَاَهْلَكْنٰهُمْ بِذُنُوْبِهِمْ وَاَنْشَاْنَا مِنْۢ بَعْدِهِمْ قَرْنًا اٰخَرِيْنَ ۝۶ وَلَوْ نَزَّلْنَا عَلَيْكَ كِتٰبًا فِيْ قِرْطَاسٍ فَلَمَسُوْهُ بِاَيْدِيْهِمْ لَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْۤا اِنْ هٰذَاۤ اِلَّا سِحْرٌ مُّبِيْنٌ ۝۷ وَقَالُوْا لَوْلَاۤ اُنْزِلَ عَلَيْهِ مَلَكٌ ؕ وَلَوْ اَنْزَلْنَا مَلَكًا لَّقُضِيَ الْاَمْرُ ثُمَّ لَا يُنْظَرُوْنَ ۝۸ وَلَوْ جَعَلْنٰهُ مَلَكًا لَّجَعَلْنٰهُ رَجُلًا وَّلَلَبَسْنَا عَلَيْهِمْ

(خو چه کله هغوئ دَ نعمت ناشکری وکړه نو) آخر دا چه مونږه هغوئ دَ خپلو ګناهونو په بدله کښ تباه کړل او دَ هغوئ پځائے مو دَ بل دَور قومونه راوُچت کړل.

اے پیغمبره، که چرے مونږه په تا باندِ په کاغذ کښ لیکلے شوے کتاب نازل کړے وے او خلقو هغه په خپلو لاسونو کتلے هم وے خو چا چه دَ حق نه انکار کړے دے هغوئ به بیا هم دا ویلے چه دا خو ښکاره جادو دے. دوئ وائی چه په دے نبی باندِ یوه فرښته ولے نازله نه کړے شوه.[۵] که چرته مونږ فرښته نازله کړے وے نو دَ اوس پورے به ټول فیصله شوی وه، بیا به دوئ ته هیڅ مُهلت نه وُو ورکړے شوے.[۶] او که چرے مونږه فرښته نازلوله نو هغه به مو هم دَ انسان په شکل کښ نازلوله او دوئ به مو هغه شبے په شک کښ غورزولی وُو

[۵] یعنی دَ کله نه چه دا سړے دَ خدائے دَ طرفه پیغمبر مقرر کړے شوے دے نو پکار دا وُو چه دَ هغه وخت نه یوه فرښته نازله شوے وے او خلقو ته ئے ویلے چه دا دَ خدائے پیغمبر دے، دَ دهٔ خبرے وَمنئ کنئ نو تاسو له به سزا ورکړے شی. دا ناپوهه اعتراض کونکی په دے خبره حیران وُو چه دَ زمکے او دَ آسمان مالک ډےشوک پیغمبر مقرر کړی او بیا دَ هغه داسے بے آسرے پریږدی چه کاڼی دِ پرے وریږی، او کنځل دِ ورته کیږی. دُوه مره لوئ بادشاه دَ سفیر سره که دَیر سپاهیان نه وُو نو کم از کم یوه فرښته خو ورسره په مَلګرتیا کښ پکار وه چه دَ دهٔ حفاظت ئے کولے، دَ دهٔ رُعب ئے په خلقو اَچَولے او دَ دهٔ دَ پیغمبری یقین ئے خلقو له ورکولے او په غیبی طریقے دَ دهٔ کار سرته رسولے.

[۶] دا دَ دوئ دَ اعتراض اولنے جواب دے. دَ دے مطلب دا دے چه دَ ایمان راوړلو او دَ عمل دَ درستکولو دپاره چه تاسو ته کوم مهلت ملاوُ شوے دے نو دا خو تر هغه وخته پورے دے تر څو پورے چه حقیقت پټ وی. او کله چه حقیقت ښکاره شو بیا به دَ مُهلت وخت ختم وی. دَ حقیقت ښکاره کیدو نه روستو خو به صرف حساب اخستل باقی وی. ځکه چه دَ دُنیا ژوند ستاسو دَپاره دَ امتحان یو ځائے دے، او امتحان دَ دے خبرے دے چه تاسو حقیقت ته بغیر دَ لیدو نه دَ عقل او دَ فکر په صحیح استعمال سره رسیدے شئ او که نه، او بیا حقیقت

مَّا يَلْبِسُونَ ﴿٩﴾ وَلَقَدِ اسْتُهْزِئَ بِرُسُلٍ مِّن قَبْلِكَ فَحَاقَ بِالَّذِينَ سَخِرُوا مِنْهُم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِئُونَ ﴿١٠﴾ قُلْ سِيرُوا فِي الْأَرْضِ ثُمَّ انظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُكَذِّبِينَ ﴿١١﴾ قُلْ لِّمَن مَّا فِي السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ ۖ قُل لِّلَّهِ ۚ

لکه څنګه چه اوس په شک کښ مُبتلا دی.[۶]

اے محمدؐ، ستا نه مخکښ هم په ډیرو رسولانو پورے ټوقے شوی دی، خو آخر په دغه ټوقو کونکو باندې هغه حقیقت راغے چه هغوئ به ورپورے ټوقے کولے.[۷] دوئ ته اُووایه، لږ شان په زمکه کښ وګرځئ او وګورئ چه د دروغ ګڼونکو څه انجام شوے دے.[۸]

د دوئ نه تپوس وکړه، چه په آسمانونو او په زمکه کښ څه دی دا د چا دی؟— ته اووایه چه ټول هر څه د الله دی[۹]

نه د رسیدونه روستو په خپل نفس او خواهشاتو باندې قابو ساتلے شئ او که نه، او خپل عملونه د حقیقت مطابق ټیک کولے شئ او که نه. دا دے امتحان د پاره حقیقت پټ پاتے کیدل یو لازمی شرط دے، او ستاسو د دُنیا ژوند، چه هغه په اصل کښ د امتحان وخت دے، تر هغه وخته پورے قایم پاتے کیدے شی ترڅو پورے چه حقیقت پټ وی. هرکله چه حقیقت ښکاره شو نو دا مُهلت به ضرور ختمیږی او د امتحان په ځائے به د نتیجے وخت راشی. نو دا تاسو چه کومه مطالبه کوئ د هغے په جواب کښ دا ممکنه نه ده چه تاسو ته فرښته په اصلی شکل کښ ښکاره کړے شی، ځکه چه الله تعالیٰ ستاسو د امتحان وخت لا ختمول نه غواړی. (وګوره سورة بقرة حاشیه نمبر ۲۲۸).

[۶] دا د هغوئ د اعتراض دوېم جواب دے. یو خو دا ده چه فرښته په خپل اصلی غیبی شکل کښ خلقو ته راشی لیکن دے په باره کښ دا اوویلے شو چه لا د دے وخت نه دے راغلے. اوس پاتے شوه دا چه فرښتے د انسان په شکل کښ راشی نو هم هغوئ به په شک کښ یئ چه دا د الله د طرفنه دی او که نه دی لکه څنګه چه د محمد صلی الله علیه وسلم په باره کښ په شک کښ یئ چه دا د الله د طرفنه دے او که نه دے.

[۷] یعنی د تیرو شوو قومونو د آثار قدیمه او د هغوئ د تاریخی قیصونه به درته دا ثبوت ملاؤ شی چه کوم قومونه د صداقت او د حقیقت نه مخ اړوی او په باطل پرستئ باندې زور ورکوی نو د هغوئ څنګه هیبتناک انجام شو.

[۹] دا د خبرے کولو یوه نرمه طریقه ده. اول حکم وشو چه د هغوئ نه تپوس وکړه چه دا د زمکے او د آسمانونو څیزونه د چا دی. تپوس کونکی دا تپوس وکړو او د جواب په انتظار کښ ودریدو. ځکه چه تپوس شوے خلق هغوئ د دے خبرے قائل دی چه هر څه د الله دی، لیکن هغوئ نه خو د غلط جواب ورکولو همت کولے شی، او نه صحیح جواب ورکول غواړی، ځکه که صحیح جواب ورکوی نو د دے نه زیریږی چه دا څو

كَتَبَ عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ ۭ لَيَجْمَعَنَّكُمْ اِلٰى يَوْمِ الْقِيٰمَةِ لَا رَيْبَ فِيْهِ ۭ اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْٓا اَنْفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿١٢﴾ وَلَهٗ مَا سَكَنَ فِي الَّيْلِ وَالنَّهَارِ ۭ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿١٣﴾ قُلْ اَغَيْرَ اللّٰهِ اَتَّخِذُ وَلِيًّا فَاطِرِ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ وَهُوَ يُطْعِمُ وَلَا يُطْعَمُ ۭ قُلْ اِنِّىْٓ اُمِرْتُ اَنْ اَكُوْنَ اَوَّلَ مَنْ اَسْلَمَ

هغه دَ رحم وکرم طريقه په ځان باندې لازم کړې ده (دا دے وجے نه هغه تاسو ستاسو په نافرمانو او سرکشو باندې زر نه نيسی)، دَ قيامت په ورځ به ضرور تاسو ټول را جمع کوی، دا بالکل يو بے شکه بے شبے حقيقت دے، خو کومو خلقو چه پخپله خپل ځان دَ تباهئ په خطره کښې اچولے دے هغوئ دا نه مني۔

دَ شپے په تياره کښې او دَ ورځے په رڼا کښې چه څه ؤ سيږی، هغه ټول دَ الله دی او هغه هر څه اوری او په هر څه پوهه دے۔ ورته ؤوايه، چه آيا الله پرېږدم او بل څوک ځان له سرپرست جوړ کړم؟ هغه الله پرېږدم چه دَ زمکے او دَ آسمانونو خالق دے او چه روزی ورکوی، روزی اخلی نه؟[۱۰] ورته ؤوايه، چه ماته خو دا حکم راکړے شوے دے چه زۀ دَ ټولو نه اول دَ هغه وړاندې سر ښکته کړم (او دا تاکيد راته شوے دے چه څوک شرک کوی نو کوی دی)

دَ شرک دَ عقيدے نه خلاف راځئ۔ نو د دے وجے نه هغوئ هيڅ جواب نه ورکوی۔ پس دَ هغے دا حکم ؤشو چه ته ورته پخپله ؤوايه چه دا هر څه دَ الله دی۔

[۱۰] په دے کښې يو باريک اعتراض دے۔ مشرکانو چه دَ الله نه بغير ځان له څوک خدايان جوړ کړی دی هغه ټول خپلو بندګانو له دَ رزق ورکو ځائے اُلټا دَ هغوئ نه دَ رزق اغستلو محتاجه دی۔ يو فرعون هم دَ خپلے خدائئ شان نه شی ساتلے ترڅو چه دَ هغه بندګان هغه له ټيکس او نذرانے نه ورکوی۔ دَ يو قبر والا دَ بزرګئ شان تر هغے پورے نه شی جوړيدلے ترڅو چه دَ هغه ملنګان دَ هغه قبر په شاندار طريقه جوړ نه کړی۔ دَ ديوتا دربار تر هغے نه شی ښائسته کيدے ترڅو چه دَ هغه پجاری (عبادت کونکے) دَ هغه بُت جوړ نه کړی او بيلئے په يو عاليشان مندر کښې کيښېږدی او دَ ښائست په سامانونو ئے ښائسته نه کړی۔ ټول دَ دروغو بهے وسه خدايان پخپله دَ خپلو بندګانو محتاج دی۔ صرف يو دَ جهانونو بادشاه هغه حقيقی خدائے دے چه دَ هغه خدائی دَ هغه په خپل طاقت قائمه ده او چه دَ چا مدد ته محتاجه نه دے بلکه ټول هغه ته محتاج دی

وَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿١٤﴾ قُلْ اِنِّيْٓ اَخَافُ اِنْ
عَصَيْتُ رَبِّيْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ﴿١٥﴾ مَنْ يُّصْرَفْ عَنْهُ
يَوْمَئِذٍ فَقَدْ رَحِمَهٗ ؕ وَذٰلِكَ الْفَوْزُ الْمُبِيْنُ ﴿١٦﴾ وَاِنْ
يَّمْسَسْكَ اللّٰهُ بِضُرٍّ فَلَا كَاشِفَ لَهٗٓ اِلَّا هُوَ ؕ وَاِنْ يَّمْسَسْكَ
بِخَيْرٍ فَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ ﴿١٧﴾ وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهٖ ؕ
وَهُوَ الْحَكِيْمُ الْخَبِيْرُ ﴿١٨﴾ قُلْ اَيُّ شَيْءٍ اَكْبَرُ شَهَادَةً ؕ قُلِ اللّٰهُ ۙ
شَهِيْدٌۢ بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ ۫ وَاُوْحِيَ اِلَيَّ هٰذَا الْقُرْاٰنُ لِاُنْذِرَكُمْ

خو ته په مشرکانو کښې په هيڅ حال مه شامليږه. ورته ووايه، که چرې ما د خپل رب نافرمانی وکړه نو ويريږم چه ماله به د لويې (خوفناکې) ورځې سزا درکړې کيږي. په دغه ورځ چه څوک د سزا نه بچ شو په هغه باندې الله لوئ رحم وکړو او دا شانداره کاميابي ده. که چرې الله تا ته څه نقصان دررسوي نو د هغه نه بغير بل هيڅوک نشته چه تا د هغې نقصان نه بچ کړې شي، او که چرې هغه تا سره څه ښيګړه وکړي نو هغه په هر څيز قادر دے. هغه په خپلو بندګانو باندې پوره اختيار لري او پوهه او خبردار دے.

د دوئ نه تپوس وکړه چه د چا ګواهي د ټولو نه لويه ده؟ —— ورته ووايه، چه زما او ستاسو په منځ کښې الله ګواه دے[11]، او دا قرآن ما ته د وحې په ذريعه رالېږلے شوے دے د پاره د دے چه تاسو او چه چا ته دا ورسي،

[11] يعني په دے خبره باندې ګواه دے چه زه د هغه د طرفنه رالېږلے شوے يم او زه چه څه وايم د هغه په حکم ئې وايم.




بِهٖ وَمَنْۢ بَلَغَ ؕ اَئِنَّكُمْ لَتَشْهَدُوْنَ اَنَّ مَعَ اللّٰهِ اٰلِهَةً اُخْرٰى ؕ
قُلْ لَّاۤ اَشْهَدُ ۚ قُلْ اِنَّمَا هُوَ اِلٰهٌ وَّاحِدٌ وَّاِنَّنِىْ بَرِىْٓءٌ مِّمَّا
تُشْرِكُوْنَ ﴿۱۹﴾ اَلَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْرِفُوْنَهٗ كَمَا يَعْرِفُوْنَ
اَبْنَآءَهُمْ ۘ اَلَّذِيْنَ خَسِرُوْۤا اَنْفُسَهُمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ﴿۲۰﴾ وَ
مَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ كَذَّبَ بِاٰيٰتِهٖ ؕ اِنَّهٗ

هغوئ ته ول خبردار کړم - آیا واقعی تاسو داګواهی ورکولے شئ چه د الله سره نور خدایان هم شته[12] ؟ ورته ووایه، زهٔ خو داګواهی هرګز نشم کولے[13] - ووایه چه خدائے خو یو هغه یو دے او په کوم شرک کښ چه تاسو مبتلا یئ زهٔ د هغے شرک نه قطعاً آزاد یم. کومو خلقو له چه مونږ کتاب ورکړے دے هغوئ دا خبره داسے بے شکه بے شبے پیژنی لکه څنګه چه د خپلو ځامنو په پیژندګلو کښ ورته څه شک نه راځی[14] - خو چا چه خپل ځان پخپله په نقصان کښ اچولے دے هغوئ دا نهٔ منی. او د هغه چا نه به زیات ظالم څوک وی چه په الله باندې د دروغو بهتان ولګوی،[15] یا د الله نښو ته دروغ ووائی؟[16] یقیناً داسے

[12] د ګواهئ ورکولو د پاره صرف قیاس یا ګمان کافی نهٔ دے بلکه د دے د پاره علم ضروری دے چه د هغے په وجه سړے په یقین سره داُووئیلے شی چه کار داسے دے - نو د تپوس مطلب دادے چه آیا واقعی تاسو ته دا علم شته چه په دے جهان کښ د خدائے نه بغیر ہل څوک هم داسے بادشاه او اختیار والا شته چه هغه د بندګئ او د عبادت لائق دی؟

[13] یعنی که تاسو هسے د دروغو ګواهی کوئ نو وکړئ، زهٔ خو داسے ګواهی نشم کولے۔

[14] یعنی چا سره چه د آسمانی کتابونو علم دے هغوئ دا حقیقت بیشکه بے شُبے پیژنی چه خدائے یو دے او په خدائی کښ ورسره څوک شریک نشته. لکه څنګه چه د چا بچی په ډیرو بچو کښ یو ځائے ولاړ وی نو هغه به یکښ خپل بچے ګورایه پیژنی، دغه شان چه څوک د کتاب الٰهی علم لری نو هغوئ د خدائی په باره کښ د خلقو د بے شمیره مختلفو عقیدو او نظریو په منځ کښ بے د څه شک شُبے نه دا پیژنی چه حق کوم یو دے -

[15] یعنی دا دعوے وکړی چه د خدائے سره په خدائی کښ نور هم ډیر هستئ شریکه دی، د خدائی صفتونه یکښ شته دے، د خدائے پشان اختیارات لری، او د دے لائق دی چه انسان ئے بندګی اختیار کړی. دا هم په الله باندې بهتان دے چه څوک دا ووائی چه خدائے پاک ځان له فلانے او فلانے خاص ملګری مقرر کړی دی. او الله دا حکم کړے دے، یا دا چه الله په دے دا منع دے چه د خدائی د صفتونو نسبت دِ دوئ ته وُشی او د خدائے پشان تعلق دِ ورسره وُساتلے شی۔

لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۲۱﴾ وَيَوْمَ نَحْشُرُهُمْ جَمِيْعًا ثُمَّ نَقُوْلُ لِلَّذِيْنَ اَشْرَكُوْٓا اَيْنَ شُرَكَآؤُكُمُ الَّذِيْنَ كُنْتُمْ تَزْعُمُوْنَ ﴿۲۲﴾ ثُمَّ لَمْ تَكُنْ فِتْنَتُهُمْ اِلَّآ اَنْ قَالُوْا وَاللّٰهِ رَبِّنَا مَا كُنَّا مُشْرِكِيْنَ ﴿۲۳﴾ اُنْظُرْ كَيْفَ كَذَبُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ وَضَلَّ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿۲۴﴾ وَمِنْهُمْ مَّنْ يَّسْتَمِعُ اِلَيْكَ ۚ وَجَعَلْنَا

ظالمان هیڅکله کامیابي نشي موندلے۔

په کومه ورځ چه به موږ دوئ ټول را جمع کړو او د مشرکانو نه به تپوس وکړو چه اوس ستاسو هغه شریکان څه شو چه تاسو خدایان ګڼړل نو هغوئ به دده (دروغو) نه بغیر بل څه شرارت (فتنه) نشي راپورته کولے چه ذبه وائي اے زموږ پروردګاره، په تا مو دِ قسم وي موږ هرګز مشرکان نه وُو۔ وګوره په دغه وخت به دوئ څنګه پخپل ځان باندې پخپله دروغ جوړ کړي، او هلته به تر هغه خپل د دروغو خدایان ټول ورک شي۔

په دوئ کښ څنے داسے خلق دي چه ستا خبرو ته غوږ نیسي خو حال دا دے چه موږ ه

۱۴ له د خدائے د نبوت مراد هغه نبیهم دي چه پخپله په انسان کښ او په ټول کائنات کښ خورے دي، او هغه نښے ترِم مراد دي چه د پیغمبرانو په کردار او د هغوئ په کارنامو کښ ظاهر شوي دي، او هغه هم چه په آسماني کتابونو کښ پیش کړے شوي دي۔ دا ټولے نښے بي یو حقیقت ته اشاره کوي چه په دے ټول عالم کښ صرف یو خدائے دے او باقي ټول بندګان دي۔ اوس چه ددے ټولو نښو په مقابله کښ څوک د حقیقي شهادت نه بغیر، د علم او د تجربے نه بغیر، صرف په قیاس او په ګمان یا د مشرکانو د تقلید په بنا باندې، نور څوک د خدائي د صفتونو حقدار ګرزوي، نو ښکاره خبره ده چه د هغه نه زیات ظالم بل څوک نشي کیدے۔ هغه په حقیقت او په صداقت باندې ظلم کوي، هغه په خپل نفس باندې ظلم کوي او د کائنات په هر هغه څیز باندې ظلم کوي چه دے ورسره د دے غلطے نظریئے په بنیاد باندې څهٔ معامله کوي۔

عَلٰى قُلُوْبِهِمْ اَكِنَّةً اَنْ يَّفْقَهُوْهُ وَفِيْٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرًا ۭ وَاِنْ يَّرَوْا كُلَّ اٰيَةٍ لَّا يُؤْمِنُوْا بِهَا ۭ حَتّٰٓي اِذَا جَاۗءُوْكَ يُجَادِلُوْنَكَ يَقُوْلُ الَّذِيْنَ كَفَرُوْٓا اِنْ هٰذَآ اِلَّآ اَسَاطِيْرُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۲۵﴾

دَ هغوئ په زړونو بانډې پردې اچولې دي دَ هغې په وجه هغوئ په هغې هيڅ نۀ پوهيږي او دَ هغوئ په غوږونو کښې مو دروند والے اچولے دے (چه هر څه اوري) او بيا هم هيڅ نۀ اوري)۔[17] اوکه هر څو مره نښې اُ ووينې خو ايمان به پرې را نوړي۔ حتیٰ خو دا دے چه کله دوئ تا له راشي او جګړې درسره کوي نو په دوئ کښې چه کوم خلقو دَ نۀ منلو فيصله کړې ده هغوئ (دَ ټولو خبرو اوريدو نه روستو) دا وائي چه دا خو بل څه نۀ دي بس هغه پخوانئ قيصې دي۔[18]

[17] دلته په دے خبره غور پکار دے چه دا په دُنيا کښې هر څه دَ خاص قاعدے او قانون لاندې کيږي، دَ دے نسبت الله ځان ته کړے دے، ځکه چه په حقيقت کښې دَ قاعدے او دَ قانون جوړونکے الله دے او ددے قانون لاندې چه څه کيږي هغه دَ الله په اجازت او دَ هغه په اراده سره کيږي۔ دا دَ حق نه منکرين ضديان چه سره دَ هر څه اوريدو هيڅ نۀ اوري او چه حقه خبره ئے زړۀ ته نۀ کوزيږي نو دا دَ هغوئ دَ خپل ضد او دَ طرفدارۍ او په يو حالت بانډې دَ ټينګ وسيدو نطري نتيجه ده۔ دَ فطرت قانون (يعني عامه قاعده) دا ده چه څوک په ضد کښې راشي دَ پاک او دَ ريښتيني انسان پشان په نيغه لار روان نۀ شي، نو بيا دَ هغه دَ زړۀ دروازے دَ هر هغه ريښتياؤ دَ پاره بندے شي کوم چه دَ هغه دَ خواهشاتو نه خلاف وي۔ دا خبره چه موږ چا ته کوؤ نو وايو چه دَ فلانئ دَ زړۀ دروازے بندے دي۔ او هم دا خبره چه کله الله بيانوي نو هغه وائي چه ددۀ دَ زړۀ دروازے موږ بندے کړې دي۔ ځکه چه موږ خو صرف واقعه بيانوؤ او الله تعالیٰ دَ واقعے حقيقت ښکاره کوي۔

[18] دَ ناپوهو خلقو دا عامه قاعده وي چه کله ئے څوک حق طرفته راغواړي نو وائي چه تاپکښې نوے خبره څه وکړه، دا خو ټول هغه پخوانئ خبرے دي چه موږ اَورو دا اَورو۔ ته به وئے چه ددے بيوقوفانو دا خيال دے چه دَ حق دَ پاره ګنې دا خبره ضروري ده چه هغه دِ نوے وي او کومه خبره چه زړه وي هغه حق نۀ وي۔ او حال دا دے چه حق خو په هره زمانه کښې يو دے او هميشه به يو وي۔ کوم خلقو ته چه الله علم ورکړے دے او هغوئ انسانانو ته دَ نيغې لارے ښودنو دَ پاره را والاړ شوي دي هغوئ ټول دَ پخوانئ زمانے راسې غه يو حق خلقو ته پيش کوي۔ او په راتلونکي وخت کښې چه څوک دَ الله دَ علم دَ خزانے نه څه پيش کوي هغه به هم دَ دغه زړے خبرے کرار کوي۔ البته نوے خبره صرف هغه خلق راويستلے شي چه دَ خدائے دَ رڼا نه محروم وي او حقيقت نشي ليدلے او په خپل خيال کښې څه خبرے را جوړے کړي او هغه دَ حق په نوم بانډې پيش کوي۔ لودے قسم خلق هغه نا اشنا خبره کولے شي چه دَ هغوئ نه مخکښې په دُنيا کښې چا نۀ وي کړې۔

وَهُمْ يَنْهَوْنَ عَنْهُ وَيَنْـَٔوْنَ عَنْهُ ۚ وَإِن يُهْلِكُونَ إِلَّآ أَنفُسَهُمْ وَمَا يَشْعُرُونَ ﴿٢٦﴾ وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذْ وُقِفُوا عَلَى النَّارِ فَقَالُوا يَٰلَيْتَنَا نُرَدُّ وَلَا نُكَذِّبَ بِـَٔايَٰتِ رَبِّنَا وَنَكُونَ مِنَ الْمُؤْمِنِينَ ﴿٢٧﴾ بَلْ بَدَا لَهُم مَّا كَانُوا يُخْفُونَ مِن قَبْلُ ۖ وَلَوْ رُدُّوا لَعَادُوا لِمَا نُهُوا عَنْهُ وَإِنَّهُمْ لَكَٰذِبُونَ ﴿٢٨﴾ وَقَالُوٓا إِنْ هِىَ إِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوثِينَ ﴿٢٩﴾ وَلَوْ تَرَىٰٓ إِذْ وُقِفُوا عَلَىٰ رَبِّهِمْ ۚ

هغوی د دے حق قبلو نه خلق منع کوی او چپله هم ترلرے لرے تختی. (دَ هغوی دا خیال دے چه په دے چل تا ته هغوی نقصان در رسوی) او حال دا دے چه هغوی چپله خپل ځان تباه کوی خو هغوی ته د دے پته نه لګی. کاش چه تا دَ دوی دَ هغے وخت حالت لیدلے شو چه کله به دوی دَ دوزخ په غاړه وَدرولے شی. هغه وخت به دوی وَوائی چه افسوس څه شکل دا سے وَ چی مونږه بیا واپس د نیا ته اولیږلے شو او د خپل رب نښے دروغ اُو نه ګڼو او به ایمان راوړونکو خلقو کښے شامل شو په حقیقت کښے هغوی به دا خبره صرف په دے وجه کوی، چه په دغه وخت کښے به دوی ته هغه حقیقت ښکاره شوے وی چه په کوم باندے دوی هغوی پرده اچولی وه[۱۹]، او که نه چیرے دوی واپس ستیر شوی ژوند ته ولیږلے شو نو بیا به هغه کار نه کوی چه دَ کومو نه منع کړے شوی دی، دوی خو دی دروغژن (دَ دوزخ نه دَ وتلو دَ پاره به هم دروغ وائی). نن دا خلق وائی، ژوند چه څه دے هغه خو هم بس دا دَ دُنیا ژوند دے او مونږ به دَ مرګ نه روستو دوباره هیچرے را ژوندی نه کړے شو. کاش چه تا هغه حالت ولیدلے څه وخت چه دوئ دَ خپل رب مخے ته ودرولے شی.

[۱۹] یعنی دَ دوی دا دے وینا وجه به دا نه وی چه عقل ئے صحیح فیصله وکړه یا ګنی په ریښتیا ئے کښے تبدیلی راغله بلکه دا به ځکه وائی چه حق به چپله سترګو اُو وینی، او دا خو ښکاره خبره ده چه کله حق ظاهر شی نو بیا خو دَ پوخ نه پوخ کافر هم دَ هغے نه انکار نشی کولے۔

قَالَ اَلَيْسَ هٰذَا بِالْحَقِّ ؕ قَالُوْا بَلٰى وَرَبِّنَا ؕ قَالَ فَذُوْقُوا الْعَذَابَ بِمَا كُنْتُمْ تَكْفُرُوْنَ ﴿٣٠﴾ قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِلِقَآءِ اللّٰهِ ؕ حَتّٰٓى اِذَا جَآءَتْهُمُ السَّاعَةُ بَغْتَةً قَالُوْا يٰحَسْرَتَنَا عَلٰى مَا فَرَّطْنَا فِيْهَا ۙ وَهُمْ يَحْمِلُوْنَ اَوْزَارَهُمْ عَلٰى ظُهُوْرِهِمْ ؕ اَلَا سَآءَ مَا يَزِرُوْنَ ﴿٣١﴾ وَمَا الْحَيٰوةُ الدُّنْيَآ اِلَّا لَعِبٌ وَّلَهْوٌ ؕ وَلَلدَّارُ الْاٰخِرَةُ

په هغه وخت کښې به تر الله پورې وکړي چه "آیا دا حقیقت نه دے؟" دوئ به ووائي چه "هو، اے زمونږ ربه دا حقیقت دے." نو الله به ورته وفرمائي چه "ښه ده، او س د دے حقیقت نه د انکار کولو په بدله کښې د عذاب مزه وڅکئ." ع

په نقصان کښې پریوتل هغه خلق چه د خدائے سره د خپل ملاقات خبره دروغ وګڼله. څه وخت چه پرِ ناساپه هغه ساعت راشي نو دا خلق به ووائي "افسوس دے! زمونږ نه په دے معامله کښې څنګه کوتاهي وشوه" او د هغوئ به دا حال وي چه په خپلو شا کانو باندې به ئے د خپلو ګناهونو بیټې بار کړې وي. ګورئ! څنګه خراب بیټې دي چه دوئ راغستې دي. د دُنیا ژوند خو یوه لوبه او یوه تماشه ده،[20] په حقیقت کښې د آخرت مقام

[20] د دے دا مطلب نه دے چه د دُنیا په ژوند کښې هیڅ وقعت نشته او دا دُنیا صرف د لوبو تماشو په طور جوړه شوې ده. په اصل کښې د دے مطلب دا دے چه د آخرت د همیشه ژوند په مقابله کښې دا ژوند دا سے دے لکه چه څوک د لږ ساعت د پاره په لوبو زړه خوشحاله کړي او بیا خپل اصلي کار له واپس لاړ شي. دا ځکه د دُنیا ژوند ته په دے وجه لوبه او تماشے ویلے شوي دي چه دلته حقیقت پټ دے او کوم خلق چه ظاهر ته ګوري د هغوئ د پاره د دوکه کید و ډیر اسباب موجود دي او څوک چه په دوکه شي او د حقیقت نه خلاف روان شي نو هغه بیا دا سے عجیبه عجیبه کارونه کوي چه د دُنیا ژوند ئے هسے لوبه او تماشه جوړه کړي. مثلاً چه څوک لته بادشاه شي نو هغه بالکل د ډرامے د هغه بادشاه په شان وي چه تاج په سر کړي او دا سے حکم کوي لکه چه دے واقعي بادشاه وي. حالانکه د حقیقي بادشاهۍ بوئ پرِے هم نه وي لږیدلے. هغه د ډرامے د جوړونکي په یوه اشاره باندې ختمیږي. هم دا قسم تماشے په دُنیا کښې هر طرف ته کیږي. چرته د یو ولي یا د یو بُت د دربار نه حاجتونه پوره کیږي، حالانکه هلته د حاجت پوره کولو هیڅ طاقت موجود نه وي. چرته څوک دا کمال ظاهروي چه زه په غیبو پوهیږم حالانکه هلته د غیبو د علم هډو څه امکان نه وي. یو ځائے کښې څوک وائي چه زه خلقو له رزق ورکوم حالانکه هغه غریب پخپله د رزق د پاره د بل چا محتاج دے. یو ځائے کښې چرته چا ځان ته د عزت ورکولو والا او د ذلت ورکولو والا، او د نفعے او د نقصان رسولو والا جوړ کړے دے

خَيْرٌ لِّلَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ ۭ اَفَلَا تَعْقِلُوْنَ ﴿۳۲﴾ قَدْ نَعْلَمُ اِنَّهٗ لَيَحْزُنُكَ الَّذِيْ يَقُوْلُوْنَ فَاِنَّهُمْ لَا يُكَذِّبُوْنَكَ وَلٰكِنَّ الظّٰلِمِيْنَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ يَجْحَدُوْنَ ﴿۳۳﴾ وَلَقَدْ كُذِّبَتْ رُسُلٌ مِّنْ قَبْلِكَ فَصَبَرُوْا عَلٰى

دَ هغې خلقو دَ پاره بهتر ده چه د نقصان نه ځان بچ کول غواړي، آيا بيا به هم تاسو دَ عقل نه کار نه اخلئ؟-

اے محمد ﷺ، موږ ته معلومه ده چه دا خلق کومې خبرې کوي په هغې تا له خفګان درځي، ليکن دا خلق تا ته دروغژن نه وائي بلکه دا ظالمان په اصل کښ دَ الله دَ آيتونو نه انکار کوي.[۲۱] ستا نه رومبے هم ډير رسولان دروغ ګڼړلے شوي دي، خو هغوئ ته چه خلقو دَ دروغو نسبت ؤکړو او تکليفونه ورؤرسول نو هغوئ په هغې باندې

---

او دَ خپلې لوئي دا سے شهرت کوي لکه چه ده دَ خواږ شا مخلوقاتو خدائے دي، حالانکه دَ بندګئ داغ بچپله دَ هغه په تندي لګيدلے وے او چه تست ورله لږه شان ډيکه ورکړي نو دَ غرور دَ لوړ ځائے نه ئے دَ هغې خلقو په خپو کښ راغورزارکړي چه دَ پرونه پورے ئے پرې خدائي کوله. دا هرڅه لوبے چه دَ دُنيا په دے ژوند کښ کيږي، دَ مرګ دَ براتلو سره به بالکل ختم شي او آخوا په انسان هغه جهان ته ورځي چه هرڅه به پکښ دَ حقيقت مطابق وي او هلته انسان ته به دا ؤ ښودلے شي چه دَ دُنيا دَ دوکو نه ئے څومره حقيقت دَ ځان سره راوړے دے چه دلته پرې ددهٔ دَ حق تله درنه شي.

[۲۱] ـه حقيقت دا دے چه ترڅو پورے محمد صلى الله عليه وسلم دَ الله آيتونه خلقو ته اورول نهٔ وو شروع کړي نو ټولو خلقو به هغه ته امين او صادق وے او هرچا دَ هغه په رښتيولئ باندې بروسه لرله. دروغژن ئے ورته هغه وخت کښ اُووے کله چه هغهٔ دَ الله دَ طرفنه پيغام رسول شروع کړل. په دے دويم دور کښ هم دَ هغه سخت مخالف هيڅوک دا الزام نهٔ دے لګولے چه هغه دَ دُنيا په معامله کښ چرے دروغ ويلي دي. هغوئ صرف ستا دَ نبوت حيثيت ته دروغ وائي. دَ هغهٔ دَ ټولو نه لوئ دشمن ابوجهل ؤ. او دَ حضرت علی رض نه روايت دے چه يو ځلے هغهٔ بچپله دَ نبي صلى الله عليه وسلم سره خبره کوله او ويلئے چه "انا لا نكذبك ولكن نكذب ما جئت به" موږ تا ته دروغژن نهٔ وايو، خو څه چه ته پيش کوے هغې ته دروغ وايو". دَ جنګ بدر په موقع باندې اَخنس بن شريق ځان له دَ ابوجهل نه تپوس ؤکړو چه دلته زما او ستا نه بغير بل څوک نشته، رښتيا ؤوايه چه محمد ته رښتيا ګڼړے که دروغژن؟ هغهٔ جواب ورکړو چه "په خدائے مې دِ قسم وي محمد ر رښتينے سړے دے، ټول عمر ئے چرته دروغ نهٔ دي ويلي، خو چه جنډه، دَ اوبو څکولو کار او دَ دروازے واک اختيار او نبوت

مَا كُذِّبُوْا وَاُوْذُوْا حَتّٰۤى اَتٰىهُمْ نَصْرُنَا ۚ وَلَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِ اللّٰهِ ۚ وَلَقَدْ جَآءَكَ مِنْ نَّبَاِی الْمُرْسَلِیْنَ ﴿۳۴﴾ وَاِنْ كَانَ كَبُرَ عَلَیْكَ اِعْرَاضُهُمْ فَاِنِ اسْتَطَعْتَ اَنْ تَبْتَغِیَ نَفَقًا فِی الْاَرْضِ اَوْ سُلَّمًا فِی السَّمَآءِ فَتَاْتِیَهُمْ بِاٰیَةٍ ؕ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ لَجَمَعَهُمْ عَلَى الْهُدٰى

صبر وکړو، تر دې پورې چه هغوئ ته زمونږ مدد ورورسید وه دا طاقت په هیچا کښې نشته چه د الله خبرې بدلې کړي،[۲۲] او د مخکنو پیغمبرانو سره چه څه شوي دي د هغې خبرونه هم تا ته دررسیدلي دي. بیا هم که ته د دې خلقو دا مخ اړول برداشت کولې نه شې نو که وس دې رسي نو په زمکه کښې څه سرنګ ولټوه یا آسمان ته اندرپایه ولګوه او دوئ له د څه نښې راوړلو کوشش وکه.[۲۳] که چرې الله غوښتلې نو دوئ ټول به ئې په هدایت باندې راجمع کولې شو،

هرڅه د بنی قصی په حصه کښې راشي نو ته ئې ووایه چه د باقي قریشو سره څه پاتې شو؟ دغه وجه ده چه د لته الله تعالیٰ خپل نبي له تسلي ورکوي چه د دروغو نسبت په اصل کښې تاته نه بلکه ماته کیږي، او چه زه صبر او برداشت کوم او مهلت ورکوم نو ته ولې پریشانه کیږې.

[۲۲] یعنی الله چه د حق او د باطل د جګړې د پاره کوم قانون جوړ کړې دے د هغې د بدلولو طاقت په هیچا کښې نشته. د حق مرسته کونکو د پاره دا ضروري ده چه ډیره موده په سختو سختو آزمینتو کښې پاتې وي د خپل صبر د خپلې رښتینولئ، د خپلې قربانئ او د خپل عشق، د خپل ایمان د مضبوطیا او په خدائے باندې د توکل امتحان ورکړي. د مصیبتونو او د سختو د دور نه تیرشي او دا سې صفتونه ځان کښې پیدا کړي چه هغه پرڅه سختته لار کښې به تازه کیږي. او اول اول د ښو اخلاقو او د نیک عمل په سبب په جاهلیت باندې فتح حاصله کړي. دغه شان چه په دے طریقه هغوئ د ټولو نه زیات صالحان نیکان خلق شي نو بیا به د هغوئ د پاره د الله امداد د ټیک په وخت باندې را رسیږي. د وخت نه مخکښې د الله امداد څوک ځان له نشي راوستلے.

[۲۳] نبي صلی الله علیه وسلم چه به کله وکتل چه د دے خلقو په پوهه کولو باندې ډیره موده تیره شوله او دوئ ښیغې لارې ته را نغلل نو اکثر به ئې په زړه کښې دا خواهش راپیدا شو چه د خدائے د طرف نه یوه داسې نښه ظاهره شوې چه دا خلق پرې د کفر نه راواوړي او زما خبره ومني، په دے آیت کښې د نبي دے خواهش جواب شوے دے. مطلب دا دے چه د بے صبرۍ نه کار مه اخله. په کوم طریقه او په کوم ترتیب سره چه مونږه دا کار چلوؤ هم په هغې طریقه به ته په صبر سره کار کوه. که په معجزو ئې کولے نو ولې ما پخپله نشو کولے؟ خو زه پوهیږم چه د کوم کار د پاره ته مونږه لیږلے ئې د هغې د پاره دا صحیح لار نه ده. ستا کار خو د انسان په فکر او اخلاقو کښې انقلاب راوستل دي او د نیک صالحه ژوند جوړولو د پاره کار کول دي. خو که ته د خلقو دے فکر او انکار ته ګورے او صبر نشي

فَلَا تَكُونَنَّ مِنَ الْجٰهِلِيْنَ ﴿۳۵﴾ اِنَّمَا يَسْتَجِيْبُ الَّذِيْنَ يَسْمَعُوْنَ

نو ته نا پوهه مه جوړېږه. د حق بلنه هغه څوک قبلوي چه اورېدونکي وي،

کولے او ستا دا خیال وی چه ګډه دے د پاره څه ښکاره نښه ښکاره کول پکار دی، نو بیا ته پخپله زور ؤ لګوه او که څه طاقت دِ وی نو په زمکه کښ ورننوځه یا آسمان ته ؤخېږه او د داسے معجزه را ورلو کوشش ؤکړه چه ستا په خیال هغه د یقین پیدا کولو د پاره کافی وی - خو زما نه اُمید مه لره چه زهٔ به په دے کښ ستا امداد ؤکړم، ځکه چه زما په سکیم کښ دا قسم تدبیر نشته.

[۲۴] یعنی که صرف دا خبره وے چه ټول انسانان دِ په څه طریقه په نیغه لار روان شی، نو بیا د نبی د لیږلو، د کتابونو د نازلولو، د مؤمنانو د کافرانو سره د جهاد کولو او د حق آواز په دُو رُود کامیابولو څه ضرورت ؤو. دا کار خو الله په یوه اشاره سره کولے شو. لیکن الله دا کار په دے طریقه باندِ کول نه غوښتل. د الله دا خوښه ده چه حق دِ سره د دلیلونو خلقو ته پیش کړے شی. بیا کوم خلق چه صحیح فکر ؤکړو او حق ؤ پېژنی ونو هغوئ دِ په خپل اختیار باندِ په هغے ایمان دا وړی. خپل عملونه دِ د هغے مطابق کړی او د باطل پرستو په مقابله کښ دِ د خپلو اخلاقو ثبوت ورکړی. په خلقو کښ دِ صالحا خلق د خپلو مضبوط دلیلونو، د خپل لوړ مقصد، د خپل بهترین اُصولو، او د خپل پاک ژوند په زور د ځان سره شامل کړی - او د باطل خلاف دِ مسلسل کوشش شروع کړی او د ترقئ په حقیقی لاره دِ د دینِ حق د قائمولو منزل ته ځان ورسوی. الله به په دے کار کښ د هغوئ رهنمائی کوی او چه د کُم امداد مستحق وی هغه به هم ورسره کوی. لیکن که څوک دا غواړی چه دا حقیقی لار دِ پرېښوده پاتے شی او الله تعالیٰ دِ یواځے په خپل زبردست طاقت سره غلط او فاسد خیالات لرے کوی او په خلقو کښ دِ نیک صالح خیالات خوارہ کړی او دا غلط او فاسد ژوند دِ ختم کړی او نیک صالح ژوند دِ جوړ کړی، نو دا سے به هیچرے ؤ نه شی، ځکه چه دا طریقه د الله تعالیٰ د هغه حکمت نه خلاف ده د کوم حکمت د لاندِ چه الله تعالیٰ په دُنیا کښ انسان پیدا کړے دے - انسان یو ذمه وار مخلوق دے، ده ته د کار کولو پوره اختیارات حاصل دی، د منلو او د نه منلو آزادی ئے ورکړی ده، د امتحان مُهلت ئے ورکړے دے، او د هغه د عمل مطابق د جزا او د سزا ورکولو د پاره ئے د فیصلے یو وخت مقرر کړے دے.

وَالْمَوْتٰى يَبْعَثُهُمُ اللّٰهُ ثُمَّ اِلَيْهِ يُرْجَعُوْنَ ﴿۳۶﴾ وَقَالُوْا لَوْلَا نُزِّلَ عَلَيْهِ اٰيَةٌ مِّنْ رَّبِّهٖ ؕ قُلْ اِنَّ اللّٰهَ قَادِرٌ عَلٰۤى اَنْ يُّنَزِّلَ اٰيَةً وَّلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۳۷﴾ وَمَا مِنْ دَآبَّةٍ فِى الْاَرْضِ وَلَا طٰۤئِرٍ يَّطِيْرُ بِجَنَاحَيْهِ اِلَّاۤ اُمَمٌ اَمْثَالُكُمْ ؕ مَا فَرَّطْنَا فِى الْكِتٰبِ مِنْ شَىْءٍ ثُمَّ اِلٰى رَبِّهِمْ يُحْشَرُوْنَ ﴿۳۸﴾ وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا صُمٌّ وَّبُكْمٌ فِى الظُّلُمٰتِ ؕ مَنْ يَّشَاِ اللّٰهُ

او پاتې شو مړي، نو هغوئ خو به بس الله د قبرونو نه راپورته کوي او بیا به هغوئ (د الله عدالت ته د پیش کېدو د پاره) واپس راوستلې کېږي.

دا خلق وائي چه په دې نبي باندې د څپل رب د طرف نه څه نښه ولې نازله نه شوه؟ ورته ووایه چه الله د نښې نازولو پوره قدرت لري، خو په دوئ کښې اکثر خلق ناپوهان دي[۲۶]. په زمکه کرزېدونکو ځناورو ته او په هوا کښې الوتونکو مارغانو ته وګورئ، دا ټول ستاسو غوندې قسمونه دي، مونږه دده ټولو په نصیب لیکلو کښې څه کمے نه دے پرېښودے، بیا دا ټول څپل رب طرفته ورغونډ یږي. خو کوم خلق چه زمونږه نښې دروغ ګڼړي هغوئ کانړه دي او چاړا کان دي، په تیرو کښې پراته دي[۲۷]. الله چه څوک ګمراه کول غواړي

[۲۵] د اورېدونکو نه مراد هغه خلق دے چه د هغوئ زړونه (ضمیرونه) ژوندی دي، چه هغوئ خپل عقل او فکر په کاره نه دے پرېښودے، او چه خپلو زړونو ته ئې د طرفداري (تعصّب) او د ضد جرندے نه دي اچولي. او مړه هغه خلق دي چه په پخوانو رسمونو او رواجونو باندې د ړند و پشان روان دي او بل یوه خبرے تېلولو ته تیار نه دي اګرکه هغه حقه وي.

[۲۶] د نښې نه مُراد ښکاره معجزه ده. د معجزے نه ښکاره کولو وجه دا نه ده چه الله ئے ښکاره کولے نشي، بلکه ددے وجه بله ده چه دا خلق پرے چله ناپوهتیا په سبب نه پوهېږي.

[۲۷] مطلب دا دے چه که ستاسو صرف د تماشے کتلو شوق نه وي بلکه په حقیقت کښې ددے خبرے معلومولو د پاره لښه لیدل غواړئ چه دا نبي څه وائي چه دا حق دي او که نه دي، نو سترګے وغړوئ او وګورئ ستاسو نه چار چاپیره هر طرفته نښے لږې دي. د زمکے د ځناورو او د هوا د مارغانو نه صرف یو قسم د ځناورو په ژوند باندې غور وکړئ. څه رنګے د هغوئ شکل او جوړښت تیک د هغوئ د حال سره

يُضْلِلْهُ ۖ وَمَن يَشَأْ يَجْعَلْهُ عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٣٩﴾ قُلْ

نو هغه ګمراه کوي[27] او چې چا ته يې لارښودل غواړي نو هغه په سيده لار روانوي.[28] دوی ته ووايه،

مناسب جوړ شوی دی. څه رنګه هغوی له ضرورت مطابق طاقتونه ورکړې شوي دي. څه رنګه د هغوی د رزق انتظام کيږي. څه رنګه د هغوی يوه اندازه مقرر ده چې د هغې نه نه وړاندې تلای شي او نه روستو تلای شي. څه رنګه دې يو ځناور او دې يو وړوکي نه وړوکي چنجي په خپل ځای باندې نګراني او حفاظت او رهنمائي کيږي. څه رنګه د هغوی نه دې يو مقرر سکيم مطابق کار اخستلې کيږي. څه رنګه دې يو قاعدې پابند جوړ کړې شوي دي او څه رنګه د هغوی د پيدا کيدو، د بچو راوړو او د مرګ سلسله ښه په باقاعدګئ سره روانه ده. که چرې د خدای په بې شميره نښو کښې صرف په دې يوه نښه غور وکړئ نو تاسو ته به معلومه شي چې د پيغمبر تاسو ته د خدای د يو والي او د خدای د صفتونو کوم تصور پيش کوي او د هغې تصور مطابق په دُنيا کښې د ژوند تيرولو کوم طريقه تاسو ته ښائي هغه بالکل حق دی. ليکن تاسو نه په خپله سترګې غړوئ او نه د بل خبره اورئ. د جهالت په تيارو کښې پراته يئ او غواړئ چې د قدرت نااشنا ناشنا کارونه ګورئ او خپل زړونه خوشحاله کړئ.

[28] د خدای ګمراه کول دا دي چې يو جاهل انسان ته دا توفيق ورنه کړې شي چې هغه د خدای په نښو (آياتِ الٰهي) باندې غور وکړي، او که يو داسې سړی چې هغه حقيقت نه خوښوي او طرف ته اړوي هغه که د خدای نښې هم ووينې نو حقيقت ته د رسيدو نښې د هغه د سترګو نه پناه وي او په دوکه کښې اچونکي شيزونه هغه د حق نه بهر لوري ته راکاږي. او د دې برخلاف د الله هدايت دا دی چې د حق تلاش کونکي ته د علم نه د فائدې اخستلو توفيق ورکړې شي، او د الله په نښو (آيات الله) کښې ورته حقيقت ته د رسيدو نښې ښکاريږي. د دې مثالونه هر وخت زموږ د سترګو وړاندې راځي. ډير انسانان داسې دي چې د هغوی مخې ته د الله بې شميره نښې په دُنيا کښې او په مخلوق کښې خورې ورې پرتې دي خو هغوی ورته د ځناور په شان ګورې کوري او څه سبق ترې نه حاصلوي. او ډير انسانان داسې دي چې د ځناورو (Zoology)، د بوټو (Botany)، د ژوند (Biology)، د زمکې (Geology)، د بدن د اندامونو (Physiology)، او د سائنسي علمونو په نورو څانګو باندې غور کوي، په تاريخ، په آثارِ قديمه او په اجتماعي علومو (Social Sciences) باندې تحقيق کوي، او داسې نښې ورته مخې ته راځي چې ذره پرې د ايمان نه ډکيږي. خو چې هغه د اول نه طرفدار او بدنيته وي او د دُنيا د فائدو نه سوا بل هيڅ مقصد يې نه وي، نو هغه ته هغه نښې نه ښکاري چې دې پرې صداقت ته رسي، بلکه چې څه نښې ورله مخې ته راځي هغه دې دهريت، کفر، ماده پرستۍ او نيچريت طرف ته راکاږي. (يعني دا عقيده جوړيږي چې فطرت هرڅه کوي). د دې خلقو په مقابله کښې داسې خلق هم شته چې په غړيدلو سترګو د دُنيا دې نظام ته ګوري او د هغوی دا حال دی چې،

أَرَءَيْتَكُمْ إِنْ أَتَىٰكُمْ عَذَابُ ٱللَّهِ أَوْ أَتَتْكُمُ ٱلسَّاعَةُ أَغَيْرَ ٱللَّهِ تَدْعُونَ إِن كُنتُمْ صَٰدِقِينَ ﴿٤٠﴾ بَلْ إِيَّاهُ تَدْعُونَ فَيَكْشِفُ مَا تَدْعُونَ إِلَيْهِ إِن شَآءَ وَتَنسَوْنَ مَا تُشْرِكُونَ ﴿٤١﴾ ع

چه لږ غور وکړئ او ووایئ، که په تاسو باندې د الله د طرفنه څه لوئ مصیبت راشي یا در باندې آخري ساعت راشي نو کښې په هغه وخت کښې به تاسو د الله نه بغیر بل چاته آواز کوئ؟ او وایئ که تاسو رښتینې یئ ـ په هغه وخت کښې تو خاص به الله ته آواز کوئ، بیا که هغه وغواړي نو هغه مصیبت ستاسو نه لرې کړي. په داسې موقعو باندې ستاسو خپل شریکان هیر شي۔[29] ع

برگ درختان سبز در نظر هوشیار — د هوښیارانو په نظر کښې د شنو ونو هره پاڼه د خدائے
هر ورقے دفتریست معرفت کردگار — د پیژندو د پاره یو لوئ دفتر دے۔

[29] په تیرشوې آیت کښې دا وئیلے شوي وو چه تاسو د ې نښې مطالبه کوئ او حال دا دے چه ستاسو نه هر طرفته چار چاپیره نښے خورې دي. ددې په باره کښې اول د مثال په طور اووئیلے شو چه تاسو د ځناورو په ژوند باندې غور وکړئ. اوس ورته اووئیلے شو چه یو بله نښه ته غور وکړئ چه هغه د حق نه د منکرینو په خپل نفس کښې موجود ده. کله چه په انسان باندې یو لوئ مصیبت راشي، یا ورته د مرګ وخت نزدې راشي، نو په هغه وخت کښې ورته د پناه اخستلو د پاره د الله نه بغیر بل څوک په نظر نه راځي. د لویو لویو مشرکانو نه په داسې موقعه خپل معبودان هیر شي او یو خدائے ته آوازونه شروع کړي، د سخت نه سخت دهریه خدائے ته د دعا د پاره لاس نه غوړوي. دلته د حق ښودلو د پاره دا نښه په ګوته کړې شوې ده، ځکه چه دا نښه په دې خبره باندې یو دلیل دے چه د خدائے د عبادت او د خدائے د یو والي ګواهي د هر انسان په نفس کښې موجوده ده، که د غفلت او د ناپوهئ په وجه پرې هر څومره پردې پرتې وي، خو بیا هم کله نا کله ښکاره کیږي. د ابوجهل ځوئ عکرمه ته د دې نښې د ښکاره کیدو په وجه ایمان نصیب شو. کله چه د نبي صلی الله علیه وسلم په لاس باندې مکه معظمه فتح شوه نو عکرمه جدې طرفته وتښتید او په یوه کشتۍ کښې حبشې ته روان شو. په لاره پرې سخت طوفان راغے او د کشتۍ د ډوبیدو خطره پیدا شوه. اول اول ئے خو دیوتاګانو ته آوازونه کول. خو چه کله طوفان سخت شو او د مسافرو نو یقین راغے چه کشتۍ ډوبیږي نو ټولو اووې چه دا وخت د الله نه بغیر بل چا ته د آواز کولو نه دے، که یو الله ئے غواړي نو

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَآ اِلٰٓى اُمَمٍ مِّنْ قَبْلِكَ فَاَخَذْنٰهُمْ بِالْبَاْسَآءِ وَالضَّرَّآءِ لَعَلَّهُمْ يَتَضَرَّعُوْنَ ﴿۴۲﴾ فَلَوْلَآ اِذْ جَآءَهُمْ بَاْسُنَا تَضَرَّعُوْا وَلٰكِنْ قَسَتْ قُلُوْبُهُمْ وَزَيَّنَ لَهُمُ الشَّيْطٰنُ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۴۳﴾ فَلَمَّا نَسُوْا مَا ذُكِّرُوْا بِهٖ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ اَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ ۭ حَتّٰٓى اِذَا فَرِحُوْا بِمَآ اُوْتُوْٓا اَخَذْنٰهُمْ بَغْتَةً فَاِذَا هُمْ مُّبْلِسُوْنَ ﴿۴۴﴾ فَقُطِعَ دَابِرُ الْقَوْمِ الَّذِيْنَ

ستا نه مخکښې ډېرو قومونو ته مونږه رسولان ولیږل او هغه قومونه مو په مصیبتونو او تکلیفونو کښې مبتلا کړل د پاره د دې چه هغوی په عاجزۍ سره مونږ ته راتیټ شي. نو چه کله زمونږ د طرفه په هغوی باندې سختي راغله نو هغوی عاجزي ولې اختیار نه کړه؟ بلکه د هغوی زړونه خو نور هم سخت شو او شیطان ورله تسلي ورکړه چه تاسو څه کوئ دا ښه کوئ. بیا چه هغوی ته کوم نصیحت شوې وو هغه یې هېر کړو نو مونږه پرې د هر قسم د خوشحالۍ دروازې پرانستې، تر دې پورې چه کوم بخشش په هغوی شوې وو هغوی د هغې په خوشحالۍ کښې ښه مست شو نو ناساپه مونږه هغوی راونیول او دا حال یې وو چه بیا د هر خیر نه نا امیده وو. په دې طریقه د هغې خلقو جرړه پرېکړې شوه چه

مونږ هم کیږي شو. په دغه وخت کښې د عکرمه سترګې وغړیدې او د زړه نه یې آواز راپورته شو چه دلته د الله نه بغیر بل څوک مددګار نشته نو په بل ځای کښې به الله ولې مددګار نه وي. دا خو هغه خبره ده چه د الله هغه نیک بنده د شلو کالو راسې مونږ ته وائي او مونږ ورسره جنګ کوو. دا د عکرمه په ژوند کښې هغه وخت وو چه هغه د خدای سره وعده وکړه چه که زه د دې طوفان نه بچ شوم نو سیده به د محمد صلی الله علیه وسلم خوا ته ځم او ایمان به راوړم. هغه دا خپله وعده پوره کړه چه د طوفان نه بچ شو نو مسلمان شو او خپل باقي عمر یې د اسلام د پاره په جهاد کښې تېر کړو.

ظَلَمُوْا ؕ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿۴۵﴾ قُلْ اَرَءَيْتُمْ اِنْ اَخَذَ اللّٰهُ سَمْعَكُمْ وَاَبْصَارَكُمْ وَخَتَمَ عَلٰى قُلُوْبِكُمْ مَّنْ اِلٰهٌ غَيْرُ اللّٰهِ يَاْتِيْكُمْ بِهٖ ؕ اُنْظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ ثُمَّ هُمْ يَصْدِفُوْنَ ﴿۴۶﴾ قُلْ اَرَءَيْتَكُمْ اِنْ اَتٰىكُمْ عَذَابُ اللّٰهِ بَغْتَةً اَوْ جَهْرَةً هَلْ يُهْلَكُ اِلَّا الْقَوْمُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۴۷﴾ وَمَا نُرْسِلُ الْمُرْسَلِيْنَ اِلَّا مُبَشِّرِيْنَ وَمُنْذِرِيْنَ ۚ فَمَنْ اٰمَنَ وَاَصْلَحَ فَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُوْنَ ﴿۴۸﴾ وَالَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا يَمَسُّهُمُ الْعَذَابُ بِمَا كَانُوْا يَفْسُقُوْنَ ﴿۴۹﴾

ظلم ئے کړے وُو او تعریف د الله رب العلمین د پاره دے (چه هغه د هغوئ جرړه پریکړه).
اے محمدؐ، دوئ ته ووایه، چه چرے تاسو په دے خبره سوچ کړے دے چه که خدائے ستاسو نه لیدل او اوریدل واخلی او په زړونو د رله تاپه ولګوی[30] نو د الله نه بغیر بل کوم خدائے دے چه دا قوتونه به درله واپس در کړے شی؟ وګوره، مونږه دوئ ته څنګه خپلے نښے بیا بیا پیش کوو او بیا دوئ ترې څنګه نظر اړوی را اړوی. ورته ووایه، چه آیا تاسو چرته دا سوچ هم کړے چه که د الله د طرفه ناساپه یا جهرګا په تاسو باندې عذاب راشی نو آیا د ظالمانو نه علاوه به نور څوک هلاک کړے شی؟ مونږه چه کوم پیغمبران لیږو خو د دے غرض د پاره ئے لیږو چه د نیکانو خلقو د پاره خوشخبری ورکونکی وی او د بدانو خلقو د پاره یروونکی وی. بیا چه چا د هغوئ خبره ومنله او د خپل عمل اصلاح ئے وکړه نو د هغوئ د پاره د یرے او د غم هیڅ موقعه نشته. او چا چه زمونږ آیتونو ته دروغ اُووے نو هغوئ به د خپلو نافرمانو په بدله کښ ضرور سزا خوری.

---

۳۰؎ دلته په زړونو باندې د مهر لګولو مطلب دا دے چه د هغوئ نه د سوچ کولو او د پوهیدلو قوتونه واخلی.

قُلْ لَّآ اَقُوْلُ لَكُمْ عِنْدِيْ خَزَآئِنُ اللّٰهِ وَلَآ اَعْلَمُ الْغَيْبَ وَلَآ اَقُوْلُ لَكُمْ اِنِّيْ مَلَكٌ ۚ اِنْ اَتَّبِعُ اِلَّا مَا يُوْحٰٓى اِلَيَّ ۗ قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الْاَعْمٰى وَالْبَصِيْرُ ۗ اَفَلَا تَتَفَكَّرُوْنَ ﴿۵۰﴾

اے مُحَمَّدَ، دوی ته ووایه چه "زه تاسو ته دا نهٔ وایم چه زما سره د الله خزانے دی. نهٔ زهٔ د غیبو علم لرم، او نهٔ دا درته وایم چه زهٔ فرښته یم. زهٔ خو بس په هغې وحی پسے روان یم کومه چه په ما باندے نازلیږی"[۳۱]. بیا ترے تپوس وکړه چه "روند او سترګو والا دواړه برابریدے شی[۳۲]؟ تاسو غور نهٔ کوئ؟" ؏

[۳۱] د ناپوهه خلقو په خیال کښ همیشه دا غلط تصور وی چه څوک د خدائے نیازولے وی نو پکار دی چه هغه د انسانانو نه ډیر پورته وی او پکار دی چه هغه نااشنا ناآشنا کارونه کوی، چه هغه یوه اشاره وکړی او غرهٔ سرو شی، چه حکم وکړی او د زمکے نه خزانے راوځی، هغه ته د خلقو مخکښ روستو ټول حالات معلوم وی، ورک شوی شیزونه دِ خود لے شی، دا دِ ورته معلومه وی چه مریض به بچ شی که مړ به شی، د یار داره نښځه په خیټه کښ بچے نر دے که ښځه. هغه له دا هم پکار دی چه انسانی کمزورئ پکښ نه وی هغه هم لا د خدائے نیازبین کیدے شی چه لوږه او تنده پرِ راځی، چه وده کیږی، چه ښځه او بچی ئے وی چه د خپل ضرورتونو پوره کولو د پاره د اغستلو خرخولو د پاره کرځی، چه کله قرضونه کوی او کله د غریبۍ د لاسه پریشانه وی. دا قسم خیالات د نبی صلی الله علیه وسلم د زمانے د خلقو په ذهن کښ وو. هغوئ چه به کله دا وریدل چه محمد صلی الله علیه وسلم د پیغمبرئ دعوی کړی ده نو د ربښتینولئ د پاره به ئے تر د غیبو تپوسونه کول، د عادت نه خلاف کارونه به ئے تر غوښتل، او چه دا به ئے ولیدل چه هغه خو د عامو انسانانو په شان انسان دے نو دا اعترا منونه به ئے کول چه دا بنه پیغمبر دے، خوری او څکی، ښځه او بچی ئے دی او په بازارونو کښ ګرځی. د دے خیرو جواب په دے آیت کښ شوے دے.

[۳۲] مطلب دا دے چه زهٔ کوم حقیقتونه تاسو ته وړاندے کوم، هغه ما کتلی دی، هغه زما په تجربه کښ راغلی دی، ما ته د وحی په ذریعه ټیک ټیک علم راکړے شوے دے، د هغې په باره کښ زما ګواهی د سترګو لیدلی ګواهی ده. او تاسو چه ئې نو دے حقیقتونو د طرفه ړانده یئ، د دے په باره کښ چه ستاسو څه خیالات دی هغه خو یا قیاس دے یا ګمان دے او یا په پټو سترګو په چاپچه تلل دی. نو زما او ستاسو په مینځ کښ د بینا او د نابینا په شان فرق دے او دے وجه نه ما ته په تاسو باندے فوقیت حاصل دے، زما فوقیت د دے وجه نه نهٔ دے چه زما سره د خدائے خزانے دی یا زما سره د غیبو علم دے او یا زهٔ د انسانی کمزورو نه پاک یم.

وَأَنذِرْ بِهِ الَّذِينَ يَخَافُونَ أَن يُحْشَرُوا إِلَىٰ رَبِّهِمْ ۙ لَيْسَ لَهُم مِّن دُونِهِ وَلِيٌّ وَلَا شَفِيعٌ لَّعَلَّهُمْ يَتَّقُونَ ﴿٥١﴾ وَلَا تَطْرُدِ الَّذِينَ يَدْعُونَ رَبَّهُم بِالْغَدَاةِ وَالْعَشِيِّ يُرِيدُونَ وَجْهَهُ ۖ مَا عَلَيْكَ مِنْ حِسَابِهِم مِّن شَيْءٍ وَمَا مِنْ حِسَابِكَ عَلَيْهِم مِّن شَيْءٍ

او اے محمده! ته دده (وحی) په ذریعه هغه خلقو ته نصیحت وکړه چه دده خبرې یره ور سره وی چه خپل رب ته به په داسې حال کښې پیش کیږی چه هلته به د هغه نه بغیر بل څوک (داسې اقتدار والا) نه وی چه هغه هغوی سرپرستیال او مددګار وی یا د هغوی سفارش اوکړی کیدے شی چې هغوی (دده نصیحت په ذریعه خبردار شی او) د خدائے نه اُویریږی[33] او کوم خلق چه خپل رب شپه او ورځ رابلی او د هغه د رضا په تلاش کښې مشغول وی نو هغوی د ځان نه مه شړه[34]. د هغوی د حساب هیڅ بوج په تا باندې نشته او ستا د حساب هیڅ بوج په هغوی باندې نشته۔

[33] مطلب دادے چه څوک د دُنیا په ژوند کښې داسې بیهوشه پراته دی چه هغوی سره نه د مرګ فکر شته او نه دا خیال شته چه د خدائے دربار ته حاضریږی، نو دا نصیحت به په هغوی باندې هرګز اثر نه کړی۔ د غه شان په هغه خلقو باندې به هم دده نصیحت هیڅ اثر نه وی چه په دے بے بنیاده بروسه باندې ژوند تیروی چه که په دُنیا کښې مونږه هر څه کوو خو په آخرت کښې به زمونږ ته هیڅ عذاب نه ملاویږی ځکه چه مونږه د فلانی مُریدان یُو، یا فلانے به زمونږ سفارش کوی یا فلانے به زمونږ د پاره کفاره وی۔ نو داسې خلق پریږده او هغه خلقو ته نصیحت شروع کړه چه د خدائے سره د مخامخید ویره هم په زړه کښې لری او ورسره د دے بے بنیاده طمعے خیال هم نه لری۔ د دے نصیحت اثر هم په داسې خلقو باندې کیدے شی او هم د داسې خلقو د صحیح کیدو اُمید کیدے شی۔

[34] د قریشو لویو لویو سردارانو او د مالدارو خلقو په نبی صلی الله علیه وسلم باندې د نورو اعتراضونو سره یو دا اعتراض هم وو چه ستا نه کیرچاپیره غلامان، نوکران او د ادنیٰ طبقے خلق را جمع شوی دی۔ هغوی به د پیغور په طور وئیل چه دا ته خو ښه بنه عزتمند خلق ملاؤ شوی دی لکه بلال، عمار، صهیب او خباب۔ په مونږ کښې بس دا خلق الله تعالیٰ ته ملاؤ شو چه عزتمند جوړیدے شو او نور څوک نه؟۔ د مومنانو په بدحالئ پورے به ئے ټوقے کولے خو په دے به ئے هم زړه نه یخیدو او د هغوی نه چه به څنګ څه اخلاق کمزوری شوے وے هغه به ئے یاد ولے او وئیل به ئے چه هغه فلانے چه د پرونه پورے به ئے دا دا کار ونه کول نن هغه هم په عزتمندو کښې شامل دے۔ دلته دغه خبرو جواب ورکړے شوے دے۔

فَتَطْرُدَهُمْ فَتَكُونَ مِنَ الظّٰلِمِينَ ﴿۵۲﴾ وَكَذٰلِكَ فَتَنَّا بَعْضَهُمْ بِبَعْضٍ لِّيَقُولُوٓا أَهٰٓؤُلَآءِ مَنَّ اللّٰهُ عَلَيْهِمْ مِّنْۢ بَيْنِنَا ؕ أَلَيْسَ اللّٰهُ بِأَعْلَمَ بِالشّٰكِرِينَ ﴿۵۳﴾ وَإِذَا جَآءَكَ الَّذِينَ يُؤْمِنُونَ بِاٰيٰتِنَا فَقُلْ سَلٰمٌ عَلَيْكُمْ كَتَبَ رَبُّكُمْ عَلٰى نَفْسِهِ الرَّحْمَةَ ۙ أَنَّهٗ مَنْ عَمِلَ مِنْكُمْ سُوٓءًۢا بِجَهَالَةٍ ثُمَّ تَابَ مِنْۢ بَعْدِهٖ وَأَصْلَحَ فَأَنَّهٗ غَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿۵۴﴾

که تا بیا هغوی د ځان نه وشړل نو به ظالمانو کښې شمار شې. په اصل کښې مونږ په دې طریقه دا خلق د یو بل په ذریعه په آزمیښت کښې واچولی دی[۳۵] چه هغوی دوی ووینی او ووائی "چه بنه هغه دا خلق دی چه په مونږ کښې الله په دوی باندې فضل وکرم کړے دے؟"

هو کنه، ولې خدائے خپل شکر گذاره بندیان د دوی نه بنه نه پیژنی؟ او کله چه تا له هغه خلق راشی چه زمونږ په آیتونو باندې ایمان راوړی نو هغوی ته ووایه چه "په تاسو باندې سلامتیا ده. ستاسو پروردګار د رحم وکرم طریقه په ځان باندې لازم کړې ده. (دا خو د هغه رحم وکرم دے) چه که څوک په تاسو کښې چا په ناپوهیا سره څه بدکار کړے وی او بیا د هغې نه روستو توبه وباسی او خپله اصلاح وکړی نو هغه ئې معاف کوی او د نرمئ نه کار اخلی"[۳۶]

[۳۵] یعنی هر سړے د خپل عیب او د بهترئ (صواب) ذمه وار پخپله دے. په دې مسلمانانو کښې به تا د چا د طرف نه د جواب د پاره نه وی ورپیښه او نه به ستا د جواب ورکولو د پاره د هغوی نه څوک ورپیږی. ستا د حصې نه څه نیکی دوی نشی تختولی او نه د خپلې حصې بدی په تا راچولے شی. بیا چه کله دوی صرف د حق د تلاش د پاره ستا خواله راشی نو آخر ته ولې د خپل ځان نه شړې.

[۳۶] یعنی مونږه په کلهت کښې د تولونه اول غریبانو، محتاجو او ادنیٰ ادنیٰ خلقو له د ایمان راوړلو توفیق ورکړو او په دے طریقه موږ مالداران خلق په آزمیښت کښې واچول.

[۳۷] کوم خلق چه په دغه وخت کښې په نبی صلی الله علیه وسلم باندې ایمان راوړے وو په هغوی کښې ډیر خلق داسې هم وو چه د جاهلیت په زمانه کښې تر لوئې لوئې ګناهونه شوی وو اګر چه د اسلام قبلولو نه روستو د هغوی په ژوند کښې ډیره بدلی راغلې وه، لیکن د اسلام مخالفینو به هغوی له د پخوانی عیبونو او بدو کارونو پیغورونه ورکول. د دے په باره کښې حکم دے چه مؤمنانو له تسلی ورکړه. هغوی ته ووایه چه څوک توبه وباسی او خپل ژوند صحیح کړی نو بیا به تیرو شوو ګناهونو باندې الله تعالیٰ څوک نه نیسی دا د الله طریقه نه ده.

وَكَذٰلِكَ نُفَصِّلُ الْاٰيٰتِ وَلِتَسْتَبِيْنَ سَبِيْلُ الْمُجْرِمِيْنَ ﴿۵۵﴾ ع

قُلْ اِنِّيْ نُهِيْتُ اَنْ اَعْبُدَ الَّذِيْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ ؕ قُلْ لَّآ اَتَّبِعُ اَهْوَآءَكُمْ ۙ قَدْ ضَلَلْتُ اِذًا وَّمَآ اَنَا مِنَ الْمُهْتَدِيْنَ ﴿۵۶﴾

قُلْ اِنِّيْ عَلٰى بَيِّنَةٍ مِّنْ رَّبِّيْ وَكَذَّبْتُمْ بِهٖ ؕ مَا عِنْدِيْ مَا تَسْتَعْجِلُوْنَ بِهٖ ؕ اِنِ الْحُكْمُ اِلَّا لِلّٰهِ ؕ يَقُصُّ الْحَقَّ وَهُوَ خَيْرُ

او دغه شان مونږه خپلې نښې بنه واضحه پیش کوو دپاره ددې چه د مجرمانو لاره بالکل ښکاره شي.[۳۸] ع

اے محمد ﷺ، دوئی ته ووایه چه "تاسو د الله نه بغیر نورچاته آوازونه کوئ د هغوئ د بندګئ کولو نه منع کړے شوے یم." ورته ووایه، "زه ستاسو په خواهشاتو پسے نه ځم که ایسے مې وکړه نو بیا خو ګمراه شوم او د نیغې لارے موندونکو نه نه شوم." ورته ووایه، "زه د خپل رب د طرفنه په یو روښانه دلیل باندې ولاړیم او تاسو هغه دروغ ګڼړلے دے، او س د کوم څیز دپاره چه تاسو مستلوار کوئ هغه څیز زما په اختیار کښ نه دے،[۳۹] د فیصلے ټول اختیار خو د الله دے، حق هم هغه بیانوی او هم هغه

[۳۸] دا "دغه شان" اشاره هغه ټول تقریر طرفته ده کوم چه د څلورم رکوع دد ے آیت نه شروع شوے دے "دا خلق وائي چه په ده باندې څه نښه ولے نازله نه شوه؟" مطلب دا دے چه د دا سے صفا او ښکاره دلیلونو او نښو نه دروستو هم چه څوک په خپل کفر باندې ټینګ و دریږي نو هغه بیشکه مجرم دے، ځکه چه د هغه د ګمراهئ سره مینه ده نو په دے وجه په کفر ټینګ ولاړ دے، دا وجه نه ده چه د حق لارے دلیلونه ورته نه دي واضح شوي او یا ده سره د خپلې ګمراهئ په حق کښے څه دلیلونه هم شته.

[۳۹] د الله د عذاب طرفته اشاره ده. مخالفینو به وے چه که ته د خدائے تعالیٰ د طرفنه رالیږلے شوے نبي ئے او مونږ درته جهرًا وایو چه ته دروغژن ئے نو د خدائے عذاب په مونږ باندې ولے رانځي؟ چه ته د الله د طرفنه راغلے وے نو پکار خو دا وه چه چا تا ته دروغژن ویلو یا ستا سپکاوے ئے کوو نو چه فورًا زمکه ښئیدے او هغه پکښ ننوتلے او یا پرے تندر راپریوتلے او هغه خاورې پرے کیدلے. دا څه دي چه د خدائے پیغمبر

الْفٰصِلِيْنَ ۝٥٧ قُلْ لَّوْ اَنَّ عِنْدِيْ مَا تَسْتَعْجِلُوْنَ بِهٖ لَقُضِيَ الْاَمْرُ بَيْنِيْ وَبَيْنَكُمْ ۭ وَاللّٰهُ اَعْلَمُ بِالظّٰلِمِيْنَ ۝٥٨ وَعِنْدَهٗ مَفَاتِحُ الْغَيْبِ لَا يَعْلَمُهَآ اِلَّا هُوَ ۭ وَيَعْلَمُ مَا فِي الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ۭ وَمَا تَسْقُطُ مِنْ وَّرَقَةٍ اِلَّا يَعْلَمُهَا وَلَا حَبَّةٍ فِيْ ظُلُمٰتِ الْاَرْضِ وَلَا رَطْبٍ وَّلَا يَابِسٍ اِلَّا فِيْ كِتٰبٍ مُّبِيْنٍ ۝٥٩ وَهُوَ الَّذِيْ يَتَوَفّٰىكُمْ بِالَّيْلِ وَيَعْلَمُ مَا جَرَحْتُمْ بِالنَّهَارِ ثُمَّ يَبْعَثُكُمْ فِيْهِ لِيُقْضٰٓى اَجَلٌ مُّسَمًّى ۚ ثُمَّ اِلَيْهِ مَرْجِعُكُمْ ثُمَّ يُنَبِّئُكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَعْمَلُوْنَ ۝٦٠ ع

بهترین فیصله کوونکے دے" ورته ووایه، "که چرے هغه څیز زما په اختیار کښ وے کوم څیز ته چه تاسو تلوار کوئ نو زما او ستاسو په مینځ کښ به کله فیصله شوی وه. خو الله د ډیر ښه پیژنی چه د ظالمانو سره څه معامله کول پکار دی. د هغه سره د غیبو کنجیانے دی چه د هغه نه بغیر بل چا ته معلومے نهٔ دی. په وچه او په لونډه چه څه دی د هغے ټولو نه خبر دے. د ونے نه را پریوتونکی یوه پاڼه داسے نهٔ وی چه هغه ترے خبر نهٔ وی. د زمکے په تورو تیرو کښ یوه دانه داسے نشته چه هغه ترے خبر نهٔ وی. وچ او لوند هر څه په یو واضحه او روښانه کتاب کښ لیکلے شوی دی. دا هم هغه دے چه د شپے ستاسو روحونه قبض کوی او د ورځے چه تاسو څه کوئ هغه ورته معلوم دی، بیا بله ورځ دے کاروبار د دنیا ته هغه واپس تاسو راپاسیږی د پاره دے چه د ژوند مقرره موده پوره شی. آخر دا چه هم د هغه طرفته ستاسو واپسی ده، بیا هغه به درته داؤ ښائی چه تاسو څهٔ کول ع

او په هغهٔ باندے ایمان راوړونکی د پرمصیبتونو او په ذلتونو کښ دی او څوک چه هغوئی ته کنځلے کوی او په کانړو ئے وِلی نو هغوی دِ په آرام دی؟

وَهُوَ الْقَاهِرُ فَوْقَ عِبَادِهٖ وَيُرْسِلُ عَلَيْكُمْ حَفَظَةً ؕ حَتّٰٓى اِذَا جَآءَ اَحَدَكُمُ الْمَوْتُ تَوَفَّتْهُ رُسُلُنَا وَهُمْ لَا يُفَرِّطُوْنَ ﴿۶۱﴾ ثُمَّ رُدُّوْٓا اِلَى اللّٰهِ مَوْلٰىهُمُ الْحَقِّ ؕ اَلَا لَهُ الْحُكْمُ ۫ وَهُوَ اَسْرَعُ الْحٰسِبِيْنَ ﴿۶۲﴾ قُلْ مَنْ يُّنَجِّيْكُمْ مِّنْ ظُلُمٰتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ تَدْعُوْنَهٗ تَضَرُّعًا وَّخُفْيَةً ۚ لَئِنْ اَنْجٰىنَا مِنْ هٰذِهٖ لَنَكُوْنَنَّ مِنَ الشّٰكِرِيْنَ ﴿۶۳﴾ قُلِ اللّٰهُ يُنَجِّيْكُمْ مِّنْهَا وَمِنْ كُلِّ كَرْبٍ ثُمَّ اَنْتُمْ تُشْرِكُوْنَ ﴿۶۴﴾

هغه په خپلو بندیانو باندې پوره قدرت لري او په تاسو باندې نګراني کوونکي رالیږي،[۳۹] تر دې پورې چه کله په تاسو کښې د چا د مرګ وخت راشي نو د هغه رالیږلي شوي فرښتې د هغه روح اخلي او په خپل کار کښې هیڅ کوتاهي نه کوي، بیا به ټول الله طرفته واپس راوستلې کیږي چه د دوئ حقیقي مولی دے. خبردار شئ، د فیصلې کولو ټول اختیارات د هغه دي او هغه په حساب اخستلو کښې ډیر تیز دے"

اے محمده، د دوئ نه تپوس وکړه، چه په صحراګانو او د سمندر په تورو تیرو کښې تاسو څوک د خطرونو نه بچ کوي؟ هغه څوک دے چه تاسو تر (د مصیبت په وخت کښې) په عاجزئ سره او په پټه پټه دعاګانې غواړئ؟ تاسو چا ته دا وايئ چه که دے بلا نه تا مونږ بچ کړو نو مونږ به خامخا شکرګزاره شو؟ ورته ووایه چه الله مو د دغې بلاګانو او د هر تکلیف نه خلاصوي او بیا هم تاسو هغه له شریکان پیدا کوئ.[۴۰][۴۱]

[۳۹] یعنی داسې فرښتې چه ستاسو یو یو حرکت او یو یو خبرې ته ګوري او ستاسو د هر کار ریکارډ محفوظ ساتي.

[۴۰] یعنی دا یو حقیقت دے چه یواځې الله په هر څه باندې قادر دے، او صرف هغه د ټولو اختیاراتو مالک دے، او ستاسو د ښیګړې او د نقصان واک اختیار د هغه سره دے، او ستاسو قسمتونه د هغه په لاس کښې دي. او د دے حقیقت ګواهي ستاسو په خپل نفس کښې موجود ده. کله چه سخت وخت راشي او د خلاصيدو ظاهري اسباب ختم شي نو په هغه وخت کښې تاسو بے اختیاره خدائ پاک ته رجوع کوئ. لیکن سره د دے غټ دلیل نه تاسو په خدائئ کښې د هغه سره نور خلق شریک کړي دي. غنم، پیرئ خو د هغه په رزق باندې او پالونکي مو نور څوک نیولي دي، امداد د رسره د هغه په فضل وکرم کیږي او مددګاران نور چا ته وايئ. بندګان د هغه یئ او بندګي د نورو چا کوئ. سختئ د رله هغه آسانه وي او په سخت وخت کښې د هغه

قُلْ هُوَ الْقَادِرُ عَلٰٓى اَنْ يَّبْعَثَ عَلَيْكُمْ عَذَابًا مِّنْ فَوْقِكُمْ اَوْ مِنْ تَحْتِ اَرْجُلِكُمْ اَوْ يَلْبِسَكُمْ شِيَعًا وَّيُذِيْقَ بَعْضَكُمْ بَاْسَ بَعْضٍ ۭ اُنْظُرْ كَيْفَ نُصَرِّفُ الْاٰيٰتِ لَعَلَّهُمْ يَفْقَهُوْنَ ﴿۶۵﴾ وَكَذَّبَ بِهٖ قَوْمُكَ وَهُوَ الْحَقُّ ۭ قُلْ لَّسْتُ عَلَيْكُمْ بِوَكِيْلٍ ﴿۶۶﴾ لِكُلِّ نَبَاٍ

ورته ووايه، هغه په دې باندې قادر دے چه په تاسو باندې څه عذاب د پاسه نازل کړي، يا ئې ستاسو د خپو د لاندې نه رابرخيره کړي، يا تاسو په ډلو ډلو کښې تقسيم کړي او يو ډلې ته د بلې ډلې د طاقت مزه ورڅکوي وګوره، مونږه څه رنګ بيا بيا په مختلفو طريقو سره خپلې نښې دوئ ته وړاندې کوو، شايد چه دوئ په حقيقت باندې پوهه شي.[42] ستا قوم د هغې نه انکار کوي حالانکه هغه حقيقت دے. دوئ ته ووايه چه زه په تاسو باندې حواله دار نه يم جوړ کړے شوے،[43] د هر خبر

نه دعاګانې غواړئ، او چه کله د سختې وخت تير شي نو مشکل کشا مو نور شوک وي او نذرانې د بل چا په نوم کوئ.

[42] کومو خلقو ته چه د الله عذاب لرے ښکاريدو او د حق سره په دشمنئ کښې بنه زړه ورکيدل هغوئ ته دا خبردارے دے چه د الله د طرفنه په عذاب راتلو کښې څه وخت نه لګي. د هوا يو طوفان چه در باندې ناساپه راشي هغه تاسو تباه کولے شي. د زلزلې يو جړق ستاسو د کلو وړانولو د پاره کافي دے د قبيلو قبيلو او د قومونو او د ملکونو په مينځ کښې د دشمنئ يوه سکروټه هغه تباهي راوستے شي چه بيا به پکښې په کلونو کلونو امن نه راشي. نو که عذاب نه راځي نو دا د ستاسو د پاره د غفلت سبب نه جوړيږي چه بنه په اطمينان سره و په بنه او بد کښې فرق نه کوئ او د ړندو پشان د ژوند تيروئ. دا غنيمت وګڼړئ چه الله تاسو له مهلت درکوي او هغه نښې درته ښائي چه تاسو پر حق و پيژنئ او په صحيح لاره روان شئ.

[43] يعني زما دا کار نه دے چه څه تاسو ته نه ښکاري هغه درته زه په زور وښايم او چه څه ستا سو په ذهن کښې نه راځي هغه درله په زور په ذهن کښې کينه وم. او دا زما کار نه دے چه عذاب در باندې راولم. زما کار صرف حق او باطل بيلول دي. او بيا ستاسو وړاندې پيش کول دي. او س که تاسو نه منئ نو د کوم انجام نه چه زه تاسو يروم هغه به په خپل وخت باندې پخپله ستاسو مخې ته راشي.

مُسْتَقَرٌّ وَّسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ﴿٦٧﴾ وَاِذَا رَاَيْتَ الَّذِيْنَ يَخُوْضُوْنَ فِيْٓ
اٰيٰتِنَا فَاَعْرِضْ عَنْهُمْ حَتّٰى يَخُوْضُوْا فِيْ حَدِيْثٍ غَيْرِهٖ ۭ وَاِمَّا
يُنْسِيَنَّكَ الشَّيْطٰنُ فَلَا تَقْعُدْ بَعْدَ الذِّكْرٰى مَعَ الْقَوْمِ الظّٰلِمِيْنَ ﴿٦٨﴾
وَمَا عَلَى الَّذِيْنَ يَتَّقُوْنَ مِنْ حِسَابِهِمْ مِّنْ شَيْءٍ وَّلٰكِنْ ذِكْرٰى
لَعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ﴿٦٩﴾ وَذَرِ الَّذِيْنَ اتَّخَذُوْا دِيْنَهُمْ لَعِبًا وَّلَهْوًا

دَ ظاهریدو یو وخت مقرر دے، او ډیر زر به تاسو ته خپل انجام معلوم شي۔
او اے محمدﷺ، کله چه ته اُووینې چه خلق زمونږ په آیتونو کښ عیبونه لټوي نو
ته د هغوئ د خوا نه لرے شه تر دے پورے چه هغوئ هغه خبره پریږدي او په نورو خبرو کښے
مشغول شي۔ او که چرے شیطان درنه هیر کړي،[۴۴] نو بیا کله چه دریاد شي نو د هغه نه روستو دا ظالمانو خلقو سره مه کیننه۔ د هغوئ د حساب کتاب هیڅ ذمه داري په پرهیزګارانو
خلقو باندې نشته، البته نصیحت کول د هغوئ فرض دي شاید چه هغوئ په غلطه لاریانډې
د تللو نه بچ شي۔[۴۵] پریږده هغه خلق چه هغوئ د خپل دین نه لوبه تماشه جوړه کړې ده

---

[۴۴] یعني کله چه زمونږه دا حکم تا ته یاد نه وي او ته په هیره باندې د دا سے خلقو په مجلس کښ ناست پاتے شے۔

[۴۵] مطلب دا دے چه کوم خلق د خدائے د نافرمانئ نه ځان ساتي په هغوئ باندې د نافرمانو خلقو د عمل ذمه واري نشته، نو بیا هغوئ خامخا ولے دا خبره په ځان باندې لازمي وي چه د دغے نافرمانو سره به ضرور بحث او مناظره کوي او د هغوئ به ضرور قائل کوي، او د هغوئ د هرے مطلبه اعتراض جواب به ضرور کوي، او که هغوئ نه مني نو خامخا به ئے پرمنو۔ بس دومره خبره په هغوئ فرض ده چه کوم خلق په ګمراهئ کښ اُووینې په هغوئ ته نصیحت وُکړي او حق خبره ورته پیش کړي۔ بیا که هغوئ نه مني او جګړے او بحثونه او دلیلونه شروع کړي نو د حق پرستو

وَغَرَّتْهُمُ الْحَيٰوةُ الدُّنْيَا وَذَكِّرْ بِهٖٓ اَنْ تُبْسَلَ نَفْسٌۢ بِمَا كَسَبَتْ ۖ لَيْسَ لَهَا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ وَلِيٌّ وَّلَا شَفِيْعٌ ۚ وَاِنْ تَعْدِلْ كُلَّ عَدْلٍ لَّا يُؤْخَذْ مِنْهَا ۗ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ اُبْسِلُوْا بِمَا كَسَبُوْا ۚ لَهُمْ شَرَابٌ مِّنْ حَمِيْمٍ وَّعَذَابٌ اَلِيْمٌۢ بِمَا كَانُوْا يَكْفُرُوْنَ ﴿٧٠﴾ قُلْ اَنَدْعُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ مَا لَا يَنْفَعُنَا وَلَا يَضُرُّنَا وَنُرَدُّ عَلٰٓى اَعْقَابِنَا بَعْدَ اِذْ هَدٰىنَا اللّٰهُ كَالَّذِى اسْتَهْوَتْهُ الشَّيٰطِيْنُ فِى الْاَرْضِ حَيْرَانَ ۖ لَهٗٓ اَصْحٰبٌ يَّدْعُوْنَهٗٓ اِلَى الْهُدَى ائْتِنَا ۗ

او چه د دُنیا ژوند په دوکه کښې غورزولی دی. هن، خو ددې قرآن په ذریعه ورته نصیحت کوه او خبردار یې ورکوه چې نه چې څوک د خپل عملونو په عذاب کښې کرفتار شي، او بیا نه د الله نه د بچ کولو څوک ملګرې او مددګار او څوک سفارشي نه وي، او بیا که هغه د خلاصي د پاره هر څومره فدیه ورکول غواړي خو قبلیږې به نښي، ځکه چه دا سې خلق خو په خپلو عملونو په سزا کښې نیولې کیږي، هغوئ له به د حق نه د انکار کولو په بدله کښې جوشیدلې اوبه او دردناک عذاب ورکولې کیږي.ع

اے محمدؐ، د دوئ نه تپوس وکړه چه آیا مونږه الله پریږدو او هغوته آوازونه وکړو چه نه مونږ له نفع رارسولې شي او نه نقصان؟ او چه الله مونږ ته نیغه لار ښوولې ده نو آیا اوس د هغې نه پښا بیا واپس شو؟ آیا مونږه خپل حال د هغه سړي پشان کړو چه شیطانانو په صحرا کښې بې لارې کړې وي او هغه حیرانه سرګردانه ګرځي حالانکه چې خپل ملګري ورته آوازونه کوي چه دیخوا راشه نیغه لار شته ده؟

د کارنامه چه خاما د د هغوئ سره مالغه طوری او خپل وخت د ضائع کوي. هغوئ له پکار دی چه کوم کسانو څوک هغوئ خپل وخت او خپل تو ترونکه هغه خلقو په تعلیم او تربیت او په اصلاح باندې ولګوی چه هغوئ په خپله د حق طلبګار وي.

قُلْ إِنَّ هُدَى اللَّهِ هُوَ الْهُدَىٰ ۖ وَأُمِرْنَا لِنُسْلِمَ لِرَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿٧١﴾ وَأَنْ أَقِيمُوا الصَّلَاةَ وَاتَّقُوهُ ۚ وَهُوَ الَّذِي إِلَيْهِ تُحْشَرُونَ ﴿٧٢﴾ وَهُوَ الَّذِي خَلَقَ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضَ بِالْحَقِّ ۖ وَيَوْمَ يَقُولُ

ورته ووايه چه په حقيقت کښ صرف د الله رهنمائی صحيح رهنمائی ده او د هغه د طرفه مونږ ته دا حکم شوے دے چه د کائناتو مالک ته سر ښکته کړو، مونځ قائم کړئ، او د هغه د نافرمانئ نه ځان ساتئ او هم د هغه طرفته به ټول ورغونډيږئ. هم هغه دے چه زمکه او آسمانونه ئے په حقه پيدا کړی دی.[٤٦] او په کومه ورځ چه هغه ووائی

[٤٦] په قرآن کښ دا خبره ځائے په ځائے بيان شوی ده چه الله زمکه او آسمانونه برحق پيدا کړی دی يائے د حق سره پيدا کړی دی. په دې کښ ډيرلوئ مطلب پروت دے.

دده يو مطلب دا دے چه زمکه او آسمانونه صرف د لوبے په طور نه دی پيدا کړے شوی. دا د الله لوبه نه دی. دا د بچو د لوبو څيز نه دے چه صرف د زړه خوشحالولو د پاره ورسره لوبے کوی او بيائے هم دغه شان مات ماتات کړی او غورزارئے کړی. په اصل کښ دا يو مطلبی کار دے په دے کښ د ننه لوئ حکمت او لوئ مقصد پروت دے، او دده د يو دَور د تيريدو نه روستو دا ضروری ده چه خالق د هغے کار پوره پوره حساب وکړی کوم چه په دغه دور کښ شوے وی او د هغے په نتيجو باندی د دويم دور بنياد کيدی. هم دا خبره ده چه په نورو ځايونو کښ په دے طريقه بيان شوی ده. رَبَّنَا مَا خَلَقْتَ هٰذَا بَاطِلًا. "اے زمونږ پروردګاره، تا دا ټول هر څه فضول نه دی پيدا کړی." وَمَا خَلَقْنَا السَّمَاءَ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا لٰعِبِينَ. "مونږه آسمان او زمکه او څه چه د آسمان او د زمکے په مينځ کښ دی، د لوبو په طور نه دی پيدا کړی." أَفَحَسِبْتُمْ أَنَّمَا خَلَقْنٰكُمْ عَبَثًا وَّأَنَّكُمْ إِلَيْنَا لَا تُرْجَعُونَ. "آيا ستاسو دا خيال دے چه مونږه تاسو دا سے فضول پيدا کړی يئ او تاسو به زمونږ طرفته واپس را نه وستلے شئ؟"

دويم مطلب ئے دا دے چه الله تعالىٰ دده ټول کائنات نظام د حق په مضبوط بنياد و نو باندی قائم کړے دے او دده هر څيز د انصاف او د حکمت او د راستئ په قانون باندی روان دے. په دے نظام کښ د باطل د مضبوتيا او د خوريدو د پاره هيڅ ګنجائش نشته. دا بيله خبره ده چه الله تعالىٰ باطل پرستوله موقع ورکړی چه که چرے هغوی خپل دروغ او ظلم خورول غواړی نو خپل کوشش دِ وکړی و دِ کوری. ليکن آخر به دا زمکه د باطلو هر تخم بهرته دا غورزار کړی او هر باطل پرست به ووينی چه کوم کوششونه هغه د دے نا کاره بوټی د کرلو د پاره کړی دی هغه ټول عبث شو.

دريم مطلب ئے دا دے چه خدائے دا ټول کائنات د حق په بنياد پيدا کړی دی او دا د هغه خپل ذاتی حق دے چه په دے حکومت وکړی. د هغه حکم دلته ځکه چليږی چه هغه دا دُنيا پيدا کړی ده او د اصرف

كُنْ فَيَكُوْنُ ۚ قَوْلُهُ الْحَقُّ ۚ وَلَهُ الْمُلْكُ يَوْمَ يُنْفَخُ فِي الصُّوْرِ ۚ عٰلِمُ الْغَيْبِ وَالشَّهَادَةِ ۚ وَهُوَ الْحَكِيْمُ الْخَبِيْرُ ﴿۷۳﴾ وَ اِذْ قَالَ اِبْرٰهِيْمُ لِاَبِيْهِ اٰزَرَ اَتَتَّخِذُ اَصْنَامًا اٰلِهَةً ۚ اِنِّيْٓ

چه قيامت د وشي نو هم په هغې ورځ به كيږي. د هغه وينا بالكل حقه ده. او په كومه ورځ چه صُور پوك[۴۷] وهلے شي په هغې ورځ به بادشاهي د هغه وي[۴۸]، هغه د غيبوا او د ښكاره[۴۹] څيزونو عالم دے او حكمت والا او خبردار دے.

د ابراهيم واقعه ياده كړئ كله چه هغه خپل پلار آزر ته وئيلي وو[۵۰] آيا ته بُتانو ته خدائے وايې؟ زه خو

د هغه حق دے چه حكمراني پرې وكړي. كه په ظاهره داسے ښكاري چه دلته د نورو ځينو حكم چليږي نو په دے مه دوكه كيږئ، په حقيقت كښ نه د هغوئ حكم چليږي او نه چليدے شي، ځكه چه د كائناتو په يو څيز باندې د هغوئ هيڅ خونښته چه هغوئ پرې خپل حكم وچلوي.

[۴۷] د صُور پوك وهلو صحيح حالت به څه وي، دا خبره زمونږ د پوهے نه بهر ده. د قرآن نه چه مونږ ته څه معلوم شوي دي هغه صرف دومره خبره ده، چه د قيامت په ورځ به د الله په حكم باندې يو ځل صُور پوك وهلے شي او هر څه به هلاك شي او بيا، دا صرف الله ته معلومه ده چه څومره موده روستو به په دويم ځل صُور پوك وهلے شي او ټول د اول نه تر آخره پورے هر څه به بيا را ژوندي شي او په ميدان حشر كښ به حاضر وي. په اول صُور به ټول نظام ګډ وډ شي او په دويم صور سره به يو بل نظام په نوي شكل كښ د نوو قانونو سره قايم شي.

[۴۸] دا مطلب نه دے چه نن بادشاهي د هغه نه ده. بلكه مطلب دا دے چه په هغه ورځ كله د حقيقت نه پرده اوچته شي او حقيقت بالكل ښكاره شي نو پته به ولږي چه په دُنيا كښ څوك اختيار والا ښكاريدل يا خلقو اختيار والا ګڼړل هغه ټول بالكل بے اختياره دي او ټول اختيارات د هغه يو الله دي چه كائنات ئے پيدا كړي دي.

[۴۹] غيب: هغه ټول هر څه چه د مخلوق نه پټ دي.
شهادت: هغه ټول هر څه چه مخلوقاتو ته ښكاره او معلوم دي.

[۵۰] دلته د حضرت ابراهيم د واقعے ذكر د دے خبرے په تائيد كښ شوے دے چه كله څنګه د الله د هدايت په وجه نن محمد صلى الله عليه وسلم او د هغه ملګرو د شرك نه انكار كړے دے او د دروغو ټول خدايان ئے پريښودلي دي او د يو مالك حكم ئے منلے دے دغه شان مخكښ ابراهيم هم كړي دي. او چه كله څنګه نن محمد صلى الله عليه وسلم او د مومنانو سره د هغوئ جاهل قوم جګړه كوي دغه شان پرون د ابراهيم عليه السلام سره خپل قوم

أَرَىٰكَ وَقَوْمَكَ فِي ضَلَٰلٍ مُّبِينٍ ﴿٧٤﴾ وَكَذَٰلِكَ نُرِيٓ إِبْرَٰهِيمَ مَلَكُوتَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلْأَرْضِ وَلِيَكُونَ مِنَ ٱلْمُوقِنِينَ ﴿٧٥﴾

تا او ستا قوم په ښکاره ګمراهۍ کښ وينم". دغه رنګې به مونږه ابراهيمؑ ته د زمکې او د آسمانونو نظامِ سُلطنت ښودلو[۵۱] او ددې د پاره به مو ورته ښودلو چې هغه د يقين کونکو نه شي.[۵۲]

دا جګړه کړې دی، او پرون چې کوم جواب ابراهيم عليه السلام خپل قوم له ورکړے وُو نن د محمد صلی الله عليه وسلم او د هغه د ملګرو د طرفنه هم دغه جواب خپل قوم ته دے. محمد صلی الله عليه وسلم په هغه لار بانديې دے کومه چې د نوحؑ او د ابراهيمؑ او د هغه د نسل د ټولو پيغمبرانو لار ده. او س چې څوک په هغوئ پسې د تللو نه انکار کوي نو هغه دې پوهه شي چې هغه د پيغمبرانو د طريقې نه بل طرفته د ګمراهۍ په لار دی.

دلته په دے بله خبره هم ځان پوهه کول پکار دي چې د عربو خلقو عموماً حضرت ابراهيمؑ خپل مشر او پيشوا منلو، او خاص طور قريش به په دے خبره باندې فخر کولو چې هغوئ د ابراهيمؑ اولاد دی او د هغه د لاس د جوړې کړے شوې خانه کعبه خادمان دی. نو په دے رجه هغوئ ته د ابراهيمؑ د توحيد د ذکر کولو او د شرک نه د انکار کولو او د مشرکانو سره د جګړې د ذکر کولو مطلب دا وُو چې قريش دې په ابراهيمؑ باندې نور فخر نه کوي ځکه چې نن مسلمان په هغې مقام باندې ولاړ دے په کوم مقام باندې چې حضرت ابراهيمؑ وُو او قريش د هغې خلقو په شان دی چې د ابراهيمؑ سره به ئې جګړې کولې. د دے مثال بالکل داسې دے لکه چې څوک د شيخ عبدالقادر جيلانی رحمة الله عليه مُريدانو ته او د نادريه پيرزادګانو ته د حضرت شيخ اصلی تعليمات او د هغه د ژوند واقعات وړاندې کړي او ورته دا ووائي چې تاسو د کوم بزرګ نوم اخلئ او ځان د هغه مُريدان حسابوئ نو ستاسو خپله طريقه د حضرت شيخ نه بالکل خلاف ده او د کوم ګمراهانو خلاف چې ستاسو پيشوا د پير ټول عمر جهاد کړے دے نن ستاسو حيثيت د هغې ګمراهانو په شان دے.

[۵۱] يعنې لکه څنګه چې تاسو ته د کائناتو آثار ښکاره دی او د الله نښے درته ښودلے کيږي دغه شان د ابراهيمؑ په وړاندې هم دا آثار وُو او هم دا نښے وے. خو تاسو سره د ليدلو د ړندو په شان هيڅ نه وينئ او ابراهيمؑ دا هر څه په غړيدلو سترګو وليدل. دا لمر او سپوږمۍ او ستورې چې ستاسو په مخکښې راخيژي او پرېوزي او روزانه چې راخيژي نو هم تاسو ګمراهان يئ او چې پرېوزي نو هم تاسو ګمراهان يئ، هم دغه څيزونه ابراهيمؑ ليدلي وُو او هم د دغے نښو نه هغه حقيقت ته ورسيدو.

[۵۲] په دے ځائے باندې او د قرآن په نورو هغو ځايونو باندې چرته چې د ابراهيمؑ او د هغه د قوم د جګړې ذکر راغلے دے، د ځان پوهه کولو د پاره دا ضروري ده چې د حضرت ابراهيمؑ د قوم په مذهبي حالاتو باندې او د هغوئ په تمدنی او سياسي حالاتو باندې يو نظر واچولے شي. د نوې اثري تحقيقاتو مطابق هغه ښار هم معلوم شوے دے کوم ځائے کښ چې حضرت ابراهيمؑ پيدا شوے وُو او په هغې دور کښ د هغې علاقې د خلقو حالات هم معلوم شوي دي. سر ليونارډ وولی، (Sir Leonard Woolley). چې په خپل کتاب

"Abraham" London 1935. کښې دده تحقیقاتو کومه نتیجې شایع کړې دي د هغې خلاصه موږ لاندې لیکو:

دا اندازه لګولے شوې ده چه د مسیح نه مخکښې سنه ۲۱۰۰ په خوا وشا زمانه کښې، چه ادس ئې عام طور محققین د حضرت ابراهیم زمانه تسلیم کوي، د اُر نومے ښار آبادي تقریباً دوه نیم لاکه وه او کیدے شي چه پنځه لاکه وه. د تجارت او د کاریګرۍ لوی مرکز وُو. یو طرفته به د پامیرا او د نیلګرئ نه هلته مالونه راتلل او بل طرفته د اناطولیه پورې د دغې ښار تجارتي تعلقات وُو. دا ښار چه د کوم ریاست مقام وُو هغه ریاست د موجوده عراق نه په شمال طرف کښې لږ کم وُو او په مغرب طرف کښې لږ زیات وُو. د ټول ملک د خلقو پیشه زیاته کاریګري او تجارت وه. ددے زمانے کوم خطونه چه د آثار قدیمه په کنډراتو کښې ملا و یږي د هغې نه دا معلومیږي چه دغه خالص ماده پرست خلق وُو. دولت ګټل او ډیر زیات نه زیات آرام حاصلول د هغوئ د ژوند لوی مقصد وُو. سُود اخستل پکښې زیات وُو. بندہ سخت کاروباري خلق وُو. هر یو به په بل باندې شک کوؤ او په خپلو کښې به ئې ویره مقدمے وسے. د خپلو خدایانو نه به ئې زیاته دُعاګانے د ژوند عمر، د خوشحالئ او په کاروبار کښې د ترقئ د پاره وسے. ټول درے طبقه خلق وُو:

(۱) عَمیلو۔ دا د وچته طبقے خلق وُو. په دے کښې مُجوریان، د حکومت عهده داران او فوجي افسران شامل وُو.

(۲) مِشکینو۔ دا سوداګران، کاریګران او زمیداران خلق وُو.

(۳) آردو۔ یعنی غلام.

په دوئ کښې اولنئ طبقه یعنی عَمیلو ته خاص امتیازات حاصل وُو. د هغوئ عدالتي حقوق د نورو نه مختلف وُو او د هغوئ د سر او د مال قیمتونه د نورو نه زیات وُو.

دا ښار او دا خلق وُو چه په هغوئ کښې حضرت ابراهیم پیدا شو. په تلمود کتاب کښې چه د هغوئ د خاندان کوم حال بیان شوے دے د هغې نه معلومیږي چه هغه د عمیلو طبقه سړے وُو. او پلار ئې د ریاست د ټولو نه لوئ عهده دار وُو. (وګوره سورة بقره، حاشیه نمبر ۲۹۰).

د اُر په لیکلو شوؤ تختو کښې تقریباً د پنځو زرو خدایانو نومونه ملا و یږي. د ملک د مختلفو ښارونو ځان له ځان له خدایان وُو. د هر ښار به یو حفاظت کونکے خدائے وُو چه د ټولو خدایانو سردار به ګڼلے شو او د هغه عزت او احترام به د نورو خدایانو نه زیات کیدو. د اُر ښار حفاظت کونکے خدائے "ننّار" (چاند دیوتا) وُو او په دے وجه دے ښار ته روستنو خلقو "قمرینه" نوم هم ورکړے دے. دویم لوئ ښار لرسه وُو چه روستو بیا د اُر په ځائے باندې د بادشاهئ مرکز شو. د دے ښار حفاظت کونکے لوی خدائے (ربّ البلد) "شماش" (سورج دیوتا) وُو. د دے لویو خدایانو ماتحت واړه واړه خدایان به هم وُو چه هغه زیات د آسماني ستورو نه او دیر کم د زمکے نه خوښ کړے شوي وُو، او خلقو به خپل واړه واړه ضرورتونه د دوئ نه غوښتل. د دے ټولو خدایانو شکلونه به ئې د بُتانو په شکل کښې جوړ کړي وُو او د هغوئ ئې نذرانے عبادت کولو.

د "ننّار" بُت په اُر ښار کښې د ټولو نه په وُچت غر باندې په یو لوئ عمارت کښې دننه پروت وُو. د هغې

خو اته د "ننار" د ښځې د "ننګل" د عبادت ځائے وُو. د ننار عبادتګاه ډیر شاهی محل ښکاری وُو. د هغه د خوب په ځائے کښې به هره شپه یوه ښځه حاضریدله او د هغه ناوے به جوړیده. په مندرکښې ډیرے ښځے د دیوتا په نوم یانې وقف وے او د هغوی حیثیت د پیغلو مجورو (دیوداسیان (Religious Prostitutes) په شان وُو. کومه ښځه چه به خپله ځوانی د "خدائے" په نوم قربان کړه هغوی به ډیره عزتمنه ګڼړلے شوے. اخوا دے بیان کولو ته هیڅ ضرورت نشته چه د دغے پیغلو مجورو نه به زیاته فایده هم دغه مجورانو صاحبانو اخستله.

ننار یواځے دیوتانه وُو، بلکه د ملک لوی زمیندار، لوی سوداګر، لوی کارخانه دار او لوی سیاسی حاکم هم وُو. ډیر باغونه، مکانونه او زمکے د دے مندر د پاره وقف وے. د دے جائیداد د آمدنی نه علاوه به کروندګرو، زمیندارانو، سوداګرانو د هر قسم غلے، پئی، سره زر، کپړه او نور شیزونه راوړل او مندر ته به ئے په نذر کښې ورکول. د دے شیزونو د اخستلو د پاره په مندر کښې ډیر خلق ناست وُو. د مندر د طرفه ډیرے کارخانے چلیدے او غټ تجارتی کاروبار روان وُو. دا تول کاروبار به د دیوتا په نمائندګئ کښې مجورانو سرته رسول. د ملک لوی عدالت به په مندر کښې وُو. مجوربه د هغه جج وُو او د هغه فیصلے به د "خدائے" فیصلے ګڼړلے شوے. اصل بادشاه ننار وُو او د ملک حاکم به د هغه د طرفه حکومت کولو. د دے تعلق د وجے نه به بادشاه هم په خدایانو کښې شامل وُو او د خدایانو په شان به د هغه هم عبادت کیدے شو.

د حضرت ابراهیمؑ په زمانه کښې د اُر د شاهی خاندان چه کوم حکمران وُو د هغه نوم اُرنمو وُو دهٔ .. ۲۳ کاله د مسیح نه مخکښې یو لوئی سلطنت قایم کړے وُو. د هغه بادشاهی مشرق طرفته د سوسے نه راواخله مغرب ته د لبنان پورے وه. په دے بادشاهئ کښې په دے خاندان پورے "نمو" نوم پورے شو چه بیا په عربئ ژبه کښې ترنمرود جوړ شو. د حضرت ابراهیمؑ د هجرت نه روستو د دے خاندان او د دے قوم تباهی شروع شوه. اول عیلامیانو اُر تباه کړو او نمرود د ننار بت سره ئے وړیول. بیا په لرسه کښې یو عیلامی حکومت قایم شو چه د اُر علاقے ماتحته وه. آخر دا چه د یو عربی النسل خاندان ماتحت د بابل زور زیات شو او لرسه او اُر دواړه ئے د تبضے لاندې شول. د دے تباهی په وجه د اُر د خلقو چه د ننار سره کومه عقیده وه هغه ختمه شوه ځکه چه ننار د هغوی حفاظت و نه کړے شو.

دا خاص په تعین سره څوک نشی وئیلے چه د دے ملک خلقو د حضرت ابراهیمؑ تعلیم څومره قبول کړو. لیکن د مسیح نه مخکښې په ۱۹۱۰ کښې د بابل بادشاه حمورابی (د بائیبل اَمرافیل) چه کوم قانون جوړ کړے وُو په هغے کښې د څه حده پورے د پیغمبرئ د تعلیم رڼا ضرور وه. د دے قانون تفصیلی کتبه د مسیح نه روستو په ۱۹۰۲ کښې یو فرانیسی ته ملاؤ شوه چه هغه د آثار قدیمه لټول کار کولو، او بیا د هغے په انګریزئ کښې ترجمه (C.H.W John) په ۱۹۰۳ بعد مسیح کښې (The Oldest Code of Law). په نوم شائع شوه. د دے قانون ډیر اصول او فروعیات د موسیٰؑ د شریعت سره مشابهت لری.

د وسه پورے چه څومره اثری تحقیقات شوی دی که هغه صحیح وی نو دا خبره تر بالکل واضحه معلومیږی چه د ابراهیمؑ په قوم کښې شرک یواځے د بتانو عبادت او دیواځے یوه مذهبی عقیده نه وه

فَلَمَّا جَنَّ عَلَيْهِ الَّيْلُ رَاٰ كَوْكَبًا ۚ قَالَ هٰذَا رَبِّيْ ۚ فَلَمَّاۤ اَفَلَ قَالَ لَاۤ اُحِبُّ الْاٰفِلِيْنَ ﴿۷۶﴾ فَلَمَّا رَاَ الْقَمَرَ بَازِغًا قَالَ هٰذَا رَبِّيْ ۚ فَلَمَّاۤ اَفَلَ قَالَ لَئِنْ لَّمْ يَهْدِنِيْ رَبِّيْ لَاَكُوْنَنَّ مِنَ الْقَوْمِ الضَّآلِّيْنَ ﴿۷۷﴾ فَلَمَّا رَاَ الشَّمْسَ بَازِغَةً قَالَ هٰذَا رَبِّيْ هٰذَاۤ اَكْبَرُ ۚ فَلَمَّاۤ اَفَلَتْ قَالَ يٰقَوْمِ اِنِّيْ بَرِيْٓءٌ مِّمَّا تُشْرِكُوْنَ ﴿۷۸﴾ اِنِّيْ

نو هر کله چه شپه پرِ راغله نو هغه یو ستورے ولیدو، وے وئیل چه دا زما رب دے۔ خو چه هغه کله پریوتو نو وے وئیل چه زه پریوتونکی خوښ نه یم۔ بیائے چه کله سپوږمۍ ولیدله چه ځلیږی نو وے وئیل چه دا دے زما رب۔ خو کله چه هغه هم پریوتله نو وے وئیل که چرے زما رب زما رهنمائی نه وے کړے نو زه به هم په ګمراهانو کښ شامل شوے وے۔ بیائے چه نمرو بیانه ولیدو نو وے وئیل چه دا دے زما رب، دا د ټولو نه لوئ دے۔ خو چه هغه هم پریوتو نو آواز ئے وکړو چه "اے زما قومه، زما د هغے ټولو سره هیڅ تعلق نشته کوم چه تاسو د خدائے سره شریک جوړه وی۔ ماسخو

بلکه په حقیقت کښ د هغه قوم ټوله کته وته، رسمونه رواجونه، سیاست او د استوګنے ټول نظام په دغه عقیده باندِ جوړ وو. ددے په مقابله کښ حضرت ابراهیمؑ چه د توحید کوم دعوت شروع کړے وو د هغه اثر صرف د بتانو په عبادت باندِ نه پریوتلو بلکه د هغه سره د شاهی خاندان خدائی او حاکمیت بدلیدو، د منجورانو او د پیتے طبقه کرمه کړی، لوئ حیثیت، دولت او سیاست ختمیدو او د ټول ملک اجتماعی ژوند بدلیدو۔ د ابراهیمؑ د دعوت قبلولو مطلب دا وو چه د لاندِ نه را اخلے پاسه پورے د ټول ژوند نقشه دِ وړانه کړے شی او بیا دِ د نوے سره د توحید الٰه په بنیاد باندِ آباده کړے شی۔ دغه وجه وه چه د ابراهیمؑ په آواز باندِ عام خلق او خاص خلق، پوجاریان منجوران او نمرود ټول په یو وخت د هغه مخالف شو۔

۵۳ دلته د ابراهیمؑ د فکر کولو هغه اولنی حالت بیان کړے شوے دے کوم چه د نبوّت نه مخکښ وو او بیا م دغه فکر د هغه د پایه حقیقت ته د رسیدو یوه ذریعه جوړه شوه۔ په دے کښ دے خبرے ته اشاره شوے ده چه یو صحیح دماغ والا او صحیح فکر والا انسان، چه خالص د شرک په ماحول کښ پیدا شوے وو، او د توحید تعلیم ورته د هیڅ ځائے نه نه حاصلیدو، هغه څه رنګه د کائناتو پېښیدونو باندِ غور وکړو او صحیح طرف ته لاره او په حق معلومولو کښ کامیاب شو۔ بیا چه د ابراهیمؑ د قوم کوم حالات بیان کړے شوی دی د هغے نه معلومیږی چه ابراهیمؑ کله په هوش شولو د هغه نه چار چاپیره هر طرف ته د نمر او د سپوږمۍ او د ستورو د خدائی شهرت وو۔ دغه وجه ده چه کله ابراهیمؑ د حقیقت

تلاش شروع کړو نو قدرتي طور د تهولو نه اول د دے خبرے معلومول پکار وُو چه آیا واقعي په دے څیزونو کښې څه څیز و نه رب جوړیدے شي؟ په دے مرکزي سوال باندې هغه غور شروع کړو او آخر دا چه د خپل قوم ټول منذ ایان ئے ډیو نه بدلید ونکي قانون لاندې د غلامانو پشان بے وسه ؤلیدل او دے نتیجے ته ؤرسید وچه کوم څیزونو ته رب وئیلے کیږي په هغوئ کښې د رب والي هیڅ حقیقت نشته، رب خو صرف هغه یو دے چه دا ټول هرڅه ئے پیدا کړل او په بندګئ کولو باندے مجبور ئے کړل۔

د دے قصے د الفاظو نه عام طور د خلقو په ذهن کښې یو شک پیدا کیږي ۔ دا خبره، چه کله شپه شوه نو هغه یو ستورے ؤلیدو او چه کله هغه پريوتو نو دا ئے اووے، بیا چه سپوږمۍ ئے ؤلیده او هغه چه ډوبه شوه نو دا ئے اووے، بیا چه نمر ئے ؤلیدو او چه هغه هم ډوب شو نو دا ئے اووے، په دے خبره باندې د عام سړي په ذهن کښې فوراً دا سوال دا پیدا کیږي چه آیا د وړوکوالي نه به په ابراهیمؑ باندې روزانه شپه نه راتلله؟ او آیا هغه به هره ورځ د ستورو سپوږمۍ او د نمر خاته پريواتۀ نۀ لیدل؟ ښکاره خبره ده چه دا غور و فکر به هغه د هوښیار تیا په عمر کښې کړے وي۔ نو بیا دا قصه په دے طریقه ولے بیان شوې ده چه کله شپه شوه نو دا ئے ؤلیدل او چه کله ورځ شوه نو دا ئے ؤلیدل؟ ګوے د دے خاص واقعے نه مخکښې هغه دا څیزونه نه ؤو لیدلي، حالانکه د دے څیزونو نۀ لیدل د عقل نه لرے خبره ده۔ د دے شک لرې کول د ځنې خلقو د پاره دومره ګران شو چه بل څه ترې ونۀ شو نو د ابراهیمؑ د پیدائیش او د هغه د غټیدو د پاره ئے یوه ناآشنا قصه جوړه کړله۔ وائي چه د ابراهیمؑ پیدائیش او پرورش په یو غار کښې شوے ؤو چه هلته د عقل د پخیدو پورے هغه ستوري سپوږمۍ او نمر نۀ ؤو لیدلي۔ حالانکه خبره بالکل صفا ده او د دے قسمه قیصو جوړولو هیڅ ضرورت نشته۔ د "نیوټن" متعلق دا مشهوره ده چه هغه یوه ورځے په باغ کښې ؤلیدل چه یوه مڼه د ونے نه راپريوتله او د دے نه ئے ناساپه د دے خبرے ته خیال شو چه دا څیزونه زمکے ته ولے راپريوزي، په دے خبره ئے غور کولو کولو تر دے حده پورے چه د جذب و کشش قانون ئے ترې راؤویستلو۔ دلته هم دا سوال پیدا کیږي چه آیا د دے واقعے نه مخکښې نیوټن چرته په زمکه باندې څیز راپريوتل نۀ ؤو لیدلي؟ ښکاره خبره ده چه ضرور به ئے څو څو ځله لیدلي وي۔ نو بیا څه وجه ده چه په دغه خاص ورځ باندې د نیوټن په ذهن کښې هغه خاص خیال راپیدا شو کوم چه مخکښې نۀ ؤو راپیدا شوے حالانکه هغه به مخکښې په سوؤنو مڼے راپريوتل لیدلي ؤو؟ د دے جواب دا دے چه د غور و فکر کونکي په ذهن باندې همیشه د یو څیز په لیدو سره یو قسم اثر نۀ کیږي۔ اکثر داسے کیږي چه سړے یو څیز همیشه ویني د او ویني خو په ذهن کښې ئے هیڅ حرکت نۀ راځي، خو یو نیم وخت هم د دغه څیز په لیدو سره ناساپه په ذهن کښې داسے یوه خبره راپیدا شي چه د فکر ټول قوتونه په یو خاص طرف باندې کار کول شروع کړي۔ یا د مخکښې نه یوه خبره د سړي په ذهن کښې ئختلي وي او ناساپه ئے په عام و څیزونو کښې په یو څیز باندې نظر ولګي او هغه ټولے مسئلے او مشکلات ئے حل شي۔ د ابراهیمؑ معامله هم دغه شان وه۔ شپے به راتلے او تیریدے به۔ نمر او سپوږمۍ او ستوري به راختل پريوتل۔ لیکن هغه یوه خاصه ورځ وه چه هغه یو ستورے ؤلیدو او د هغے په

وَجَّهْتُ وَجْهِيَ لِلَّذِي فَطَرَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ حَنِيْفًا وَّ مَآ
اَنَا مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿۷۹﴾ وَحَآجَّهٗ قَوْمُهٗ ط قَالَ اَتُحَآجُّوْٓنِّيْ فِي اللّٰهِ
وَقَدْ هَدٰىنِ ط وَلَآ اَخَافُ مَا تُشْرِكُوْنَ بِهٖٓ اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ رَبِّيْ شَيْـًٔا ط
وَسِعَ رَبِّيْ كُلَّ شَيْءٍ عِلْمًا ط اَفَلَا تَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۸۰﴾ وَكَيْفَ

خپل مخ د نیولو طرفونو نه راوګرځولو او هغه هستۍ طرفته مې کړو چه زمکه او آسمانونه ئې
پیدا کړی دی او زهٔ هرګز په شرک کوونکو کښې نهٔ یم". د هغه قوم د هغه سره جګړه شروع کړه
نو هغه قوم ته اووئے چه "بنه، تاسو زما سره د الله په حقله جګړه کوئ؟ حالانکه هغه ماته نیغه
لار ښودلې ده. زهٔ ستاسو د جوړو کړو شریکانو نه نهٔ یریږم، هن که چرے زما رب څهٔ غواړي
نو هغه به ضرور کیږي. زما د رب علم په هر څه باندې خورد، نو آیا اوس به هم په هوش کښې نهٔ راځئ؟ او آخر زهٔ ستاسو

ممکنه ده چه ابراهیمؑ د اول
لید وسره د هغه ذهن په دا سے لار لاړ چه آخر د توحید الٰه حقیقت ته ورسیدو.
نه په دے خبره باندې غور کولو چه د کومے عقیدے لاندې دا ټول قوم ژوند تیروی په دے کښې تر کومه
پوره صداقت دے، او بیائے ناساپه د ستوری ته خیال شوے وی او د هغے نه ورته ټوله مسئله حل شوی
وی. او دا هم ممکنه ده چه د ستوری په لید وسره ئے دا خیال راپیدا شوے وی.
په دے سلسله کښې یو بل سوال هم راپیدا کیږی. او هغه دا چه کله ابراهیمؑ ستورے ولید او وے
وئیل چه دا زما رب دے، او چه کله سپوږمۍ نمرئے ولیدل نو هغوئ ته ئے خپل رب اووے، نو آیا په دغه
وخت کښې، اګرکه عارضی خبره وه، هغه په شرک کښې راغے؟ د دے جواب دا دے چه کله د حق تلاش
کوونکے د تلاش په لار کښې سفر کوی او هغه په منځ کښې د غور و فکر کولو د پاره په څه ځایونو کښې ودریږی
نو دغے ودریدو له هیڅ اعتبار نشته بلکه اصل اعتبار د هغے طرف دے کوم طرفته چه دے روان دے،
او اعتبار د هغے آخری مقام ته چه دے کوم مقام ته رسیدل غواړی. د منځ په پړاؤ نو تیریدل
د هر یو حق تلاش کوونکی د پاره ضروری دی. په دغے پړاؤ نو ودریدل د تلاش د پاره وی او د ځان پوهه
کوونکو پاره وی د دے غرض د پاره نهٔ وی چه دهٔ د ودریدو فیصله وکړه. کله چه تلاش کوونکے په
دغے منزل باندې ودریږی او دا ووائی چه "دا سے ده" نو په اصل کښې دا د هغهٔ آخری رائے
نهٔ وی بلکه د هغهٔ مطلب دا وی چه "دا سے ده او که نهٔ ده"؟ او د تحقیق کولو نه روستو چه هغے
نهٔ وی نو بیا مخکښے روان شی. په دے وجه دا خیال کول بالکل غلط دی چه د تلو په دوران کښې هغه
په کوم ځائے کښې ودریدو نو هغه کښې هلته عارضی طور په کفر یا په شرک کښې مبتلا شو.

اَخَافُ مَآ اَشْرَكْتُمْ وَلَا تَخَافُوْنَ اَنَّكُمْ اَشْرَكْتُمْ بِاللّٰهِ مَا لَمْ يُنَزِّلْ بِهٖ عَلَيْكُمْ سُلْطٰنًا ؕ فَاَیُّ الْفَرِيْقَيْنِ اَحَقُّ بِالْاَمْنِ ۚ اِنْ كُنْتُمْ تَعْلَمُوْنَ ﴿۸۱﴾ اَلَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَلَمْ يَلْبِسُوْٓا اِيْمَانَهُمْ بِظُلْمٍ اُولٰٓئِكَ لَهُمُ الْاَمْنُ وَهُمْ مُّهْتَدُوْنَ ﴿۸۲﴾ ع

وقف لازم



دَ جوړ کړو شریکانو نه څنګه ویریږم هر کله چه تاسو دے نه نه ویریږئ چه دَ الله سره هغه څیزونه په خدائی کښې شریکوئ چه دَ هغے دَ پاره الله په تاسو باندې څه سند نه دے نازل کړے؟ په موږ دواړو کښې څوک زیات دَ زړه ورتیا او دَ اطمینان مستحق دے؟ ووایئ که چرے تاسو څه علم لرئ. په حقیقت کښے خو امن دَ هغے خلقو دَ پاره دے او په نیغه لار باندې هم هغه خلق دی، کوم خلقو چه ایمان راوړو او خپل ایمان ئے دَ ظلم سره ګډ وډ نه کړو.[۵۵] ع

[۵۴] په اصل کښې لفظ تَذَکَّرُ استعمال شوے دے چه صحیح مطلب ئے دا دے چه یو سړے په غفلت کښې پروت وی او هغه ته ناساپه هغه څیز وریاد شی چه دَ کوم نه دے غافل وی. نو دے وجه نه موږ دَ اَفَلَا تَتَذَکَّرُوْنَ دا ترجمه کړی ده. دَ حضرت ابراهیمؑ دَ وینا مطلب دا دے چه تاسو څه کوئ، ستاسو اصلی او حقیقی رب دَ هغے نه ناخبره نه دے، دَ هغه علم په هر څیز باندې خور دے نو آیا تاسو چه دا دے حقیقت نه خبر شئ نو بیا به هم په هوش کښې نه راځئ؟

[۵۵] دا ټول تقریر په دے خبره باندې ګواه دے چه هغه قوم دَ الله دَ ذات نه، چه دَ آسمانونو او دَ زمکے خالق دے، منکر نه وُو. بلکه دَ هغوئ اصلی جرم دا وُو چه دَ الله سره به ئے نور څوک دَ خدائی په صفتونو کښې او دَ خدائی په حقونو کښې شریکول. اول خو حضرت ابراهیمؑ په خپله دا وائی چه تاسو دَ الله سره نور څیزونه شریکوئ. دویم دا چه په کومه طریقه هغه خلقو ته دَ الله ذکر کوی نو په هغه طریقه صرف هغه خلقو ته خبره کیدے شی چه هغوئ دَ الله دَ ذات نه منکر نه وی. نو په دے وجه دَ هغے مفسرینو رائے درسته نه ده کوم چه په دے ځائے کښې یا دَ ابراهیمؑ په باره کښې په نورو ځایونو کښې دَ قرآنی بیاناتو په دے رنګ تفسیر کړے دے چه دَ ابراهیمؑ قوم دَ الله نه منکر وُو یا دَ الله نه ناخبره وُو او صرف خپل بُتان ئے دَ خدائی پوره پوره مالکان ګڼړل.

په آخری آیت کښې چه دا کوم فقره ده "چا چه خپل ایمان دَ ظلم سره ګډ وډ نه کړو" په دے کښې څو صحابه دَ لفظ ظلم نه هم مطلب اخستو کوم غلط شوی هغوئ وے چه دا دے مطلب ګناه ده. لیکن نبی صلی الله علیه وسلم پخپله دا خبره صفا کړله چه دلته دَ ظلم نه مراد شرک دے. نو دَ آیت مطلب دا شو چه کوم خلق الله ومنی او بیا دا خپل ایمان دَ شرک دَ یو عقیده یا دَ یو عمل سره ګډ وډ نه کړی، نو امن او

وَتِلْكَ حُجَّتُنَآ اٰتَيْنٰهَآ اِبْرٰهِيْمَ عَلٰى قَوْمِهٖ ؕ نَرْفَعُ دَرَجٰتٍ مَّنْ نَّشَآءُ ؕ اِنَّ رَبَّكَ حَكِيْمٌ عَلِيْمٌ ﴿۸۳﴾ وَوَهَبْنَا لَهٗٓ اِسْحٰقَ وَيَعْقُوْبَ ؕ كُلًّا هَدَيْنَا ۚ وَنُوْحًا هَدَيْنَا مِنْ قَبْلُ وَمِنْ ذُرِّيَّتِهٖ دَاوٗدَ وَسُلَيْمٰنَ وَاَيُّوْبَ وَيُوْسُفَ وَمُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ؕ وَكَذٰلِكَ نَجْزِى الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۸۴﴾ وَزَكَرِيَّا وَيَحْيٰى وَعِيْسٰى وَاِلْيَاسَ ؕ

دا وُو زموږه هغه دليل چه موږ ابراهيمؑ ته د هغه د قوم په مقابله کښې ورکړو. موږ چه چا ته غواړو هغه ته وچتې درجې ورکوو. حق دا دے چه ستا رب حکمت والا دے او په هر څه پوهه دے. بيا موږه ابراهيمؑ له اسحٰقؑ او يعقوب نومے اولاد ورکړل او هر يو ته مو صحيح لار وښودله. (هغه صحيح لار چه) دهغه نه مخکښې مو نوحؑ ته ښودلې وه. او هم د هغه د نسل نه مو داؤدؑ، سليمٰنؑ، ايوبؑ، يوسفؑ، موسٰیؑ او هارونؑ ته (صحيح لار وښودله). دغه شان موږ نيکانو خلقو ته د هغوی د نيکئ بدله ورکوو. (او هم د هغه د اولاد نه مو) زکريا، يحيٰؑ، عيسٰیؑ او الياسؑ ته (صحيح لار وښودله).

اطمينان صرف د هغوئ د پاره دے او هم هغوئ په صحيح لار باندې دي.

په دے موقع باندې يوه دلچسپه او نا اشنا خبره دا ده چه د حضرت ابراهيمؑ دا تعه په بائبل کښې نشته. البته په تلمود کښې د دے واقعے ذکر شته. ليکن په هغې کښې دوه خبرے د قرآن نه مختلفې دي. يوه دا چه هغه د ابراهيمؑ د تلاش حق کوشش د نمر نه شروع کوی او بيا د ستورو په وړے او د خدائے پورے دغه کوشش رسوی. بله دا چه هغه وائي چه ابراهيمؑ کله نمر ته هٰذا ربي او وے نو ورسره ئے د هغه عبادت هم وکړو، او دغه شان چه سپوږمئ ته ئے هٰذا ربي او وے نو د هغې عبادت ئے وکړو.

كُلٌّ مِّنَ الصّٰلِحِيْنَ ﴿٨٥﴾ وَاِسْمٰعِيْلَ وَالْيَسَعَ وَيُوْنُسَ وَلُوْطًا ۭ وَكُلًّا فَضَّلْنَا عَلَى الْعٰلَمِيْنَ ﴿٨٦﴾ وَمِنْ اٰبَاۗىِٕهِمْ وَذُرِّيّٰتِهِمْ وَاِخْوَانِهِمْ ۚ وَاجْتَبَيْنٰهُمْ وَهَدَيْنٰهُمْ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ﴿٨٧﴾ ذٰلِكَ هُدَى اللّٰهِ يَهْدِيْ بِهٖ مَنْ يَّشَاۗءُ مِنْ عِبَادِهٖ ۭ وَلَوْ اَشْرَكُوْا لَحَبِطَ عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿٨٨﴾ اُولٰۗىِٕكَ الَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ وَالْحُكْمَ وَالنُّبُوَّةَ ۚ فَاِنْ يَّكْفُرْ بِهَا هٰٓؤُلَاۗءِ فَقَدْ

هر يو په هغوئ كښې صالح وُو. (او هم د هغه د خاندان نه مو) اسمعيل، اليسع، او يونس او لوط ته (د هغه صحيح لاره ښودله). په دوئ كښې هر يو له مونږه په ټولو دنياوالو باندې فضيلت وركړو. او د غه رنګے مو د دوئ د پلارنيكونو او د دوئ د اولادونه او د دوئ د ورونړو نه ډيرو له فضيلت وركړو، او د خپل خدمت د پاره مو غوره كړل او نيغې لارې طرفته مو سم كړل. دا د الله هدايت دے چه د هغه په ذريعه په خپلو بندګانو كښې څوک خوښ وي په دے سره هغوئ ته نيغه لار ښائي. ليكن كه چرے دے خلقو شرک كړے وے نو د دوئ ټول عملونه به برباد شوي وُو.[54] دا هغه كسان وو چه مونږ ورله كتاب او حكم او نبوّت[55] وركړے وُو. اوس كه چرے دا خلق د دے د منلو نه انكار كوي نو (پروا نشته)

[54] يعني په كوم شرک كښې چه تاسو مبتلا يئ كه چرے هغوئ هم په دے كښې مبتلا شوے وے نو دا مرتبه به ورته هيچرے نه وه ملاؤ شوے. دا ممكنه وه چه يو سړي په كامياب ډاكوتوب كښې په ټوله دنيا كښې نوم پيدا كړے وے، يا په مال و دولت كښې څه د قارون په شان شهرت حاصل كړے وے، يا د دُنيا په نورو بدو كارونو كښې په څه شكل سره مشهور بدكار جوړ شوے وے. ليكن د نيكۍ لارے پيشوا جوړيدل او د پرهيزګارانو خلقو امام جوړيدل او د ټولے دُنيا د پاره د خير بنيګړے په مقام ودريدل، دا عظيم الشان مقام دوئ هركز نه شو موندلے تر څو چه دوئ د شرک نه ځان نه وے ساتلے او خالص د خدا پرستۍ په لاره باندې نه وے ټينګ شوے.

[55] دلته دا ذكر شوے دے چه پيغمبرانو ته درے څيزونه وركړے شوي دي. يو كتاب يعني د الله هدايت نامه ——— دويم حكم يعني په د غه هدايت نامه باندې صحيح پوهه، او دا سے صلاحيت چه د دغه هدايت نامے اُصول د ژوند په معاملاتو باندې صحيح برابر اولګي، او دا سے قابليت چه د ژوند په مسئلو كښې صحيح رائے قايم كړي او صحيح فيصلے وكړي. دريم نبوّت، يعني دا منصب چه هغه د دے هدايت نامے مطابق د الله مخلوق ته صحيح لاره وښائي.

وَكَّلْنَا بِهَا قَوْمًا لَّيْسُوا بِهَا بِكٰفِرِيْنَ ﴿۸۹﴾ اُولٰٓئِكَ الَّذِيْنَ هَدَى اللّٰهُ فَبِهُدٰىهُمُ اقْتَدِهْ ؕ قُلْ لَّآ اَسْئَلُكُمْ عَلَيْهِ اَجْرًا ؕ اِنْ هُوَ اِلَّا ذِكْرٰى لِلْعٰلَمِيْنَ ﴿۹۰﴾ ؏ وَمَا قَدَرُوا اللّٰهَ حَقَّ قَدْرِهٖٓ اِذْ قَالُوْا مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ عَلٰى بَشَرٍ مِّنْ شَيْءٍ ؕ قُلْ مَنْ اَنْزَلَ الْكِتٰبَ الَّذِيْ جَآءَ بِهٖ مُوْسٰى نُوْرًا وَّهُدًى

مونږ ده نورو داسې خلقو ته دا نعمت سپارلے دے چه هغه دے نه منکر نه دي.[58] اے محمد، دغه خلقو ته د الله د طرفنه هدايت شوے وو، هم د هغوئ په لاره باندې ته ځه، او دوئ ته ووايه چه زه (د تبليغ او د هدايت) په دے کار باندې ستاسو نه څه اجرت نه غواړم، دا خو يو عام نصيحت دے د ټولے دُنيا والو د پاره. ع

دے خلقو د الله ډيره غلطه اندازه ولګوله هر کله چه دائے ووئيل چه الله په يو بشر باندې هيڅ نه دي نازل کړي.[59] د دوئ نه تپوس وکړه، بيا هغه کتاب چه موسیٰ راوړے وو، چه د ټولو انسانانو د پاره رڼا او هدايت

[58] مطلب دا دے چه که چرے دا کافران او مشرکان د الله د دے هدايت قبلولو نه انکار کوي نو ذکري مونږه د مومنانو داسے يوه ډله پيدا کړي ده چه هغوئ د دے نعمت قدر کونکي دي.

[59] د تير شوي بيان او د روستني تقرير نه دا صفا معلوميږي چه دا وينا د يهوديانو وه. چونکه نبي صلی الله عليه وسلم دا دعویٰ کړي وه چه زه نبي يم او په ما باندې کتاب نازل شوے دے، نو قدرتي طور به د قريشو کافران او د عربو نور مشرکان د تحقيق کولو د پاره يهوديانو او عيسايانو له راتلل او دا تپوس به ئے ترې کوو چه تاسو سره هم کتاب دے، پيغمبران منئ، تاسو مونږ ته ووايئ چه آيا واقعي په دے سړي باندې د الله کتاب نازل شوے دے؟ نو چه هغوئ له به دوئ کوم جواب ورکړو نو هغه به د نبي صلی الله عليه وسلم مخالفينو ځائے په ځائے بيانولو او خلق به ئے ترې اړول. د دے وجه نه دلته د يهوديانو هغه وينا نقل شوي ده او د هغے جواب شوے دے، کوم چه د اسلام مخالفينو د ځان د پاره دليل ګرځولے وو.

دا شک راتلے شي چه يو يهودي به دا څنګه ووايي چه خدائے په يو بشر باندې هم څه نه دي نازل کړي حالانکه يهوديان په خپله دا مني چه تورات د خدائے د طرفنه نازل شوے دے. ليکن دا شک صحيح نه دے ځکه چه کله څوک په ضد کښې راشي او د بل سړي رښتيا خبره رد کوي نو د هغے د پاره هغه بيا داسے خبره هم کوي چه په خپله پرې د هغه اُصول غلط ثابتيږي. دا خلق د محمد صلی الله عليه وسلم د نبوت نه منلو ته په ضد شوي وو او په مخالفت کښې دومره راندہ شوي وو چه د محمد صلی الله عليه وسلم پيغمبري ئے نه منله نو د سرنه ئے د پيغمبرئ نه ورپسے انکار وکړو.

او دا خبره چه "دے خلقو د الله ډيره غلطه اندازه ولګوله چه دے ووئيل" د دے دا مطلب دے چه دوئ د الله د حکمت او د هغه د قدرت په اندازه لګولو کښې غلطي کړي ده. څوک چه دا وائي چه خدائے په يو بشر باندې

لِلنَّاسِ تَجْعَلُوْنَهٗ قَرَاطِيْسَ تُبْدُوْنَهَا وَتُخْفُوْنَ كَثِيْرًا ۚ وَعُلِّمْتُمْ مَّا لَمْ تَعْلَمُوْٓا اَنْتُمْ وَلَآ اٰبَآؤُكُمْ ؕ قُلِ اللّٰهُ ۙ ثُمَّ ذَرْهُمْ فِيْ خَوْضِهِمْ يَلْعَبُوْنَ ﴿۹۱﴾ وَهٰذَا كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ مُبٰرَكٌ مُّصَدِّقُ الَّذِيْ بَيْنَ يَدَيْهِ وَلِتُنْذِرَ اُمَّ الْقُرٰى وَمَنْ حَوْلَهَا ؕ

وُو، چه تاسو ئے سپارے سپارے کوئ او ساتئ ئے، څه ښکاره کوئ او ډیر پکښ پټ ساتئ، او چه دَ هغې په ذریعه تاسو ته هغه علم درکړے شوے دے چه نه تاسو حاصل کړے وُو او نه ستاسو پلار نیکونو، آخر دَ هغې نازلوونکے څوک وُو؟ ——— بس دومره ورته اُووایه چه الله، بیا ئے پریږده چه هغوئ بیځلو دلیل بازو کښ لوبے کوی۔ (دَ دغے کتاب پشان) دا یو کتاب دے چه موږ نازل کړے دے. ډیر دَ خیرا و برکت والا کتاب دے. دَ هغې څیز تصدیق کوی کوم چه دده نه مخکښ راغلے وُو۔ او دده دَ پاره نازل کړے شوے دے چه دده په ذریعه ته دَ کلو دا مرکز (یعنی مکّه) او دده په خوا وُشا کښ وُسیدونکی خلق خبردار کړے

هم دَ حق علم او دَ هدایت کتاب نه دے نازل کړے نو هغوئ خو یا په بشر باندِ وحی نازلیدل ناممکن گنړی او دا دَ خدائے دَ قدرت غلطه اندازه ده، یا بیا دَ هغوئ دا خیال دے چه خدائے خو انسان له ذهن او دَ تصرف کولو اختیارات ورکړل خو هغه ته ئے دَ صحیح لارے دَ ښودلو انتظام وُنه کړو، بلکه هغه ئے په دُنیا کښ دَ اټکل کار کولو دَ پاره داسے پریښودو، او دا دَ خدائے دَ حکمت غلطه اندازه ده.

۶۰ دا جواب چونکه یهودیانو ته دے نو دده وجه نه دَ دلیل په طور دے موسٰی علیه السلام باندِ دَ تورات دَ نازلیدو مثال پیش کړے شو، ځکه چه هغوئ پخپله ددے قائل وُو. ښکاره خبره ده چه کله هغوئ دا منی چه په موسیٰ باندِ توراة نازل شوے وُو نو دَ هغوئ دا خبره پخپله غلطه شوه چه خدائے په هیڅ یو بشر باندِ څه نه دی نازل کړی، دا رنگے دده نه خو کم از کم دومره خبره ثابتیږی چه په بشر باندِ دَ خدائے کلام نازلیدے شی او نازل شوے هم دے.

---

وَالَّذِيْنَ يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ يُؤْمِنُوْنَ بِهٖ وَهُمْ عَلٰى صَلَاتِهِمْ يُحَافِظُوْنَ ﴿۹۲﴾ وَمَنْ اَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرٰى عَلَى اللّٰهِ كَذِبًا اَوْ قَالَ اُوْحِيَ اِلَيَّ وَلَمْ يُوْحَ اِلَيْهِ شَيْءٌ وَّمَنْ قَالَ سَاُنْزِلُ مِثْلَ مَآ اَنْزَلَ اللّٰهُ ؕ وَلَوْ تَرٰٓى اِذِ الظّٰلِمُوْنَ فِيْ غَمَرٰتِ الْمَوْتِ وَالْمَلٰٓئِكَةُ

کوم خلق چه آخرت مني هغوئ په دے کتاب باندِ ايمان راوړي او دَ هغوئ دا حال دے چه دَ خپلو مونځونو پابندي کوي.[۱] او دَ هغه سړي نه به زيات ظالم نور څوک وي چه په خدائے پورے دروغ تړي، يا داووائي چه په ما باندِ وحي راغلې ده او حال دا وي چه په هغه باندِ هيڅ وحي نه وي نازل کړے شوې، يا داووائي چه زهٔ به هم دِ رته دَ الله دَ نازل کړے شوي څيز غوندِ يو څيز نازل کړم؟ کاش چه تهٔ ظالمان په هغه حالت کښ ولېدے شوے، کله چه دوئ دَ مرګ په سکروکښ غوټے خوري او فرښتے ورته

---

[۱] اوله دليل دَ دے خبرے په ثبوت کښ دے چه په بشر باندِ دَ خدائے کلام نازليدے شي او نازل شوے هم دے. او س دا دويم دليل دَ دے خبرے په ثبوت کښ دے چه دا کوم کلام په محمد صلی الله عليه وسلم باندِ نازل شوے دے دا هم دَ خدائے کلام دے. دَ دے حقيقت ثابتولو دَ پاره څلور خبرے دَ شهادت په طور پيش کړے شوي دي

يو دا چه دا کتاب دَ ډير خير او دَ ډير برکت والا کتاب دے. يعني په دے کښ دَ انسان دَ فائدے دَ پاره بهترين أصول پيش کړے شوي دي. دَ صحيح عقيدے تعليم دے، نيکو طرفته رغبت دے، دَ ښو اخلاقو خپلولو تاکيد دے، دَ پاک ژوند تيرولو هدايت دے، او بيا دَ ته جهالت، خودغرضۍ، تنګ نظرۍ، دَ ظلم، دَ بے حيائۍ او دَ هغه تېرولو وکاروونه چه تاسو په پاکو کتابونو کښ راغونډ کړي دي، دا کتاب بالکل پاک دے.

دويم دا چه دَ دے نه مخکښ دَ خدائے دَ طرفه کوم کتابونه راغلي وو دا کتاب دَ هغے نه بدلولو ته نه پيش کوي بلکه دَ هغے څيز تصديق او تائيد کوي کوم څيز چه په هغه کتابونو کښ پيش کړے شوے وو.

دريم دا چه دا کتاب دَ هغه مقصد دَ پاره نازل کړے شوے دے دَ کوم مقصد دَ پاره چه په هره زمانه کښ دَ الله دَ طرفه کتابونه نازليدل، يعني په غفلت کښ پراته خلق راويښول او دَ کږو رفتار په بد انجام باندِ خبردارے ورکول.

څلورم دا چه دَ دے کتاب په دعوت سره هغه خلق نه دي راغونډ شوي کوم چه دَ دنيا پرست دي او دَ نفس دَ خواهشاتو بنديان دي، بلکه دے کتاب دا هغه خلق دَ خپل ځان نه راچاپيره کړي دي چه نظر ئے دَ دے دُنيا دَ سرحدونو نه وړاندِ لګي، او دَ دے کتاب په وجه چه کوم انقلاب دَ هغوئ په ژوند کښ راغلے دے دَ هغے دَ تېرولو دَ فتنه نښه دا ده چه په نورو انسانانو کښ هغوئ دَ خدا پرستۍ په لحاظ سره ممتاز دي او لوئ شان لري. آيا داخوبئ چرته په داسے کتاب کښ راتلے شي چه يو دروغژن انسان جوړ کړے دي چه دَ خپل کلام په باره کښ وائي چه دا دَ خدائے کلام دے؟

بَاسِطُوٓا اَيْدِيْهِمْ ۚ اَخْرِجُوْٓا اَنْفُسَكُمْ ۗ اَلْيَوْمَ تُجْزَوْنَ عَذَابَ الْهُوْنِ بِمَا كُنْتُمْ تَقُوْلُوْنَ عَلَى اللّٰهِ غَيْرَ الْحَقِّ وَكُنْتُمْ عَنْ اٰيٰتِهٖ تَسْتَكْبِرُوْنَ ﴿٩٣﴾ وَلَقَدْ جِئْتُمُوْنَا فُرَادٰى كَمَا خَلَقْنٰكُمْ اَوَّلَ مَرَّةٍ وَّتَرَكْتُمْ مَّا خَوَّلْنٰكُمْ وَرَآءَ ظُهُوْرِكُمْ ۚ وَمَا نَرٰى مَعَكُمْ شُفَعَآءَكُمُ الَّذِيْنَ زَعَمْتُمْ اَنَّهُمْ فِيْكُمْ شُرَكٰٓؤُا ۗ لَقَدْ تَّقَطَّعَ بَيْنَكُمْ وَضَلَّ عَنْكُمْ مَّا كُنْتُمْ تَزْعُمُوْنَ ﴿٩٤﴾ ع اِنَّ اللّٰهَ فَالِقُ الْحَبِّ وَالنَّوٰى ۗ يُخْرِجُ الْحَيَّ مِنَ الْمَيِّتِ وَمُخْرِجُ

لاسونه راوُږده کړی او ورته وائي چه "را وباسئ، خپل رُوحونه را وُباسئ، نن به تاسو ته د هغې خبرو په بدله کښې د ذِلّت عذاب درکړے کيږی کومے چه به تاسو ناحقه په الله پورې کولے او د هغه د آيتونو په مقابله کښې به مو سرکشي کوله." (او الله به وُفرمائي) "کورئ کنه، اوس تاسو هم هغسې يوازے زمونږ مخے ته حاضر شوئ لکه څنګه چه مونږه اول ځل تاسو پيدا کړی وئ، څه چه مونږه تاسو له په دُنيا کښې درکړي وُو هغه مو روستو پريښودل، او اوس خو مونږه تاسو سره ستاسو هغه سفارشيان هم نهٔ وينو چه تاسو به د هغوئ په باره کښې داګمان کوُ چه زمونږ په کار جوړولو کښې د هغوئ هم څه حصه ده، ستاسو ټېپلو کښې ټول تعلقات ختم شو او هغه ټول درنه ورک شو د کوم چه تاسو ګمان لرولو ع

د دانے او د زړي څوُونکے الله دے[۶۲]. هغه د مړی نه ژوندے راوُباسی او هم هغه د

[۶۲] يعنې په زمکه کښې لاندې تخم څوُونکے او د هغې نه تيغ راإستونکے.

الْمَيِّتِ مِنَ الْحَيِّ ۚ ذَٰلِكُمُ اللَّهُ ۖ فَأَنَّىٰ تُؤْفَكُونَ ﴿٩٥﴾ فَالِقُ الْإِصْبَاحِ وَجَعَلَ اللَّيْلَ سَكَنًا وَالشَّمْسَ وَالْقَمَرَ حُسْبَانًا ۚ ذَٰلِكَ تَقْدِيرُ الْعَزِيزِ الْعَلِيمِ ﴿٩٦﴾ وَهُوَ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ النُّجُومَ لِتَهْتَدُوا بِهَا فِي ظُلُمَاتِ الْبَرِّ وَالْبَحْرِ ۗ قَدْ فَصَّلْنَا الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴿٩٧﴾ وَهُوَ الَّذِي أَنشَأَكُم مِّن نَّفْسٍ وَاحِدَةٍ فَمُسْتَقَرٌّ وَمُسْتَوْدَعٌ ۗ قَدْ فَصَّلْنَا الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَفْقَهُونَ ﴿٩٨﴾

ژوندی نه مړی را ایستونکے[63] دے. دغه ټول کارونه کوونکے الله دے، بیا تاسو کوم خوا دوکه کړے شوی روان یئ؟ هم هغه د شپے د تیارے نه صبا را وباسی. هغه شپه د آرام وخت جوړ کړے دے، هغه د نمر او د سپوږمۍ د راختلو او د پریوتلو حساب[64] مقرر کړے دے. دا ټول د هغه زبردست قدرت او علم والا مقرر اندازے دی. او هم هغه چه ستاسو د پاره ئے په صحراګانو او د سمندر په تورو تیارو کښ دا ستوری د لارے معلومولو ذریعه جوړه کړه. ګورئ موږ دا نښے صفا صفا بیان کړی دی د هغه خلقو د پاره چه علم لری[64]. او هم هغه دے چه د یو نفس نه ئے تاسو پیدا کړئ[65] بیا د هر یو انسان د پاره یو ځائے د قرار دے او یو ځائے د سپارلو[66] دے. دا نښے موږ واضحه بیان کړی دی د هغه خلقو د پاره چه پوهه لری.

[63] د مړی نه د ژوندی را ایستلو مطلب د بے روحه مادے نه ژوندی مخلوقات پیدا کول دی، او د ژوندی نه د مړی د خارج کولو مطلب د ژوندی اجسامو نه بے روحه مادے خارج کول دی.

[64] یعنی دا دے حقیقت نښه چه خدائے صرف یو دے، بل هیڅوک نه د خدائی صفت لری، نه بل څوک د خدائی په اختیاراتو کښ حصه دار دے، او نه بل څوک د خدائی په حقونو کښ د څه حقدار دے. خو دغه نښو په ذریعه حقیقت ته رسیدل د جاهلانو د وس خبره نه ده، دا د هغه خلقو کار دے چه څوک په علمی طریقه د کائناتو په څیزونو باندے غور کوی.

[65] یعنی د انسانی نسل شروع ئے د یو نفس نه وکړه.

[66] یعنی د انسان په پیدائش باندے، او په انسانانو کښ د نر او ښځے په پیدائښت باندے او د اولاد پیدا کولو په ذریعه د انسانانو په وړاندے بیا کیدو باندے، او د مور د ګیډے نه راواخله تر قبره پورے د انسان په مختلفو حالاتو باندے که نظر واچولے شی نو په دے کښ بے شمیره داسے نښے د انسان مخے ته راځی چه هغه په هغه حقیقت پیژندلے شی کوم چه دلته بیان شوے دے. خو دغه نښو نه حقیقت ته رسیدل د هغه خلقو کار دے چه څه پوهه لری. څوک چه د څناورو په شان ژوند تیروی او صرف د خپلو خواهشاتو

وَهُوَ الَّذِىٓ اَنْزَلَ مِنَ السَّمَآءِ مَآءً ۚ فَاَخْرَجْنَا بِهٖ نَبَاتَ كُلِّ شَىْءٍ فَاَخْرَجْنَا مِنْهُ خَضِرًا نُّخْرِجُ مِنْهُ حَبًّا مُّتَرَاكِبًا ۚ وَمِنَ النَّخْلِ مِنْ طَلْعِهَا قِنْوَانٌ دَانِيَةٌ وَّجَنّٰتٍ مِّنْ اَعْنَابٍ وَّالزَّيْتُوْنَ وَالرُّمَّانَ مُشْتَبِهًا وَّغَيْرَ مُتَشَابِهٍ ۗ اُنْظُرُوْٓا اِلٰى ثَمَرِهٖٓ اِذَآ اَثْمَرَ وَيَنْعِهٖ ۗ اِنَّ فِىْ ذٰلِكُمْ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ﴿۹۹﴾ وَجَعَلُوْا لِلّٰهِ شُرَكَآءَ الْجِنَّ

او هم هغه ده چه د آسمان نه ئې اوبه راؤ ورولے، بيا ئې د هغې په ذريعه هر قسم شينکے راؤخيژوُ، بيا ئې د هغې نه شنه شنه فصلونه اوونې پيدا کړے، بيا ئې د هغې نه قط په قط دانے راؤخکلے او د کجورو د غوټو نه ئې د ميوو غوچکونه پيدا کړل چه د درونډ والي د وجه نه ښکته زوړند وي، او د انګورو، د خوناتو (زيتون) او د انارو باغونه ئے ؤ لکول چه ميوے ئے د يو بل سره يوشان هم دي او بيا د هرے يوے ميوے خصوصيات جدا جدا هم دي. دا وُنے چه کله ميوه نيسي نو د دے د ميوو نيولو او بيا د هغے د پخيدلو په حالت باندې لږ د غور په نظر سره وګورئ، په دے څيزونو کښې نښے دي د هغے خلقو د پاره چه ايمان راوړي - د دے د پاسه هم خلقو پيريان د الله سره شريکان کړل [۶۷]،

پوره کولو سره ئے غرض وي، هغوئ په دے نبوکښ هيڅ نښي ليده.

[۶۷] يعنې د خپل وهم د ګمان نه دا واې چه د کائناتو په انتظام کښ او د انسان په قسمت جوړولو او ورانولو کښ د الله سره نور هم پټ هستئ هم شريکې دي، څوک باران ورکه وي، څوک بوټي راخيژه وي څوک دولت ورکوي او څوک بيمارى راولى وغير ذٰلك مِنَ الخُرافاتِ. دا قسم غلط عقيده د دنيا په ټولو مشرکانو قومونو کښے د اروا حانو او د شيطانانو او د وحشي انسانانو او د ديوتاګانو په حقله موندے کيږي -



وَخَلَقَهُمْ وَخَرَقُوا لَهُ بَنِينَ وَبَنَاتٍ بِغَيْرِ عِلْمٍ سُبْحَانَهُ وَتَعَالَىٰ عَمَّا يَصِفُونَ ﴿١٠٠﴾ بَدِيعُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ أَنَّىٰ يَكُونُ لَهُ وَلَدٌ وَلَمْ تَكُن لَّهُ صَاحِبَةٌ وَخَلَقَ كُلَّ شَيْءٍ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ﴿١٠١﴾ ذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ فَاعْبُدُوهُ وَهُوَ عَلَىٰ كُلِّ شَيْءٍ وَكِيلٌ ﴿١٠٢﴾ لَّا تُدْرِكُهُ الْأَبْصَارُ وَهُوَ يُدْرِكُ الْأَبْصَارَ وَهُوَ اللَّطِيفُ الْخَبِيرُ ﴿١٠٣﴾ قَدْ جَاءَكُم بَصَائِرُ مِن رَّبِّكُمْ فَمَنْ أَبْصَرَ فَلِنَفْسِهِ وَمَنْ عَمِيَ فَعَلَيْهَا وَ

---

حالانکه هغه دَ هغوئ خالق دے، او بغیر دَ علم نه ئے خدا ے لره ځامن او لونړه جوړے کړے،[۶۸] حالانکه هغه پاک او ډیر وُچت دے دَ هغے خبرو نه کومے چه دوئ وائي.ع هغه خو دَ زمکے او دَ آسمانونو ایجاد کونکے دے. دَ هغهٔ څوئے څنګه کیدے شي هرکله چه دَ هغه دَ ژوند ملګرے نشته. هغه هر څیز پیدا کړے دے او هغه دَ هر څیز علم لري. دا دے الله ستاسو رب، بل خدا ئے دَ هغه نه بغیر نشته، دَ هر څیز پیدا کونکے دے، بس هم دَ هغه عبادت کوئ او هغه دَ هر څیز ذمه وار دے. سترګے هغه نشي موندلے او هغه سترګے وینی، او هغه ډیر باریک لیدونکے او خبردار دے.

کورئ، تاسو ته ستاسو دَ رب دَ طرفه دَ بوصیرت رڼاګانے راغلی دی، او س چه چا سترګے ږغړولے نو خپله فایده به وکړي او چه چا سترګے پټے کړے نو خپل نقصان به وکړي،

---

۶۸ دَ عرب جاهلانو خلقو به فرښتو ته دَ خدا ئے لونړه ویلے. دغه شان دَ دُنیا نورو مشرکانو قومونو هم دَ خدا ئے سره دَ نسب سلسله چلولی ده او بیائے په خپل وهم وګمان باندے دَ دیوتاګانو (دَ خدایانو) پوره نسل جوړ کړے دے.

مَآ اَنَا عَلَیۡکُمۡ بِحَفِیۡظٍ ﴿۱۰۴﴾ وَ کَذٰلِکَ نُصَرِّفُ الۡاٰیٰتِ وَ لِیَقُوۡلُوۡا دَرَسۡتَ وَ لِنُبَیِّنَہٗ لِقَوۡمٍ یَّعۡلَمُوۡنَ ﴿۱۰۵﴾ اِتَّبِعۡ مَاۤ اُوۡحِیَ اِلَیۡکَ مِنۡ رَّبِّکَ ۚ

زۀ په تاسو باندې څه څوکیدار نۀ یم.[69]

دغه رنګې مونږه خپل آیتونه بیا بیا په مختلفو طریقو سره بیانوُو او دَ دې دَ پاره ئې بیا نوُو چه دا خلق وَوائي چه دا تا دَ بل چانه لوستلی دی، او کوم خلق چه علم لری نو چه په هغوی باند حقیقت ښکاره کړو.[70] اے محمدؐ، په هغې وحې پسے ځه کومه چه په تا باندې ستا دَ رب دَ طرفه نازله شوی ده

[69] دا نقره اګرچه دَ الله کلام دے خو دَ نبیؐ دَ طرفه بیانیږی. په قرآن مجید کښ لکه څنګه چه مخاطب بیا بیا بدلیږی، کله نبیؐ ته خطاب وی، کله مومنانو ته، کله اهلِ کتابو ته، کله کافرانو او مشرکانو ته، کله قریش ته کله عربیانو ته او کله عاموانسانانو ته خطاب وی، حالانکه اصل غرض ټول انسانیت ته هدایت کول وی، دغه شان متکلم یعنی خبری کونکے هم بیا بیا بدلیږی. یو ځائے کښ خدائے تعالیٰ خبری کونکے (متکلم) وی، بل ځائے کښ وحی راوړونکی فرښته خبری کونکی وی، یو ځلے کښ دَ فرښتو ډله خبری کونکی وی، بل ځلے کښ نبیؐ او بل ځائے کښ مومنان. حالانکه په هر ځائے کښ کلام هم دَ دغې یو خدائے دی.

"زۀ په تاسو باندې څوکیدار نۀ یم" یعنی زما کار بس دومره دے چه دا رڼا در مخې ته کړم. دَ دے نه روسته سترګے غړول او نۀ غړول ستاسو خپل کار دے. ما ته دا خدمت نۀ دے حواله کړے شوے چه کومو خلقو سترګے بندے کړے دی دَ هغوی سترګے په زور وَغړوم او څه چه هغوی نۀ وینی هغه ورته خامخا وَ ښایم.

[70] دا هم هغه خبره ده چه دَ سورة بقرے په دریمه رکوع کښ بیان شوی ده چه دَ حق تلاش کونکے کله دَ ماشی او جولاګی وغیره مثالونه داوری نو هغه په حقیقت ته رسی، خو چه کوم خلق منکرا و منډیا دی هغوی دَ توقف په طور روائي چه بښه دَ الله په کلام کښ دَ دے سپکو شیزونو بیانولو څه ضرورت دے. هم دا خبره دلته په بل شکل کښ بیان شوی ده. مطلب ئې دا دے چه دا کلام دَ خلقو دَ پاره بیو آزمیښت ګرزیدلے دے په خلقو کښ کره او کوټه معلوموی. یو قسم خلق هغه دے چه دا کلام وا وری باندې وَوائي نو په مقصد باندې ئې غور وَکړی او په هغې کښ چه دَ حکمت او دَ نصیحت کومے خبرے وی دَ هغې نه فائده واخلی. او دَ بل قسم خلق دا عمده چه کله دا کلام وا وری یلځ ځنګله وَوائي نو دَ کلام په مقصد باندې دَ غور کولو ځائے په دے خبرہ پسے وړپسے شی چه آخر دے امی سری دا خبرے دَ کوم ځلځ نه وَکړے، او دَ مخالفت په ضد کښ خو دَ حکښ نه پراته وی نو دَ خدائے دَ طرفه دَ نازلیدو ټول امکانات په ځلځ پریږدی او باقی چه دَ دے کلام دَ جوړولو مطابق څومره دَ دوی نه کیدے شی هغه ټول سوچونه وَکړی او بیلځ په داسے طرز بیانوی لکه چه دوی دَ دے کتاب په بنیاد باندې ډیر تحقیق کړے وی.

لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ وَاَعْرِضْ عَنِ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿١٠٦﴾ وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَآ اَشْرَكُوْا ؕ وَمَا جَعَلْنٰكَ عَلَيْهِمْ حَفِيْظًا ۚ وَمَآ اَنْتَ عَلَيْهِمْ بِوَكِيْلٍ ﴿١٠٧﴾ وَلَا تَسُبُّوا الَّذِيْنَ يَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ فَيَسُبُّوا اللّٰهَ عَدْوًاۢ بِغَيْرِ عِلْمٍ ؕ كَذٰلِكَ زَيَّنَّا لِكُلِّ اُمَّةٍ

څکه چه د هغې یو رب نه بغیر بل خدائ نشته. او پر مه مشرکانو پسې مه ورپسې کیږه. که چرې الله غوښتل نو (هغه پخپله دا هم بند وېت کولے شو چه) دے خلقو به شرک نه کولے. ته مونږه په دوی باندې څوکیدار نه ئې مقرر کړے او نه ته په دوی باندې حواله دار ئې. او (اے مومنانو) دا خلق چه د الله نه بغیر چا ته آواز کوی هغوی ته کنځل مه کوئ، هسے نه چه د شرک نه وړاندې لاړ شي او د ناپوهتیا وجه الله ته کنځل شروع کړي[1]. مونږ هم دغه رنګے خو مونږه د هر یو ډلے د پاره د هغوی عمل ښائسته ښکاره

[1] مطلب دا دے چه ته د دعوت ورکونکے (داعی) او خبره رسونکے (مبلغ) ئې، کوتوال نه ئې. ستا کار صرف دا دے چه خلقو ته دا رڼا ځغ ته کړه او د حق په ظاهرولو کښې د خپله وسه پوره هیڅ کمے مه کوه. بیا که څوک دا حق نه قبلوی نو نه دِ قبلوی. تا ته نه دا کار حواله شوے دے چه خامخا خلق حق پرست کړه، او نه دا ستا ذمه واری ده او نه به در نه د دے خبرے تپوس کیږی چه کوم زمانه ستا په نبوت کښې څوک باطل پرست پاتې نه شي. نو په دے فکر کښې خامخا ځان مه پریشانه کوه چه د ړندو نه به څنګه سترګو والا جوړ شي او څوک چه کڼل نه غواړی هغوی ته به څنګه یو څیز د بنودلے شي. که چرې په حقیقت کښې د الله د حکمت مطلب دا وے چه په دُنیا کښې دِ یو سړے باطل پرست پاتې نشي نو بیا د دے خبرے هیڅ ضرورت نه وُو چه الله دا کار ستاسو په لاس کړے وے. ایا د الله په یوه اشاره دا ټول انسانان حق پرست نشو جوړیدلے؟ خو مقصد د سر نه دا دے نه. مقصد خو دا دے چه انسان د حق او د باطل په خوښولو کښې آزاد دی او بیا ورته د حق رڼا ځغ ته پیش کړے شي او دا آزمیښت پرې وشي چه په دے دواړو کښې کوم څیز خوښه وی. نو ستا د پاره صحیح کار دا دے چه کومه رڼا تا ته ښکاره کړے شوې ده په هغې کښې ته په سیده لاره باندې پخپله ځه او نورو خلقو ته دعوت ورکوه. کوم خلق چه ستا دعوت قبول کړی هغوی خوا ته نا لره کړه او که هغوی هر څو مره د دُنیا په نظر کښې سپک وی خو ته د هغوی ملګرتیا مه پریږده. او کوم خلق چه ستا دعوت قبول نه کړی ته په هغوی پسے مه ورپسے کیږه. کوم بد انجام ته چه هغوی پخپله تلل غواړی او د تلو د پاره زور لګوی هغې ته ئے پریږده چه ځي.

[2] دا نصیحت د نبی صلی الله علیه وسلم اُمتیانو ته شوے دے چه د تبلیغ په جوش کښې دومره مه په قابو کیږئ چه د مناظرو او د بحث د تکرار کولو نه خبره د غیر مسلمه خلقو په عقیدو باندې سختې حملے کولو ته ورسی

عَمَلَهُمْ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّهِم مَّرْجِعُهُمْ فَيُنَبِّئُهُم بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٠٨﴾ وَأَقْسَمُوا بِاللَّهِ جَهْدَ أَيْمَانِهِمْ لَئِن جَاءَتْهُمْ آيَةٌ لَّيُؤْمِنُنَّ بِهَا ۚ قُلْ إِنَّمَا الْآيَاتُ عِندَ اللَّهِ ۖ وَمَا يُشْعِرُكُمْ أَنَّهَا إِذَا جَاءَتْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿١٠٩﴾ وَنُقَلِّبُ أَفْئِدَتَهُمْ وَأَبْصَارَهُمْ كَمَا لَمْ

کړې دے[۲]، بیا دَ هغوئ ټول رب طرفته واپس تلل دی، په هغه وخت به ورته هغه خبر ورکړی چه څه کارونه هغوئ کول.

دا خلق پاخه پاخه قسمونه خوری او وائی چه که چرے څه نښه[۳] مونږ ته مخے له راغلے مونږ به په هغے ایمان راوړو۔ اے محمده، دوئ ته ووایه چه "نښے خو دَ الله سره دی"[۴] او تاسو څوک څنګه پوه کړی چه که چرته نښے راهم شی خو دوئ ایمان راوړونکی نه دی[۵]۔ مونږ هغه رنګے دَ دوئ زړونه او سترګے آړه وو لکه څرنګے چه دوئ

او که هغوئ پیشوا گانو او مشرانو و معبودانو له پکښے کنځلے وشی، ځکه چه دوئ په وجه به هغوئ حق ته دَ نزدے کید و چانسه نور هم دَ حق نه لرے شی۔

[۲] دلته بیا هغه حقیقت طرفته اشاره شوی ده کوم چه مونږ مخکښے په څو حاشیو کښے بیان کړے دے چه کوم کارونه دَ فطری قانون لاندې کیږی دَ هغے په باره کښے الله تعالیٰ فرمائی چه دا مونږ کار دے، ځکه چه دَ فطری قانون جوړونکے هم هغه دے او کوم کارونه چه دَ دغه قانون لاندې کیږی هغه هم دَ هغه په حکم سره کیږی۔ کومه خبره چه الله تعالیٰ په دے طریقه بیانوی چه دا کار مونږ دا سے کړے دے نو هم دغه خبره که مونږ انسانان بیانوو نو دا سے به وایو چه فطرتاً دا سے کیږی۔

[۳] دَ نښے نه مراد یو دا سے ښکاره لیدونکے معجزه ده چه دَ هغے په لیدو سره دَ نبی صلی الله علیه وسلم دَ صداقت منلو نه بغیر بله هیڅ چاره نه وی۔

[۴] یعنی دَ نښو جوړولو او بیا دَ هغے دَ پیش کولو قدرت ما ته نه دے حاصل، دا دَ اختیار الله سره دے، که خوښه یې شی نو په هغه یې ښایئ او که خوښه یې نه شی نو دَ به یې نه ښایئ۔

[۵] دا خطاب مسلمانانو ته دے چه آرزو که به یې کوله او کله کله به یې په خوله هم دَ دے خواهش اظهار کولو چه یو دا سے نښه ښکاره شی چه دَ هغے په ذریعه دَ هغوئ به لاره رونړه په یقینه لاس بانږ راشی۔ دَ هغوئ دَ دے آرزو او دَ خواهش جواب دے چه آخر تاسو به په کومه طریقه پوه شئ چه دے خلقو ایمان راوړل غواړی خو بند نه دی۔

يُؤْمِنُوا بِهٖٓ اَوَّلَ مَرَّةٍ وَّ نَذَرُهُمْ فِيْ طُغْيَانِهِمْ يَعْمَهُوْنَ ﴿۱۱۰﴾ ع

وَلَوْ اَنَّنَا نَزَّلْنَآ اِلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةَ وَكَلَّمَهُمُ الْمَوْتٰى وَ

حَشَرْنَا عَلَيْهِمْ كُلَّ شَيْءٍ قُبُلًا مَّا كَانُوْا لِيُؤْمِنُوْٓا اِلَّآ اَنْ يَّشَآءَ

اللّٰهُ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ يَجْهَلُوْنَ ﴿۱۱۱﴾ وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا لِكُلِّ نَبِيٍّ

عَدُوًّا شَيٰطِيْنَ الْاِنْسِ وَالْجِنِّ يُوْحِيْ بَعْضُهُمْ اِلٰى بَعْضٍ

---

په اول ځل په دے باندې ایمان نه وُو راوړے.[۷۷] مونږ دوئ هم په دے خپله سرکشئ کښې د پریشانه کید و د پاره پریږدو.ع که چرے مونږه فرښتے هم په دوئ باندې نازلې کړے وے او مړو ورسره خبرے هم کړے وے او د تولے دنیا شیزونه مونږ د دوئ وړاندې جمع کړے وے خو بیا هم دوئ ایمان راوړلو والا نه وُو، بغیرد هغے نه چه الله غوښتلے چه دوئ د ایمان راوړي)،[۷۸] خو اکثر خلق د ناپوهئیا خبرې کوي، او مونږه خو دغه رنګے همیشه شیطانان انسانان او شیطانان پیریان د هر نبي د ښمنان جوړ کړي دي چه یو بل ته خوږے پستے خبرے

---

[۷۷] یعنی د هغوئ په ذهن کښې هم هغه خبره ده د کومے خبرے په وجه چه هغوئ په اول ځل د محمد صلی الله علیه وسلم د دعوت منلو نه انکار کړے وُو، د هغوئ په خیال کښې تر او سه پورے څه تغیر نه دے راغلے بلکه څنګه چه هغکښې ځه صحیح سوچ نه وُو دغه شان ئې څه هم صحیح سوچ نشته.

[۷۸] یعنی دے خلقو خو په خپل اختیار او خپله خوښه په حق باندې باطل غوره کړے دے او حق ته راوړید و والا نه دي. او س د هغوئ حق ته د راوړید و صرف یو شکل دے او هغه دا دے چه بلکه څنګه تول بے اختیاره مخلوق پیدا ئیشي حق پرست پیدا کړے شوي دي چه دغه شان دوئ هم بے اختیاره کړے شي او پیدا ئیشي حق پرست جوړ کړے شي. خو دا کار د هغه حکمت نه خلاف دے د کوم حکمت لاندې چه الله انسان جوړ کړے دے. لهذا استاسو دا امید ساتل فضول دي چه الله تعالی به پخپل تکویني امر باندې دوئ مومنان کړي.

زُخْرُفَ الْقَوْلِ غُرُوْرًا ۭ وَلَوْ شَاۗءَ رَبُّكَ مَا فَعَلُوْهُ فَذَرْهُمْ وَ
مَا يَفْتَرُوْنَ ﴿۱۱۲﴾ وَلِتَصْغٰٓى اِلَيْهِ اَفْـــِٕدَةُ الَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ

دَ دوکے په طور باندې کوي[۷۹] که چرې ستا رب دا غوښتلې چه هغوئ دِ داسې ونۀ کړي نو هغوئ به هیچرې نۀ وې کړې[۸۰] پس ته هغوئ په خپل حال باندې پرېږده چه دَ دروغو په الزام لګولو کښې لګیا وي۔ (دا دې تهولو هرڅه کولو اجازت مونږ هغوئ له ځکه ورکوؤ) چه کوم خلق په آخرت باندې ایمان نۀ لري

[۷۹] یعنی نن که چرې دَ انسانانو او دَ پیریانو شیطانان ټهول راجمع شوي دي او ښه په زور سره ستا مقابله کوي نو دَ پرېشانۍ او هیڅ خبره نۀ ده۔ دا څه نوې خبره نۀ ده چه بس ستا سره کیږي۔ په هره زمانه کښې داسې شوي دي چه هر کله یو پیغمبر دُنیا ته دَ نیغې لارې ښودلو دَ پاره راپاسېدلے دے نو ټهول شیطاني طاقتونه دَ هغه دَ ناکام کولو دَ پاره تیار شوي دي۔

دَ خوږو ډیستو خبرو نه مُراد هغه ټهول چلونه دي او هغه ټهول سوچونه او ټکونه او اعتراضونه دي چه دوئ یې دَ داعیٔ حق خلاف او دَ هغه دَ دعوت خلاف خلق لمسوي۔ بیا ئې دے ټهولو خبرو ته دَ دوکے او دَ فریب خبرې وئیلې دي۔ ځکه چه دَ حق مخالفین کومې وسلې دَ حق سره دَ جنګیدو دَ پاره استعمالوي هغه په حقیقت کښې هم یوه دوکه وي اګرچه په ظاهره باندې هغه هغوئ ته ډیره فائده منده او کامیابه وسله ښکاري۔

[۸۰] دلته دا حقیقت ښه په ذهن کښې کېښودل پکار دي چه دَ قرآن په رڼا کښې دَ الله تعالیٰ په مشیّت (اجازت) او دَ هغه په رضا کښې ډیر لوئ فرق دے او چا چه دَ دے فرق پروا او نۀ لري نو عام طور په ډیره سخته غلطۍ کښې پریوځي۔ یو کار چه دَ الله دَ مشیت او دَ هغه دَ اجازت لاندې کیږي نو دَ هغے ضرور دا مطلب نۀ وي چه الله دَ دغه کار نه راضي هم دے او دغه کار خوښ سوي هم۔ په دُنیا کښې یو کار تر هغې پورې نۀ شي کیدے تر څو پورې چه الله دَ هغې دَ کولو اجازت نۀ وي ورکړے او په خپل عظیم الشان سکیم کښې ئې ورله ځائے نۀ وي ورکړے او دَ هغې دَ کولو دَ پاره ئې اسباب نۀ وي برابر کړي۔ یو غل چه غلا کوي، یو قاتل چه قتل کوي، یو ظالم او مفسد چه ظلم او فساد کوي او یو کافر او مشرک چه کفر او شرک کوي، دا ټهول دَ الله دَ مشیت نه بغیر نۀ کیږي۔ او دغه شان دَ یو مومن او دَ یو پرهیزګار دَ انسان ایمان راوړل او پرهیزګار کېدل دَ الله دَ مشیت نه بغیر نا ممکن دي۔ دواړه قسمه کارونه یو شان دَ الله دَ مشیت لاندې کیږي۔ خو د اول قسم کارونو نه الله راضي نۀ دے او دَ دویم قسم کارونو نه الله راضي دے او خوښ شوي دي۔ اګرچه په آخره کښې دَ خیر دَ پاره دَ الله مشیت کار کوي، لیکن دَ دغې لوئ خیر دَ ظهور کیدو دَ لارې هدف دا کیږي چه دَ رڼا او دَ تیارې، دَ خیر او دَ شر، او دَ اصلاح او دَ فساد مختلفو قوتونو دِ یو بل سره ټکر وشي او دغه وجه ده چه الله تعالیٰ فرمانبردارۍ او نافرمانۍ له، ابراهیمیت او نمرودیت له، موسویت او فرعونیت له، انسانیت او شیطانیت له، دواړو له خپل خپل کار کولو موقع ورکوي۔ هغه اختیار والا مخلوق (پیریانو او انسانانو) له دا آزادي ورکړې ده

بِالْاٰخِرَةِ وَلِيَرْضَوْهُ وَلِيَقْتَرِفُوْا مَا هُمْ مُّقْتَرِفُوْنَ ﴿۱۱۳﴾
اَفَغَيْرَ اللّٰهِ اَبْتَغِيْ حَكَمًا وَّهُوَ الَّذِيْٓ اَنْزَلَ اِلَيْكُمُ الْكِتٰبَ

چه د هغوی زړونه دے (تبکلے دوکے) طرفته مائیله شی او هغوی د هغې نه راضی شی او هغه
بَدکاری وکړی کوم چه هغوی کول غواړی ـــــ بیا هرکله چه حال دا دے نو آیا زه
د الله نه بغیر بل څوک فیصله کونکے وګورم، حالانکه هغه بنۀ په تفصیل سره تاسو ته

چه په خپلو اختیارونو سره ځان له خوښوی په هغې کښې دوی ځان له خوښې کړی. چه څوک ځان له خیر خوښوی
هغه دِ خیر ځان له خوښ کړی. او چه څوک ځان له شر خوښوی هغه دِ شر ځان له خوښ کړی.
دواړه قسمو کارکونکو ته به، چه د کوم حده پورے د خدائے خوښه وی، د کارکولو اسباب برابریږی. لیکن
د الله رضا او خوښه صرف د خیر د پاره د کارکونکو سره ده، او د الله دا خبره ډیره خوښه ده چه د هغه
بندیان دے آزادی له فایده واخلی او خیر د ځان د پاره خوښ کړی نه چه شر.

د دے سره دا خبره هم په ذهن کښې کینول پکار دی چه الله تعالیٰ کله د حق د دښمنانو د مخالفت
ذکر وکړی نو ورسره ورسره د خپل مشیت حواله هم ورکوی، د دے مقصد په اصل کښې دا دے چه نبی صلی الله
علیه وسلم او د هغه په ذریعه مومنان په دے خبره پوه شی چه د مومنانو کار د فرښتو د کار په شان نه دے چه
بے د څه بندیزه د الله حکم منی . بلکه د مومنانو کار دا دے چه د شریرانو او د باغیانو خلقو په مقابله کښې هغه
طریقه غالبه کړی کوم چه د الله تعالیٰ خوښه ده. الله تعالیٰ د خپل مشیت لاندې هغه خلقو ته هم د کارکولو موقع
ورکوی چه هغوی خپله خوښه د الله نه د بغاوت لار اختیار کړی ده، او دغه شان مومنانو ته هم د کارکولو
پوره موقع ورکوی چه هغوی د ځان د پاره د طاعت او د بندګئ لار اختیار کړی ده. اګرچه د الله تعالیٰ
رضا و هدایت او رهنمائی او امداد د مومنانو سره دے ځکه چه هغوی هغه کار کوی کوم چه د الله خوښ دے
لیکن مومنانو له پکار نه دی چه په دے امید نه کینی چه الله تعالیٰ به د خپل طاقت په زور هغه خلق
په ایمان راوړلو باندې مجبوره کړی چه هغوی په خپله خوښه ایمان نه راوړی، او یا به هغه
شیطانان د مومنانو د لارے نه په زور لرې کړی کوم شیطانانو چه د خپلو ټولو طاقتونو سره
او د خپلو ټولو وسائلو سره د حق د لارے د بندولو فیصله کړی ده . نه، هیڅ ډے دا سے نه ده. که چیرے
تاسو واقعی د حق د پاره د کارکولو اراده کړی وی نو تاسو به د باطل سره په سخته مقابله کښې د خپل حق
پرستئ ثبوت ورکوئ. او که نه چیرے د معجزو په زور باندې باطل لرے کول او حق غالب کول وے نو بیا
ستاسو هیڅ ضرورت نۀ وُو، الله تعالیٰ چه خپله دا سے انتظام کولے شو چه په دنیا کښې به یو شیطان نۀ
وے او د شرک او د کفر هیڅ امکان به نۀ وُو.

مُفَصَّلًا ۚ وَالَّذِيْنَ اٰتَيْنٰهُمُ الْكِتٰبَ يَعْلَمُوْنَ اَنَّهٗ مُنَزَّلٌ مِّنْ رَّبِّكَ بِالْحَقِّ فَلَا تَكُوْنَنَّ مِنَ الْمُمْتَرِيْنَ ﴿۱۱۴﴾ وَتَمَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ صِدْقًا وَّعَدْلًا ۚ لَا مُبَدِّلَ لِكَلِمٰتِهٖ ۚ وَهُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ﴿۱۱۵﴾ وَاِنْ تُطِعْ اَكْثَرَ مَنْ فِى الْاَرْضِ يُضِلُّوْكَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ۚ اِنْ يَتَّبِعُوْنَ اِلَّا الظَّنَّ وَاِنْ هُمْ اِلَّا يَخْرُصُوْنَ ﴿۱۱۶﴾

کتاب نازل کړے دے ؟ او کوم خلقو ته چه مونږه (ستانه مخکښې) کتاب ورکړے وو هغوئ پوهیږی چه دا کتاب ستا د رب د طرفنه د حق سره نازل شوے دے نو ته په شک کونکو خلقو کښې مه شامیلیږه ستا د رب خبره د رښتنولئ او د انصاف په لحاظ سره کامله ده ، د هغه فرمانونه بدلولو والا هیڅوک نشته او هغه هر څه اوری او په هر څه پوهه دے.

او اے محمده ! که چرته ته د هغه خلقو د اکثریت په وینا پسے روان شوے کوم چه په زمکه کښې اوسیږی نو هغوی به تا د الله د لارے نه بے لارے کړی. هغوی خو صرف په ګمانونو پسے روان دی او قیاسونه لګوی.[82]

اشه په دے فقره کښې متکلم نبی صلی الله علیه وسلم دے او خطاب مسلمانانو ته دے - مطلب دا دے چه هر کله الله تعالیٰ په خپل کتاب کښې دا ټول حقیقتونه صفا صفا بیان کړی دی او دا فیصله ئے هم کړې ده چه حق پرست خلق به د عامے قاعدے (فطری طریقے) مطابق د حق غالب کولو د پاره کوشش کوی او د علے قاعدے خلاف (فوق الفطری) د خدائی زور د استعمال هیڅ طمع به نه لری ، نو آیا زه اوس د الله نه بغیر بل څوک داسے ذکوم چه د الله په دے فیصله باندے دو باره نظر واچوی او څه داسے معجزه راولیږی چه د اخلق په ایمان راوړلو مجبوره شی ؟

۲شه یعنی دا څه نوے خبره نه ده چه نن جوړه کړے شوې ده - هغه ټول خلق چه د آسمانی کتابونو علم لری او د پیغمبرانو د مقصد نه واقف دی ، هغوئ په دے خبره ګواه دی چه دا څه په قرآن کښې بیانیږی دا حق دی او هغه ازلی او ابدی حقیقت دے چه په هغه کښې هیڅ رنګه فرق نه دے راغلے.

۸۳شه یعنی زیات تر خلق چه په دُنیا کښې اوسیږی هغوئ د علم په ځائے په قیاس او په ګمانونو پسے روان وی. د هغوئ عقیدے ، خیالات ، فلسفے ، د هغوئ د ژوند اصول او د کار کولو قانون ټول په قیاس باندے جوړ وی. د دے نه بر خلاف د الله لار ، یعنی په دُنیا کښې د ژوند تیرولو هغه طریقه چه د الله د رضا مطابق ده ، بس صرف هغه یوه ده چه هغه خپله الله انسان ته ښودلې ده ، نه دا چه خلقو خپلو قیاسونو معلومه کړې ده. نو هیڅ یو حق پرست له دے ته کتل نه دی پکار چه د دُنیا زیات انسانان په کومه لار باندے روان دی ، بلکه هغه له پکار دی چه ښه په صبر سره په هغه لار باندے روان شی کومه لاره چه الله ښودلې ده ، اګر که په ټوله دُنیا کښې په هغه لار باندے دے یو اځے وی.

اِنَّ رَبَّكَ هُوَ اَعْلَمُ مَنْ يَّضِلُّ عَنْ سَبِيْلِهٖ ۚ وَ هُوَ اَعْلَمُ بِالْمُهْتَدِيْنَ ﴿۱۱۷﴾ فَكُلُوْا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ اِنْ كُنْتُمْ بِاٰيٰتِهٖ مُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۱۸﴾ وَمَا لَكُمْ اَلَّا تَاْكُلُوْا مِمَّا ذُكِرَ اسْمُ اللّٰهِ عَلَيْهِ وَ قَدْ فَصَّلَ لَكُمْ مَّا حَرَّمَ عَلَيْكُمْ اِلَّا مَا اضْطُرِرْتُمْ اِلَيْهِ ؕ

په حقيقت کښې ستا رب زيات ښه پوهيږي چه څوک د هغه د لارې نه بېلاره دے او څوک په سيده لاره باندې روان دے.

بيا که چرې تاسو د الله په آيتونو باندې ايمان لرئ نو چه په کوم څناور باندې د الله نوم اخستلے شوے وى د هغه غوښه خورئ[۸۶] آخر څه وجه ده چه تاسو هغه څيز نه خورئ چه په هغې باندې د الله نوم اخستلے شوے وى، حالانکه د کومو څيزونو استعمال په مجبورئ د حالت نه بغير په هر حالت کښې الله حرام کړے دے د هغې تفصيل[۸۷] هغه تاسو ته ښودلے شوے.

[۸۶] اکثر خلقو په خپل قياس او ګمان باندې د دينه غلط طريقه جوړې کړې دى او بيا هغه طريقو په مذهبى ګک اختيار کړے دے. د دې شان د خوراک څښاک په څيزونو کښې د مختلفو قومونو په مينځ کښې مختلفې پابندئ دى. خلقو څه څيزونه د خپل ځان نه حلال کړى دى حالانکه د الله په نظر کښې هغه حرام دى. او څه څيزونه ئې په خپله حرام کړى دى حالانکه الله هغه حلال کړى دى. خاص طور د قولونو ليانو د جهالت خبره هم په هغه باندې اولاهم د هيرو خلقو زور وُو او نن پرېم د دُنيا ډير خلق ږور ورکوى، هغه دا ده چه په کوم څناور باندې د الله نوم واخستلے شى او ذبح شى نو هغه د هغوئ په نيز بانيتا جائزه دے او چه کوم څناور چه د الله نوم وانخستلے شى ليذبح کړے شى نو هغه بالکل جائز دے. الله تعالى ملت مسلمانانو ته حکم کوى چه که چرې تاسو په حقيقت کښې په الله باندې ايمان راوړے وى او د هغه حکمونه منئ نو هغه ټول وهمونه او تعصبات پريږدئ کوم چه په کافرانو او مشرکانو کښې وُو، او هغه ټولے پابندئ ماتے کړئ چه خلقو ځان له جوړې کړے دے، حرام صرف هغه څيز وګڼئ چه خدائے حرام کړے وى او حلال صرف هغه څيز وګڼئ چه خدائے حلال کړے وى.

[۸۷] د کورنه سورة نحل آيت ۱۱۵ د دے اشاره نه دا تحقيق هم وشرح چه سورة نحل د دے نه مخکښې نازل شوے وُو.

وَإِنَّ كَثِيرًا لَّيُضِلُّونَ بِأَهْوَائِهِم بِغَيْرِ عِلْمٍ ۗ إِنَّ رَبَّكَ هُوَ أَعْلَمُ بِالْمُعْتَدِينَ ﴿١١٩﴾ وَذَرُوا ظَاهِرَ الْإِثْمِ وَبَاطِنَهُ ۚ إِنَّ الَّذِينَ يَكْسِبُونَ الْإِثْمَ سَيُجْزَوْنَ بِمَا كَانُوا يَقْتَرِفُونَ ﴿١٢٠﴾ وَلَا تَأْكُلُوا مِمَّا لَمْ يُذْكَرِ اسْمُ اللَّهِ عَلَيْهِ وَإِنَّهُ لَفِسْقٌ ۗ وَإِنَّ الشَّيَاطِينَ لَيُوحُونَ إِلَىٰ أَوْلِيَائِهِمْ لِيُجَادِلُوكُمْ ۖ وَإِنْ أَطَعْتُمُوهُمْ إِنَّكُمْ لَمُشْرِكُونَ ﴿١٢١﴾

د ډېرو خلقو دا حال دے چې بې د علم نه صرف د خپلو خواهشاتو په بنیاد باندې ګمراه کوونکې خبرې کوی، ستا رب دا د حد نه وړاندې تېرېدونکی خلق ښه پېژنی۔ تاسو د ښکاره ګناهونو نه هم ځان ساتئ او د پټو ګناهونو نه هم، څوک چې د ګناهونو کسب کوی هغوئ به د خپل کسب بدله ضرور مومی۔ او کوم څناور چې بې د الله د نوم نه ذبح کړے شوے وی د هغه غوښه مه خورئ، دا عمل فسق دے۔ شیطانان د خپلو ملګرو په زړونو کښې شکونه او اعتراضونه اچوی د پاره د دې چې هغوئ تاسو سره جګړه وکړی[89] لیکن که چرې تاسو د هغوئ خبره ومنله نو یقیناً تاسو مشرکان یئ[90]۔

[89] د حضرت عبدالله ابن عباس نه روایت دے چې یهودو د مسلمانانو په وړاندې د عربو جاهلانو ته په نبی صلی الله علیه وسلم باندې د اعتراض کولو د پاره کوم سوالونه ښودل په هغې کښې یو سوال دا هم و چې "آخر دا څه معامله ده چې کوم څناور الله ئې مړ کړی هغه د حرام وی او چې کوم څناور مونږه مړ کړو هغه د حلال وی؟" دا د اهل کتابو د کوږ ذهن یوه عجیبه خبره ده۔ هغوئ به دې قسم سوالونه د کانجو رول او غرض به ئې دا وو چې د عوامو په زړونو کښې شکونه واچوی او د حق سره د جنګېدو د پاره ورته وسله ورکړی۔

[90] یو طرفته د الله د حق ایقرار اقرار کول او بل طرفته د الله نه د باغیانو په حکمونو باندې چلېدل او د هغوئ د طریقو پابندی کول، شرک دے۔ توحید دا دے چې ټول ژوند سراسر د الله په اطاعت کښې وی۔ د الله سره که نورو ته ذاتی طور په مستقله توګه کښې د اطاعت قابل ومنلې شی نو دا اعتقادی شرک دے، او که عملاً د داسې خلقو اطاعت وکړے شی چې هغوئ د الله د هدایت نه بغیر خپله د ژوند تېرولو حکمونه جوړ کړی وی نو دا عملی شرک دے۔

أَوَمَنْ كَانَ مَيْتًا فَأَحْيَيْنٰهُ وَجَعَلْنَا لَهٗ نُوْرًا يَّمْشِيْ بِهٖ فِي النَّاسِ كَمَنْ مَّثَلُهٗ فِي الظُّلُمٰتِ لَيْسَ بِخَارِجٍ مِّنْهَا ؕ كَذٰلِكَ زُيِّنَ لِلْكٰفِرِيْنَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۲۲﴾ وَكَذٰلِكَ جَعَلْنَا

آیا هغه سړی چه اول مړی ؤ بیا مونږ هغه له ژوند ورکړو[88] او ده ته رڼا مو ورله ورکړه چه د هغې په وجه هغه د خلقو په مینځ کښ د ژوند په لار روان دے، چرے د هغه سړی په شان کیدے شی چه هغه په تیارو کښ پروت وی او په هیڅ طریقه د هغې نه نه را وځی؟[89] د کافرانو د پاره خو د هغوی عملونه دغه شان ښائسته جوړ کړے شوی دی[90] او دغه شان مونږ

[88] دلته د مرګ نه مراد د جهالت او د ناپوهتیا حالت دے، او د ژوند نه مراد د علم، او د پوهے او د حقیقت پیژندلو حالت دے. کوم سړے چه په صحیح او په غلط کښ تمیز نشی کولے او دا ورته نه وی معلوم چه صحیح او غلط لار کومه یوه ده نو هغه که بدنی لحاظ سره ژوندے وی نو وی به خو په حقیقت کښ هغه ته د انسانیت ژوند حاصل نه دے. هغه یو ژوندے حیوان دے خو یو ژوندے انسان نه دے. ژوندے انسان په حقیقت کښ صرف هغه سړے دے چه هغه حق او باطل، نیکی او بدی او صحیح او غلط پیژنی.

[89] یعنی ته څنګه دا توقع کولے شې چه کوم انسان ته د انسانیت پوهه نصیب شوی ده او د علم په رڼا سره د کږو لارو په منځ کښ د حق نیغه لاره صفا ویني هغه به د هغه ناپوهه خلقو په شان په دنیا کښ ژوند تیر کړي چه د جهالت په تیارو کښ پریشانه او سرګردانه ګرځي.

[90] یعنی کوم خلقو ته چه رڼا وړاندې کړے شی او هغوی د هغې د قبلولو نه انکار وکړي، او کوم خلقو ته چه د نیغې لارے دعوت ورکړے شی او هغوی په چپلو کږو لارو باندې تللو ته ترجیح ورکړي، نو د هغوی د پاره د الله دا قانون دے چه بیا هغوی ته تیاره ښه معلومیږي. د هغوی د رښتو په شان لاسونه ټپول او د غرے خوړل خوښ وی. هغوی ته جاړے جانوره یا فرانه ښکاري او ازغی ورته ګلونه ښکاري. هغوی له هره بدکاری مزه ورکوي، هره بے عقلی هغوی ته تحقیق کښکاري، او د هر فساد نه روستو د بل نوی فساد د پاره په دے امید تیاریږي چه اول خو هسے اتفاقی خبره ده چه په بل شوی انکار باندې لاس راغلے دے خو دا بیا نو به په لاس راشی.

—

فِي كُلِّ قَرْيَةٍ أَكَابِرَ مُجْرِمِيهَا لِيَمْكُرُوا فِيهَا ۖ وَمَا يَمْكُرُونَ إِلَّا بِأَنفُسِهِمْ وَمَا يَشْعُرُونَ ﴿١٢٣﴾ وَإِذَا جَاءَتْهُمْ آيَةٌ قَالُوا لَن نُّؤْمِنَ حَتَّىٰ نُؤْتَىٰ مِثْلَ مَا أُوتِيَ رُسُلُ اللَّهِ ۘ اللَّهُ أَعْلَمُ حَيْثُ يَجْعَلُ رِسَالَتَهُ ۗ سَيُصِيبُ الَّذِينَ أَجْرَمُوا صَغَارٌ عِندَ اللَّهِ وَعَذَابٌ شَدِيدٌ بِمَا كَانُوا يَمْكُرُونَ ﴿١٢٤﴾ فَمَن يُرِدِ اللَّهُ أَن يَهْدِيَهُ يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ ۖ وَمَن يُرِدْ أَن يُضِلَّهُ يَجْعَلْ صَدْرَهُ ضَيِّقًا حَرَجًا كَأَنَّمَا يَصَّعَّدُ فِي السَّمَاءِ ۚ كَذَٰلِكَ يَجْعَلُ اللَّهُ الرِّجْسَ

په هر کلي کښې د هغه غټ غټ مجرمان لګولي دي چې هلته د خپل مکر و فریب جالونه خواره کړي. په اصل کښې هغوی د خپل فریب په جال کښې ځانله نښلي، خو هغوی په هغه پوهیږي نه.

هر کله چې دوی ته یو آیت راشي نو دوی وایي "موږ به تر هغه نه منو ترڅو پورې چې هغه څیز موږ ته هم ځانله رانکړې شي کوم چې د الله رسولانو ته ورکړې شوې دے ؑ" الله ډیر ښه پوهیږي چې د خپل پیغام رسولو کار د چا نه واخلي او په کومه طریقه ئې ترې واخلي. هغه وخت نږدې دے چې دا مجرمان به د خپلو مکرونو په بدله کښې د الله سره ذلت او سخت عذاب ویني.

پس (دا حقیقت دے چې) چا ته الله د هدایت کولو اراده کوي نو د هغه سینه د اسلام د پاره پرانزي او د چا چې په ګمراهۍ کښې د غورځولو اراده کوي نو د هغه سینه داسې تنګه کړي چې (د اسلام تصور کول) هغه ته داسې ښکاري لکه چې آسمان ته خیژي. دغه شان الله تعالی (د حق نه د تښتې او د نفرت کولو) ناپاکي

ؑ یعنې موږ به د رسولانو په دې بیان باندې ایمان نه راوړو چې هغوی ته یوه فرښته راغلې او د خدای پیغام ئې ورله راوړو، بلکه موږ به هله ایمان راوړو چې فرښته مخامخ موږ ته راشي او موږ ته ووایي چې دا د الله پیغام دے.

عَلَى الَّذِينَ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿١٢٥﴾ وَهَٰذَا صِرَاطُ رَبِّكَ مُسْتَقِيمًا ۗ قَدْ فَصَّلْنَا الْآيَاتِ لِقَوْمٍ يَذَّكَّرُونَ ﴿١٢٦﴾ لَهُمْ دَارُ السَّلَامِ عِندَ رَبِّهِمْ ۖ وَهُوَ وَلِيُّهُم بِمَا كَانُوا يَعْمَلُونَ ﴿١٢٧﴾ وَيَوْمَ يَحْشُرُهُمْ جَمِيعًا يَا مَعْشَرَ الْجِنِّ قَدِ اسْتَكْثَرْتُم مِّنَ الْإِنسِ ۖ وَقَالَ أَوْلِيَاؤُهُم مِّنَ الْإِنسِ رَبَّنَا اسْتَمْتَعَ بَعْضُنَا بِبَعْضٍ وَبَلَغْنَا أَجَلَنَا الَّذِي أَجَّلْتَ لَنَا ۚ قَالَ النَّارُ مَثْوَاكُمْ خَالِدِينَ فِيهَا إِلَّا

په هغه خلقو باندې مسلط کوي چې ایمان نه راوړي، حالانکه دا لار ستا د رب سیده لار ده او مونږ نښې د هغه خلقو د پاره واضح کړې شوې دي چې نصیحت قبلوي. د هغوی د پاره د هغوی د رب سره د سلامتیا کور[93] دے او هغه د هغوی سرپرست دے د هغه سم عمل په وجه چې کوم هغوی اختیار کړے دے.

په کومه ورځ چې به الله دا ټول خلق راجمع کړي، نو په هغه ورځ به هغه پیریانو[94] ته فرمائي چې اے د پیریانو ډلے، تاسو خو په انسانانو باندې ښه زړه ښخ کړو. په انسانانو کښې چې څوک د هغوی دوستان وو، هغوی به عرض وکړي چې پروردګاره، په مونږ کښې هر یو د بل نه ښه کار اخستے دے[95] او اوس مونږ هغه وخت ته رارسیدلي یو کوم چې تا زمونږ د پاره مقرر کړے دے. الله به وفرمائي، ښه اوس د اور ستاسو د استیدو ځائے دے، په هغې کښې به تاسو همیشه وسئ. د هغه نه به بچ کیږي صرف هغه خلق

[92] د سینې پرانستلو نه مراد د اسلام په صداقت باندې پوره مطمئن کول دي او شک شُبه او حیرانتیا او پریشانی لرې کول دي.

[93] "د سلامتیا کور" یعنې جنت، چې هلته به انسان د هر آفت نه محفوظ وي او د هرې خرابۍ نه په امن وي.

[94] دلته د پیریانو نه مراد د پیریانو شیطانان دي.

[95] یعنې په مونږ کښې هر یوه بل نه ناجائزه فائده اخستلې ده، هر یو بل په دوکه کښې اچولے دے او د خپل خواهشاتو پوره کړي دي.

مَا شَآءَ اللّٰهُؕ اِنَّ رَبَّكَ حَكِیْمٌ عَلِیْمٌ (۱۲۸) وَ كَذٰلِكَ نُوَلِّیْ بَعْضَ الظّٰلِمِیْنَ بَعْضًۢا بِمَا كَانُوْا یَكْسِبُوْنَ (۱۲۹) یٰمَعْشَرَ الْجِنِّ وَ الْاِنْسِ اَلَمْ یَاْتِكُمْ رُسُلٌ مِّنْكُمْ یَقُصُّوْنَ عَلَیْكُمْ اٰیٰتِیْ وَ یُنْذِرُوْنَكُمْ لِقَآءَ یَوْمِكُمْ هٰذَاؕ قَالُوْا شَهِدْنَا عَلٰۤى اَنْفُسِنَا وَ غَرَّتْهُمُ الْحَیٰوةُ الدُّنْیَا وَ شَهِدُوْا عَلٰۤى اَنْفُسِهِمْ اَنَّهُمْ

---

چه الله ئې وکول وغواړي، بیشکه ستا رب د حکمتونو خاوند دے او علیم دے[۹۶]. گورئ، موږ به دغه شان (په آخرت کښې) ظالمان د یو بل ملګري کړو د هغوی د هغه ګټې په وجه چه هغوی به (په دنیا کښې د یو بل سره په شریکه) کوله[۹۷]. (په دغه موقع به الله د هغوی نه دا تپوس هم وکړي چه) اے د پیریانو او د انسانانو ډلے، آیا تاسو ته هم ستا سو نه هغه پیغمبران نه وو راغلي چه تاسو ته به ئې زموږ آیتونه اورول او د دے ورځے د انجام نه به ئې یرولئ؟ هغوی به وائي، "هو، موږ د ځان خلاف په خپله ګواهي کوو[۹۸]." نن د دنیا ژوندانه خلق په دوکه کښې اچولي دي، خو په دغه وخت به هغوی په خپله د خپل ځان خلاف ګواهي وکړي چه هغوی

---

۹۶ یعني اګرچه الله ته پوره اختیار دے چه کم چاته سزا ورکول غواړي او کم چاته معافي کول غواړي، خو ورسزا او معافي به هیڅ بلا وجه د خواهشاتو په بنیاد یا نه دي، بلکه د علم او د حکمت په بنیاد بانديبنه دي. خو ځکه به هغه مجرم معاف کوي چه د هغه په حقله به هغه ته معلوم وي چه دے په خپله د خپل جرم ذمه دار نه دے، او د الله حکمت به د هغه په حقله دا فیصله وکړي چه دے له سزا ورکول نه دي پکار.

۹۷ یعني لکه څنګه چه په دنیا کښې هغوی په ګناه کولو کښې او د بدئ په کټلو کښې شریک وو دغه شان به هغوی په آخرت کښې په سزا کښې هم شریک وي.

۹۸ یعني موږ دا اقرار کوو چه ستا د طرفه به رسولان راتلل او موږ ته به ئې د حقیقت نه خبرولو، خو دا زموږ خپل قصور وو چه موږ د هغوی خبره و نه منله.

كَانُوْا كٰفِرِيْنَ ﴿۱۳۰﴾ ذٰلِكَ اَنْ لَّمْ يَكُنْ رَّبُّكَ مُهْلِكَ الْقُرٰى بِظُلْمٍ وَّاَهْلُهَا غٰفِلُوْنَ ﴿۱۳۱﴾ وَلِكُلٍّ دَرَجٰتٌ مِّمَّا عَمِلُوْا ؕ وَمَا رَبُّكَ بِغَافِلٍ عَمَّا يَعْمَلُوْنَ ﴿۱۳۲﴾ وَرَبُّكَ الْغَنِيُّ ذُو الرَّحْمَةِ ؕ اِنْ يَّشَاْ

کافران وو.[۹۹] (دا گواهي به هغوي ته ددې د پاره واخستلې شي چه دا ثابته شي) چه ستا رب[ب] په ظلم سره د کلو تباه کونکے نه وو هر کله چه د هغې وسیدونکي د حقیقت[۱۰۰] نه ناخبره وي.

د هر سري درجه د هغه د عمل په لحاظ سره ده او ستا رب د خلقو د عملونو نه ناخبره نه دے. ستا رب بې نیازه دے او مهربانۍ هغه دستور دے[۱۰۱] که چرے هغه و غواړي

[۹۹] یعنی بې خبره او ناپوهه نه وو بلکه کافران وو. هغوي به بخپله دا خبره ومنې چه حق مونږ ته رارسیدلے وو خو مونږه بخپله د هغه د قبلولو نه انکار کړے وو.

[۱۰۰] یعنی الله خپلو بندګانو ته دا موقع نه ورکول غواړي چه هغوي د الله په مقابل کښې دا احتجاج وکړي چه مونږه خو ناخبره وو د حقیقت نه خبر کړي نه یو، او نه د زمونږ د پاره د صحیح لارے ښودلو انتظام کړے وو، خو چه کله مونږ د ناپوهۍ په وجه په غلطه لار لاړو نو اوس ته مونږ رانیسې. ددے حجت ختمولو د پاره الله تعالیٰ پیغمبران راولیږل، او کتابونه نازل کړل د پاره ددے چه پیریانو او انسانانو ته صفا صفا خبر ورکړے شي. اوس که خلق په غلطه لار روانیږي او الله هغوي له سزا ورکوي نو د هغې الزام بخپله په هغوي باندې راځي نه په الله تعالیٰ باندې نه راځي.

[۱۰۱] "ستا رب بې نیازه دے" یعنی د هغه په تاسو کښې څه غرض نشته، او نه څه ستا سو نه څه فایده ده چه ستاسو د نافرمانۍ د وجه نه به کنې د هغه څه نقصان وشي، یا ستاسو د فرمانبردارۍ د وجې نه به کنې هغه ته څه فایده ورسي. که تاسو ټول ټول نافرمانه شئ خو د هغه په بادشاهۍ کښې هیڅ کمے نشي راتلے، او که تول فرمانبرداره عبادت ګزاره شئ نو د هغه په بادشاهۍ کښې څه زیاتے نشي کولے. هغه نه ستاسو د سلامۍ محتاجه دے او نه ستاسو د نذرونیاز. خپله بې شماره خزانے په تاسو خرچ کوي او د هغې په بدله کښې ستاسو نه هیڅ نه غواړي.

"مهرباني د هغه دستور دے" دلته د موقعې په لحاظ سره ددے فقرے دوه مطلبونه دي. یو دا چه دا ستا سو رب تاسو ته وایي چه په نیغه لار باندې ځئ او د حقیقت نه خلاف عملونه مه کوئ نو ددے وجه دا نه ده چه تاسو په نیغه لار لاړشئ نو کنې هغه ته فایده ده او که په غلطه لار لاړشئ نو کنې هغه ته نقصان دے، بلکه ددے اصل وجه دا ده چه په نیغه لار باندې تللو کښې ستاسو خپله فایده ده او په غلطه لار باندې په تللو کښې ستاسو خپل نقصان دے. دا سراسر د هغه مهرباني ده چه هغه تاسو ته د هغې صحیح عمل تعلیم درکوي چه د هغې په وجه تاسو وچتو وچتو درجو ته ترقي کولے شئ او د هغې غلطو عملونو نه تاسو منع کوي چه د هغې

يُذْهِبْكُمْ وَيَسْتَخْلِفْ مِنْۢ بَعْدِكُمْ مَّا يَشَآءُ كَمَآ أَنْشَأَكُمْ مِّنْ ذُرِّيَّةِ قَوْمٍ اٰخَرِيْنَ ﴿۱۳۳﴾ إِنَّ مَا تُوْعَدُوْنَ لَاٰتٍ ۙ وَّمَآ أَنْتُمْ بِمُعْجِزِيْنَ ﴿۱۳۴﴾ قُلْ يٰقَوْمِ اعْمَلُوْا عَلٰى مَكَانَتِكُمْ إِنِّيْ عَامِلٌ ۚ فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ۙ مَنْ تَكُوْنُ لَهٗ عَاقِبَةُ الدَّارِ ۭ إِنَّهٗ لَا يُفْلِحُ الظّٰلِمُوْنَ ﴿۱۳۵﴾

نو تاسو به لرې کړي او ستاسو په ځائے به نور څوک، چه کوم خلق د هغه خوښ وي، راولي، لکه څنګه چه تاسو ئے د نورو خلقو د نسل نه پاېورته کړي يئ. تاسو سره چه د کوم څيز وعده کيږي هغه يقيناً راتلونکې ده[۱۲۲] او تاسو د خدائے د عاجزه کولو طاقت نه لرئ. اے محمد ﷺ، ووايه چه اے خلقو، تاسو په خپل ځائے عمل کوئ او زه هم په خپل ځائے باندې عمل کوم،[۱۲۳] ډير زر به تاسو ته معلومه شي چه آخري انجام به د چا ښه وي، بهرحال دا حقيقت دے چه ظالمان هيڅ کله هم فلاح نشي موندلے.

پۀ وجه تاسو لاندې مرتبوته ځئ. يا دا چه ستاسو رب سخت مزاجه نۀ دے، تاسو له په سزا ورکولو کښې هغه لۀ منډې نه ورځي، هغه خاځا ستاسو په نيولو او په وهلو پسے نۀ دے ورپسے شوے چه ستاسو لږ ګناه ؤشي او فوراً سزا درکړي. په حقيقت کښ هغه په خپلو مخلوقاتو باندې ډېر مهربانه دے. بنه په رحم و کرم سره خپله خدائي کوي، او دغه معامله ئې د انسانانو سره هم ده. دغه وجه ده چه هغه ستاسو ګناهونه په څه معاف کوي. تاسو نافرماني کوئ، ګناهونه کوئ، جرمونه کوئ، د هغه په رزق باندې عښېږئ او د هغه حکمونه نۀ منئ، خو هغه د صبر او د عفوے نه کار اخلي او تاسو ته د پوهے د پاره او د خپل ځان د اصلاح د پاره مهلتونه درکوي. او که نۀ چرے هغه سخت کيږوے نو دا د هغه د پاره څۀ مشکله خبره نۀ وه چه تاسو ئے د دُنيا نه رخصت کړي وئ او ستاسو پځائے ئے بل قوم راوچت کړے وے، او يا ټول انسانان ئے ختم کړے وے او بل مخلوق ئے پيدا کړے وے.

[۱۲۲] يعنې قيامت، چه د هغه نه روستو به ټول مخکښ روستو انسانان بيا راژوندي کړے شي او خپل د پاتې به د آخري فيصلے د پاره پيش شي.

[۱۲۳] يعنې که زما په خبره تاسو نۀ منيږئ او د خپلو غلطو کارونو نه منع کيږئ نو چه په کومه لار تاسو ځئ نو په هغې باندې ځئ، او زما په خپله لاره تلو ته پرېږدئ، آخري انجام چه څۀ وي هغه به تاسو هم وينئ او زۀ به ئے هم ګورم.

وَجَعَلُوا لِلّٰهِ مِمَّا ذَرَاَ مِنَ الْحَرْثِ وَالْاَنْعَامِ نَصِيْبًا فَقَالُوْا هٰذَا لِلّٰهِ بِزَعْمِهِمْ وَهٰذَا لِشُرَكَآئِنَا ۚ فَمَا كَانَ لِشُرَكَآئِهِمْ فَلَا

دے خلقو د الله د پاره، د هغه فصلونه او څاروو نه چه هم الله پيدا کړي دي، يو حصه مقرر کړي ده[۱۰۴] او په خپل ګمان وائي چه دا د الله د پاره ده، او دا زمونږ د شريکانو د پاره ده[۱۰۵]. بيا کومه حصه چه د هغوئ د شريکانو د پاره ده هغه خو الله ته

[۱۰۴] دلته به د تقرير سلسله په دے خبره بانږ ختمه شوي وه چه که چرے دا خلق نصيحت قبلولو ته تيار نه دي او په خپل جاهليت بانږ ټينګ ولاړ وي نو دوئ ته ووايه چه ښه ده تاسو په خپله طريقه بانږ عمل کوئ او زه به پخپله طريقه بانږ عمل کوم، قيامت به يو ورځ ضرور راځي، په هغه وخت به تاسو ته معلومه شي چه د دے طريقے به څه انجام وي، بهرحال په دے بانږ ځان ښه پوه کړئ چه هلته به ظالمانو ته خلاص نه شي. د دے نه روستو هغه جاهليت ښودلے کيږي چه په هغے بانږ دا خلق ټينګ ولاړ دي او د هغے پريښودلو ته تيار نه دي. د هغے جاهلانه ټوټه وښلے کيږي چه ستاسو هغه "ظلم" څه دے چه د هغے په وجه تاسو خلاصي اُميد نشئ کولے.

[۱۰۵] د دے خبرے هغوئ پخپله قائل وو چه زمکه د الله ده او فصلونه هغه راخيږوي. دغه رنګے هغه څناور هم الله پيدا کړي دي د کومو نه چه دوئ ځان له خدمت اخلي. ليکن د هغوئ دا خيال وو چه په هغوئ بانږ د الله دا فضل د هغه ديوتاګانو، فرښتو او پيريانو، د آسماني ستورو او د تيرو بزرګانو د روحونو د برکت د وجے نه دے چه د هغوئ په مونږ بانږ د کرم نظر دے. او په دے وجه به هغوئ د خپلو پټو د پيداوار نه او د خپلو څارونو نه دوه حصے بيلولے. يوه حصه به د الله د نوم په دے شکريه کښ وه چه هغه دا پټي او څاروي ورکړي دي. او بله حصه به د هغوئ د سرپرستانو معبودانو د نذر د پاره وه چه د هغوئ مهربانيانے د هغوئ سره شاملے دي. الله تعالیٰ د ټولونه اول هغوئ په دے ظلم بانږ رانيسي چه دا ټول څاروي مونږه پيدا کړي دي او مونږه درکړي دي، نو په دے کښ دا د بل چا نذر و نياز څنګه راغے؟ دا نمک حرامي نه ده نو څه ده چه تاسو د خپل احسان کونکي هغه احسان، چه هغه درسره صرف د خپل فضل وکرم په وجه کړے دے، د بل چا د فضل وکرم نتيجه ګڼړئ او په شکريه ادا کولو کښ هغه هم د هغه سره شريکوئ. دويم کرلت ئے د هغوئ په دے خبره بانږ کړے دے چه هغوئ دا د الله کومه حصه مقرر کړي ده دا ئے هم په خپل ګمان بانږ مقرر کړي ده، چه کومه حصه ئے په خپله د الله د پاره مقرره ول غوښتل هغه ئے د الله د پاره مقرر کړه او چه کومه ئے د نورو د پاره مقرره ول غوښتل هغه ئے د نورو د پاره مقرر کړه. حالانکه د دے بخښش اصلي مالک او دا ختيارمند پخپله الله پاک دے او دا فيصله د هغه د شريعت مطابق کول پکار دي چه د هغه د بخښش نه څومره حصه د هغه د شکريے د پاره وويستلے شي او په باقي کښ بيا څوک حقدار دي. نو په حقيقت کښ چه کومه حصه دا خلق په خپل باطل خيال کښ د خدائے د پاره وباسي او په فقيرانو

يَصِلُ إِلَى اللّٰهِ ۚ وَمَا كَانَ لِلّٰهِ فَهُوَ يَصِلُ إِلٰى شُرَكَآئِهِمْ ۗ سَآءَ مَا يَحْكُمُونَ ﴿١٣٦﴾ وَكَذٰلِكَ زَيَّنَ لِكَثِيرٍ مِّنَ الْمُشْرِكِينَ

نه رسي خو کوم چه د الله د پاره وي نو هغه د هغوئ شريکانو ته رسي[١٠٦] څنګه خرابې فيصلې کوي دا خلق۔

او دغه شان د هغوئ شريکانو د ډېرو مشرکانو د پاره د خپل اولاد قتلول

او مسکينانو باندئ خيرات کوي هغه هم څه نيکي نه ده. هيڅ وجه نشته چه هغه د خدائے په دربار کښې قبوله شي۔

[١٠٦] دا يو باريک طنز دے د هغوئ په دے کار باندئ چه هغوئ به کومه حصه د خدائے په نوم ايستله نو په هغې کښې به هم هغوئ قسما قسم چلونه کول او کله به ئې پکښې زياتې ستلو او د خپلو خودساخته شريکانو د حصو زياتولو کوشش به ئې کولو. د دے نه به دا معلوميدله چه څومره مينه د هغوئ د دے شريکانو سره ده هغه مينه ئې د خدائے سره نشته. مثلاً کومه غله يا ميوه چه به د خدائے په نوم باندئ د هغې نه چه به څه بنګته راپريوتله نو هغه به ئې د شريکانو په حصه کښې شامله کوله، او که د شريکانو د هغې حصې نه به څه راپريوتل، يا به ترې څه د خدائے په هغه حصه کښې شامل شول نو هغه به ئې هم د هغه شريکانو حصې ته واپس کوله. کوم پټي چه به د شريکانو د نذر د پاره مخصوص کړے شوي وُو که چرے د هغې نه به اوبۀ هغې پټو طرفته راښهيدلے کوم چه به د خدائے د نذر د پاره مخصوص وُو نو د هغې تپول پيداوار به د شريکانو په حصه کښې داخليدو، ليکن که دا کار به برعکس وُو نو د خدائے په حصه کښې به هيڅ اضافه نۀ کيدله. او که چرے به د سوکړے د وجے نه د نذر و نياز غلے ته ضرورت پيښ شو نو د خدائے هغه حصه به ئې خوړله او د شريکانو حصې ته به ئې د دے يره نه لاس نۀ وروړلو چه چرته څه بلا پرے نازله نۀ شي. او که په څه وجه به د شريکانو په حصه کښې کمے راغے نو هغه به ئې د خدائے د حصے نه پوره کولو، ليکن که د خدائے په حصه کښې به کمے راغے نو د شريکانو د حصے نه به ئې ورته يو دانه هم نۀ وراچوله. په دے کار چه به چا اعتراض کوؤ نو قسما قسم جوابونه به ئې ورله ورکول. مثلاً دا به ئې وئيل چه خدائے خو غني دے، د هغه د حصے نه که څه کم هم شي نو د هغه پرهيڅ پروا نۀ وي. او دا شريکان خو بندګان دي، د خدائے په شان غنيان نۀ دي، نو د دوئ په حصه کښې که لږ شان کمے راشي نو دوئ پرے مونږ را نيولے شي۔

د دے رهونو اصلي جرړه څه وه، په دے باندئ د ځان پوهولو د پاره د دے نه ځان خبرول ضروري دي چه د عربو جاهلانو به د خپل مال نه کومه حصه د خدائے د پاره جُدا کوله نو هغه به ئې د فقيرانو، د مسکينانو، د مسافرانو او د يتيمانو په امداد کښې خرچ کوله، او کومه حصه چه به ئې د شريکانو د نذر و نياز د پاره مقرر کوله نو هغه خو به يا د مذهبي طبقو جيبونو ته تلله او يا به په دربارونو باندئ د نذر په شکل کښې پيش کړے شوله او په دے طريقه به مجاورانو او عبادت ګزارانو ته رسيدله. هم دغه وجه وه چه د دے خودغرضه مذهبي پېشواګانو [illegible] کالو دا دے جاهلانو ته دا خبره په زړۀ کښې کينولے وه چه که د خدائے په حصه

قَتْلَ اَوْلَادِهِمْ شُرَكَآؤُهُمْ لِيُرْدُوْهُمْ وَلِيَلْبِسُوْا عَلَيْهِمْ دِيْنَهُمْ ؕ

بنا ئیستہ ښکاره کړی دی[۱۰۷] دپاره دے چه هغوئ په هلاکت کښې[۱۰۸] مبتلا کړی او په هغوئ باندې خپل دین[۱۰۹] شکمن کړی۔

کښ کے راشی نو هیڅ گناه نشته، خو چه " دَ خدائے دَ نیاز بینو" په حصه کښ څه کے راشی بلکه کښ څه کښ زیات شی نو لا بهتره ده۔

۱۰۷ دلته دَ "شریکانو" دا لفظ په یوه بله معنیٰ کښ استعمال شوے دے چه دَ برنئ معنیٰ نه مختلفه ده. په برنئ آیت کښ چه چاته " شریک " ویلے شوے دے، هغه دَ هغوئ معبودان وُو، چه دَ هغوئ په برکت یا سفارش باندې به هغوئ مدد حاصلولو او دَ نعمت په شکرانه کښ به ئے دَ خدائے سره حصه دارگڼل. ودے نه برخلاف په دے آیت کښ دَ " شریک " نه مراد هغه انسانان او شیطانان دی چه هغوئ دَ اولادو قتلول دَ دے خلقو په نظر کښ یو جائز او غوره کار ښکاره کړے وُو. دوئ ته دَ شریک ویلو وجه دا ده چه په اسلام کښ څنګه دَ عبادت حقدار یوازے الله تعالیٰ دے، دغه شان دَ بندیانو دَپاره دَ قانون جوړولو او دَ حلال حرام مقرره ولو حقدار هم صرف الله دے. نو که څنګه چه دَ بل چا عبادت کول دَ خدائے سره شریک جوړول دی، نو دغه شان دَ بل چا قانون خو ګڼل او دَ هغې پابندی کول او دَ هغه حکم نه منل هم دَ خدائے سره شریک جوړول دی. دا دواړه کارونه دَ شرک دی، خواه که دے کارونو کونکے هغه هستو ته په ژبه باندې اِله او رب اُووائی او که دَ نه وائی کوم هستو ته چه دوئ نذرو نیاز پیش کوی یا چه دَ کوم هستو دَ قانون حکم نه منی۔

دَ اولادو دَ قتلولو درے طریقې په عربو کښ جاری وے او په قرآن کښ دے درے واړو طرف ته اشاره شوے ده۔

(۱) دَ جینکو قتل، په دے خیال سره چه څوک دَ هغه خُوم نشی، یا په قبایلی جنګونو کښ دَ دُشمن په قبضه کښ رانشی، یا په څه بله وجه کدوئ دَپاره دَ شرم سبب جوړ نشی۔

(۲) دَ بچو قتل، په دے خیال سره چه دَ هغوئ دَ پالنے بوج پرِ رانشی او په کمے کښ ئے کے رالشی۔

(۳) بچی دَ خپلو معبودانو دَ رضا دپاره قربانی کول۔

۱۰۸ دا و هلاکت لفظ ډیر دَ مطلب لفظ دے. ددے نه مراد اخلاقی هلاکت هم دے چه دَ یو انسان زړه دومره سخت شی چه خپل بچی په خپل لاس قتلوی په هغه کښ انسانیت خو پریږده چه حیوانیت پکښې هم نه وی. او ددے نه مراد انسانی او قومی هلاکت هم دے څکه چه دَ بچو دَ قتلولو سره خو نسل ختمیږی او آبادی هم کمیږی، چه دَ هغې نه انسانانو ته هم نقصان رسی او هغه قوم پخپله هم تباه کیږی چه خپل وارثان په خپلو لاسونو ختموی او ددے نه مراد دَ آخری انجام هلاکت هم دے څکه چه څوک په خپلو معصومانو بچو باندې دا ظلم کوی او چه دَ انسانانو او پخپله دَ خپل قوم سره دا دشمنی کوی، هغوئ خپل ځان دَ خدائے دَ سخت عذاب مستحق کوی۔

۱۰۹ دَ جاهلیت په زمانه کښ به عربیانو خپل ځان ته دَ حضرت ابراهیمؑ او دَ اسماعیلؑ معتقدین ویل او په دے وجه دَ هغوئ دا خیال وُو چه هغوئ په کوم مذهب دی نو هم دغه مذهب الله ته خوږه دے۔ لیکن کوم دین چه هغوئ دَ حضرت ابراهیمؑ او اسماعیلؑ نه زده کړے وُو نو په روستو صدو کښ به هغې کښ

وَلَوْ شَآءَ اللّٰهُ مَا فَعَلُوْهُ فَذَرْهُمْ وَمَا يَفْتَرُوْنَ ﴿۱۳۷﴾ وَقَالُوْا هٰذِهٖٓ اَنْعَامٌ وَّحَرْثٌ حِجْرٌ ۖ لَّا يَطْعَمُهَآ اِلَّا مَنْ نَّشَآءُ بِزَعْمِهِمْ وَاَنْعَامٌ حُرِّمَتْ ظُهُوْرُهَا وَاَنْعَامٌ لَّا يَذْكُرُوْنَ اسْمَ اللّٰهِ عَلَيْهَا افْتِرَآءً عَلَيْهِ ۭ سَيَجْزِيْهِمْ بِمَا كَانُوْا يَفْتَرُوْنَ ﴿۱۳۸﴾

کہ چرے اللّٰہ غوښتلے نو دوئ بہ دا سے نہ کولے، دوئ پریږده چہ دَ دروغو پہ الزام تړلو کښې مشغول وی۔[111]

دوئ وائی چہ دا څناور او دا فصلونہ محفوظ دی، دا صرف هغه خلق خوړے شی چہ زمونږ خوښ وی، حالانکہ دا پابندی دوئ دَ ځانہ لګولی ده.[112] بیا څہ څناور داسے دی چہ پہ هغوی باندې سورلی او بار وړل حرام کړے شوی دی او څہ څناور داسے دی چہ پہ هغے باندې دَ اللّٰہ نوم نہ اخلی،[113] او دا ټول هر څہ هغوی پہ اللّٰہ باندې دَ دروغو الزام لګولے دے، ډیر زر بہ اللّٰہ هغوی لہ ددے دروغو بدلہ ورکړی۔

مذهبی پیشوا کانو، دَ قبائیلو سردارانو او دَ خاندان مشرانو قسما قسم عقیدے او قسما قسم عملونہ او رسمونہ شامل کړی دی چہ هغه روستنو خلقو اصل مذهب وګڼړو او پہ ښه عقیده سره ئے پہ هغے عمل کولو. چونکہ پہ روایاتو کښې، یا پہ تاریخ کښې یا پہ یو کتاب کښې داسے قسم څہ ریکارډ محفوظ نہ وُو چہ دَ هغے نہ دا معلومہ شوے وے چہ اصل مذهب څہ وُو او روستو پکښې بیا څہ څیزونہ، پہ کومہ زمانہ کښې، کومو کومو خلقو، پہ څہ طریقہ شامل کړل۔ نو پہ دے وجہ دَ عربو دَ پاره دَ هغوی ټول دین شکمن او مشتبہ جوړ شوے وُو۔ نہ بہ ئے دَ یو څیز پہ حقله دا پہ یقین سره وئیلے شو چہ دا هغه اصلی دین دے کوم چہ دَ خدائے دَ طرفنہ راغلے دے، او نہ بہ ئے وائیلے شو چہ کوم دا بدعتونہ او غلط رسمونہ دی چہ روستو پکښې خلقو شامل کړی دی۔ ددے حال ترجمانی پہ دے فقره کښې شوی ده۔

[112] یعنی کہ چرے اللّٰہ غوښتلے چہ دوئ دِ داسے ونکړی نو دوئ بہ هیڅکلہ داسے نہ وے کړے، لیکن چونکہ دَ اللّٰہ مشیّت دا وُو چہ څوک پہ کومہ لار تلل غواړی هغوی لہ دِ هم پہ هغے لار باندې دَ تللو موقع ورکړے شی، نو ځکہ دا ټول هر څہ وَشو۔ او س کہ چرے دا خلق تہ پوهہ کوے او دوئ نہ پوهیږی او خبره نہ منی او پہ خپلو دروغو باندې ټینګ وی، نو دوئ پریږده چہ څہ کول غواړی هغه دِ وکړی، پہ دوئ پسے دَ ورپسے کیدو هیڅ ضرورت نشتہ۔

[113] دَ عربو دَ خلقو دا قاعده وه چہ دَ ځینے څناورو یا دَ ځینے فصل پہ حقلہ بہ ئے نذر وَمنلو چہ دا دَ فلانی دَ بار یا دَ فلانی حضرت دَ پاره تحفہ شول۔ دَ غہ برکتناکہ تحفہ بہ بیا هر چا نشوه خوړلے

وَقَالُوْا مَا فِیْ بُطُوْنِ هٰذِهِ الْاَنْعَامِ خَالِصَةٌ لِّذُكُوْرِنَا وَمُحَرَّمٌ عَلٰٓى اَزْوَاجِنَا ۚ وَاِنْ یَّكُنْ مَّیْتَةً فَهُمْ فِیْهِ شُرَكَآءُ ؕ سَیَجْزِیْهِمْ وَصْفَهُمْ ؕ اِنَّهٗ حَكِیْمٌ عَلِیْمٌ ﴿۱۳۹﴾ قَدْ خَسِرَ الَّذِیْنَ قَتَلُوْٓا اَوْلَادَهُمْ سَفَهًۢا بِغَیْرِ عِلْمٍ وَّحَرَّمُوْا مَا رَزَقَهُمُ اللّٰهُ افْتِرَآءً عَلَى اللّٰهِ ؕ قَدْ ضَلُّوْا

او دوی وائی چه ددے څاروو په خیټو کښې څه دی دا زموږه دَ نارینو دَ پاره مخصوص دی او زموږو په ښځو باندې حرام دی، لیکن که چرے هغه بچے مړوی نو بیا دوا پره ددے په خوراک کښې شریک کیدے شی.[۱۱۳] دا کومے خبرے چه دوی دَ ځانه جوړے کړی دی ددے بدله به الله دوی له ضرور ورکوی. یقیناً چه هغه حکیم دَے اوَ ټولو خبرو نه خبردے -

یقیناً چه هغه خلق په خساره کښې راغلل کوم چه خپل اولاد دَ جهالت اوَ ناپوهتیا په وجه قتل کړل او کوم رزق چه ورله خدائے ورکړے وُو نو په خدائے پورے ئے دروغ وَتړل او هغه ئے په ځان باندې حرام کړو. یقیناً چه دغه خلق گمراه شو

بلکه دَ هغے دَ پاره دَ هغوی یو خاص قانون وُو چه خاص قسم نذرونه په خاص قسم خلقو خوړلے شو. الله تعالیٰ دَ هغوی دے کارته نۀ یواځے مشرکانه کاروائی بلکه دا هم وائی چه دا قانون دوی دَ خپله ځانه جوړ کړے دے - یعنی دَ کوم خدائے دَ رزق نه چه دوی دا نذرونه او نیازونه منی هغه خدائے ددے نذرونو حکم نۀ دے کړے او نۀ ئے ددے نذرونو دَ خوراک دَ پاره دا قاعدے جوړے کړی دی - دا هر څه دے خودسرو او باغیانو انسانانو په خپل اختیار سره دَ ځانه جوړ کړی دی -

[۱۱۲] دَ روایاتو نه دا معلومیږی چه دَ عربو په خلقو کښې دَ ځے خاص نذرونو او قربانو ځناور داسے وُو چه په هغه باندې دَ خدائے نوم اخستل جائز نۀ وُو - په هغے باندې دَ حج دَ پاره سورلی منع وه، ځکه چه دَ حج دَ پاره لَبَّيْكَ اَللّٰهُمَّ لَبَّيْكَ دُعا کول وُو - دغه شان دَ هغوی دَ لوشولو په وخت کښې، یا په هغوی باندې دَ سوریدلو په وخت کښې، یا دَ هغوی دَ ذبحه کولو په وخت کښې، یا دَ هغوی دَ خوراک په وخت کښې به دا خاص خیال ساتلے کیدو چه دَ خدائے نوم په ژبه باندې رانشی -

[۱۱۳] یعنی دا قاعدے خدائے نۀ دی مقرر کړی، خو هغوی دے پابندی په دے عقیدے سره کوی چه دا خدائے مقرر کړی دی، او ددے عقیدے لپاره دَ هغوی سره دَ خدائے دَ څه حکم سند نشته، بلکه صرف دا سند دے چه دَ پلار نیکه دَ وخته خبره داسے راروانه ده -

وَمَا كَانُوا مُهْتَدِينَ ﴿١٤٠﴾ وَهُوَ الَّذِي أَنشَأَ جَنَّاتٍ مَّعْرُوشَاتٍ وَغَيْرَ مَعْرُوشَاتٍ وَالنَّخْلَ وَالزَّرْعَ مُخْتَلِفًا أُكُلُهُ وَالزَّيْتُونَ وَالرُّمَّانَ مُتَشَابِهًا وَغَيْرَ مُتَشَابِهٍ ۚ كُلُوا مِن ثَمَرِهِ إِذَا

او هرګز هغوی نیغه لار موندونکی نه وو.ع [۱۱۵]

هغه هم الله دے چه په بل ځینو ډول پاسه غوړیدلی قسما قسم باغونه [۱۱۶] او په خپلو تنو ولاړ باغونه او دَ کجورو باغونه ئے پیدا کړل، او دا سے فصلونه ئے راوَخیژول چه دَ هغے نه قسما قسم مختلف خوراکونه حاصلیږی، دَ زیتون (خوناو) او دَ انارو ونے ئے پیدا کړے چه میوے ئے په شکل کښ یو شان وی او خوندونه ئے مختلف وی. خوری دده پیدا وار هر کله چه

[۱۱۴] په عربو کښ چه دَ نذرانو او دَ قربانئ دَ څناورو په خفله کوم خود ساخته شریعت جوړ شوے وو دَ هغے شریعت یوه دفعه دا هم وه چه دده څناورو دَ ګیډے نه کوم بچے پیدا شی دَ هغے غوښه صرف سړی خوړلے شی. دَ ښځو دپاره دَ هغے خوراک جائز نه دے. لیکن که دغه بچے مړ وی یا مړ شی نو دَ هغے دَ غوښے په خوراک کښ سړی او ښځے تهول شریک کیدے شی.

[۱۱۵] یعنی کوم خلقو چه دا رسمونه رواجونه جوړ کړی وو اګرچه هغوی ستاسو پلاران او نیکونه وو، ستا مذهبی بزرګان وو، ستاسو پیشوایګان او سرداران وو، لیکن حقیقت خو بهرحال حقیقت وی، دَ هغوی دا غلط طریقے صرف په دے وجه صحیح او مقدسے نشوے کیدے چه هغوی ستاسو مشران او بزرګان وو. کوم ظالمانو چه دا ولادو دَ قتل غوندے وحشیانه کارونو له رواج ورکړے وو، دَ خدائے رزق ئے دَ خدائے په مخلوق باندے حرام کړے وو، په دین کښ ئے نوے نوے خبرے شامل کړے وے او دَ هغے نسبت ئے خدائے ته کولو، هغوی آخر څنګه کامیاب او صحیح خلق کیدے شی. خواه که هغه ستاسو مشران او بزرګان وو خو بهرحال هغه ګمراه وو او دَ خپلے ګمراهئ بد انجام به ضرور وینی.

[۱۱۶] په اصل کښ جَنّٰتٍ مَّعْرُوْشٰتٍ وَّغَيْرَ مَعْرُوْشٰتٍ الفاظ استعمال شوی دی چه دده قسمه باغونه ترے مراد دی. یو هغه باغ چه دَ هغے بوټی په لرګو باندے غوړولے کیږی، بل هغه باغ چه ونے ئے په خپلو تنو باندے مضبوطے ولاړے وی. ددے وجے نه مونږ دَ جَنّٰتٍ مَّعْرُوْشٰتٍ ترجمه "په بل ځیز دَ پاسه غوړیدلی باغونه" کړی ده، او دَ جَنّٰتٍ غَيْرَ مَعْرُوْشٰتٍ ترجمه مو "په خپلو تنو ولاړ باغونه" کړی ده.

أَثْمَرَ وَآتُوا حَقَّهُ يَوْمَ حَصَادِهِ ۖ وَلَا تُسْرِفُوا ۚ إِنَّهُ لَا يُحِبُّ الْمُسْرِفِينَ ﴿١٤١﴾ وَمِنَ الْأَنْعَامِ حَمُولَةً وَفَرْشًا ۚ كُلُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ وَلَا تَتَّبِعُوا خُطُوَاتِ الشَّيْطَانِ ۚ إِنَّهُ لَكُمْ عَدُوٌّ مُبِينٌ ﴿١٤٢﴾ ثَمَانِيَةَ أَزْوَاجٍ ۖ مِنَ الضَّأْنِ اثْنَيْنِ وَمِنَ الْمَعْزِ اثْنَيْنِ ۗ قُلْ آلذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ أَمِ الْأُنْثَيَيْنِ أَمَّا اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ

میوے ونیسی، او د الله حق ترِ ور کړئ هر کله چه د دے فصل وریبئ او د حد نه مه اوړئ ځکه چه الله د حد نه اوړیدونکی نه خوښوی. بیا هغه هم الله دے چه په څاروو کښ ئے هغه څناور هم پیدا کړی دی چه د هغے نه د سورلئ او د بار وړلو کار اخستلے کیږی او هغه څناور هم چه د خوراک او فرش (یعنی د غوړیدلو) په کار راځی.[۱۱۵] خورئ د هغه څیزونو نه کوم چه درله الله درکړی دی او په شیطان پسے مه ځئ ځکه چه هغه ستاسو ښکاره دښمن دے.[۱۱۶] دا اته نر ښځی دی دوه د ګډو د قِسم نه او دوه د چیلو د قِسم نه، اے محمد ﷺ، د دوئ نه تپوس وکړه چه الله د دے نران حرام کړی دی او که ښځے، یا هغه بچی چه د ګډو او د

[۱۱۵] په اصل کښ لفظ "فرش" استعمال شوے دے. څناور و ته فرش ویل یا خو په دے وجه دی چه د هغوی قد ونه واړه دی او په زمکه پورے نږدے روان وی. یا په دے وجه دی چه هغه د ذبحے د پاره په زمکه سملولے کیږی، یا په دے وجه چه د هغوی د څرمنو او د ویښتو نه فرشونه جوړیږی.

[۱۱۶] دلته د ریے خبرے الله تعالیٰ زمونږ په ذهن کښ کینول غواړی. یوه دا چه دا باغ او پټی او دا څناور کوم چه ستاسو سره دی، دا ټول الله درکړی دی، په دے کښ د بل چا ورکړه نشته، نو د دے په شکریه کښ هم بل شوک نشی ملګرے کیدے. دویمه دا چه هر کله دا څیزونه الله درکړی دی نو دا د الله د قانون مطابق استعمالول پکار دی. د بل چا دا حق نه دے چه د دے په استعمال باندے د خپل طرفه پابندی ولګوی. د الله نه بغیر د بل چا د مقرر کړے شوو رسمونو پابندی کول او د الله نه بغیر بل چا ته د نعمت د شکریے نذر پیش کول د حد نه اوړیدل دی او دا د شیطان پیروی ده. دریمه دا چه دا ټول څیزونه الله تعالیٰ د انسان د خوراک څکاک او د استعمال د پاره پیدا کړی دی، د دے د پاره نه دی پیدا کړی چه دا دِ خواخوا حرام کړے شی. په خپل وهم او قیاس باندے چه کومے پابندئ خلقو د خدائے په رزق او د هغه د څیزونو په استعمال باندے لګولی دی هغه ټولے د الله د منشاء نه خلاف دی.

أَرْحَامُ الْأُنثَيَيْنِ ۖ نَبِّئُونِي بِعِلْمٍ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿١٤٣﴾ وَمِنَ الْإِبِلِ اثْنَيْنِ وَمِنَ الْبَقَرِ اثْنَيْنِ ۗ قُلْ آلذَّكَرَيْنِ حَرَّمَ أَمِ الْأُنثَيَيْنِ أَمَّا اشْتَمَلَتْ عَلَيْهِ أَرْحَامُ الْأُنثَيَيْنِ ۖ أَمْ كُنتُمْ شُهَدَاءَ إِذْ وَصَّاكُمُ اللَّهُ بِهَٰذَا ۚ فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنِ افْتَرَىٰ عَلَى اللَّهِ كَذِبًا لِّيُضِلَّ النَّاسَ بِغَيْرِ عِلْمٍ ۗ إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي الْقَوْمَ الظَّالِمِينَ ﴿١٤٤﴾ قُل لَّا أَجِدُ فِي مَا أُوحِيَ إِلَيَّ

چیلو په خیټو کښ وی؟ ما ته په علم سره ټیک ټیک ووایئ که چرې تاسو رښتنی یئ[119] او دغه شان دوه د اوښانو د قسم نه دی او دوه د غواګانو د قسم نه۔ پوښتنه ترې وکړه چې دوی نران الله حرام کړی دی او که ښځې، یا هغه بچی چې د اوښو او د غواګانو په خیټو کښ وی؟[120] آیا تاسو په هغه وخت کښ حاضر وئ کله چې الله دې د حرامید وحکم تاسو ته کولو؟ نو بیا د هغه سړی نه به زیات ظالم نور څوک وی چې په الله پورې دې د پاره دروغ وتړی چې د علم نه بغیر د خلقو غلطه رهنمائی وکړی۔ یقیناً الله داسې ظالمانو ته صحیح لاره نه ښائی۔ع

اے محمدؐ! دوی ته ووایه چې کومه وحی ما ته راغلې ده په هغې کښ خو زه هیڅ څیز داسې نه وینم چې هغه په

[119] یعنی ګمان او وهم او د پلار نیکه روایتونه مه پیش کوئ بلکه علم پیش کړئ که تاسو سره وی۔

[120] دا سوال دومره په تفصیل سره ځکه پیش کړے شو چې هغوی ته په خپله د خپل د دې وهمونو غلطی ښکاره شی۔ دا خبره چې د یو ځناور نر وحلال وی او ښځه وحرام وی، یا ښځه حلاله وی او نر وحرام وی، یا ځناور په خپله حلال وی خو د هغه بچی وحرام وی، دا ښکاره داسې غلطه خبره ده چې صحیح عقل دې منلو ته تیار نه دې او یو هوښیار انسان دا تصور نشی کولے چې خدائے به دا بے مطلبه او فضول حکم نه کړی وی۔ بیا که چې په کوم طریقه قرآن د هر یو خلق ته په غلطو وهمونو باندې پوهه کولو کوشش کړے دے بالکل هم په دغه طریقه د دنیا نورو هغو قومونو ته د هغوی په فضول او لغوه وهمونو باندې خبردار ے ورکړے کیدے شی، چې هغوی د خوراک څښاک په څیزونو کښ د حرامولو او د حلالولو غلطے او نامناسبه پابندۍ لګولی وی۔

مُحَرَّمًا عَلٰى طَاعِمٍ يَّطْعَمُهٗۤ اِلَّاۤ اَنْ يَّكُوْنَ مَيْتَةً اَوْ دَمًا مَّسْفُوْحًا اَوْ لَحْمَ خِنْزِيْرٍ فَاِنَّهٗ رِجْسٌ اَوْ فِسْقًا اُهِلَّ لِغَيْرِ اللّٰهِ بِهٖ ۚ فَمَنِ اضْطُرَّ غَيْرَ بَاغٍ وَّلَا عَادٍ فَاِنَّ رَبَّكَ غَفُوْرٌ رَّحِيْمٌ ﴿۱۴۵﴾

یو خوروکی باندې حرام وي، ماسوا د دې نه چه هغه مردار وي، یا بهولې شوې وینه وي، یا د خنزیر غوښه وي ځکه چه هغه پلیته ده، یا فسق وي چه د الله نه بغیر د بل چا په نوم باندې ذبحه کړې شوې وي.[121] بیا چه څوک د مجبورئ په حالت کښې (د دې څیزونو نه څه وخوري) ولې هغه چه د نافرمانئ اراده ئې نه وي او د ضرورت نه زیاتې نه کوي، نو یقیناً چه ستاسو رب معاف کونکې او رحم کونکې دې.

[121] دا خبره د سورة بقرې په آیت ۱۷۳ کښې او د سورة مائدې په آیت ۳ کښې تیره شوې ده او وړاندې د سورة نحل په آیت ۱۱۵ کښې راتلونکې ده.

د سورة بقرې په آیت کښې او په دې آیت کښې په ظاهره دومره اختلاف دې چه هلته صرف "وینه" ویلې شوې ده او دلته د وینې سره د مَسْفُوْحٌ لفظ لګولې شوې دې، یعنې داسې وینه چه د یو څناور نه په زخمي کیدو یا په ذبح کیدو وتلې شوې وي. خو په اصل کښې دا اختلاف نه دې بلکه دا د هغې حکم تشریح ده. دغه شان د سورة مائدې په آیت کښې د دې څلورو څیزونو نه علاوه د یو څو نورو څیزونو حرامولې هم ذکر شوې دې، یعنې هغه څناور چه مرئي ئې بنده شوې وي یا ئې ګذار خوړلې وي یا د لوړې نه راغورځیدلې وي یا ئې ښکره خوړلې وي او مړ شوې وي یا یو درنده ماتې کړې وي. لیکن په حقیقت کښې دا هم اختلاف نه دې بلکه یوه تشریح ده چه دا تر معلومیږي چه کوم څناور په دې طریقه هلاک شوې وي هغه هم مُردار وي.

د دین اسلام په فقهاؤ کښې یوه ډله د دې خبرې قائله ده چه په حیواني خوراکونو کښې بس هم دا څلور څیزونه حرام دي او د دې نه علاوه د بل هر څیز خوراک جائز دې. دا مسلک د حضرت عبدالله ابن عباس رض او حضرت عائشې رض وو. لیکن د ډیرو احادیثو نه دا معلومیږي چه نبي صلی الله علیه وسلم د څه څیزونو د خوراک نه یا خو منع کړې ده یا ئې په هغې باندې د ناخوښئ اظهار کړې دې مثلاً کورنئ خره، د داړو والا درندګان او د پنجو والا مارغان. د دې وجې نه اکثر فقهاء وائي چه بس صرف دا څلور څیزونه حرام نه دي بلکه نور څیزونه ورسره هم حرام دي. خو د دې نه روستو بیا د مختلفو څیزونو په حلالوالي او حراموالي کښې د فقهاؤ اختلاف دې. مثلاً کورنئ خره د امام ابوحنیفه رح، د امام مالک رح او د امام شافعي رح په نزد باندې حرام دې. لیکن څنې نور فقهاء وائي چه حرام نه دې بلکه په څه وجه سره نبي صلی الله علیه وسلم په یوه موقع باندې دا منع کړې وو. درنده څناور او ښکاري مارغان او مُردار خوره څناور د حنفیه علماء مطلقاً حرام وائي. خو د امام مالک او د اوزاعي په نزد باندې ښکاري مارغان حلال دي. د لیث په نزد باندې پیشو حلاله ده. د امام شافعي رح په نزد باندې صرف هغه درندګان حرام دي چه په انسان باندې حمله کوي. شرمخ، زمرې او پړانګ وغیره. د عکرمه په نزد باندې کارغه

وَعَلَى الَّذِيْنَ هَادُوْا حَرَّمْنَا كُلَّ ذِيْ ظُفُرٍ ۚ وَمِنَ الْبَقَرِ وَالْغَنَمِ حَرَّمْنَا عَلَيْهِمْ شُحُوْمَهُمَآ اِلَّا مَا حَمَلَتْ ظُهُوْرُهُمَآ اَوِ الْحَوَايَآ اَوْ مَا اخْتَلَطَ بِعَظْمٍ ۗ ذٰلِكَ جَزَيْنٰهُمْ بِبَغْيِهِمْ ۖ وَاِنَّا لَصٰدِقُوْنَ ﴿۱۴۶﴾

او كومو خلقو چه يهوديت اختيار كړو په هغوئ باندې مونږه ټول نوكونو والا ځناور حرام كړي وو، او د غوا او د چيلئ وازګه پرهم مونږه حرام كړې وه بغيرد هغې وازګې نه چه د هغوئ د شاګانو يا د هغوئ د كولمو سره نښتي وي يا د هډوكي سره لګيدلې وي - دا ورله مونږه د سركشئ سزا[۱۲۲] وركړې وه او دا څه چه مونږه وايو دا بالكل رښتيا وايو -

او كوركړ (بجو) دواړه حلال دي. د غه شان حنفي عالمان وائي چه د زمكې ټول واړه واړه زنده سري حرام دي، خو د ابن ابي ليلى، امام مالك او د اوزاعي په نيز باندې ما رحلال دے -

د دے ټولو مختلفو قولونو او د هغې په دليلونو باندې د غور كولو نه دا خبره صفا معلوميږي چه په اصل كښې په شريعت الٰهي كښې قطعي حراموالے صرف د هغې څلورو شيزونو دے چه د هغې ذكر په قرآن كښې شوے دے. د دې نه علاوه په نورو حيواني خوراكونو كښې د مختلفو درجو مكروهوالے دے. د كومو شيزونو مكروهوالے چه د صحيح رواياتو مطابق د نبي صلى الله عليه وسلم نه ثابت دے هغه حراموالي ته ډير نزدې دي، او په كومو شيزونو كښې چه د فقهاؤ په مينځ كښې اختلاف راغلے دے د هغې مكروهوالے شكمن دے. پاتې شوه د طبيعت ناخوښتيا چه څنے خلق د څنے شيزونو خوړل نه خوښوي، يا د طبيعې په لحاظ سره ناخوښتيا چه د انسانانو څنے طبقې څنے شيزونه نه خوښوي، يا د قوم په لحاظ سره ناخوښتيا چه څنے قومونه د څنې شيزونو نه نفرت كوي، نو شريعت الٰهي هيڅوك په دے نه مجبوره دي چه هغوي دِ خامخا هر هغه شيز ضرور خوري كوم شيز چه حرام كړے شوے نه دے. او د غه شان شريعت هيچا ته دا حق هم نه وركوي چه د خپلې ناخوښتيا نه د قانون جوړ كړي، او په هغه خلقو دِ الزامونه لګوي څوك چه د د ناخوښتيا شيزونو نه په استعمال كښې راولي.

[۱۲۲] دا خبره په قرآن مجيد كښې په دريو ځايونو كښې بيان شوي ده. په سورة آل عمران كښې دي "د خوراك دا ټول شيزونه (چه د محمد په شريعت كښې حلال دي) د بني اسرائيلو د پاره هم حلال وُو، البته څنے شيزونه داسې وُو چه هغه د توراة د نازليدو نه مخكښې اسرائيلو مخپله په ځان باندې حرام كړي وُو. دوئ ته ووايه چه راوړئ توراة او د هغې يو عبارت پيش كړئ كه تاسو (په خپل اعتراض كښې) رښتيني يئ." آيت ۹۳. بيا په سورة نساء كښې دي چه د بني اسرائيلو د جرمونو په وجه "مونږه ډير هغه پاك شيزونه په هغوئ باندې حرام كړل چه اول د هغوئ د پاره حلال وُو." آيت ۱۶۰ - او دلته دا ارشاد دے چه د هغوئ د سركشئ په بدله كښې مونږه په هغوئ باندې ټول د نوكونو والا ځناور حرام كړل او د چيلئ او د غوا وازګې مو پرېهم حرام كړے - دا درے واړه آيتونه چه راجمع كړے شي نو دا ترې معلوميږي چه د حيواني

فَإِنْ كَذَّبُوكَ فَقُلْ رَّبُّكُمْ ذُو رَحْمَةٍ وَاسِعَةٍ ۚ وَلَا يُرَدُّ بَأْسُهُ عَنِ الْقَوْمِ الْمُجْرِمِينَ ﴿١٤٧﴾ سَيَقُولُ الَّذِينَ أَشْرَكُوا لَوْ شَاءَ اللَّهُ

اوس که چرې دوی تا نه دروغژن ووایي نو ته ورته ووایه چې ستاسو رب د فراخه رحمت خاوند دے او د مُجرمانو نه د هغه عذاب څوک نشي واپس کولے[۱۲۳]

دا مشرکان به (ستا د خبرو په جواب کښې) ضرور دا وائي چې "که الله غوښتلے

خوراکونو د حلالوالی او د حراموالی په باره کښې د شریعت محمدیؐ او د یهودی فقهې په مینځ کښې کوم فرق دے د هغې دوه وجې دی.

یوه دا چې د تورات د نازلیدو نه په سوونو کاله مخکښې حضرت یعقوب (اسرائیل) علیه السلام د څنې څیزونو استعمال پرېښودلے وو او د هغه نه روستو د هغه اولادهم دغه څیزونه پرېښودلی وو، نو په دے وجه یهودی عالمانو دغه څیزونه باقاعده حرام وګڼړل او د هغې حراموالے ئے په تورات کښې ولیکلو. په دے څیزونو کښې اُوښ او سُوَیه او ساقان شامل دی. ن په بائیبل کښې چه د تورات کوم جزونه مونږ ته ملاویږی په هغې کښې د دې څیزونو د حراموالی ذکر شته. (احبار ۱۱: ۴-۶ - استثناء ۱۴: ۷). لیکن په قرآن مجید کښې چه یهودیانو ته وېلے شوی وو چې را وړئ تورات او ښایئ کوم ځائے پکښې لیکلی دی چې دا څیزونه حرام دی، نو د دے نه معلوم شوه چې په تورات کښې د دے حکمونو اضافه د دے نه روستو شوې ده. ځکه چې که چرې هغه وخت په تورات کښې دا حکمونه موجود وے نو بنی اسرائیلو به فوراً پیش کړے وے.

دویمه وجه دا ده چې هرکله یهودیانو د الله تعالیٰ د نازل کړے شوی شریعت نه بغاوت وکړو او په خپله شریعت جوړونکی شو نو ډیر پاک څیزونه ئے پکښې د ډیر احتیاط په وجه مځنپله حرام کړل او الله تعالیٰ د سزا په طور هغوئي په دے حال کښې هم دغه شان پرېښودل . په دے څیزونو کښې نوکونو والا ځناور شامل دی، یعنی شترمرغ، لویه بطه او وړه بطه وغیره، او د غوا او د چیلئ وازګه شامله ده. په بائیبل کښې د دے دواړو قسمونو حراموالے د تورات په حکمونو کښې داخل کړے شوے دے. (احبار ۱۱: ۱۶-۱۸ - استثناء ۱۴: ۱۴ - ۱۵-۱۶ - احبار ۳: ۱۷ او ۷: ۲۲-۲۳). لیکن د سورة نساء نه معلومیږی چې دا څیزونه په تورات کښې حرام نه وو بلکه د حضرت عیسیٰ علیه السلام نه روستو حرام شوی دی، او تاریخ هم دا ګواهی کوی چې دا موجوده یهودی شریعت د دویمې عیسوی صدئ په آخیر کښې ربی یهوداه مکمل کړے دے.

پاتے شو دا سوال چې بیا دے څیزونو په حقله دلته او په سورة نساء کښې الله تعالیٰ د حَرَّمْنَا (مونږ حرام کړل) لفظ ولے استعمال کړو، نو د دے جواب دا دے چې خدائے چې یو څیز حراموی نو د هغې صرف دا یو صورت نه دے چې هغه یو پیغمبر او د یو کتاب په ذریعه څه څیز حرام کړی. بلکه د هغې یو صورت دا هم دے چې هغه په خپلو باغیانو بندګانو باندې بناوټی شریعت جوړونکی او جعلی قانون سازان مقرر کړی او بیا هغوی پرې پاک څیزونه حرام کړی. اولنی قسم حراموالے د خدائے د طرفنه د رحمت په طور باندې دی او دا دویم قسم حراموالے

مَآ اَشْرَكْنَا وَلَآ اٰبَآؤُنَا وَلَا حَرَّمْنَا مِنْ شَیْءٍ ؕ كَذٰلِكَ كَذَّبَ الَّذِیْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ حَتّٰی ذَاقُوْا بَاْسَنَا ؕ قُلْ هَلْ عِنْدَكُمْ مِّنْ عِلْمٍ فَتُخْرِجُوْهُ لَنَا ؕ اِنْ تَتَّبِعُوْنَ اِلَّا الظَّنَّ وَاِنْ اَنْتُمْ اِلَّا تَخْرُصُوْنَ ﴿۱۴۸﴾ قُلْ فَلِلّٰهِ الْحُجَّةُ الْبَالِغَةُ ۚ فَلَوْ شَآءَ لَهَدٰىكُمْ

نو نۀ به مونږ شرک کړے وے او نۀ به زمونږ پلار نیکونو، او نۀ به موږ څیز حرام کړے وے[124]." هم په دغسے خبرو باندې د دوئ نه وړمبو خلقو حق دروغ گنړلے وُو ترهغے پورے چه آخر زمونږ د عذاب خوند ئے وڅکو. دوئ ته وُوایه "آیا تاسو سره څۀ علم شته چه هغه مونږ ته پیش کړئ؟ تاسو خو بس صرف په گمان پسے ځئ او قیاس سونه لگوئ." بیا ورته وُوایه (ستاسو دے حُجت په مقابله کښ) "حقیقت ته رسیدونکے حجت خو د الله سره دے، بیشکه که خدائے غوښتلے نو تاسو ټولو ته

د الله د لعنت او د سزا په طور باندې وی.

۱۲۳ے یعنی که چرے تاسو اوس هم نافرمانئ پریښودله او د بندگئ صحیح لاره مو اختیار کړله نو وُبه وینئ چه ستاسو د رب رحمت ډیر فراخه دے. لیکن که په خپل جُرم او بغاوت باندې ټینګ شوئ نو بیا پوهه شئ چه د هغه د غضب نه مزیچ کونو والا هم بیا څوک نشته.

۱۲۴ے یعنی هغوئ به د خپل جُرم او د خپلو غلطو کارونو د پاره هغه پخوانی عذرونه پیش کوی چه همیشه ئې مُجرمان خلق پیش کوی. هغوئ به وائی چه زمونږ په حق کښ الله داخوارۍ چه مونږ شرک وُکړو او کوم څیزونه چه مونږ حرام گرزولی دی هغه حرام کړو. ځکه که چرے خدائے نه غوښتلے نو بیا داڅنګه ممکنه وُه چه مونږ به دا کار کړے وے. نو چونکه مونږ هم ټول کارونه د الله د مشیت مطابق کوؤ نو په مه دجه هغه صحیح دی، د دے که څه الزام راځی نو په مونږه باندې نۀ راځی، بلکه په خدائے باندې راځی. او دا مونږ چه څه کوؤ نو په دا سے کولو مونږه مجبور یو ځکه چه د دے نه بغیر مونږه د بل کار قدرت نۀ لرو.

أَجْمَعِينَ ﴿١٤٩﴾ قُلْ هَلُمَّ شُهَدَآءَكُمُ الَّذِينَ يَشْهَدُونَ أَنَّ اللّٰهَ حَرَّمَ هٰذَا ۚ فَإِن شَهِدُوا فَلَا تَشْهَدْ مَعَهُمْ ۚ وَلَا

بہ ئے هدایت کړے وے.[۱۲۵]

دوی ته ووایه چه "راولئ خپل هغه ګواهان چه ددے خبرے ګواهی وکړی چه خاص هم الله دا څیزونه حرام کړی دی." بیا که چرے هغوی ګواهی وکړی نو ته د هغوی سره ګواهی مه کوه،[۱۲۶] او هرګز د هغے خلقو

[۱۲۵] دا د هغوی د عذر مکمل جواب دے. ددے جواب تشریح داده -

اولنئ خبره ئے دا وکړه چه دا د مجرمانو پخوانے دستور دے چه د خپلو غلطو کارونو او د ګمراهئ د پاره د الله مشیّت د عذر په طور د پیش کوی او د دے په بهانه د صحیح لارے قبلولو نه انکار کوی. خو د دا سے مجرمانو همیشه دا انجام وی چه آخر تباه شی او انجام ئے خراب شی.

بیائے دا وفرمائیل چه کوم عذر تاسو پیش کوئ دا خو څه حقیقی علم نه دے بلکه صرف ستاسو ګمان او اندازه ده. تاسو د مشیّت لفظ هسے چرته اوریدلے دے او بیا مو په هغے باندے قیاسونه لګول شروع کړی دی. تاسو په دے پوه نه یئ چه د انسان په حق کښ واقعی د الله مشیّت څه دے. تاسو د مشیّت دا معنیٰ اخستلی ده چه غل که چرے د الله د مشیت لاندے غلا کوی نو هغه مجرم نه دے، ځکه چه هغه دا کار د خدائے د مشیّت لاندے کړے دے. حالانکه د انسان په حق کښ د خدائے مشیّت دا دے چه انسان د شکر او د کفر، د هدایت او د ګمراهئ، د فرمانبردارئ او د نافرمانئ نه کومه لاره ځان د پاره خوښوی نو خدائے به ورته هم هغه لاره برابروی، او بیا چه کوم کار انسان کول غواړی، خواه که هغه غلط وی او که صحیح، نو خدائے به ورته د خپل عالمګیر مصلحت مطابق د هغے کار کولو اجازت ورکوی او د هغه کار د کولو توفیق به هم ورکوی. نو دا تاسو او ستاسو پلارانو او نیکونو چه د الله د مشیّت لاندے شرک کولو او د پاکو څیزونو د حراموالی توفیق موندلے دے نو د دے دا مطلب نه دے چه ستاسو نه به د دے کارونو تپوس نه کیږی. او دا تاسو چه غلطه لاره ځان له خوښه کړې ده او دا غلطے ارادے او غلط کوششونه کوئ نو ددے ذمه واری خو په تاسو باندے په خپله

په آخر کښ ئے په یو فقره کښ د هغوی د پوهه کولو خبره هم وفرمائیله چه فَلِلّٰهِ الْحُجَّةُ الْبَالِغَةُ فَلَوْ شَآءَ لَهَدٰىكُمْ اَجْمَعِيْنَ. یعنی تاسو د خپل معذرت د پاره دا حجت پیش کوئ چه "که چرے الله غوښتلے نو مونږ به شرک نه وو کړے"، دا پوره خبره نه ده. پوره خبره کول که غواړئ نو دا سے وایئ چه "که چرے الله غوښتلے نو تولو ته به ئے هدایت کړے وے." یعنی تاسو په خپله خوښه نیغے لارے اختیارولو ته تیار نه یئ، بلکه دا غواړئ چه لکه څنګه الله تعالیٰ فرښتے پیدائشی طور په نیغه لاره او فرمانبرداره جوړې کړی دی چه دغه شان تاسو هم جوړ کړی. نو بیشکه که د الله مشیّت د انسان په حق کښ دا وے نو هغه ضرور دا سے کولے شوه، لیکن دا د هغه مشیّت نه دے، نو کومه ګمراهی چه تاسو د خپل ځان د پاره په خپله خوښه کړې ده الله به هم په دغے ګمراهئ کښ تاسو پریږدی.

[۱۲۶] یعنی که هغوی د شهادت ذمه واری و پیژندله او په دے پوهه شو چه شهادت د هغے خبرے پکار دے

تَتَّبِعْ اَهْوَآءَ الَّذِيْنَ كَذَّبُوْا بِاٰيٰتِنَا وَالَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ بِالْاٰخِرَةِ وَهُمْ بِرَبِّهِمْ يَعْدِلُوْنَ ﴿۱۵۰﴾ ع قُلْ تَعَالَوْا اَتْلُ مَا حَرَّمَ رَبُّكُمْ عَلَيْكُمْ اَلَّا تُشْرِكُوْا بِهٖ شَيْئًا

په خواهشاتو پسې مه ځه کوم خلقو چه زمونږه آيتونه دروغ ګڼړلي دي، او چه د آخرت نه منکر دي، او چه نور څوک د خپل رب برابر جوړه وي. ع

اے محمدؐ، دوی ته ووایه چه راشئ چه زه تاسو ته واوروم چه ستاسو رب په تاسو باندې کومے پابندیانے لګولی دي؛[127]

(۱) دا چه د هغه سره هیڅوک مه شریکوئ،[128]

چه د هغه سړي ته علم وي، نو بیا په دے خبره ګواهي ورکړي چه د خوراک څکاک کومے پابندئ مونږ کوو دا ټولے د خدای د طرفنه مقرر دي. لیکن که مخلق د شهادت ذمه واري ونه پیژندله او دومره بے حیا شو چه د خدای په نوم باندې د دروغو ګواهئ کوي، نو ته ورسره په دے دروغو کښې مه شامليږه. ځکه چه د هغوئ نه د ګواهئ اخستلو مطلب نه دے چه که چرے دوی ګواهي ورکړي نو ته به د دوی خبره منے، بلکه د دے غرض صرف دا دے چه په دوی کښې په کوم خلقو کښې څه لږ غوندے هم راست بازي موجود ده هغوئ ته چه کله دا ووینئ شي چه واقعي تاسو د دے خبرے ګواهي کوئ چه دا پابندیانے خدای مقرر کړي دي نو هغوئ به د خپلو رسمونو په حقیقت باندې غور وکړي، او چه دا ثبوت ورته ملاو نشي چه دا د خدای د طرفنه دي نو بیا به د دے فضول رسمونو د پابندئ نه منع شي.

[127] یعنې ستاسو رب چه کومے پابندیانے لګولی دي هغه هغه پابندیانے نه دي چه د کومو تاسو پابند یئ، بلکه اصل پابندیانے هغه دي کومے چه الله د دے د پاره لګولی دي چه انساني ژوند په ترتیب کښې راولي او کومے چه همیشه د الله د هر شریعت بنیادي اصول دي. (د مقابلے د پاره وګورئ د بائیبل کتاب خروج، باب ۲۰).

[128] یعنې نه د خدای په ذات کښې څوک د هغه سره شریکوئ، نه د هغه په صفاتو کښې، نه د هغه په اختیاراتو کښې او نه د هغه په حقونو کښې.

د خدای په ذات کښې شرک دا دے چه د الله سره په ذات کښې څوک شریک کړے شي. مثلاً د عیسایانو په عقیده تثلیث کښې عیسیٰ ته د خدای ځوئ، وئیل، د عربو د مشرکانو فرښتو ته د خدای لونړه وئیل، او د نورو مشرکانو خپل دیوتاګان او خپل شاهي خاندانونه د الله په ذات کښې شریکول دا ټول شرک في الذات دے.

د خدای په صفاتو کښې شرک دا دے چه د خدای کوم خاص صفتونه دي هغه د بل چا د پاره ثابتوي. مثلاً

وَّبِالْوَالِدَيْنِ إِحْسَانًا ۚ وَلَا تَقْتُلُوٓا أَوْلَادَكُم مِّنْ إِمْلَاقٍ ۖ نَّحْنُ نَرْزُقُكُمْ وَإِيَّاهُمْ ۖ وَلَا تَقْرَبُوا الْفَوَاحِشَ مَا ظَهَرَ مِنْهَا وَمَا بَطَنَ ۖ

(۲) او د مور او پلار سره نیک سلوک کوئ، [۱۲۹]

(۳) او خپل اولاد د غریبۍ د یره نه مه وژنئ، مونږه تاسو له هم رزق درکوو او هغوئ له به هم ورکوو.

(۴) او د بے شرمئ خبرو ته نژدے هم مه ورځئ خواه که هغه ښکاره وی او که پټے وی. [۱۳۰]

د چا په حقله دا عقیده لرل چه د هٔ نه د غیبو ټول حقیقتونه ښکاره دی، یا هغه هر څه اوری او وینی، یا هغه د هر نقص او د هر یو کمزورئ نه پاک دے او د هغه نه بالکل خطا نه کیږی.

په اختیاراتو کښې شرک دا دے چه کوم اختیارات د الله سره خاص دی هغه د الله نه بغیر د بل چا د پاره ؤ منلے شی. مثلاً په غیر فطری طریقه باندې یعنی غیبی چا ته نفع یا نقصان رسول، د چا حاجت پوره کول، د چا مدد کول، د چا حفاظت کول، دعا گانے اوریدل، قسمتونه جوړه ول او وانول. د غه رنګه د حلالو او د حرامو او د جائزو او د ناجائزو د پاره حد و نه مقرره ول او د انسانی ژوند د پاره قانون جوړول. دا ټول اختیارات خاص د الله دی په دے اختیاراتو کښې نور څوک شریکول شرک دے.

په حقونو کښې شرک دا دے چه د خدائے تعالیٰ کوم خاص حقونه په بندګانو باندې دی هغه ټول حقونه یا د هغے نه څه حقونه د خدائے نه بغیر د بل چا د پاره ؤ منلے شی. مثلاً رکوع او سجده، لاس په نامه ودریدل، سلامی او دیدار ښکلول، د شکریه یا د لوئیئ د پاره نذرانه و قربانی کول، د حاجت پوره کولو او د مشکلاتو د لرے کولو د پاره نذر منل یا قربانی کول، په مصیبت کښې د مدد د پاره آواز کول، د غه شان د عبادت، د عظمت او د بزرګئ نور ټول صورتونه د الله خاص حقونه دی. د غه شان دا هم قسم محبت لرل چه نور ټول محبتونه پرې قربان کړے شی، او دا هم قسم یریدل چه په ښکاره او په پټه د هغهٔ د ناراضګئ او د هغه د حکم د خلاف ورزئ نه یریږی، دا هم صرف د الله حق دے. او دا هم د الله حق دے چه بغیر د څه شرط نه د هغه حکم ؤ منلے شی، او د هغه هدایت د صحیح او د غلط معیار ؤ منلے شی، او د یو داسے حکم ته غاړه کیښودے شی چه هغه د الله د اطاعت نه آزاد یو مستقل اطاعت وی او چه د هغے د پاره د الله د حکم سند نه وی. په دے حقونو کښې چه څوک هم بل چا له ورکړے شی هغه به د الله شریک وی اګر که هغه ته ئې نوم ورته څوک اخلی او که نه اخلی.

[۱۲۹] په نیک سلوک کښې ادب، عزت کول، خبره منل، د هغه د رضا خیال ساتل او خدمت کول ټول داخل دی. په قرآن کښې په هر ځائے کښې د مور او پلار دا حق د توحید د حکم نه روستو بیان کړے شوے دے چه د دے نه دا صفا معلومیږی چه د خدائے نه روستو د انسانانو په حقونو کښې د ټولو نه اولنے حق د مور او پلار دے.

وَلَا تَقْتُلُوا النَّفْسَ الَّتِي حَرَّمَ اللَّهُ إِلَّا بِالْحَقِّ ۚ ذَٰلِكُمْ وَصَّاكُم بِهِ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُونَ ﴿١٥١﴾ وَلَا تَقْرَبُوا مَالَ الْيَتِيمِ إِلَّا بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ حَتَّىٰ يَبْلُغَ أَشُدَّهُ ۖ

(۵) او کوم روح چه الله محترم کړے دے هغه مه وژنئ مګر په حقه سره[۱۳۱]۔
دا هغه خبرے دی چه دده هدایت الله تاسو ته کړے دے شاید چه د عقل نه کار واخلئ۔
(۶) او دا چه د یتیم مال ته مه نږدے کیږئ مګر په داسے طریقے سره چه هغه بهترینه وی[۱۳۲]، تر دے پورے چه هغه د بلوغ عمر ته ورسی،

---

[۱۳۰] په اصل کښ لفظ "فواحش" استعمال شوے دے، دا هغه ټولو کارونو ته وائي چه د هغے ناکاروالے بالکل واضح وی. په قرآن مجید کښ زنا، د قوم لوط عمل (یعنی په نر انسان باندې خپل شهوت پوره کول)، لغړوالے، د دروغو تهمت، او د کومے ښځے سره چه د پلار نکاح شوی وی د هغے سره نکاح کول، دا کارونه په فحش کارونو کښ شمار کړے شوی دی. په حدیث کښ غلا کول او شراب څکلو او سوال کولو ته د فحش کارونه ویلے شوی دی. دغه شان نور ټول د شرم کارونه هم په فواحشو کښ داخل دی او د الله دا حکم دے چه دا قسم کارونه مه په ښکاره کوئ او مه پټ.

[۱۳۱] یعنی انسانی روح، چه په اصل کښ د خدائے د طرفه حرام کړلے شوے دے، هغه مه وژنئ مګر په حقه سره. اوس پاتے شوه دا خبره چه د "په حقه سره" څه مطلب دے، نو ددے درے قسمونه په قرآن کښ بیان کړے شوی دی او دوه قسمونه نور نبی صلی الله علیه وسلم بیان کړی دی. قرآن چه کوم قسمونه بیان کړی دی هغه دا دی،
(۱) چه چا بل انسان په قصد باندې قتل کړے دی او په هغه باندې د قصاص حق قائم شوے وی۔
(۲) چه د دین حق د قائمولو په لار کښ څوک په خنډ جوړ شوے وی او د هغه سره د جنګ کولو نه بغیر بله څه چاره نه وی۔
(۳) چه په دار اسلام کښ بد امنی خوروی یا د اسلامی حکومت د ړنګولو کوشش کوی۔
باقی هغه دوه قسمونه چه په حدیث کښ راغلی دی، هغه دا دی؛
(۴) چه واده ئے کړے دی او ښځه ئے وی او زنا وکړی۔
(۵) چه د اسلام نه واپس کفر ته لاړ شی او د اسلامی جماعت نه ووځی۔
ددے پنځو قسمونو نه علاوه بل په هیڅ شکل کښ د انسان د پاره د انسان قتل حلال نه دے، خواه که هغه مومن وی یا ذمی وی یا کافر وی۔
[۱۳۲] یعنی داسے طریقه چه په هغے کښے خپل هیڅ څه غرض نه وی، نیت ئے پکښ صفا وی او د یتیم ښیګړه

وَأَوْفُوا الْكَيْلَ وَالْمِيزَانَ بِالْقِسْطِ ۖ لَا نُكَلِّفُ نَفْسًا إِلَّا وُسْعَهَا ۖ
وَإِذَا قُلْتُمْ فَاعْدِلُوا وَلَوْ كَانَ ذَا قُرْبَىٰ ۖ وَبِعَهْدِ اللَّهِ أَوْفُوا ۚ

(۷) او په ناپ تول کښې پوره انصاف کوئ، موږ په هیچا باندې د ذمه وارئ هغومره بار نه ږدو څومره چه د هغه په وس کښې وی، [۱۳۳]

(۸) او هر کله چه خبره کوئ نو د انصاف خبره کوئ اګر که معامله د رشته دارانو سره وی،

(۹) او د الله وعده پوره کړئ [۱۳۴]

ځه په خیال کښې وی، چه نه پرې د خدائے د طرفنه څه اعتراض راځي او نه د مخلوق د طرفنه ـ

[۱۳۳] دا اګر چه د الله تعالیٰ د شریعت یو مستقل اُصول دے، لیکن دلته د دے د بیانولو مقصد دا دے چه چا د خپله وسه پورے د ناپ تول او د لین دین په معاملاتو کښې د ربښتنولئ او د انصاف نه کار واخستلو نو هغه د خپله ذمه وارئ نه خلاص شو. په هیره یا په ناپوهئ سره چه څه کمے زیاتے راشي نو د هغه به ترې تپوس نه کیږی ـ

[۱۳۴] "د الله د وعدے" نه مراد هغه وعده هم ده چه انسان ئې د خپل خدائے سره وکړی، او هغه وعده هم ده چه د خدائے په نوم ئې د بل انسان سره وکړی، او هغه وعده ترهم مراد ده چه د انسان او د خدائے په مینځ کښې او د یو انسان او د بل انسان په مینځ کښې په هغه وخت کښې خود بخود وشی څه وخت چه یو انسان د خدائے په زمکه باندې په انسانانو کښې پیدا شی ـ

اولنئ دواړه وعدے د پوهے او د ارادے وعدے دی، او دا دریمه وعده یوه فطری وعده (Natural Contract). ده او که چه په دے کښې د انسان د ارادے څه دخل نه دے لیکن د اولنو دواړو وعدو نه په احترام کښې هیڅ کمه نه ده ـ دا انسان له چه خدائے وجود ورکړے دے، هر قسم طاقتونه او استعدادونه ئې ورکړی دی، د هغه د زمکے او د رزق او د سامانونو نه فائده اخلی، او د قدرت د قانون لاندې د ژوند نه فائده اخلی، د دے ټولو فائدو په وجه په انسان باندې د خدائے ځه حقونه فطری لحاظ سره پخپله راځی. او دغه شان چه یو سړے د یوے مور په خیټه کښې د هغې په وینو تغذیه کیږی او د مور او پلار په محنت سره په ودان کور کښې پیدا شی او بیا په مختلفو شکلونو کښې د اجتماعی ژوند د بے شماره مختلفو ادارو نه فائده اخلی، نو د دے په وجه د ډیرو افرادو او د اجتماعی ادارو حقونه هم خود بخود په ده باندې راځی. د انسان چه د خدائے سره او د یو انسان چه د بل انسان سره کومه وعده ده دا څه په کاغذ باندې نه ده لیکلے شوی بلکه د انسان په هر رګ او بیخته باندې لیک ده. دا وعده انسان په خپله اراده سره نه ده کړی خو د انسان ټول وجود د دے وعدے احسان مند دے. د دے وعدے طرفته د سورة بقره په آیت ۲۷ کښې اشاره شوی ده چه فاسقان خلق هغه دی څوک چه "د الله وعده د وعدے د مضبوتیا نه روستو

ذٰلِكُمْ وَصّٰكُمْ بِهٖ لَعَلَّكُمْ تَذَكَّرُوْنَ ﴿۱۵۲﴾ وَاَنَّ هٰذَا صِرَاطِيْ مُسْتَقِيْمًا فَاتَّبِعُوْهُ ۚ وَلَا تَتَّبِعُوا السُّبُلَ فَتَفَرَّقَ بِكُمْ عَنْ سَبِيْلِهٖ ۭ ذٰلِكُمْ وَصّٰكُمْ بِهٖ لَعَلَّكُمْ تَتَّقُوْنَ ﴿۱۵۳﴾

دا دے خبرو هدایت الله تاسو ته کړے دے. شاید چه تاسو نصیحت قبول کړئ.

(۱۰) دا رنګے د هغه هدایت دا دے چه دا زما نیغه لار ده نو تاسو خاص پر دے باندے ځئ او په نورو لارو باندے مه ځئ، ځکه چه نورے لارے به تاسو د خدائے د لارے نه وا ړوی او تاسو به خواره واره کړی.[۱۳۵] دا دے هغه هدایت چه ستاسو رب تاسو ته کړے دے شاید چه تاسو د کوږ رفتار نه بچ شئ.

ماتوی، او الله چه د کوم شیز د ترلو حکم کړے دے هغه پریکوی او په زمکه کښ فساد خوروی ـ هم د دے وعدے ذکر وړاندے د سورة اعراف په آیت ۲۷ کښ راغے چه په ازل کښ الله تعالیٰ د آدم د شانه د هغوی اولاد راایستلے ؤ او د اکواهی ئے ترې غوښتلے وه چه آیا زه ستاسو رب نه یم؟ او هغوی اقرار کړے وو چه هو، موږه ګواهان یو.

[۱۳۵] بره چه کومه فطری وعده ذکر شوه، نو د دغے وعدے ترڅنګه انسان لیکاردی چه د خپل رب په خودلی شوی لار باندے لاړ شی، ځکه چه د هغه د حکم نه مخ اړول او خود مختاره جوړیدل یا د غیر بندګی کول د دغے وعدے اولنی خلاف ورزی ده، او د دے خلاف ورزئ کو لو نه روستو بیا په هر قدم باندے د دغے وعدے لوطونه ماتیږی ـ د دے نه علاوه د دے نازکه او لوئه او پیچیده وعدے ذمه واری انسان ترهغے پورے نشی پوره کولے ترڅو چه هغه د خدائے په خودلی شوی لار باندے ژوند تیر نه کړی. د خدائے د رهنمائی د نه قبلولو دوه لوئ نقصانات دی. یو دا چه بله هره یو لاره انسان د هغه لارے نه بیلوے کوی کومه چه خدائے ته د نزدیکت او د هغه د رضا د حاصلولو اک یوه لار ده ـ دویم دا چه د دغے لوئے لارے نه د لرے کیدو سره بے شماره نرئ نرئ لارے انسان ته مخے ته راځی چه یو ځلے په هغے لاړکښ ورک شی نو بیا ټول انسانان خواره واره شی او د تار تار کیدو سره انسان بیا خپله ترقی په خوب کښ هم نشی لیدلے ـ دا دوه نقصانونه په دے فقره کښ بیان کړے شوی دی چه " په نورو لارو باندے مه ځئ ځکه چه نورے لارے به تاسو د خدائے د لارے نه وا ړوی او تاسو به خواره واره کړی"

(وګوره سورة مائده حاشیه نمبر ۳۵)

ثُمَّ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ تَمَامًا عَلَى الَّذِيْٓ اَحْسَنَ وَتَفْصِيْلًا لِّكُلِّ شَيْءٍ وَّهُدًى وَّرَحْمَةً لَّعَلَّهُمْ بِلِقَآءِ رَبِّهِمْ يُؤْمِنُوْنَ ﴿۱۵۴﴾ ع وَهٰذَا كِتٰبٌ اَنْزَلْنٰهُ مُبٰرَكٌ فَاتَّبِعُوْهُ وَاتَّقُوْا لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ ﴿۱۵۵﴾ اَنْ تَقُوْلُوْٓا اِنَّمَآ اُنْزِلَ الْكِتٰبُ عَلٰى طَآئِفَتَيْنِ مِنْ قَبْلِنَا ۠ وَاِنْ كُنَّا عَنْ دِرَاسَتِهِمْ لَغٰفِلِيْنَ ﴿۱۵۶﴾ اَوْ تَقُوْلُوْا لَوْ اَنَّآ اُنْزِلَ عَلَيْنَا الْكِتٰبُ لَكُنَّآ



بيا موږ موسیٰ ته کتاب ورکړے وُو چه د نعمت تکميل وُو په هغه انسان باندې چه نيکه لارې اختيار کړي وه او د هر ضروري څيز تفصيل وُو او سراسر هدايت او رحمت وُو او دے دپاره بني اسرائيلو ته ورکړے شوے وُو چه ) بنايئږي چه خلق د خپل رب په ملاقات باندې ايمان راوړي [۱۳۶] ع او دغه شان دا کتاب موږ نازل کړے دے، چه يو برکت والا کتاب دے. پس تاسو په دے پسے روان شئ او د تقوىٰ لارا اختيار کړئ، لږے نږده چه په تاسو باندې رحم وکړے شي. او س تاسو دا نشئ وئيلے چه کتاب خو زموږ نه رومبنو دوو ډلو له ورکړے شوے وو[۱۳۷] او موږ هيڅ خبر نه وُو چه هغوئ پکښ څه لوستل. او اوس تاسو دا بهانه هم نشئ کولے چه که چرے په موږ باندې کتاب نازل کړے شوے وے نو موږ به

[۱۳۶] د رب په ملاقات باندې د ايمان راوړلو نه مراد دا دے چه هر سړے دا ومنړي چه خدائے له به جواب ورکوي او بيا د ذمه دارئ ژوند تيره وي. د لته د دے خبرے مطلب نه کيدے شي. يو دا چه بني اسرائيل د دے کتاب د حکمت نه ډک تعليمات وګوري او د ذمه دارئ احساس پکښ پيدا کړے شوے وي نو په دا نيکانو خلقو کښ د دے هدايت اثرات او ويني او دا پته ورته ولږي چه څوک د آخرت نه د انکار په وجه غير ذمه دارانه ژوند تيروي د هغوئ په مقابله کښ د هغه خلقو ژوند په هر لحاظ سره بهتر دے چه آخرت مني او بيا د ذمه دارئ ژوند تيره وي، او په دے ليد لوګلو سره هغوئ د انکار د لارے نه د ايمان لارے ته راشي.

[۱۳۷] يعنی يهوديانو او عيسايانو له.

أَهْدٰى مِنْهُمْ ۚ فَقَدْ جَآءَكُمْ بَيِّنَةٌ مِّنْ رَّبِّكُمْ وَهُدًى وَّرَحْمَةٌ ۚ فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ كَذَّبَ بِاٰيٰتِ اللّٰهِ وَصَدَفَ عَنْهَا ۗ سَنَجْزِى الَّذِيْنَ يَصْدِفُوْنَ عَنْ اٰيٰتِنَا سُوْٓءَ الْعَذَابِ بِمَا كَانُوْا يَصْدِفُوْنَ ﴿۱۵۷﴾ هَلْ يَنْظُرُوْنَ إِلَّآ أَنْ تَأْتِيَهُمُ الْمَلٰٓئِكَةُ أَوْ يَأْتِىَ رَبُّكَ أَوْ يَأْتِىَ بَعْضُ اٰيٰتِ رَبِّكَ ۗ يَوْمَ يَأْتِىْ بَعْضُ اٰيٰتِ رَبِّكَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا إِيْمَانُهَا لَمْ تَكُنْ اٰمَنَتْ مِنْ قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِىْٓ إِيْمَانِهَا خَيْرًا ۗ قُلِ انْتَظِرُوْٓا إِنَّا مُنْتَظِرُوْنَ ﴿۱۵۸﴾

دَ هغوئ نه زيات په صيحم لاره ثابت شوے وے. تا سو ته ستا سو دَ رب دَ طرفه يو روښانه دليل او هدايت او رحمت راغلے دے، اوس به دَ هغه چا نه زيات ظالم څوک وي چه دَ الله آيتونو ته دروغ ووائي او مخ ترے وا اړوي.[۱۳۸] کوم خلق چه زمونږ دَ آيتونو نه مخ اړوي هغوئ له به دد ے مخ اړولو په بدله کښ مونږه بد ترينه سزا ورکوو - آيا اوس دا خلق دد ے خبرے انتظار کوونکي دي چه فرښتے ورته مخے ته ودريږي، يا ستا رب ورله بخپله راشي، يا ستا دَ رب څئے څرګندے نښے ورته ښکاره شي؟[۱۳۹] په کومه ورځ چه ستا دَ رب څئے خاص نښے ښکاره شي بيا به دا سے سړي ته دَ هغه ايمان هيڅ فائده نهٔ ورکوي چه هغه کښ ے ايمان نهٔ وي راوړے او يا چه چا په خپل ايمان کښ څه نيکي نهٔ وي ګټلي.[۱۴۰] اے محمد، دوئ ته ؤوايه چه ښه ده تا سو هم انتظار کوئ او مونږه هم انتظار کوو.

---

[۱۳۸] دَ الله دَ آيتونو نه مراد هغه ارشادات هم دي چه دَ قرآن په شکل کښ خلقو ته وړاندې کيدل، او هغه نښے ترے هم مراد دي چه دَ نبي صلي الله عليه سلم په شخصيت کښ او دَ مؤمنانو په پاک ژوند کښ صفا ښکاريدلے، او دَ کائنات هغه آثار ترے هم مراد دي چه قرآن دَ خپل دعوت په تائيد کښ دَ شهادت په طور پيش کول.

[۱۳۹] يعني دَ قيامت آثار، يا عذاب، يا څه بله داسے نښه چه حقيقت تر بالکل ښکاره کيږي او چه دَ هغے دَ ظاهريدو نه روستو بيا دَ امتحان او دَ ازميښت هيڅ ضرورت پاتے نشي.

[۱۴۰] يعني دا سے نښو ليدلو نه روستو که چرے يو کافر دَ کفر نه توبه ؤباسي او ايمان راوړي نو دَ هغهٔ دَ ايمان راوړلو فائده نشته، او که يو نافرمانه مؤمن خپله نافرماني پريږدي او دَ الله حکم ته غاړه کيږدي نو دَ هغے هم

إِنَّ الَّذِينَ فَرَّقُوا دِينَهُمْ وَكَانُوا شِيَعًا لَّسْتَ مِنْهُمْ فِي شَيْءٍ ۚ إِنَّمَا أَمْرُهُمْ إِلَى اللَّهِ ثُمَّ يُنَبِّئُهُم بِمَا كَانُوا يَفْعَلُونَ ﴿١٥٩﴾ مَن جَاءَ بِالْحَسَنَةِ فَلَهُ عَشْرُ أَمْثَالِهَا ۖ وَمَن جَاءَ بِالسَّيِّئَةِ

کومو خلقو چه خپل دین ټوټې ټوټې کړو او ډلې ډلې شو یقیناً چه د هغوئ سره ستا هیڅ واسطه نشته،[141] د هغوئ معامله الله ته حواله ده هم هغه به ورته وښائي چه هغوئ څه کړی دی. څوک چه د نیکئ سره الله ته حاضر شي نو د هغه د پاره لس چنده اجر دے، او څوک چه د بدئ سره حاضر شي

فائده نشته، ځکه چه د ایمان راوړلو او د اطاعت کولو قدر خو د هغې وخته پورې دے ترڅو پورې چه حقیقت پټ وی، او خپل عمل اسرې ته د پرېښکاری، او په دے دُنیاکښې د دے دکے امکان موجود وی چه خدائے څه ترواني آخرت چرته دے، بس خُوخوږه او څکه او مزه کوه۔

[141] خطاب نبی صلی الله علیه وسلم ته دے، او د هغه په واسطه سره بیا ټولو حق پرستو ته خطاب دے۔ د ارشاد مدعا دا ده چه د همیشه راهسے اصل دین دا دے، او اوس هم دا اصل دین دے چه انسان یو خدائے خپل معبود او رب ومنی۔ د الله په ذات کښې، په صفاتو کښې، په اختیاراتو کښې او په حقوقو کښې څوک د هغه سره شریک نه کړي۔ الله له د جواب ورکولو په غرض په آخرت باندې ایمان راوړي، او د هغه لویو اُصولو مطابق ژوند تیر کړي کوم چه الله تعالیٰ د خپلو رسولانو او د خپلو کتابونو په ذریعه ښودلی دی۔ دا دین ټولو انسانانو ته د اولے ورځے نه ورکړے شوے وُو۔ روستو چه بیا څومره مذهبونه جوړ شو هغه ټول په دے طریقه جوړ شو چه په مختلفو زمانو کښې خلقو خپل ذهن د غلطو خیالاتو نه، یا د خپل نفس د خواهشاتو د غلبے نه، یا په عقیده کښې د زیاتی کولو نه، دا دین بدل کړو او په دے کښې نوے نوے خبرے شاملے کړلے۔ دے دین په عقائدو کښې ئے د خپلو وهمونو او قیاسونو او فلسفو وجه نه کمے زیاتے او ادلون بدلون راوستلو۔ په حکمونو کښې ئے د بدعاتو اضافے وکړے، د ځانه ئے قانونونه جوړ کړل۔ په ورو ورو مسئلو کښې باریکئ ته لاړل، په فروعی اختلافاتو کښې ئے مبالغه وکړه۔ د اهم نه ئے غیر اهم او د غیر اهم نه ئے اهم جوړ کړل۔ په پیغمبرانو کښې او په دینی بزرګانو کښې د چا سره په عقیدت کښې د حد نه بهر ووتل او د چا سره ئے بغض او مخالفت شروع کړو۔ په دے طریقه بے شماره مذهبونه او فرقے جوړے شولے، او هر یو مذهب او فرقه چه به پیدا کیده نو انسانان به ئے په دُو مخالفو ډلو کښې تقسیمول۔ اوس چه څوک په اصلی دین حق پسے ځی نو د هغه د پاره دا خبره ضروری ده چه د دے ټولو ډلو نه جُدا شی او د دے ټولو نه خپله لاره جُدا کړی۔

فَلَا يُجْزٰٓى اِلَّا مِثْلَهَا وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ﴿١٦٠﴾ قُلْ اِنَّنِىْ هَدٰىنِىْ رَبِّىْٓ اِلٰى صِرَاطٍ مُّسْتَقِيْمٍ ۚ دِيْنًا قِيَمًا مِّلَّةَ اِبْرٰهِيْمَ حَنِيْفًا ۚ وَمَا كَانَ مِنَ الْمُشْرِكِيْنَ ﴿١٦١﴾ قُلْ اِنَّ صَلَاتِىْ وَنُسُكِىْ وَمَحْيَاىَ وَمَمَاتِىْ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ ﴿١٦٢﴾ لَا شَرِيْكَ لَهٗ ۚ وَبِذٰلِكَ اُمِرْتُ وَاَنَا اَوَّلُ الْمُسْلِمِيْنَ ﴿١٦٣﴾ قُلْ اَغَيْرَ اللّٰهِ

نو هغه ته به هغو مره بدله ورکړے کېدے شي څومره چه هغه قصور کړے وي، او په هیڅا بانديَ به ظلم نه کېږي.

اے محمدؐ، ووایه زما رب ما ته د یقین سره سیده لاره ښودلې ده، بالکل ټیک دین چه هیڅ کوږ والے پکښې نشته، د ابراهیم طریقه چه هغه د ټولو طرفونو نه یو طرف[142] اختیار کړے وو او هغه د مشرکانو نه وو. ووایه، زما مونځ، زما د عبادت طریقې[143]، زما ژوند او زما مرګ، ټول هر څه د الله رب العالمین دپاره دي چه د هغه هیڅوک شریک نشته. ما ته د دے حکم راکړے شوے دے او د ټولو نه اول حکم منونکے زه یم. ووایه، چه آیا زه د الله نه بغیر

[142] "د ابراهیمؑ طریقه" دا د هغې لارے د معلومولو دپاره یو بل صفت دے. اګر چه دے ته د موسیٰؑ طریقه یا د عیسیٰؑ طریقه هم ویلے کېدے شوه. خو په حضرت موسیٰؑ پورے وړو خلقو یهودیت تړلے دے او حضرت عیسیٰؑ پورے وړو خلقو عیسائیت تړلے دے، نو د دے وجه نه ورته "د ابراهیم طریقه" ووئیله. یهودیانو او عیسایانو دواړو لو حضرت ابراهیم منلو، او دواړو ته دا هم معلومه وه چه ابراهیمؑ د یهودیت او د عیسائیت د پیدا کیدو نه ډیر مخکښې تیر شوے وو. دغه رنګ د عربو مشرکانو هم دا منله چه ابراهیم په نیغه لار روان وو، او سره د جهالت نه ئې دا هم منله چه د کعبې بنیاد ونکوم انسان ایښودلے وو هغه خالص خدا پرست وو، بت پرست نه وو.

[143] په اصل کښې لفظ "نُسُك" استعمال شوے دے چه معنیٰ ئې قرباني هم ده او د عبادت هر قسم طریقو ته هم ویلے شي.

أَبْغِي رَبًّا وَهُوَ رَبُّ كُلِّ شَيْءٍ ۚ وَلَا تَكْسِبُ كُلُّ نَفْسٍ إِلَّا عَلَيْهَا ۚ وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ ۚ ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُم مَّرْجِعُكُمْ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ فِيهِ تَخْتَلِفُونَ ﴿١٦٤﴾ وَهُوَ الَّذِي جَعَلَكُمْ خَلَائِفَ الْأَرْضِ وَرَفَعَ بَعْضَكُمْ فَوْقَ بَعْضٍ دَرَجَاتٍ لِّيَبْلُوَكُمْ فِي مَا آتَاكُمْ ۗ إِنَّ رَبَّكَ سَرِيعُ الْعِقَابِ

بل رب وګورم حالانکه هم هغه د هر شي رب دے؟[۱۴۴] هر څوک چه څه کټي د هغې ذمه وار هغه پخپله دے، هیڅ یو بار وړونکے د بل بار نه وړی،[۱۴۵] بیا ستاسو د ټولو واپس تلل د خپل رب طرف ته دی، هغه به وخت به هغه ستاسو د اختلافاتو حقیقت تاسو ته ښکاره کړي. دا خو هم هغه دے چه تاسو ئے د زمکے خلیفه ګان جوړ کړي او په تاسو کښ ئے بعضو ته د بعضو په مقابله کښ زیاتے وچتے درجے ورکړلے، د پاره د دے چه څه ئے تاسو له درکړي دی چه په هغې کښ ستاسو ازمیښت وکړی.[۱۴۶] بیشکه چه ستا رب په سزا ورکولو کښ هم ډیر تیز دے

۱۴۴ یعنی د کائیناتو د ټولو شیزونو رب خو الله دے، زما رب بل څوک څنګه کیدے شي؟ دا خبره به څنګه مناسب وی چه ټول کائینات خو د الله حکم منی او د هغه په حکم وچلیږی، او زما خپل وجود هم د کائیناتو یو جزو په حیثیت د هغه په نظام باندې چلیږی، خو زه د خپل اختیاری ژوند د پاره څوک بل رب وګورم؟ آیا د ټولو کائیناتو خلاف یوائے زه په بل طرف روان شم؟

۱۴۵ یعنی هر سړے پخپله د خپل عمل ذمه وار دے، د یو د عمل ذمه واری په بل باندې نشته.

۱۴۶ په دے فقره کښ درے حقیقتونه بیان شوی دی:

یو دا چه ټول انسانان په زمکه کښ د خدائے خلیفه ګان دی، په دے شان سره خلیفه ګان دی چه خدائے ورله ډیر شیزونه د امانت په طور ورکړی دی او په هغو شیزونو باندې ورله د تصرف کولو اختیارات ورکړی دی.

دویم دا چه په دے خلیفه ګانو کښ د مرتبو فرق هم الله کړے دے، د چا په امانت کښ ډیر شیزونه دی او د چا کم، چاله ئے ډیر اختیارات ورکړی دی او چاله کم، چاله ئے د کار کولو زیات طاقت ورکړے دے او چاله ئے کم، او څئے انسانان هم د څنو انسانانو په امانت کښ دی.

وَإِنَّهُ لَغَفُورٌ رَّحِيمٌ ﴿١٦٥﴾ ع

او ډیر بخښونکے او رحم کونکے هم دے. ع

دریم دا چه دا ټول هرڅه په اصل کښې دَ امتحان سامان دے، ټول ژوند دَ امتحان یو ځائ دے، او چاله چه خدائ ورکړی دی هم په هغے کښې دَ هغه امتحان دے چه هغه څنګه دَ خدائ امانت استعمال کړو، ترڅو مره په رښتیا دَ امانت حق ادا کړو، او دَ کوم حده پورے ئے دَ خپل قابلیت ثبوت ورکړو. هم په دے امتحان بانده دَ ژوند په دوېیم مرحله کښې دَ انسان درجے مقرریږی.



